# توضیحات

د پښتو شرح

# مشکوٰة شریف

تالیف

حضرت مولانا فضل محمد یوسف زئی دامت برکاتهم
استاذ حدیث جامعة علوم اسلامیة بنوری ټاؤن کراچی

پښتو ترجمه

مولانا محمد فیض الهادي "مغاني"
سابق مدرس مدرسه تعلیم القرآن والحدیث
چارسده روډ پشاور

مکتبة الاصلاح
محله جنګی پشاور
0314-9797200
0345-1977797

# توضیحات مشکوة شریف

پښتو شرح

(جلد څلورم)

الشیخ حضرت مولانا فضل محمد یوسف زئی صاحب دامت برکاتهم
علامه استاذ حدیث جامعة علوم اسلامیة بنوری ټاؤن کراچی

پښتو ترجمه:
مولوي فیض الهادی حقاني

## د توضیحات پښتو شرح مشکوة خصوصیات:

- په اول جلد کې د اصول حدیث یوه مفیده مقدمه
- په متن باندې اعراب
- په ټیبل کې تحت السطور بامفهومه ترجمه
- هر حدیث ته مناسب عنوان ورکول
- د مشکوة المصابیح د آحادیثو تخریج د صحاح سته وغیره کتابونو نه کول
- د مشکوة المصابیح د مشکلو لغاتو حل کول
- په شرحه کې هر یو ځای ته مناسب عنوان ورکول
- د ائمه اربعو د مذاهبو بیان
- د مذاهبو دلائل بیانول
- د احنافو د مذهب د ترجیح وجوهات بیانول
- په شرح کې د مرقاة او د اشعة اللمعات د عباراتو حوالې ورکول
- د کتاب د هرې صفحې په سر د کتاب او باب خودنه
- د هر کتاب په اول کې د ضروري مباحثو بیان
- بین القوسین په اضافي قیوداتو سره مزید وضاحت کول
- د مشکلو ابحاثو د سوال او جواب په ذریعه حل کول
- د جدید او قدیم بعضې مسائلو استنباط
- په آحادیثو کې د تعارض په صورت کې بهترین مطابقت راوستل
- په اتم جلد کې د مشکوة المصابیح د حدیثو د راویانو مفصل حالات

مکتبة الاصلاح
محله جنگی پشاور
0314-9797200
0345-1977797

## درخواست

د الله تعالیٰ په فضل وکرم سره د کمپوزنګ نظرثاني او تصحیح نه علاوه
د چهاپ کولو او جلد سازئ په ټولو مرحلو کښې د ډیر احتیاط نه کار
اخستلي شوی دی خو بیا هم انسان کمزوری دی.
که ددی احتیاط باوجود هم څه غلطي په نظر درشي نو اطلاع راکړئ
ان شاء الله په راتلونکي چهاپ کښې به ئې تصحیح اوکړو.

د کتاب نوم: توضیحات مشکوٰة شریف

مؤلف: الشیخ حضرت مولانا فضل محمد یوسف زئی دامت برکاتهم
علامه استاذ حدیث جامعة علوم اسلامیة بنوري ټاؤن کراچي.

ترجمه: مولوي فیض الهادي حقاني

کمپوزنګ: مولوي فیض الهادي حقاني

ناشر: مکتبة الاصلاح
محله جنګی پشاور
0314-9797200
0345-1977797

### د ملاویدو پتی:

| پاکستان | افغانستان |
| --- | --- |
| شبقدر | جلال آباد |
| اکوړه خټک | کابل |
| صوابی | خوست |
| شیوه اډه | ګردیز |
| مردان | غزنی |
| مینګوره | قندهار |
| تیمرګره | کوندوز |
| باجوړ | کنړ |
| ټل هنګو | مزارشریف |
| دوآبه | لغمان |
| ډیره اسماعیل خان | |
| بلوچستان | |
| چمن | |

# فهرست

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ

مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرٰهِيْمَ وَعَلٰى اٰلِ

اِبْرٰهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ

اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ

كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اِبْرٰهِيْمَ وَعَلٰى اٰلِ اِبْرٰهِيْمَ

اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ

# کتاب الدَّعْوَات

## د دعاګانو بیان

قال الله تعالیٰ: ﴿وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُوْنِيْ أَسْتَجِبْ لَكُمْ﴾ (سورة المؤمنون آیت: ٦٠).

وقال الله تعالیٰ: ﴿أُجِيْبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ﴾ (سورة البقرة آیت: ١٨٦).

﴿الدعاء هو طلب الادنی من الاعلی شیئاً علی وجه الاستکانة﴾ .(المرقات ٥/٥).

دعاء د اعلی ذات نه د عاجزۍ په طریقه د ادنی شیانو غوښتلو نوم دی. امام نووي رحمه الله وایي چې په هره زمانه کې د هر ځای علماء په دې باندې متفق دي چې دعاء غوښتل د نه غوښتلو په مقابله کې مستحب او بهتر دي. دعاء غوښتل په نصوص ظاهره سره په ثبوت سره د انبیاء کرامو مسنون عمل هم دی. ځکه چې ټولو انبیاء کرامو به ډېره دعاء غوښتله. (المرقات ٥/٥).

د ځینو صوفیاوو په نزد دعاء نه غوښتل بهتر دي. ځکه چې په دې کې د رضا بالقضاء غټه جذبه او غټه مظاهره کېږي چې بنده وایي څه چې الله تعالی وغواړي په هغې باندې مې صبر دی د دعاء ضرورت نشته. په دې دواړو اقوالو کې تطبیق داسې کیدلی شي چې په ځینو د نیکانو باندې یو خاص کیفیت طاري کېږي چې هغه استغراقي کیفیت وي. په دې کې د هغوي په نزد دعاء غوښتلو نه نۀ غوښتل بهتر دي. خو د دې کیفیت اعتبار نشته دی، نه دا ټولو خلکو ته ترلاسه دی. لهذا دعاء غوښتلو باندې د قرآن او حدیث په سووونو نصوصو باندې عمل کول غوره دي. د مسلمان دعاء که په شرطونو او آدابو سره وي، نو هغه خامخا قبلېږي، خو د قبلیدلو صورتونه بدلېږي. کله خو مطلوب شی بعینه ورکړل شي، کله یو خفیه مصیبت د دعاء د وجې نه ستون شي. او که هیڅ نوي نو د ثواب په توګه د آخرت لپاره دا دعاء ذخیره شي، د مسلمان دعاء نه ضائع کېږي. (المرقات ٥/١٠).

## د نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ شانِ شفاعت

| |
|---|
| ﴿١﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِكُلِّ نَبِيٍّ دَعْوَةٌ مُسْتَجَابَةٌ |
| ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د هر یو نبي لپاره یوه دعاء ده چې قبلېږي |
| فَتَعَجَّلَ كُلُّ نَبِيٍّ دَعْوَتَهُ وَ إِنِّي اخْتَبَأْتُ دَعْوَتِي شَفَاعَةً لِأُمَّتِي إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ |
| هر نبي د خپلې دعاء په اره تُندي وکړه خو ما خپله دعاء د خپل امت د شفاعت په خاطر د قیامت ترورځې |
| فَهِيَ نَائِلَةٌ إِنْ شَاءَ اللهُ مَنْ |
| پورې محفوظه ساتلې ده نو زما دا دعاء که خدای وغواړي نو زما د امت هر هغه سړي ته فائده ورکولی شي |

| |
|---|
| مَاتَ مِنْ أُمَّتِي لَا يُشْرِكُ بِاللهِ شَيْئًا . رَوَاهُ مُسلم وَ لِلْبُخَارِي |
| چې هغه په داسې حال کې مړوي چې هغه د خدای سره شریک نه وي جوړ کړي. او امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ |
| أَقْصَرُ مِنْهُ.[1] |
| دا روایت د دې نه کم نقل کړې دی. |

**توضیح**: مطلب دا دی چې الله تعالی هر نبي ته حکم کړیدی چې ته دعاء وغواړه زه به ستا یوه دعا خامخا قبلوم، هر نبي د دعاء دغه حق استعمال کړیدی. او د خپل قوم په خلاف یې ښېرې وکړه، مګر ما دعاء دا حق په دنیا کې نه دی استعمال کړی. بلکې د آخرت لپاره مې پریخی دی. د قیامت په ورځ باندې د ښېرې په ځای به د خپل امت لپاره به شفاعت کوم. انشاءالله دا شفاعت به هر هغه امتي ته ترلاسه کېږي، چې هغه په کفر او شرک باندې نه وي مړ شوی، که هغه ګناهګار ولې نه وي. په قیامت کې به د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو غټ شفاعت وي، چې هغې ته شفاعت کبری ویل کېږي دا به د ټولو انسانانو لپاره وي، د شفاعت صغری به ډیر صورتونه وي. ځینې خلک خو به د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د شفاعت په برکت سره به دوزخ ته د تګ نه وساتل شي. ځینې به دوزخ نه ژر راووځي. ځینې به جنت ته ژر لاړ شي، او د شفاعت په برکت سره به د ځینو درجې اوچتې کړی شي. (المرقات ۵-۵/٦)

**سوال**: دلته دا شکال په ذهن کې پیدا کېږي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د امت ځینو خلکو په خلاف ښېرې غوښتلي وه، لکه د رعل او ذکوان قبیلې او قبیله مضر وغیره په باره کې یې ښېرې وغوښتله، د مستهزئینو په خلاف یې ښېرې کړې ده؟

**جواب**: د دې سوال جواب دا دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ځینو قبیلو اغو ځینو نورو خلکو په باره کې بې شکه ښېرې کړیده لیکن د نورو انبیاوو ښېرې د هغوی د قومونو په حق کې قبوله شوه، او قومونه هلاک شول، لیکن د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د دعاء دا حق د آخرت لپاره محفوظ وساتلی شو، او په دنیا کې ښېرې ښخې قبوله نشوه، علامه طیبي چې څه لیکلي دي، د هغې خلاصه هم دا ده. په دې باره کې نور دا ویلی شي چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ښېرې اګرکه جزوي توګه باندې په دنیا کې اثر وکړو، لکه مستزئین په باره کې یې کړې وه، خو قومونه د موند نه ویستلو والا په یوځل ښېرې نه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ غوښتلي ده، او نه قبوله شوې ده. بلکې هغه د ذخیرې په توګه د آخرت لپاره وساتلی شوه. (الکاشف: ۳٦۴/۴)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹۹/۱۱ رقم الحديث: ٦۳۰۴، ومسلم في صحيحه ۱۱۴/۱ رقم الحديث: ۳۳۸.

## د رحمت نه رحمت جوړ شو

﴿۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : اللَّهُمَّ
او حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي علیه السلام د الله په دربار کې داسې دعا وکړه چې: اې زما ربه!
إِنِّي اتَّخَذْتُ عِنْدَكَ عَهْدًا لَنْ تُخْلِفَنِيهِ
ما ستا په دربار کې يو عريضه پيش کړې ده ته هغه ما لپاره قبوله کړه او ما مه نا اميده کوه (يعني زه د کرم
فَإِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ فَأَيُّ الْمُؤمِنِينَ
اميد واريم چې زما عريضه به خامخا قبليږي او هغه عريضه دا ده چې) زه يو انسان يم لهذا کوم مؤمن ته
آذَيْتُهُ شَتَمْتُهُ لَعَنْتُهُ
چې ما څه تکليف ورکړی وي په دې توګه چې ما هغه ته رد بد ويلي وي ما په هغه باندې لعنت کړی وي ما
جَلَدْتُهُ فَاجْعَلْهَا لَهُ صَلَاةً وَ زَكَاةً
هغه وهلی وي نو دا ټول شيان ته د هغه مؤمن په حق کې د رحمت سبب او د ګناهونو نه د پاکوالي ذريعه او
وَ قُرْبَةً تُقَرِّبُهُ بِهَا إِلَيْكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.[1]
خپل ځان ته نزديکت سبب يې جوړ کړې چې ته د دغه شيانو په سبب هغه ته نزديکت ورکړې د قيامت په ورځ

**توضيح: عهدًا:** عهد دلته د امن په معنی دی. مراد ترې نه داسې درخواست دی چې اې مولا! ما تا ته يو درخواست کړې دی. (المرقات: ۵/٦)

**لن تخلفنيه:** اميد دی ته به هغه نه رد کوې بلکې قبول به يې کړې. (المرقات: ۵/٦)

**فإنما أنا بشر:** د راتلونکې عذر لپاره دا جمله د تمهيد په توګه ده چې زه هم يو بشر يم، د بشريت په تقاضا کله غصه راشي، چا ته سخته خبره وکړم، يا يې ووهم، يا ښېرې وکړم، يا چا ته تکليف ورکړم، که ما داسې کړي وي، نو ته دا شيان د زحمت ځای په رحمت کې بدل کړه، او د قيامت په ورځ باندې د بُعد په ځای د قرب ذريعه يې جوړه کړه. (المرقات ۵/٦)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۷۰/۱۱ رقم الحديث: ٦٣٦١، ومسلم في صحيحه ۲۰۰۷/٤ رقم الحديث: ۲٦۰۰-۸۸.

## دعاء په عزم او جزم سره غوښتل په کار دي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " إِذَا دَعَا أَحَدُكُمْ |
| او ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: کله چې په تاسو کې څوک دعاء غواړي چې |
| فَلَا يَقُلْ : اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي إِنْ شِئْتَ ارْحَمْنِي إِنْ شِئْتَ ارْزُقْنِي إِنْ شِئْتَ |
| ای الله! ما وبخښې که ته وغواړې ما باندې رحم وکړې، که ته وغواړې، ما ته رزق را کړې که ته وغواړې |
| وَ لِيَعْزِمْ مَسْأَلَتَهُ |
| بلکې پکار ده چې هغه په عزم بالجزم او یقین او اعتماد سره دعاء وغواړي (د شک او شبه کلمه مثلاً که ته |
| إِنَّهُ يَفْعَلُ مَا يَشَاءُ |
| وغواړې وغیره دې نه استعمالوي) ځکه چې الله تعالی خوښله هغه څه کوي څه چې وغواړي په هغه |
| وَلَا مُكْرِهَ لَهُ ". [1] |
| باندې څوک زور کونکی نشته دی. |

**توضیح:** ولیعزم: یعنې پوره وثوق او اعتماد سره دعا غوښتل پکار دي، د څه شک لپاره ورېکې ځای نوي، خو کوم سړی چې کله په خپل غوښتلی شوي شي باندې مطمئن نوي، نو په دې تذبذب کې دغه شی هغه ته څنګه ورکړل کیدلی شي، الله تعالی په خپلو کارونو کې خپلواکه دی، د چا نه د اجازت اخستلو ضرورت ورته نشته دی، نه څوک ایسارونکی شته دی، لهذا نیغ په نیغه باندې د رب تعالی نه په پوره وثوق سره سوال کول پکار دي، داسې سوال دې نکوي چې ای الله! که ته مناسب وګڼې، ته ما ته فلانی شی را کړې. (المرقات: ۵/۶)

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " إِذَا دَعَا أَحَدُكُمْ |
| او ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل : کله چې په تاسو کې یو څوک دعاء غواړي |
| فَلَا يَقُلْ : اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي إِنْ شِئْتَ وَ لٰكِنْ لِيَعْزِمْ |
| نو داسې دې نه وایي چې ای خدایا ما وبخښې که ته وغواړې بلکې بغیر د څه شک او شبهې نه په یقین |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۱۳۹ رقم الحديث: ۶۳۳۸، ومسلم في صحيحه ۴/۲۰۶۳ رقم الحديث: ۷- ۶۷۸.

وَ لْيُعَظِّمِ الرَّغْبَةَ فَإِنَّ اللهَ لَا يَتَعَاظَمُهُ شيءٌ أعطاهُ ".[1]

او په پوره رغبت سره دې دعاء وغواړي ځکه چې الله چې څه هم ورکوي هغه لپاره څه مشکل نه دي

**توضيح: لايتعاظمه**: تعاظم د غټيدلو او د قابو نه د وتلو په معنی دی. يعنې الله تعالی چې څه ورکول وغواړي هغه د الله تعالی د قبضې نه بېرون ندي، نه دومره غټ دي چې الله تعالی دهغې په ورکولو عاجزه شي. (المرقات: ۵/۸)

## په ستړي کېدو باندې دعاء پرېښودل په کار نه دي

﴿۵﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : يُسْتَجَابُ لِلْعَبْدِ

او ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: د بنده دعاء د دعاء د شرطونو د قبليدو نه وروسته

مَا لَمْ يَدْعُ بِإِثْمٍ أَوْ قَطِيعَةِ رَحِمٍ مَا لَمْ يَسْتَعْجِلْ.

قبليږي ترڅو چې هغه د ګناه يا د خپلولی د ماتولو دعاء ونه غواړي، او ترڅو چې هغه تُندي ونه کړي

قِيلَ : يَا رَسُولَ اللهِ مَا الِاسْتِعْجَالُ ؟ قَالَ : " يَقُولُ : قَدْ دَعَوْتُ

وويل شو چې يا رسول الله! د تُندي څه مطلب دی؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: دعاء غوښتونکی بيا بيا وايي

وَ قَدْ دَعَوْتُ فَلَمْ أَرَ يُسْتَجَابُ لِي فَيَسْتَحْسِرُ عِنْدَ ذٰلِكَ وَ يَدَعُ الدُّعَاءَ ".[2]

چې ما دعا وغوښتله) ليکن ما هغه په قبليدلو کې ونه ليدله او بيا هغه ستړی کيني او دعاء غوښتل پرېږدي

**توضيح: بإثم**: د دعاء د نه قبليدو په دې حديث کې دوه شيان ذکر شوي: اول شی دا چې الله تعالی دعاء قبلوي په دې شرط چې دعاء کوم ناجائز او نامناسب شي سره متعلق نه وي مثلا يو ګستاخ او بې ادبه دا دعاء وغواړي چې الله ماته د شراب څښکلو يا زنا کولو توفيق راکړه، يا کوم نالائقه دا دعاء وغواړي چې ای الله! فلانی سړی وبخښې او حال دا وي چې هغه سړی په کفر باندې مړ وي، يا کوم نالائقه د يو محال شي دعا وغواړي، چې ای الله! ما ته په ويخه باندې خپل ديدار وکړه، دا ټول د دعاء ناجائز صورتونه دي. (المرقات ۵/۹)

**او قطيعة رحم**: د خپلولی د ماتولو دعاء يو سړی دا سې غواړي چې ای الله! زما د پلار او زما

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ٤ ۲۰۹۵ رقم الحديث ۹- ۲۷۳۵

(۲) اخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۹۵/٤ رقم الحديث: ۹- ۶۷۳۵.

ترمينځ جدائي راوله، د دې حديث مفهوم هم دا دی چې دغه شان دعاء نه قبلېږي لهذا دغه شان دعاء غوښتل په کار نه دي. (المرقات :۵/۶)

**مالم يستعجل:** دعاء د نه قبليدلو دا دويم شی دی يعنې الله تعالی دعاء قبلوي په دې شرط چې په دې کې تُندي نوي، صحابوو پوښتنه وکړه چې تُندي پکې څه ده؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: بنده وايي چې ما بيا بيا دعاء وغوښتله، قبلېږي خو نه، لهذا د دعاء ضرورت نشته. نو دغه شان په تُندي کولو کې هغه دعاء غوښتل پرېږدي. وې فرمايل: دغه شان کول په کار ندي. علماء ليکي چې کله په تُندي، کې دعاء نه قبلېږي ځکه چې الله تعالی ته د يو نيک بنده اصرار، التجاء او فرياد و عاجزي خوښه وي، د دې وجې نه ځينې بې دينه سړي دعاء ژر قبوله شي، ځکه چې هغه کله د الله تعالی مخې ته خپل لاسونه خپاره کړي، نو الله تعالی جبريل امين ته فرمايي چې ژر کوه، ده ته يې ژر ورکړه چې دا زما مخې ته لاسونه خواره نه کړي، کله دعاء د دې وجې نه نه قبلېږي. چې دا د آخرت ذخيره جوړه کړی شي، کله دعاء د دې وجې نه نه قبلېږي چې د دې هغې شرطونه او آداب نه وې پوره شوي، کله دعاء د دې وجې نه نه قبلېږي چې دعاء غوښتونکی نااميده کېدلو باندې دعاء غوښتل پرېږدي. (المرقات ۵/۱۰، الکاشف ۴/۳۶۸) او وايي چې:

اب دعاء بھی مجھے ایک کھیل نظر آتی ہے ❁ کسمپری میں خیالات بدل جاتے ہیں

## غائبانه دعاء قبلېږي

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "دعوةُ الْمُسْلِمِ لِأَخِيهِ |
| او حضرت ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل کوم مسلمان بنده چې د خپل مسلمان ورور |
| بِظَهْرِ الْغَيْبِ مُسْتَجَابَةٌ عِنْدَ رَأْسِهِ مَلَكٌ مُوَكَّلٌ كُلَّمَا |
| لپاره غائبانه دعاء غواړي نو هغه قبلېږي دعاء کونکې سرته يو فرشته متعين کړی شي کله چې هغه د |
| دَعَا لِأَخِيهِ بِخَيْرٍ قَالَ الْمَلَكُ الْمُوَكَّلُ بِهِ: آمِينَ |
| خپل مسلمان ورور لپاره د خير دعا غواړي نو هغه متعين شوي فرشته وايي چې اې الله! د ده دعا قبوله کړي |
| وَ لَكَ بِمِثْلٍ". [1] |
| او (دا هم وايي چې) ستا لپاره دې هم دغه شان وي. |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۴: ۲۰۹۴ رقم الحديث. ۸۶-۲۷۳۲.

**توضیح**: بظهر الغیب: یعنې غائبانه د یو مسلمان ورور د بل مسلمان لپاره دعاء قبلیږي ځکه چې په دې دعاء کې خواخوږي هم وي، او څه لالچ هم نوي، کله چې دا سړی د بل د حاجت پوره کېدو کوښښ کوي، نو الله تعالی د ده ضرورتونه هم پوره کوي، هم دا مطلب دی د حدیث د آخري جملو چې فرښتې سر ته ودرېږي او دهغه لپاره دعاء غواړي، د دې تائید په دې حدیث سره هم کېږي چې: اَللّٰهُ فِيْ عَوْنِ الْعَبْدِ مَادَامَ الْعَبْدُ فِيْ عَوْنِ اَخِيْهِ. (المرقات: ۱۰-۱۱/۵)

## ښېرې مه کوه، هسې نه قبولې شي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: لَا تَدْعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ وَ | | | | | | |
| حضرت جابر رضي الله عنه او ي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: خپل ځان لپاره ښېرې مکوه، او | | | | | | |
| لَا | تَدْعُوا | عَلَى | أَوْلَادِكُمْ | | | |
| مه د خپل اولاد لپاره او نه د خپل مال، غلام، وینزو، څاروو او د نور مال اسباب لپاره ښېرې کوه، دې لپاره | | | | | | |
| لَا | تُوَافِقُوا | مِنَ | اللّٰهِ | سَاعَةً | يُسْأَلُ | فِيهَا | عَطَاءً |
| چې هسې نه تاته د الله تعالی دا رخ نه هغه ساعت ترلاسه شي چې په هغې کې خدای هرسوال پوره کوي | | | | | | |
| فَيَسْتَجِيبَ لَكُمْ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَ ذُكِرَ حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ: اتَّقِ | | | | | | |
| او بیا به ستا ښېرو قبوله شي. او ذکر کړي دی حدیث د حضرت ابن عباس رضي الله عنه چې ځان وساته د | | | | | | |
| دَعْوَةَ الْمَظْلُومِ فَإِنَّهُ لَيْسَ بَيْنَهَا وَ بَيْنَ اللّٰهِ حِجَابٌ فِي كِتَابِ الزَّكَاةِ.[1] | | | | | | |
| مظلوم د ښېرې نه ځکه چې د مظلوم او د الله تعالی ترمینځ هیڅ پرده نه وي کتاب الزکوة کې ذکر شوې دی. | | | | | | |

**توضیح**: ساعة: یعنې دعاء د قبلیدلو د الله تعالی په نزد څه وختونه وي. هسې نه چې داسې وشي، چې ته ښېرې وکړې، او دلته د قبولیت ساعت وي، بیا به پښیمانه یې. او په لاس به هیڅ نه درځي. د مشکوة شریف د لوستلو په زمانه کې په مینګوره سوات کې دغه شان واقعه شوې وه، چې مور د زلمي ځوی لپاره داسې ښېرې وکړې چې الله تعالی دې ستا د بدن بلابیلې برخې کولو باندې ماته وښایي، نو ځوی چې د کور نه څنګه ووتلو نو د ښمنانو ونیولو او د هغه بدن یې ټوټې ټوټې کړو، کله چې دا ټوټې دهغه کور ته راورسیدې، نو مور یې چاړه راوخیستله او خپله ژبه غوڅولو کوښښ یې

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۸۸، رقم الحديث: ۱۵۳۲.

وکړو، ژبه يې راخکله خو هيڅ فائده يې نه وه؟ (المرقات ۵/۱۱).

اب پچھتائے کیا ہوت ✿ جب چڑیاں چگ گئیں کھیت

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## دعاء عبادت دی

| ﴿۸﴾عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلدُّعَاءُ هُوَ الْعِبَادَةُ ثُمَّ |
|---|
| نعمان بن بشير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: دعاء عبادت دی. او بيا د دې نه وروسته |
| قَرَأَ: ﴿وَ قَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ﴾.[1] |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام دا آيت ولوستلو: او ستاسو رب فرمايلي دي چې زما نه دعا غواړئ زه به ستاسو دعا قبلوم. |

**توضيح**: د دعاء دوه قِسمونه دي يو خو هغه دعاء ده چې کومه يو انسان د خپل رب نه د خپل ځان لپاره غواړي دا هم عبادت دی ځکه چې دا سړی خپل رب قادر ګڼي، خالق او مالک يې ګڼي. **فعال لما يريد** يې ګڼي نو ځکه د هغه نه دنياوي او اخروي دواړه کاميابۍ غواړي. ظاهره ده چې **الدعا هو العبادة** په دې باندې صادقېږي. د دعا دويم قِسم هغه دی چې يو سړی د خپل غائبانه حاجت لپاره يو رب راغواړي، په دې کې د دې سړي عقيده ده چې زما رب مشکل کشا دی، په غيبو هم پوهېږي، قادر مطلق هم دی، زه هغه راغواړم. قرآن عظيم کې په دې دعاء باندې ډېر زور ورکړل شويدی چې چيغه فقط د يو الله لپاره ده، دمکې مشرکانو به الله تعالى سره خپل معبودان په غائبانه حاجتونو کې رابلل. چې هغه الله تعالى شرک وګرځولو، نو دلته د يو الله رابلل عين عبادت بللې د عبادتونو خلاصه او مغز يې ګرځولی دی. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کوم آيت د استشهاد په توګه تلاوت کړو، د دېنه ه دا معلومېږي چې دعا نه دلته رابلل مراد دي. (المرقات ۵/۱۲)

## دعاء د عبادت مغز او خلاصه ده

| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلدُّعَاءُ مُخُّ الْعِبَادَةِ.[2] |
|---|
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: دعاء د عبادت مغز دی. |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲۷۹/٤ رقم الحديث: ۱۰٤۹.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۱۲۵/۵ رقم الحديث: ۳٤۳۱.

﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَيْسَ شَيْءٌ

او د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمایلي دي: نشته يو څيز د ډيرې

أَكْرَمَ عَلَى اللهِ مِنَ الدُّعَاءِ.[1]

او چتې مرتبې والا د الله تعالى په نزد د دعاء نه.

## دعاء او تقدير

﴿۱۱﴾ وَعَنْ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَرُدُّ الْقَضَاءَ إِلَّا الدُّعَاءُ

او حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل: د دعاء نه غير تقدير هيڅ شی نشي

وَلَا يَزِيدُ فِي الْعُمْرِ إِلَّا الْبِرُّ.[2]

بدلولی او عمر لره د نیکۍ نه غیره هیڅ شی نه شي ډیرولی.

**توضیح**: **القضاء**: یعني الهی تقدیر هیڅ شی نه شي بدلولی، هو! که کوم شی تقدیر بدلولی شي نو هغه دعاء ده. (المرقات: ۵/۱۴)

**سوال**: دلته سوال دا دی چې د قرآن او حدیث د ډېرو نصوصو نه دا ښکاري چې تقدیر لره هیڅ شی نشي بدلولی او دلته په حدیث کې دي چې دعاء تقدیر لره بدلوي.

**جواب**: تقدیر په دوه قسمه دی: یو تقدیر مبرم دی او بل تقدیر معلق دی تقدیر مبرم خو د الله تعالی اټل فیصله وي چې هغه په هیڅ صورت کې مخکې وروسته کیدی نه شي. دویم تقدیر معلق دی چې دهغې سره دا لیکل شوي وي فلانی سړی به په فلاني ځای کې غورزیدلو سره زخمي کیږي، خو! که هغه د خپل حفاظت لپاره دعاء وغواړي، نو بیا به نه غورزیږي. په تقدیر معلق کې تغیر تبدیل راتللی شي، دلته د بحث لاندې حدیث کې هم دا تقدیر معلق مراد دی. تقدیر مبرم مراد نه دی.

## دعا په هر حال کې فائده کوي

﴿۱۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ الدُّعَاءَ يَنْفَعُ مِمَّا

او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل: بېشکه دعاء د هغه شي لپاره هم فائده منده ده

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۲۵/۵ رقم الحديث ۳۴۲۹

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳۰۳/۳ رقم الحديث ۲۲۲۵

نَزَلَ وَ مِمَّا لَمْ يَنْزِلْ فَعَلَيْكُمْ عِبَادَ اللهِ

چې هغه پیښ شوي دي او د هغه شي لپاره هم فائده منده ده چې هغه ندي پیښ شوي لهذا اې د الله بنده ګانو

بِالدُّعَاءِ. وَرَوَاهُ أَحْمَدُ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ [1]

دعا د ځان لپاره ضروري وګڼئ.

﴿۱۳﴾ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا مِنْ أَحَدٍ يَدْعُو بِدُعَاءٍ

او حضرت جابر رضي الله عنه راوي دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: څوک چې هم دعاء غواړي نو الله تعالی

إِلَّا آتَاهُ اللهُ مَا سَأَلَ أَوْ كَفَّ عَنْهُ مِنَ السُّوءِ مِثْلَهُ

خو هغه ته یا هغه شی ورکړي کوم چې هغه غواړي، یا د هغې په بدله کې د هغه نه بدي ایساره کړي

مَا لَمْ يَدْعُ بِإِثْمٍ أَوْ قَطِيعَةِ رَحِمٍ. [2]

ترڅو چې هغه د ګناه کوم شی یا د خپلولۍ ماتولو دعاء ونه غواړي.

## دعاء غواړه او د فراختیا انتظار کوه

﴿۱۴﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: سَلُوا اللهَ مِنْ فَضْلِهِ

او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: الله تعالی نه د هغه د فضل په ذریعه

فَإِنَّ اللهَ يُحِبُّ أَنْ يُسْأَلَ وَ أَفْضَلُ الْعِبَادَةِ

وغواړه ځکه چې الله دا خبره ډېره خوښوي چې د هغه نه د هغه فضل وغوښتلی شي او د عبادت (یعنی دعا)

انْتِظَارُ الْفَرَجِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ [3]

د ټولو نه غوره شی د فراختیا انتظار کول دي.

**توضیح: انتظار الفرج:** یعنې که په چا باندې مصیبت نازل شي او هغه صبر وکړي، چا ته شکایت ونه کړي، نا امیدي ښکاره نه کړي دعا غواړي، او د مصیبت د ختمیدلو یقین وساتي. دا غوره عبادت دی. صبر کول د انسان په قوت ارادې کې ډېره مضبوطتیا ورکوي. او آخر هم هغه صابر او شاکر چې

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٥/٢١٢ رقم الحديث ٢٦١٦.
(۲) أخرجه الترمذي في السنن ٥/١٣٠ رقم الحديث ٣٤٤١.
(۳) أخرجه الترمذي في السنن ٥/٢٢٥ رقم الحديث ٣٦٣٢

هغه د مصيبتونو د ختميدو په انتظار کې ناست دی، کامياب شي. ځکه چې ان الله مع الصّابرين د الله تعالی ارشاد دی. (المرقات ۵/۴۵۶).

## د الله تعالی نه ، څه نۀ غوښتل د الله تعالی د ناراضګۍ سبب جوړيږي

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ لَمْ يَسْأَلِ اللهَ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي عليه السلام و فرمايل: کوم سړی چې د الله تعالی نه، نه غواړي |
| يغضب عَلَيْهِ[1] |
| الله تعالی د هغه نه ناراضه وي (ځکه چې د دعا پرېښودل د تکبر او استغناء نښه ده). |

**توضيح**: الله تعالی خو د ورکړې په صفت باندې متصف دی. نو هغه غواړي چې څوک غوښتونکی وغواړي د عربو شاعرانو په کلامونو کې غټې غټې قصيدې د باچاهانو د سخاوت په متعلق باندې ويلی شويدي په دې کې د باچاهانو نه غوښتنه د باچاهانو د خوشحالۍ ذريعه ګرځولی شويده. لکه:

کأن کل سوال في مسامعه ❁ قميص يوسف في اجفان يعقوب

په دغه انداز باندې دا حديث دی چې د الله تعالی نه يې څوک غواړي هغه خوشحالېږي، او څوک چې نه غواړي، هغه خفه کېږي، د انسان معامله د دې په عکس ده:

الله يغضب ان ترکت سؤاله ❁ وبنو آدم حين يسأل يغضب

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۶﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ | | | | |
| ابن عمر رضي الله عنه راوي دی چې نبي عليه السلام و فرمايل : په تاسو کې چې چا سړی لپاره د دعا دروازه | | | | |
| فُتِحَ | لَهُ | مِنْكُمْ | بَابُ | الدُّعَاءِ |
| خلاصه کړی شوه (يعني کوم سړی ته په پوره شرطونو او آدابو سره د پرو دعا و کولو توفيق ورکړی شونو | | | | |
| فُتِحَتْ | لَهُ | أَبْوَابُ | الرَّحْمَةِ | |
| پوهه شی چې) د هغه لپاره د رحمت دروازې خلاصې شوې (ځکه چې د دې دعاء په نتيجه کې خو د هغه | | | | |
| وَ | مَا | سُئِلَ | اللهُ | |
| غوښتلی شوی شی ورکول کېږي او کله غوښتلی شوی شي په بدله کې د هغه نه شر ليرې کړی شي) او الله نه | | | | |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۲۶/۵ رقم الحديث :۳۴۳۳.

| شَيْئًا يَعْنِي أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ أَنْ |
|---|
| نه هیڅ شی نه غوښتلی کېږي یعنې د الله تعالی په نزد د ټولو نه ډېر خوښ او محبوبه خبره دا ده چې د |
| يُسْأَلَ الْعَافِيَةَ. (۱) |
| هغه نه عافیت وغوښتلی شي. |

## که په فراخۍ کې دعاء غواړي نو په تنګسیا کې به دعاء قبلېږي

| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ سَرَّهُ |
|---|
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: د کوم سړي لپاره چې دا خبره د خوښۍ |
| أَنْ يَسْتَجِيبَ اللهُ لَهُ عِنْدَ الشَّدَائِدِ |
| او خوشحالۍ سبب وي چې د تنګسیا او سختۍ په وخت کې الله تعالی د هغه دعاء قبوله کړي نو هغه لپاره |
| فَلْيُكْثِرِ الدُّعَاءَ فِي الرَّخَاءِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ (۲) |
| پکار دي چې هغه د وسعت او فراختیا په زمانه کې ډېره دعا کوي. |

## د غافله زړه دعاء نه قبلېږي

| ﴿۱۸﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ادْعُوا اللهَ وَأَنْتُمْ مُوقِنُونَ بِالْإِجَابَةِ |
|---|
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: تاسو د دعا د قبلید لو یقین ساتلو سره د |
| وَاعْلَمُوا أَنَّ اللهَ لَا يَسْتَجِيبُ دُعَاءً مِنْ قَلْبٍ غَافِلٍ لَاهٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ (۳) |
| الله نه دعا غواړئ یاد ساتئ الله تعالی د غافله او لوبې کونکې زړه دعا نه قبلوي (یعنې د هغه سړي دعا نه |
| قبلوي چې د هغه زړه د دعا غوښتلو په وخت کې د الله تعالی نه غافله او په غیر الله کې مشغول وي. |

## د دعاء په وخت کې د لاسونو مخه دې څنګه وي؟

| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ مَالِكِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا سَأَلْتُمُ اللهَ |
|---|
| او حضرت مالک بن یسار رضي الله عنه فرمایي چې نبي علیه السلام وفرمایل: کوم وخت کې چې تاسو د الله تعالی |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲۱۲/۵ رقم الحديث:۲۵۱۶.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۱۳۰/۵ رقم الحديث :۳۴۴۵.

(۳) أخرجه الترمذي في السنن ۱۷۹/۵ رقم الحديث :۳۵۴۵.

| | | |
|---|---|---|
| فَاسْأَلُوهُ | بِبُطُونِ | أَكُفِّكُمْ |

نه دعا غواړئ نو د هغه نه د خپلو لاسونو د دننه اړخ په ذريعه سره دعا غواړئ، د هغه نه د خپلو د پاسه اړخ

وَلَا تَسْأَلُوهُ بِظُهُورِهَا . وَ فِي رِوَايَةِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ:

په ذريعه سره دعاء مه غواړئ، يو بل روايت د ابن عباس رضي الله عنه نه نقل دى چې نبي عليه السلام و فرمايل:

سَلُوا اللَّهَ بِبُطُونِ أَكُفِّكُمْ وَلَا تَسْأَلُوهُ بِظُهُورِهَا

چې د الله تعالى نه د خپل لاسونو د ننه اړخ په ذريعه دعا وغواړئ د هغه نه د خپلو لاسونو د پاسه اړخ په ذريعه

فَإِذَا فَرَغْتُمْ فَامْسَحُوا بِهَا وُجُوهَكُمْ .[1]

دعاء مه غواړئ او كله چې تاسو د دعاء نه فارغه شئ نو خپل لاسونه په خپل مخ باندې راكاږئ (دې

لپاره چې هغه بركت چې په لاسونو باندې راځي، خلي ته هم ورسيږي).

**توضيح: ببطون اكفكم:** اكف جمع ده. ددې مفرد كف دى د لاس تلي ته وايي. مطلب دا دى چې د دعا په وخت كې د دعاء د ادابو نه د لاس اوچتول دي، دويم ادب دا دى چې دا دلاسونو اړخ يعنې د لاس دننه تلي خُلې ته مخامخ وي، مقصود دا چې د لاسونو په سرچپه كولو سره دعا كولو مه غواړئ، خو! د استسقاء دعا حالت د دې نه مستثنى دى، په هغې كې د لاسونو سرچپه كولو سره دعاء غوښتل د بل مصلحت لپاره دي. (المرقات ۵/۵۵۶ ، الكاشف ۴/۳۷۸)

## الله تعالى د دعاء لپاره اوچت شوي لاسونه نه محروم كوي

﴿۲۰﴾ وَ عَنْ سَلْمَانَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِنَّ رَبَّكُمْ حَيِيٌّ

او حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه راوي دى چې نبي عليه السلام و فرمايل: ستاسو رب ډېر حياناك دى. هغه

| | | | |
|---|---|---|---|
| كَرِيمٌ | يَسْتَحْيِي | مِنْ عَبْدِهِ | إِذَا |

بغير د غوښتلو نه وركونكى دى او هغه د خپل بنده نه حيا كوي، چې هغه خالي لاسونه ستون كړي او حال

رَفَعَ يَدَيْهِ إِلَيْهِ أَنْ يَرُدَّهُمَا صِفْرًا .[2]

دا وي چې د هغه بنده د هغه اړخ ته (د دعا لپاره) خپل دواړه لاسونه وچتوي.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۷۸، رقم الحديث ۱۴۸۶.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۷۸، رقم الحديث ۱۴۸۸.

## د دعاء نه وروسته لاسونه په مخ باندې راښكل سنت دى

| |
|---|
| ﴿٢١﴾ وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَفَعَ يَدَيْهِ فِي الدُّعَاءِ |
| او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به كله د عا ته خپل دواړه لاسونه وچت كړل نو |
| لَمْ يَحُطَّهُمَا حَتَّى يَمْسَحَ بِهِمَا وَجْهَهُ. (١) |
| دا به يې تر هغه وخته پورې نه ابېږدل ترڅو چې به يې په خپل مخ باندې نه وو راښكلي. |

**توضيح**:اذا رفع: د دې حديث نه په واضحه توګه باندې معلومه شوه چې په دعاء كې لاس اوچتول سنت دي. دويمه خبره دا معلومه شوه چې په دعا كې د الله تعالى مخې ته خپاره لاسونه د بركتونو نه ډک شي. نو د دې وجې نه د دعا نه پس خپل لاسونه په مخ باندې راښكل پكار دي د دې لپاره چې بركت حاصل شي. نن سبا عرب په دعا كې داسې اهتمام نه كوي. (المرقات: ٥/٢٣)

## نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به جامع دعاء خوښوله

| |
|---|
| ﴿٢٢﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَحِبُّ الْجَوَامِعَ مِنَ الدُّعَاءِ |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به هغه دعاګانې خوښولې چې هغه جامع دي او هغه |
| وَ يَدَعُ مَا سِوَى ذٰلِكَ. (٢) |
| دعاګانې به يې پرېښودلې چې جامع نه دي. |

**توضيح**: جامع دعا هغه وي چې په هغې كې الفاظ كم وي، خو دنياوي او اخروي فائدې وركې ډېرې وي. لكه اللهم ربنا اتنا في الدنيا حسنة الخ يا: اللهم اني اسئلك العفو والعافية في الدنيا والآخرة.

| |
|---|
| ﴿٢٣﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وسلم: إِنَّ أَسْرَعَ الدُّعَاءِ إِجَابَةً |
| او حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: ډېر ژر قبليدونكې دعا هغه |
| دَعْوَةُ غَائِبٍ لِغَائِبٍ. (٣) |
| ده چې هغه غائب د غائب لپاره وكړي. |

---

(١) أخرجه الترمذي في السنن ٥/١٣١ رقم الحديث: ٣٤٤٦.

(٢) أخرجه أبوداؤد ١/٥٥٢، رقم الحديث: ١٤٨٤.

(٣) أخرجه أبوداود في السنن ٢/٧٧، رقم الحديث: ١٤٨٢.

## د مشرانو، کشرانو نه د دعاء غوښتنه

﴿۲۲﴾ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ اسْتَأْذَنْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْعُمْرَةِ

او حضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه راوي دی چې یو ځل ما د نبي علیه السلام نه د عمرې د اداکولو اجازت

فَأَذِنَ لِيْ وَ قَالَ : أَشْرِكْنَا يَا أُخَيَّ فِيْ دُعَائِكَ

وغوښتلو نو نبي علیه السلام ماته اجازت راکړو او وې فرمایل چې: ای زما کشرورو ره! په خپله دعاکې مونږ

وَ لَا تَنْسَنَا . فَقَالَ

هم شریک کړه. او د دعاء په وخت کې ما مه هیروه. حضرت عمر رضي الله عنه وایي چې نبي علیه السلام داسې

كَلِمَةً مَا يَسُرُّنِيْ أَنَّ لِيْ بِهَا الدُّنْيَا. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَانْتَهَتْ رِوَايَتُهُ عِنْدَ قَوْلِهِ لَا تنسنا.[1]

کلمه ارشاد کړه که د دې په بدله کې ماته ټوله دنیا هم راکړی شي نو ماته به خوشحالي نه وي.

**توضیح:** حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د عمرې لپاره د مدینې نه مکې ته تللو نبي کریم صلی الله علیه وسلم هغه ته وفرمایل: زما کشرورو ره په خپلو نیکو دعاو کې ما هم شریک کړه او ما په خپله دعا کې هیر نه کړې په دې حدیث سره یوه خبره په پوهه کې راغله چې په نبي علیه السلام کې عبودیت او عاجزې په انتهایي درجې سره وه چې خپل یو خادم او امتي ته د دعا درخواست کوي. دویمه خبره دا په پوهه کې راغله چې کله یو مسلمان د اسلام یو غټ شعار سره یوځای شي نو دهغه خپله مرتبه اوچته شي. حضرت عمر رضي الله عنه ته دا مرتبه د بیت الله زیارت او دهغې په برکت سره ورکړل شوه. دریمه خبره دا معلومه شوه چې د غټ مقام سړی د خپل ځان نه د کمې درجې والا ته د دعا درخواست کولی شي. څلورمه خبره دا معلومه شوه چې هر مسلمان لپاره پکار دي چې هغه په خپلو نیکو دعاګانو کې ټول امت شریک کړي. پنځمه خبره دا معلومه شوه چې د فاروق اعظم رضي الله عنه شومره غټ مقام دی. (المرقات ۵/۲۳)

**فقال کلمة:** حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په دې کلمې سره دومره خوشحاله شوه چې وې فرمایل: که د دې په بدله کې ماته ټوله دنیا راکړی شي. ماته به په هغې سره دومره خوشحالي نه وي، اوس پوښتنه داده چې هغه کومه کلمه ده چې هغې ته حضرت عمر رضي الله عنه اشاره کوي؟ (المرقات ۲۴-۵/۲۳)

د دې جواب دا دی چې په ښکاره باندې دا ښکاري چې د دعا کوم درخواست نبي علیه السلام حضرت

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۸۹/۲، رقم الحديث : ۱۵۳۵.

عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته وکړو او په دې کې د اشرکنا کلمه وفرمایله او ورسره یې د شفقت لپاره د یا اُخَيَّ ای زما کشر وروره ! کلمه ارشاد کړه. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ دې اړخ ته اشاره کوي. او دا هم ممکنه ده چې هغه کلمه بله څه وه، چې هغه دلته نده نقل کړې شوي. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ هغې اړخ ته دلته فقط اشاره وکړه، اوله توجیه واضحه ده . د دې حدیث نه د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د شان عظمت او د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نزد د هغه د مقام ښه اندازه کېږي. (المرقات ۵/۲۳).

## د مظلوم دعاء نه رد کېږي

﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ثَلَاثَةٌ لَا تُرَدُّ دَعْوَتُهُمْ:

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل: درې کسان دي چې د هغوی دعا نه رد

الصَّائِمُ حِينَ يُفْطِرُ

کېږي: ۱-روژه دار کله چې هغه روژه ماتی کوي (یعنې د روژه ماتي په وخت کې دعاء کوي نو د هغه دعا

قبلېږي ځکه چې هغه د عبادت دادا کېدلو نه وروسته کېږي. او دا چې د غه وخت د عاجزۍ او مسکینۍ

وَ الْإِمَامُ الْعَادِلُ

حالت وي) ۲- د خلکو سردار او حاکم چې هغه عدل او انصاف وکړي (ځکه چې په حدیث کې دي چې

دیو ساعت عدل د شپیته کالو د عبادت نه غوره دی نو ځکه د دې فضیلت د وجې نه د ده دعا قبلېږي

وَ دَعْوَةُ الْمَظْلُومِ يَرْفَعُهَا اللهُ فَوْقَ الْغَمَامِ

۳- د مظلوم دعا، کله چې مظلوم دعا کوي نو الله تعالی د هغه دعا د وریځو د پاسه خیژوي او د دې

وَ تُفْتَحُ لَهَا أَبْوَابُ السَّمَاءِ وَ يَقُولُ الرَّبُّ : وَ عِزَّتِي

دعا لپاره د آسمان دروازې برسیرته شي او پروردګار فرمایي چې: زما دې په خپل عزت باندې قسم وي

لَأَنْصُرَنَّكِ وَلَوْ بَعْدَ حِينٍ ". [1]

زه به ستا خامخا امداد کوم، اګر که هغه د څه وخت وروسته وي (یعنې ستا حق به نه ضائع کوم او ستا

دعا به نه رد کوم اګر که وخت پکې د بر تېر شي).

**توضیح: یرفعها**: یعنې د قبلولو لپاره دا آسمانونو ته وچت کړې شي. ګویا الله تعالی دا د برژر

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۵۵۷/۱ رقم الحديث :۱۷۵۲.

قبلوي.او نه يې رد کوي. د نورو خلکو دعاګاني تروسه په زمکه باندې وي. د مظلوم دعا د الله دربار ته رسيدلې وي.(المرقات :۵/۲۳) چا څه ښه ويلي دي:

**به ترس از آهِ مظلومان که هنگام دعا کردن اجابت از درِ حق بهرِ استقبال می آید**

**ولو بعد حين:** يعنې اګرکه ناوخته شي خو زه به خامخا ستا امداد کوم زما سره ناوخته يې خو ورکيدل نه يې. په دې حديث کې د درې کسانو د دعاء ذکر دی. د دې سره حديث کې پلار او د مسافر د دعا ذکر هم دی. او حديث ۳۵ کې د پنځه کسانو د دعاء د قبليدو بيان دی. لهذا په دريو کې حصر نشته دی. (المرقات :۵/۲۵)

## د پلار، مسافر او د مظلوم دعاء قبوله ده

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ثَلَاثُ دَعَوَاتٍ مُسْتَجَابَاتٍ لَا شَكَّ فِيهِنَّ: |
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې درې دعاګانې قبليږي دهغې په قبليدلو کې هيڅ شک نشته يو خود |
| دَعْوَةُ الْوَالِدِ وَدَعْوَةُ الْمُسَافِرِ وَدَعْوَةُ الْمَظْلُومِ ".[1] |
| پلار دعا، دويم د مسافر دعا او ديم د مظلوم دعا. |

**توضيح:** د پلار دعا د خپل اولاد په حق کې ډيره ژر قبليږي، دغه شان بد دعا (خيري) هم قبليږي. لکه چې د پلار قبليږي نو د مور دعاء به په طريق اولی سره قبليږي. ځکه چې هغه په شفقت کې د پلار نه ډيره ده. مسافر اګرکه دعاء د خپل ځان لپاره وکړي، يا د نورو لپاره وکړي، د ده دعاء د سفر په وجه قبليږي، او بد دعا يې هم قبليږي. (المرقات ۲۶-۵/۲۵)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د بوټ تسمه هم د الله تعالی نه وغواړه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۷﴾ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لِيَسْأَلْ أَحَدُكُمْ | | | | | | | | |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: په تاسو کې هرسړی ته پکار دي چې هغه خپل | | | | | | | | |
| رَبَّهُ | حَاجَتَهُ | كُلَّهَا | حَتَّى | يَسْأَلَهُ | شِسْعَ | نعله | إِذا | انْقَطع |
| ټول حاجتونه د خپل رب نه وغواړي تردې چې د هغه د بوټ تسمه وشليږي نو هغه دې هم د خدای نه وغواړي | | | | | | | | |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۷۹/۲، رقم الحديث . ۱۵۳۶

| زَادَ فِي رِوَايَةٍ عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ مُرْسَلًا |
|---|
| ترمذي په یو بل روایت کې چې د ثابت بناني نه په طریقې د ارسال سره نقل دی، دا الفاظ هم نقل کړیدي |
| حَتَّى يَسْأَلَهُ الْمِلْحَ وَ حَتَّى يَسْأَلَهُ شِسْعَهُ إِذَا انْقَطَعَ.[۱] |
| چې تر دې چې مالګه هم د هغه نه وغواړه، او که د بوټ تسمه دې وشلېږي نو هغه ترې نه هم وغواړه. |

## په دعاء کې د لاس او چتولو اندازه

| ﴿۲۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي الدُّعَاءِ حَتَّى |
|---|
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به د دعا په وخت کې خپل لاسونه دومره او چتول چې د |
| يُرَى بَيَاضُ إِبطَيْهِ.[۲] |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د تخرګونو سپین والی به ښکاریدلو. |

**توضیح**: په دعا کې د لاس او چتولو اوسطه درجه هم داده نن سبا عربان په ځنګونانو باندې لاس اېږدلو یا څه لږ د پاسه کولو سره دعا غواړي. چې د دې نه تکبر ښکاریږي، ځینې عرب سر د پاسه دواړه لاسونه وړلو سره دعا کوي، دا افراط او تفریط دی. هو! یوه دعا د ابتهال ده. چې سړی په اضطرار او اضطراب کې وي، او په ژړا فریاد سره لاسونه پورته ویسي، دا عام معمول ندی، هو! د استسقاء دعا د دې نه مستثنی ده. (المرقات: ۵/۲۷)

| ﴿۲۹﴾ وَعَن سهل بن سَعْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: كَانَ يَجْعَلُ أُصْبَعَيْهِ |
|---|
| او حضرت سهل ابن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دواړه ګوتې یعنې د دواړو |
| حِذَاءَ مَنْكِبَيْهِ وَ يَدْعُو.[۳] |
| لاسونو ګوتو سرونه به یې خپلو او ږو پورې وړل او بیا به یې دعا غوښتله. |
| ﴿۳۰﴾ وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا دَعَا فَرَفَعَ يَدَيْهِ |
| او سائب ابن یزید د خپل پلار نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به کله دعا غوښتله او خپل دواړه لاسونه به یې |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۴۲، رقم الحديث: ۲۶۸۲.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۷۹، رقم الحديث: ۱۴۸۹.

(۳) أخرجه المستدرك على الصحيحين ۱/۷۱۸، رقم الحديث: ۱۹۶۴.

| | | |
|---|---|---|
| مَسَحَ | وَجْهَهُ | بِيَدَيْهِ.(۱) |

اوچت کړل نو په خپل مخ باندې به یې دواړه لاسونه راخکل.

## په دعاء کې لاس ډېر اوچتول بدعت دي

﴿۳۱﴾ وَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ : الْمَسْأَلَةُ

او عکرمه د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کوي چې هغه وفرمایل: سوال (دعا) کولو ادب او طریقه داده

أَنْ تَرْفَعَ يَدَيْكَ حَذْوَ مَنْكِبَيْكَ أَوْ نَحْوِهِمَا وَ الِاسْتِغْفَارُ

چې ته خپل دواړه لاسونه د خپلو اوږو سره برابر یا هغې ته نژدې اوچت کړه. د استغفار ادب دادی چې ته

أَنْ تُشِيرَ بِأُصْبُعٍ وَاحِدَةٍ وَ الِابْتِهَالُ أَنْ تَمُدَّ

خپلې ګوتې په ذریعه سره اشاره وکړې او په دعا کې ډېره عاجزي او مبالغه اختیارول دادي چې ته خپل

يَدَيْكَ جَمِيعًا وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: والابتهالُ هٰكَذَا وَرَفَعَ يَدَيْهِ وَجَعَلَ ظُهُورَهُمَا مِمَّا يَلِي وَجْهَهُ.(۲)

دواړه لاسونه یو ځای خپاره کړې (یعنې دومره یې اوچت کړه چې د تخرګونو سپینوالی رابنکاره شي)

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا کیفیت په عام معمول جوړولو نه انکار وکړو او دا یې بدعت وګرځولو، د کله کله مسئله دا سې نه ده.

## اول ځان بیا جهان

﴿۳۲﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ يَقُولُ : إِنَّ رَفْعَكُمْ أَيْدِيَكُمْ

او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره کې روایت شویدي چې هغه به فرمایل چې: ستاسو خپل لاسونه ډېر اوچتول

بِدْعَةٌ مَا زَادَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى هٰذَا يَعْنِي إِلَى الصَّدْرِ.(۳)

بدعت دی. نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به اکثر د دینه دیر یعنې د سینې نه ډېر لاسونه پورته نه اوچتول.

﴿۳۳﴾ وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا ذَكَرَ أَحَدًا فَدَعَا

او حضرت ابي بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام چې به کله د چا ذکر کولو او بيا به یې د هغه لپاره

---

(۱) أخرجه الدعوات الكبير للبيهقي ۱/۲۰۱، رقم الحديث ۱۷۳.

(۲) أخرجه أبوداود ۱/۵۵۳ ، رقم الحديث : ۱۴۹۱.

(۳) أخرجه مسند أحمد ۹ /۲۰۲، رقم الحديث : ۵۲۶۴.

| لَهُ بَدَأَ بِنَفْسِهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ[1] |
|---|
| دعا کوله(يعني د هغه لپاره به يې د دعا کولو اراده کوله)نو اول به يې د خپل ځان لپاره دعا کوله، د دښه |
| وروسته به يې د هغه سړي لپاره دعا کوله. |

**توضيح**:په دې حديث کې ويل شويدي چې کله به نبي ﷺ د چا لپاره دعاء کوله نو اول به يې د ځان لپاره دعاء غوښتله، په دې سره امت ته تعليم ورکړې شو چې کله څوک چا لپاره دعاء کوي، نو هغه ته په کار دي چې اول د خپل ځان لپاره دعاء وکړي، يو خو دد دې وجې نه چې اول ځان ښا جهان يو طبعي نظام دی. دويمه وجه دا ده چې کله سړی خپله پاک شي نو ښا د نورو لپاره هم دعاء قبليږي.

مثلا داسې دعاء دې وغواړې: **اللهم اغفرلي ولفلان اللهم اغفرلي ولفضل محمد ولوالديه و لجميع المسلمين.** (المرقات ۵/۲۹)

## دعاء نه ضائع کيږي

| ﴿۳۴﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَدْعُو |
|---|
| او ابو سعيد خدري رضي الله عنه راوي دي چې نبي عليه السلام وفرمايل: کوم مسلمان چې هم څه دعا غواړي |
| بِدَعْوَةٍ لَيْسَ فِيهَا إِثْمٌ وَلَا قَطِيعَةُ رَحِمٍ إِلَّا أَعْطَاهُ اللهُ |
| داسې دعا چې نه خو په هغې کې د ګناه د کوم شي طلب وي او نه د خپلولۍ د ماتولو نو الله تعالى د دې دعا |
| بِهَا إِحْدَى ثَلَاثٍ: إِمَّا أَنْ يُعَجِّلَ لَهُ دَعْوَتَهُ |
| نتيجه کې په درې شيانو کې شي خامخا ورکوي: يا خو دا چې ژر د هغه مطلوب ورکړي يا دا چې د هغه لپاره |
| وَإِمَّا أَنْ يَدَّخِرَهَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ وَ إِمَّا أَنْ يَصْرِفَ عنهُ من السُّوءِ مثلَها " قَالُوا: |
| دا د عا د آخرت ذخيره جوړه کړي يا دا چې د ده د دعا په اندازه بانديې د بدۍ نه يې وساتي. صحابو رضي الله عنهم |
| إِذَنْ نُكْثِرُ |
| وويل: چې يا رسول الله! مونږ خو به اوس ډيرې دعاګانې غواړو ځکه چې مونږ ته د دعاء ډيرې فائدې |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۳۱/۵، رقم الحديث: ۳۴۴۵.

قَالَ : اَللّٰهُ أَكْثَرُ .[(۱)]

معلومي شوي .نبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: د الله فضل ډېر زيات دی.

﴿۳۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ " خَمْسُ دَعَوَاتٍ

او ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل: پنځه دعاګاني دي چې هغه

يُسْتَجَابُ لَهُنَّ : دَعْوَةُ الْمَظْلُومِ حَتَّى يَنْتَصِرَ

قبلېږي ۱: د مظلوم دعا تر دې چې هغه د ظالم نه په خپل لاس سره يا د خپلې ژبې په ذريعه سره بدله واخلي

وَ دَعْوَةُ الْحَاجِّ حَتَّى يَصْدُرَ وَ دَعْوَةُ الْمُجَاهِدِ

۲: د حاجي دعا تر دې چې خپل ښار او خپل اهل و عيال ته بېرته راشي يا د حج نه فارغه شي ۳: د مجاهد

حَتَّى يَقْعُدَ وَ دَعْوَةُ الْمَرِيضِ حَتَّى يَبْرَأَ

دعا تر دې چې هغه د جهاد د سعی او کوښښ نه فارغه شي ۴: د مريض دعا تر دې چې هغه ښه شي يا

وَ دَعْوَةُ الْأَخِ لِأَخِيهِ بِظَهْرِ الْغَيْبِ ". ثُمَّ قَالَ:

مړ شي . ۵: د يو ورور د خپل ورور لپاره غائبانه دعا بيا د دينه وروسته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل: په دې

وَ أَسْرَعُ هٰذِهِ الدَّعْوَاتِ إِجَابَةً دَعْوَةُ الْأَخِ لِأَخِيهِ بِظَهْرِ الْغَيْبِ .[(۲)]

په دې دعاګانو کې د ټولو نه ژر قبليدونکې دعاء د يو ورور د بل ورور لپاره غائبانه دعا ده.

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد و علی آله و أصحابه أجمعین



(۱) رواه أحمد في المسند ۱۸/۳.

(۲) أخرجه البيهقي في الدعوات الكبير ۲۳۹/۲، رقم الحديث : ۶۷۱

# بَابُ ذِكْرِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ وَالتَّقَرُّبِ إِلَيْهِ

## د الله تعالى د ذکر بيان

**قال الله تعالى: ﴿فَاذْكُرُوْنِيْ اَذْكُرْكُمْ﴾** (سورة البقرة آيت: ۱۵۲).

**و قال الله تعالى: ﴿اَلَا بِذِكْرِ اللهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ﴾** (سورة الرعد آيت: ۲۸)

**و قال الله تعالى: ﴿وَلَذِكْرُ اللهِ اَكْبَرُ﴾** (سورة العنكبوت آيت: ٤٥).

د مسلمان په زړه کې د ايمان د عظمت دولت موجود دی. په دې باندې هر وخت د شيطان د ډاکې خطره ده. نو ځکه په دې باندې څوکيدار او څوکۍ ودرول ضروري دي. شيطان د بريد نه د ساتنې لپاره د الله ذکر يو مووثره وسله او بهترين څوکيدار دی. نو ځکه په قرآن او حديث کې د ذکر الله ډير تاکيد شويدی.

**د ذکر الله قسمونه** :د ذکر الله دوه قِسمونه دي: اول قِسم ذکر لساني دی. چې په ژبه کيږي، دويم قِسم ذکر قلبي دی. چې هغه د زړه په ذريعه کيږي. د ذکر قلبي بيا دوه قِسمونه دي. يوه هغه دی چې د الله د عظمت او جلال او د الله تعالى د انعاماتو او اکراماتو او د الله تعالى د قدرت د نښو فکر او سوچ هر وخت په زړه او مغزو کې ځای نيونکې او پيوسته وي، دېته ذکر خفي هم وايي. علماوو ليکلي دي چې ذکر خفي چې هغه فرښتې هم نه شي ليکلی، دا اويا درجې د ذکر قلبي د دويم قِسم نه بهتر دی. د ذکر قلبي دويم قِسم دا دی چې د الله تعالى د اوامرو او نواهيو باندې د عمل کولو په وخت زړه او مغزو کې د الله تعالى ياد مستحضروي. نو په ذکر الله کې د ټولو نه اعلى درجه د هغه ذکر ده چې هغه په زړه او ژبه دواړو سره وي. بلکې د ذکر الله اولنی مصداق د ځينو فقهاوو په نزد ذکر باللسان دی. دويمه درجه د ذکر بالقلب ده. صوفياء کرام وايي: که فقط په ژبه سره ذکر وي، او په زړه کې توجه نوي نو د داسې ذکر نه قلبي ذکر بهتر دی. (المرقات ۳۲/۵).

بيا د علماوو په نزد دا بحث روان دی چې آيا ذکر بالجهر غوره دی، يا ذکر بالسر غوره دی. يعنې ذکر جلي غوره دی او که ذکر خفي غوره دی. ځينې علماء ذکر جلي لره ترجيح ورکوي، ليکن ځينې ذکر خفي ته ترجيح ورکوي. په دې کې تطبيق مشکل دی، ريعه واېي که په ذکر بالجهر سره لمونځ کونکو، يا خوب کونکو يا نورو خلکو ته تکليف رسيږي نو ذکر بالجهر دې ونکړی شي، بلکې ذکر بالسر غوره دی. ليکن که کوم عارضې بنديز نه وي، او کوم شيخ د تدريب او مشق (تمرين) په توګه ذکر بالجهر ووايي نو بيا ذکر بالجهر غوره دی. بهرحال وخت او د ځای حالاتو د لاندې د ذکر الله حکم روان وي او بدليږي. (المرقات ۵/۳۲).

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

## په ذکر الله کې د مشغولو خلکو فضیلت

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَأَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَا : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| ضرت ابو هریره او حضرت ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دواړه راویان دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل کله چې |
| لَا يَقْعُدُ قَوْمٌ يَذْكُرُونَ اللهَ إِلَّا حَفَّتْهُمُ الْمَلَائِكَةُ |
| یو جماعت د الله د ذکر کولو لپاره کیني نو دوی لره هغه فرښتې راګیر کړي (چې هغه په لاره باندې اهل ذکر |
| وَ غَشِيَتْهُمُ الرَّحْمَةُ وَ نَزَلَتْ عَلَيْهِمُ السَّكِينَةُ |
| ره لټوي) هغوی لره رحمت په خپله غېږه کې راونیسي په دوی باندې سکینه نازلېږي، او الله تعالی |
| وَ ذَكَرَهُمُ اللهُ فِيمَنْ عِنْدَهُ . [1] |
| دغه ذکر کونکي ذکره د څان سره خلکو (یعني ملائکه مقربین او ارواح انبیاء) کې کوي. |

**توضیح: فیمن عنده:** دا جمله د ﴿فَاذْكُرُونِيٓ أَذْكُرْكُمْ﴾ تفسیر دی. د الله تعالی سره چې کوم الفاظ دي. د دغې نه مراد هغه فرښتې دي چې هغه د الله په دربار کې مقرب وي، الله تعالی د فخر او اهات په توګه د دغه فرښتو مخې ته د دې ذاکرینو تذکره څکه کوي، چې د انسان د پیدائښ په خت کې فرښتو د انسان د پیدا کېدلو د مقصد پوښتنه کړې وه. او د خپل تقدیس او تسبیح بیان یې کړی وو. (اشعة اللمعات: ۲/۱۹) (المرقات: ۵/۳۳)

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسِيرُ فِي طَرِيقِ مَكَّةَ فَمَرَّ عَلَى جَبَلٍ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ځل نبي عَلَيْهِ السَّلَام د مکې په لاره باندې روان وو، چې د یو غر په خوا |
| يُقَالُ لَهُ : جُمْدَانُ فَقَالَ : سِيرُوا هٰذَا جُمْدَانُ سَبَقَ الْمُفَرِّدُونَ . |
| تېر شو چې د هغې نوم جمدان وو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: ځئ ځئ. دا جمدان دی مفردون سبق یوړو صحابو |
| قَالُوا: وَمَا الْمُفَرِّدُونَ ؟ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ : الذَّاكِرُونَ اللهَ كَثِيرًا |
| وویل چې یارسول الله! مفردون څوک دي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: هغه سړي چې هغه الله ډېر یادوي او هغه |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۷۴ رقم الحديث: ۳۹- ۲۷۰۰.

| وَ الذَّاكِرَاتُ . (۱) |
|---|
| ښځې چې الله ډېر یادوي. |

**توضیح: وما المفردون**: نبي علیه السلام د خپلو صحابو سره د مکې نه بېرته مدینې منورې ته راروان وو. چې د جمدان په غر باندې تېرېدل وشودا د مدینې نه د یو منزل په فاصله باندې دی. ځینې صحابو ته کورونه وریاد شو، نو ژر ژر مخکې لاړل، نبي علیه السلام وفرمایل: چې کورونه نژدې شول، دا د جمدان غر دی، ژر ژر ځئ، مفردون مخکې ووتل، وس د قافلې نه مخکې وتونکو خلکو باندې هم د مفردون اطلاق کیدلی شو، د صحابوو په ذهن کې هم دغه وو. چې د نبي علیه السلام د کلام مطلب به هم دا وي، بیا هم د مطلب د متعین کولو لپاره صحابوو پوښتنه وکړه چې یارسول الله! مفردون څوک دي، هغه چې مخکې ووتل؟ نبي علیه السلام د اسلوب حکم په توګه جواب ورکړو چې تاسو د چا په باره کې پوښتنه کوئ هغه خو ظاهر او واضح دي، چې مفردون هغه خلک دي چې هغه د خپلو بدنونو په ذریعه سره زمونږ نه مخکې ووتل، دهغوی پوښتنه مکوئ، بلکې د پوښتنې خبره دا ده چې په نیکو کې مخکې وتونکې مفردون دي. نو پوهه شئ چې الله لره ډېر یادونکې سړي او ښځې په داصل کې دا مفردون دي. چې هغه په نیکو اعمالو کې مخکې وتلي دي، ځکه چې دا خلک هم د عامو خلکو د ځایونو نه جدا کېدو باندې خپل رب لره یادوي. (المرقات ۳۳-۵/۳۲).

## په ذکر الله کې مشغوله ژوندی دی، نه مشغوله مړ دی

| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَثَلُ الَّذِي يَذْكُرُ رَبَّهُ وَالَّذِي |
|---|
| حضرت ابو موسی رضي الله عنه راوي دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: کوم سړی چې خپل رب یادوي او کوم سړی |
| لَا يَذْكُرُ مَثَلُ الْحَيِّ وَ الْمَيِّتِ . (۲) |
| چې خپل رب نه یادوي، د دې دواړو مثال د ژوندي سړي او د مړ سړي په شان دی. |

## په الله باندې ښه ګمان ساتل په کار دي

| ﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَقُولُ اللهُ تَعَالَى: أَنَا عِنْدَ ظَنِّ |
|---|
| او ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: الله تعالی فرمایي چې زه د خپل بنده د ګمان |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۶۲/۴ رقم الحديث: ٤-۱٦٧٦.
(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۰۸/۱۱ رقم الحديث: ٦٤٠٧، ومسلم في صحيحه ۵۳۹/۱ رقم الحديث: ۲۱۱-۷۷۹.

| عَبْدِي | بِي | وَ | أَنَا | مَعَهُ |
|---|---|---|---|---|
| سره نږدې يم كوم چې هغه زما په باره كې ساتي كله چې هغه په زړه يا په ژبه سره ما يادوي نو زه د ده سره يم | | | | |

| إِذَا | ذَكَرَنِي | فَإِنْ | ذَكَرَنِي | فِي | نَفْسِهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو كه هغه په خپل ذات كې يعنې په خفيه توګه باندې ما په زړه كې يادوي نو زه هم هغه په خپل ذات كې | | | | | |

| ذَكَرْتُهُ | فِي | نَفْسِي |
|---|---|---|
| يادوم يعنې نه دا چې يو اځې هغه ته په پټه توګه باندې ثواب وركوم بلكې هغه ته خپله ثواب وركوم د ثواب | | |

| وَ | إِنْ | ذَكَرَنِي | فِي | مَلَإٍ |
|---|---|---|---|---|
| وركولو كار بل چا ته نه سپارم كه هغه ما په جماعت (يعنې په ظاهره توګه باندې) ياد كړي نو زه هم د هغه | | | | |

| ذَكَرْتُهُ | فِي | مَلَإٍ | خير | مِنْهُم .[1] |
|---|---|---|---|---|
| ذكر په جماعت كې كوم چې هغه د ده د جماعت نه غوره دى. | | | | |

**توضيح: انا عند ظن عبدي:** يعنې زما بنده چې زما متعلق كوم نيت او ګمان ساتي، زه د هغې په موافق باندې فيصله كوم، مثلاً كه يو سړى زما په متعلق دا ګمان وساتي، چې زما رب به ما معاف كړي، نو زه هغه معاف كوم، او كه زما متعلق د هغه نيت دا جوړ شوى وي چې هغه ګمان كوي او وايي چې زما رب به ما معاف نكړي، نو الله تعالى هغه نه معاف كوي. يا يو سړى د الله تعالى نه دا اميد لري چې زما رب به په ما باندې ښه خوروي، څكوي، نو الله تعالى هغه باندې هم هغه شان خوروي، څكوي،ليكن كه دا سړى خپله خيال وكړي چې زما رب په ما باندې ښه نه خوروي. سوال كولو په ذريعه سره به ما باندې خوروي، نو بيا الله تعالى دغه سړي باندې دغه شان خوروي.
اقبال مرحوم د دې حديث په تشريح او توضيح كې دا شعر ليكلى دى:

خودی کو کر بلند اتنا کہ ہر تقدیر سے پہلے ✿ خدا بندے سے خود پوچھے بتا تیری رضا کیا ہے

## د الله تعالى رحمت بهانه غواړي

| ﴿٥﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَقُولُ اللهُ تَعَالَى مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ |
|---|
| او ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دى چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: كوم سړى چې يوه نيكي كوي هغه ته دغه شان |

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٣٨٤/١٣ رقم الحديث: ٧٤٠٥، ومسلم في صحيحه ٢٠٦١/٤ رقم الحديث:٢- ٢٦٧٥.

| فَلَهٗ | عَشْرُ | أَمْثَالِهَا | و | أزيد |
|---|---|---|---|---|

دلسونيكوثواب وركول كېږي، او ددېنه ډېرهم وركوم (يعنې چالره چې وغواړم هغه ته د هغه دصدق او

| وَ | مَنْ | جَاءَ | بِالسَّيِّئَةِ |
|---|---|---|---|

اخلاص په مطابق او سوه چنده بلكې ددينه هم ډېر ثواب وركوم) كوم سړى چې څه بدي وكړي نو هغه ته

| فَجَزَاء | سَيِّئَةٌ | مِثْلُهَا | أَوْ | أَغْفِرُ | وَ | مَنْ | تَقَرَّبَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

د دغه بدى په مطابق باندې سزا وركول كېږي يا زه هغه هم معاف كوم، كوم سړى چې اطاعت او تابعدارى

| مِنِّي | شِبْرًا | تَقَرَّبْتُ | مِنْهُ | ذِرَاعًا | وَ | مَنْ | تَقَرَّبَ | مِنِّي | ذِرَاعًا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

په ذريعه سره يو وليشت زما اړخ ته راځي نو زه يو ګز د هغه اړخ ته ورځم، كوم سړى چې زما اړخ ته يو ګز راځي

| تَقَرَّبْتُ | مِنْهُ | بَاعًا | وَ | مَنْ | أَتَانِي |
|---|---|---|---|---|---|

زه د هغه اړخ ته د دواړو خپرو شووو لاسونو په اندازه باندې وروړاندې كېږي. كوم سړى چې زما اړخ

| يَمْشِي | أَتَيْتُهُ | هَرْوَلَةً | وَ | مَنْ | لَقِيَنِي | بِقُرَابِ | الْأَرْضِ | خَطِيئَةً |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

ته مزل وكړي نو زه د هغه اړخ ته په منډه باندې ورځم، او كوم سړى چې د زمكې په برابر هم ګناهونو سره

| لَا | يُشْرِكُ | بِي | شَيْئًا |
|---|---|---|---|

زما سره مخ شي په دې شرط چې هغه زما سره شريک نه وي كړى يعنې په شرک كې نه وي اخته شوى

| لَقِيتُهُ | بِمِثْلِهَا | مَغْفِرَةً ". [1] |
|---|---|---|

نو كه زه وغواړم نو هغه ته به د زمكې په برابر مغفرت وركړم.

**توضيح: يقول الله:** دا حديث قدسي دى. **شبرًا:** لويشت ته وايي. **ذراعًا:** شرعي ګز د لاس د فاصله برابر وي. **باعًا:** دواړه لاسونه نبي او چپ طرف ته پنه برسيرته كولو باندې چې مينځ كې كومه فاصله وي، هغې ته باع وايي. (المرقات ۵/۳۹)

**هرولة:** منډې ته وايي. يعنې كوم سړى چې فقط په مزل كولو سره د عبادت په ذريعه سره زما اړخ ته راځي، زه په منډه باندې د هغه اړخ ته ورځم. د دې حديث خلاصه دا شوه چې د الله تعالى رحمت څه

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۹۵/۱۳ رقم الحديث: ۷۴۰۵، ومسلم في صحيحه ۲۰۶۸/۴ رقم الحديث: ۲۲-۲۶۸۷.

نا څه بهانه لټوي، او په منډه منډه باندې د بنده اړخ ته راځي. (المرقات: ۵/۳۹)

**قراب الارض:** قراب ضمه او کسره دواړو لوستلی شي، مراد **مثل الارض** دی یعنې د زمکې برابر ګناه ده. (المرقات: ۵/۳۹)

## اولیاء الله سره ټکر مکوه، ګني په غضب الهی کې به راشي

﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ اللهَ تَعَالَى قَالَ: مَنْ

او ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: الله تعالی فرمایي چې کوم سړی زما ولي ته

عَادَى لِي وَلِيًّا فَقَدْ آذَنْتُهُ بِالْحَرْبِ وَمَا تَقَرَّبَ إِلَيَّ

ته ضرر رسوي نو زه د هغه سره د خپل جنګ اعلان کوم او زما کوم بنده زما تقرب (په اعمالو کې) د داسې

عَبْدِي بِشَيْءٍ أَحَبَّ إِلَيَّ مِمَّا

یو شي په ذریعه سره نشي ترلاسه کولی چې هغه زما په نزد د هغه شیانو نه ډیر محبوب وي کوم چې ما

افْتَرَضْتُ عَلَيْهِ وَمَا يَزَالُ عَبْدِي يَتَقَرَّبُ إِلَيَّ بِالنَّوَافِلِ

په هغه باندې فرض کړیدي، او زما هغه بنده چې هغه همیشه نوافلو په ذریعه سره زما تقرب ترلاسه کوي

حَتَّى أُحِبَّهُ فَإِذَا أَحْبَبْتُهُ كُنْتُ سَمْعَهُ

تردې چې زه هغه خپل دوست جوړ کړم او کله چې زه هغه خپل دوست جوړ کړم نو زه د هغه اوریدل جوړ شم

الَّذِي يَسْمَعُ بِهِ وَ بَصَرَهُ الَّذِي يُبْصِرُ بِهِ

چې هغه د دې په ذریعه سره اوري، زه د هغه کتل جوړ شم، چې هغه د دې په ذریعه سره کتل کوي،

وَ يَدَهُ الَّتِي يَبْطِشُ بِهَا وَ رِجْلَهُ الَّتِي

زه د هغه لاس جوړ شم، چې هغه د دې په ذریعه سره نیول کوي، زه د هغه خپې جوړ شم، چې هغه د دې

يَمْشِي بِهَا وَ إِنْ سَأَلَنِي لَأُعْطِيَنَّهُ وَ لَئِنِ

په ذریعه سره مزل کوي که هغه زما نه څه غواړي نو زه یې هغه ته ورکوم، او هغه د بدو او مکروهاتو

اسْتَعَاذَنِي لَأُعِيذَنَّهُ وَمَا تَرَدَّدْتُ عَنْ شَيْءٍ أَنَا فَاعِلُهُ

نه زما پناه غواړي، نو زه هغه ته پناه ورکوم، او کوم کار چې زه کونکی یم، په هغې کې دومره شک

| تَرَدُّدِي | عَنْ | نَفْسِ | الْمُؤمِنِ | يَكْرَهُ | الْمَوْتَ |
|---|---|---|---|---|---|
| نه کوي ، لکه څنګه چې زه د بنده مؤمن ساه اخستلو کې تردد کوم . ځکه چې هغه مرګ نه خوښوي ، | | | | | |
| وَ أَنَا أَكْرَهُ مُسَاءَتَهُ وَلَا بُدَّ لَهُ مِنْهُ ". [1] | | | | | |
| او حال دا دی چې د هغه ناخوښي زه خوښوم، او د مرګ نه په هېڅ حال کې هم خلاصی نشته دی. | | | | | |

**توضيح:اذنته بالحرب:** يعني کوم سړی چې د الله اولياء او محبوب خلکو او علماء او مقبولينو سره دښمني او عداوت ساتي، د الله تعالی د طرف نه د هغه لپاره تباهي او د جنګ اعلان دی. ظاهره ده د کوم سړی سره چې الله تعالی د جنګ اعلان وکړي، هغه څنګه بچ کيدی شي، په دين اسلام کې په دوه شيانو کې الله تعالی د جنګ اعلان کړيدی، يو خو دا شی دی چې د اولياء الله سره چا ټکر وکړو. د الله تعالی په حکم باندې ټوټې ټوټې شويدی. دويم شی سود دی. د دې په باره کې الله تعالی د جنګ اعلان کړې دی. نو ځکه په هر مسلمان باندې واجب دي، چې هغه د سودی کاروبار نه ځان وساتي،ګني د جنګ لپاره دې تيار شي. **مما افترضت عليه:** يعني د فرائضو او واجباتو په ذريعه سره بنده الله تعالی ته ډېر نزدې شي، نو د الله تعالی اوامر او نواهي پوره کول الله تعالی ته ډير خوښ دي. **كنت سمعه الذي يسمع به:** يعني يو مسلمان چې کله فرائض او واجبات پوره کوي، او بيا د نوافلو په ذريعه نور د الله تعالی قرب ترلاسه کولو کوښښ کوي، نو الله تعالی هغه محبوب ساتي. نو بيا د دغه سړی ټول اندامونه او ټول وسائل او قوتونه د الله تعالی د رحمت او رضا لپاره مظاهر او ذريعي جوړي شي. د حديث مطلب هم دا دی چې زه د ده غوږونه جوړ شم، چې په هغې سره دا اوري، يعنې وس دا اندامونه او د دې سړی ټول قوتونه د الله تعالی د مرضۍ په مطابق شول، د دې سړی حرکات او سکنات، د ده کتل، اوريدل، ګرځيدل، کيناستل، پاڅېدل، لنډه دا چې هر قول او فعل خالص د الله تعالی د مرضۍ تابع شي، دا يوه توجيه ده، هسې دا حديث د متشابهاتو نه دی.

**وماترددت:** يعنې بنده چې کله د دغه قرب مقام ترلاسه کړي، نو الله تعالی فرمايي: اوس زه په دې بنده باندې د ده ناخوښه شيان راوستل نه غواړم، خو څه وکړم د بنده په ناخوښه شيانو کې مرګ هم دی، اوس په دې کې ماته سخت تردد شي، چې زه ده ته مرګ څنګه ورکړم، چې هغه د ده خوښ ندی، ليکن د مرګ نه خو خلاصون نشته دی، دلته ټولو نعمتونو ته رسيدل مرګ د پُل په منزله دی، لهذا د

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۱۱ رقم الحديث. ۲۵۰۲

دي تردد باوجود زه هغه ته مرګ ورکوم. یاده دې وي چې د تردد نه مراد دا ندی چې الله تعالی ته د ښه او بد جانب عِلم نشته دی، بلکې د دېنه توقف او تأمل او تأخر مراد دی. خوبیا هم دا حدیث د متشابهاتو نه دی، قاضي عیاض فرمايي چې د ځینو الفاظو اطلاق په الله تعالی باندې د ابتداء په اعتبار سره نه کېږي بلکې نهایة او انتهاء په اعتبار سره کېږي، تردد هم دغه شان دی، لکه د حیاء او رحمت او داسې نور الفاظ دي. تردد تأمل او تأخر او توقف په معنی دی. (المرقات :۵/۴۱)

## فرښتې د ذکر مجلسونه لټوي

﴿۷﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " إِنَّ لِلهِ مَلَائِكَةً

او ابوهریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: دالله تعالی ډېرې فرښتې (د مسلمانانو په لارو

يَطُوفُونَ فِي الطُّرُقِ يَلْتَمِسُونَ أَهْلَ الذِّكْرِ فَإِذَا وَجَدُوا

کې ګرځي او د ذکر کونکې لټوي، دې لپاره چې د هغوي سره مخ شي او د هغوي ذکر واوري) نو هغوي چې

قَوْمًا يَذْكُرُونَ اللهَ تَنَادَوْا :

کله د غه خلک بیامومي کوم چې د الله په ذکر کې مشغول وي نو هغوی خپل منځ کې یو بل رابلي چې خپل

يَطُوفُونَ فِي الطُّرُقِ يَلْتَمِسُونَ أَهْلَ الذِّكْرِ فَإِذَا وَجَدُوا

کې ګرځي او د ذکر کونکې لټوي، دې لپاره چې د هغوي سره مخ شي او د هغوي ذکر واوري) نو هغوي چې

قَوْمًا يَذْكُرُونَ اللهَ تَنَادَوْا:

کله د غه خلک بیامومي کوم چې د الله په ذکر کې مشغول وي نو هغوی خپل منځ کې یو بل رابلي چې خپل

هَلُمُّوا إِلَى حَاجَتِكُمْ " قَالَ :

مطلوب ارخ ته (اهل ذکر سره ملاقات او د هغوی ذکر اوریدلو لپاره) ژر راشئ. نبي علیه السلام وفرمایل : د

فَيَحُفُّونَهُمْ بِأَجْنِحَتِهِمْ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا قَالَ:

دېنه وروسته د غه فرښتې دا خلک په خپلو وزرو کې د نیاتر آسمانه پورې راګیر کړي نبي علیه السلام وفرمایل

" فَيَسْأَلُهُمْ رَبُّهُمْ وَ هُوَ أَعْلَمُ بِهِمْ:

د دې فرښتو نه د دوی رب د دې خلکو په باره کې پوښتنه وکړي، چې زما بنده ګان څه وايي. او حال

مَا يَقُولُ عِبَادِي ؟ " قَالَ:

دا دی چې رب د دې فرښتو نه ډېر د دغه خلکو په باره کې پوهېږي. نبي علیه السلام وفرمایل: فرښتې

| مَا يَقُولُ عِبَادِي ؟ " قَالَ: |
|---|
| دا دی چې رب د دې فرښتو نه ډېر د دغه خلکو په باره کې پوهېږي. نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: فرښتې |
| "يَقُولُونَ : يُسَبِّحُونَكَ وَ يُكَبِّرُونَكَ وَ يُحَمِّدُونَكَ |
| جواب ورکړي چې هغوی ستا د پاکۍ تسبيح کوله. ته يې يادولې، ستالويې يې کوله، ستاستاينه کوله |
| وَ يُمَجِّدُونَكَ " قَالَ : " فَيَقُولُ : |
| او په لويي او عظمت سره يې ته يادولې. نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل چې بيا الله تعالى د دغه فرښتو نه پوښتنه |
| هَلْ رَأَوْنِي ؟ " قَالَ : " فَيَقُولُونَ : لَا وَ اللهِ |
| وکړي چې آيا دوی زه ليدلی يم. نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: فرښتې په جواب کې وو ايي چې نا! په خدا قسم! |
| مَا رَأَوْكَ " قَالَ فَيَقُولُ : |
| هغوی ته نه يې ليدلی. نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: الله تعالى دې فرښتو ته وايي چې ښه! که هغوی زه ليدلی |
| كَيْفَ لَوْ رَأَوْنِي ؟ قَالَ : " فَيَقُولُونَ : لَوْ رَأَوْكَ |
| وی نو بيا به څه حالت وو؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: فرښتې وايي چې که هغوی ته ليدلی وي نو بيا به |
| كَانُوا أَشَدَّ لَكَ عِبَادَةً وَ أَشَدَّ لَكَ تَمْجِيدًا وَ أَكْثَرَ لَكَ تَسْبِيحًا" |
| هغوی ستا ډېر عبادت کولو، لويي او عظمت سره به يې ته ډېر يادولې، او ستا تسبيح به يې کولې، |
| قَالَ : " فَيَقُولُ : فَمَا يَسْأَلُونَ ؟ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: بيا الله تعالى د هغوی نه پوښتنه وکړي چې دغه بنده ګانو زما نه څه غوښتل؟ |
| قَالُوا: يسألونكَ الجنَّةَ " قَالَ : |
| فرښتې جواب ورکړي چې هغوی ستا نه جنت غوښتلو. نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: الله تعالى د هغوی نه |
| "يَقُول : وَ هل رأوها ؟ " قَالَ : " فَيَقُولُونَ : لَا |
| پوښتنه وکړي چې آيا هغوی جنت ليدلی دی؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: فرښتې وايي چې نا! ای ربه! په |
| وَ اللهِ يَا رَبِّ مَا رَأَوْهَا" |
| خدای قسم! هغوی جنت نه دی ليدلی. نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: الله تعالى د هغوی نه پوښتنه کوي چې |

| |
|---|
| قَالَ : " فَيَقُولُ : فَكَيْفَ لَوْ رَأَوْهَا ؟ " قَالَ : "يقولون: |
| بنه که هغوی جنت لیدلی وی نو د هغوی به څه حال وو؟ نبي عَلَيْهِ‌السَّلَامُ و فرمایل: فرښتې جواب ورکوي |
| لَو أَنَّهم رأوها كَانُوا أَشد حِرْصًا |
| چې که هغوی جنت لیدلی وی نو د جنت لپاره به د هغوی حرص ډېر شوی وی، د دې لپاره به د هغوی |
| وَ أَشَدَّ لَهَا طَلَبًا وَ أَعْظَمَ فِيهَا رَغْبَةً |
| خواهش او طلب ډېر شوی وی. او دې اړخ ته به د هغوی مینه ډېره شوی وی. (ځکه چې د یو څه په |
| قَالَ: |
| باره کې فقط علم کیدل د هغې د کتلو برابر ندی) د دېنه وروسته الله تعالی پوښتنه کوي چې هغوی |
| فممَّ يتعوذون ؟ " قَالَ : " يَقُولُونَ : مِنَ النَّارِ |
| پناه د کوم څیزنه غوښتله؟ نبي عَلَيْهِ‌السَّلَامُ و فرمایل: فرښتې جواب ورکوي: چې هغوی د دوزخ نه پناه |
| "قَالَ: "يَقُولُ : فَهَلْ رَأَوْهَا ؟ " قَالَ : يَقُولُونَ : لَا |
| غوښتله. الله تعالی د هغوی نه پوښتنه کوي: آیا هغوی دوزخ لیدلی دی؟ فرښتې وایي چې نا! زمار به! |
| وَ اللهِ يَا رَبِّ مَا رَأَوْهَا قَالَ: |
| په خدای قسم! هغوی دوزخ نه دی لیدلی. نبي عَلَيْهِ‌السَّلَامُ و فرمایل: الله تعالی د هغوی نه پوښتنه کوي |
| "يَقُولُ : فَكَيْفَ لَوْ رَأَوْهَا ؟ " قَالَ : يَقُولُونَ |
| که هغوی دوزخ لیدلی وی نو بیا به د هغوی څه حالت وو؟ نبي عَلَيْهِ‌السَّلَامُ و فرمایل: فرښتې جواب ورکوي |
| لَوْ رَأَوْهَا كَانُوا أَشَدَّ مِنْهَا فِرَارًا |
| که هغوی دوزخ لیدلی وی نو هغوی به د دې نه ډېر لیرې تختیدلی (یعنې د هغه شیانو نه به ډېر لیرې |
| وَ أَشَدَّ لَهَا مَخَافَةً |
| وسیدلی چې هغه په دوزخ کې راتلو سبب جوړیږي او د هغوی زړونه به ډېر یریدونکی وی. نبي عَلَيْهِ‌السَّلَامُ |
| قَالَ : " فَيَقُوْلُ : |
| و فرمایل: بیا د دې نه وروسته الله تعالی فرښتې متوجې کړي او فرمایي چې زه تاسو په دې خبره ګواه |

| |
|---|
| فَأُشْهِدُكُمْ أَنِّي قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ " قَالَ : " يَقُولُ مَلَكٌ |
| كوم چې ما هغوى وبخښل. نبي كريم ﷺ و فرمايل: په دې فرښتو كې يوه فرښته و وايي چې |
| مِنَ الْمَلَائِكَةِ : فِيهِمْ فُلَانٌ لَيْسَ مِنْهُمْ إِنَّمَا |
| په ذكر كونكو كې هغه فلانى ذكر كونكى نه وو. ځكه چې هغه خپل څه كار پسې راغلى وو. بيا |
| جَاءَ لِحَاجَةٍ قَالَ : |
| هغه هلته د ذكر كونكو سره كيناستلو، نو ځكه خو هغه د مغفرت د دې بشارت مستحق ندى. الله |
| هُمُ الْجُلَسَاءُ لَا يَشْقَى جَلِيسُهُمْ " . |
| تعالى هغه ته فرمايي چې اهل ذكر داسې خلک دي چې د دوې سره ناست خلک نه بې نصيبه كېږي. |
| وَ فِي رِوَايَةِ مُسْلِمٍ قَالَ : " إِنَّ لِلَّهِ مَلَائِكَةً |
| او د مسلم په روايت كې دي چې نبي كريم ﷺ و فرمايل: د الله تعالى ډېرې فرښتې داسې دي |
| سَيَّارَةً فُضُلًا |
| چې هغه ګرځيدونكې او اضافې دي. (يعنې اعمال ليكونكو وغيره نه علاوه دي چې د هغوى مقصد |
| يَبْتَغُونَ مَجَالِسَ الذِّكْرِ |
| فقط د ذكر په مجلسونو كې حاضرې ده) نو دغه فرښتې د ذكر مجلسونه لټوي. بيا كله چې هغوى |
| فَإِذَا وَجَدُوا مَجْلِسًا فِيهِ ذِكْرٌ قَعَدُوا مَعَهُم |
| داسې يو مجلس بيامومي چې په هغې كې اكثر ذكر كېږي، نو دوې په هغې كې كيني، دغه وخت هغه |
| و حفّ بعضهم بَعْضًا بأجنحتهم حَتَّى |
| فرښتې خپل مينځ كې يو بل په خپلو وزرو سره راګير كړي، تر دې چې د ذكر كوونكو او د آسمان تر |
| يملأوا مَا بَيْنَهُمْ وَ بَيْنَ السَّمَاءِ الدُّنْيَا فَإِذَا تَفَرَّقُوا |
| مينځ ټولې فرښتې راشي، كله چې (د ذكر نه د فارغيدلو وروسته) مجلس ختم شي نو دغه فرښتې هم |
| عَرَجُوا وَ صَعِدُوا إِلَى السَّمَاءِ قَالَ : فَيَسْأَلُهُمُ اللهُ |
| پاس لاړې شي او اووم آسمان ته ورسيږي. نبي عليه السلام و فرمايل: الله تعالى د هغوى نه پوښتنه كوي |

وَ هُوَ أَعْلَمُ : مِنْ أَيْنَ جِئْتُمْ ؟

چې تاسو د کوم ځای نه راغلی؟ (او حال دا دی چې الله تعالی د دوی په باره کې ښه پوهیږي چې

فَيَقُولُونَ : جِئْنَا مِنْ عِنْدِ عِبَادِكَ

هغوی د کوم ځای نه راغلي) فرښتې وايي چې مونږ ستاد داسې بندیګانو د خوا نه راغلي یو چې هغه

فِي الْأَرْضِ يُسَبِّحُونَكَ وَ يُكَبِّرُونَكَ وَ يُهَلِّلُونَكَ وَ يُمَجِّدُونَكَ

په زمکه باندې دي، ستا تسبیح کوي، ستا کلمه وايي، تا په لویې او عظمت سره یادوي. او ستا نه یې

وَ يَحْمَدُونَكَ وَ يَسْأَلُونَكَ قَالَ : وَ مَا ذَا يَسْأَلُونِي ؟ قَالُوا : يَسْأَلُونَكَ جَنَّتَكَ

غواړي، الله تعالی پوښتنه کوي چې هغوی زما نه څه غواړي؟ فرښتې وايي چې هغوی ستا نه ستا جنت

قَالَ: وَ هَلْ رَأَوْا جَنَّتِي ؟ قَالُوا : لَا اى رَبِّ قَالَ:

غواړي. الله تعالی فرمايي چې آیا هغوی زما جنت لیدلی دی؟ فرښتې وايي: نا! ربه! الله تعالی فرمايي

وَ كَيْفَ لَوْ رَأَوْا جَنَّتِي ؟ قَالُوا : وَ يَسْتَجِيرُونَكَ

که هغوی جنت لیدلی وی نو د هغوی به څه حال وی؟ فرښتې وايي چې هغوی ستا پناه هم غوښتله.

قَالَ : وَ مِمَّ يَسْتَجِيرُونِي ؟ قَالُوا : مِنْ نَارِكَ

الله تعالی فرمايي: هغوی د کوم شي نه زما پناه غوښتله؟ فرښتې وايي چې هغوی ستا د اور نه پناه

قَالَ : وَ هَلْ رَأَوْا نَارِي ؟ قَالُوا : لَا . قَالَ :

غواړي. الله تعالی فرمايي: آیا هغوی زما اور لیدلی دی؟ فرښتې وايي چې نا! الله تعالی فرمايي چې که

فَكَيْفَ رَأَوْا نَارِي ؟ قَالُوا : يَسْتَغْفِرُونَكَ"

هغوی زما اور لیدلی وی نو بیا به د هغوی څه حالت وُ؟ فرښتې وايي: هغوی ستا نه بخښنه هم غوښتله

قَالَ : فَيَقُولُ : " قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ فَأَعْطَيْتُهُمْ مَا

نبي عليه السلام وفرمایل: الله تعالی فرمايي چې ما هغوی وبخښل، ما هغوی ته هغه څه ورکړل، څه چې

سَأَلُوا وَ أَجَرْتُهُمْ مِمَّا

هغوی وغوښتلو (یعني جنت) او ما هغوی ته د هغه څه نه پناه ورکړه چې د هغې نه دوی پناه وغوښتله

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اسْتَجَارُوا | " | قَالَ: | "يَقُولُونَ | : | رَبِّ فِيهِمْ |

(يعني دا ورنه) نبي کريم ﷺ وفرمايل: چې فرښتې دې او ريدلو سره عرض کوي چې ربه! په

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فُلَانٌ | عَبْدٌ | خَطَّاءٌ | وَ | إِنَّمَا | مَرَّ |

دوي کې فلانی بنده خو ډېر ګناهګار دی. هغه خو هلته فقط د خپل کار لپاره تېرېدلو چې د هغوي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَجَلَسَ | مَعَهُمْ | "قَالَ: | فَيَقُولُ | وَ | لَهُ | غَفَرْتُ |

سره کيناستلو .نبي عليه السلام وفرمايل: د دوي په جواب کې الله تعالى فرمايي چې ما هغه وبخښلو، ځکه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| هُمُ | الْقَوْمُ | لَا | يَشْقَى | بِهِمْ | جَلِيسُهُمْ .[1] |

چې دا ذکر کونکې داسې خلک دي چې د دوي په سبب باندې د دوي سره ناست نه بې نصيبه کېږي.

**توضيح: فيسألهم**: يعني الله تعالى ته ښه معلوم ده، ليکن بيا هم د فرښتو نه د يو يو شي تپوس کوي دې لپاره چې فرښتو ته وړياده کړي چې د تخليق ادم په وخت کې تاسو ويلي وو، چې دا انسان به فساد کوي، عبادت به نکوي، وس وګورئ څنګه په عبادت کې اخته دي. (المرقات ۵/۴۸).

**سيارة**: داد **ملائكة** لپاره صفت اول دی د تيزي قافلې په شکل کې تيز مزل کولو ته وايي. **فضلًا**: دا لفظ ملائکة لپاره دويم صفت دی. فا باندې فتحه ده، او ضاد باندې سکون دی. دويمه نسخه فا باندې فتحه او ضاد باندې پيش دی. **فَضُلًا**: د دواړو ترجمه فاضل او زائد ده. يعني دا ټولې فرښتې د خلکو د اعمالو ليکلو وغيره ټولو ذمه وارو نه فارغه او زائد فرښتې دي. چې هغه هم د دې مجلسونو لپاره ټاکل شويدي، د دوي نور څه کار نشته دی .**وَيستجيرُونَكَ**: دا د فرښتو کلام دی. ددې عطف د دې نه مخکې ويسئلونک په جمله باندې دی. د دې مطلب او معنى امن دی. يعني دغه خلکو ستا نه امن او د دوزخ د اور نه يې پناه غوښتله. (المرقات ۵/۴۸).

## په عبادت کې د قبض او بسط کيفيت راځي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾ وَ | عَنْ | حَنْظَلَةَ | بن | الرَّبِيعِ | الأسيدي | قَالَ : | لَقِيَنِي | أَبُو بَكْرٍ |

او حضرت حنظله بن ربيع الاسيدي رضي الله عنه فرمايي چې يو ځل ما سره د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۴۸/۱۱ رقم الحديث: ۶۵۰۲، ومسلم في صحيحه ۲۰۶۹/۴ رقم الحديث:۲۵-۲۶۶۹.

فَقَالَ : كَيْفَ أَنْتَ يَا حَنْظَلَةُ ؟ قُلْتُ :

ملاقات وشو نو هغه زمانه پوښتنه وكړه چې وايه حنظله ستا څه حال دى (يعنې نبي عَلَيْهِ السَّلَام چې كوم وعظ

نَافَقَ حَنْظَلَةُ

او نصيحت كوي په هغې باندې ستا كيفيت څنګه وي) ما وويل چې حنظله منافق شو (د حال په اعتبار

قَالَ : سُبْحَانَ اللهِ

سره، د ايمان په اعتبار سره نه) حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې: سبحان الله! حنظله! دا ته څه

مَا تَقُوْلُ ؟

وايې. يعنې ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ډېر تعجب سره پوښتنه وكړه چې دا څه خبره كوي. د دې مطلب خو بيان

قُلْتُ : نَكُوْنُ عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

كړه ما وويل چې (په دې كې د تعجب خبره نده حقيقت دا دى چې) كله مونږ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره

يُذَكِّرُنَا بِالنَّارِ

يو او كوم وخت چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام مونږ د دوزخ د عذاب نه يروي، او يا كوم وخت چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام مونږ ته

وَ الْجَنَّةِ كَأَنَّا رَأْيُ عَيْنٍ

د جنت) د نعمتونو زيرى اوروي، نو د غه وخت داسې محسوسيږي چې ګويا مونږ جنت او دوزخ دواړه

فَإِذَا خَرَجْنَا مِنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَافَسْنَا الْأَزْوَاجَ

په خپلو سترګو سره وينو، خو كله چې مونږ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صحبت نه جدا شو، او خپلو ښځو،

وَ الْأَوْلَادَ وَ الضَّيْعَاتِ نَسِيْنَا كَثِيْرا قَالَ أَبُوبكر :

خپل اولاد، او خپلو زمكو او خپلو باغونو كې مشغول شو، نو ډېر څه هېر كړو. حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

فَـوَ اللهِ إِنَّا لَنَلْقَ

وفرمايل چې تا خپل دا حالت بيان كړو نو واوره چې په خداى قسم! مونږ هم د غه حالت ته رسيدلي

مِثْلَ هٰذَا

يو (يعنې زمونږ هم د غه حال دى، چې په حاضر او غائب كې تفاوت دى) د دېنه وروسته زه او حضرت

فَانْطَلَقْتُ أَنَا وَ أَبُوبَكْرٍ حَتَّى دَخَلْنَا عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

ابو بکر صدیق رضی الله عنه لاړو، تردې چې مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شو، ما ووېل:

فَقُلْتُ : نَافَقَ حَنْظَلَةُ يَا رَسُولَ اللهِ

یا رسول الله! حنظله منافق شو. نبي علیه السلام (په ډېر تعجب سره پوښتنه وکړه) چې د دې خبرې څه

قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : وَمَا ذَاكَ؟ قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ نَكُونُ عِنْدَكَ تُذَكِّرُنَا بِالنَّارِ

مطلب دی؟ ما ووېل چې: مونږ کله ستا سره یو، او ته مونږ ته د تذکیر په توګه د جنت او دوزخ په باره

وَ الْجَنَّةِ كَأَنَّا رَأْيَ عَيْنٍ

کې ووايې، نو داسې محسوس ېږي چې ګویا مونږ یې په خپلو سترګو باندې وینو، خو کله چې مونږ

فَإِذَا خَرَجْنَا مِنْ عِنْدِكَ عَافَسْنَا الْأَزْوَاجَ وَ الْأَوْلَادَ وَ الضَّيْعَاتِ

ستا د خوا نه پاڅېږو او مونږ خپلو ښځو، خپل اولاد او خپلو زمکو او باغونو کې مشغول شو، نو مونږ

نَسِينَا كَثِيرًا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : وَ الَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ

د نصیحت ډېرې خبرې هېرې کړو. دې اورېدلو سره نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمايل: قسم دی په هغه

لَوْ تَدُومُونَ عَلَى مَا تَكُونُونَ عِنْدِي

ذات چې د هغه په قبضه کې زما ځان دی، که په تاسو باندې همېشه هغه حالت وي، چې هغه زما صحبت

وَ فِي الذِّكْرِ لَصَافَحَتْكُمُ الْمَلَائِكَةُ

او د ذکر په حالت کې په تاسو وي، نو یقیناً فرښتې به ستاسو په بسترو او ستاسو په لارو کې ستاسو

عَلَى فُرُشِكُمْ وَ فِي طُرُقِكُمْ

سره مصافحه وکړي، لیکن ای حنظله! دا یو ساعت دی، او هغه یو ساعت دی. او نبي کریم صلی الله علیه وسلم

وَلَكِنْ يَا حَنْظَلَةُ سَاعَةٌ وَسَاعَةٌ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ.[1]

یا حنظلة ساعة و ساعة درې ځل وفرمايل.

**توضیح: حنظلة:** د دې نه هغه حنظله مراد نه دی چې هغه **غسیل الملائکة** و بلکې دا بل حنظله دی. چې

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۰۶/٤ رقم الحديث ۱۲ - ۲۷۵۰.

کاتب وحي وو. **نافق حنظلة**: خپل ځان یې غائب ګڼلو باندې کلام وکړو. دلته د نفاق نه نفاق حالي مراد دی. نفاق ایماني مراد نه دی. (المرقات ۵/۴۹)

**عَافَسْنَا**: مشغولیدلو په معنی دی. **الضیعات**: زمکې او باغونه مراد دي. (المرقات ۵/۵۰)

**ساعة ساعة**: یعنې **تارة منافسة وتارة معاسفة**: مطلب دا دی چې کله هغه او کله دا یعنې دا کیفیت حضورې که همیشه پاتې شي نو فرښتې به په ویښه باندې ستاسو سره مصافحه وکړي. او هغه د حکمت او مصلحت په خلاف ده. لهذا کله کیفیت حضوری او کله غیر حضوری، کله کیفیت د قبض او کله کیفیت د بسط ډېر بهتروی. (المرقات :۵/۵۱)

**ثلاث مرات**: یعنې نبي کریم ﷺ دا جمله درې ځل وفرمایله. (المرقات ۵/۵۱)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### د الله تعالی د ذکر اهمیت

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أَلَا |
| ابو درداء رضي الله عنه فرمایي چې یوه ورځ رسول الله ﷺ صحابو ته وفرمایل: آیا زه تاسو دیو داسې |
| أُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرِ أَعْمَالِكُمْ وَ أَزْكَاهَا عِنْدَ مَلِيكِكُمْ؟ |
| عمل نه خبر نکړم چې هغه ستاسو په اعمالو کې ډېر غوره، ستاسو د باچا په نزد ډېر پاکونکی ستاسو په |
| وَ أَرْفَعِهَا فِي دَرَجَاتِكُمْ ؟ وَ خَيْرٍ لَكُمْ مِنْ إِنْفَاقِ الذهبِ و الوَرِقِ؟ |
| درجاتو کې ډېر وچت او ستاسو روپې او د زرو خرچ کولو نه هم ډېر غوره دی او د دېنه هم غوره دی چې تاسو |
| و خيرٍ لكم مِنْ أَنْ تَلْقَوْا عَدُوَّكُمْ فَتَضْرِبُوا أَعْنَاقَهُمْ وَ يَضْرِبُوا أَعْنَاقَكُمْ ؟ |
| خپلو دښمنانو (کافرو سره) نه مخ شی. او تاسو د هغوی څټونه ووهی. او هغوی ستاسو څټونه ووهي؟ |
| قَالُوا: بَلَى قَالَ: ذِكْرُ اللهِ . رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ إِلَّا أَنَّ مَالِكًا وَقَفَهُ عَلَى أَبِي الدَّرْدَاءِ[1] |
| صحابو وفرمایل چې: هو! او مونږ ته ووایه چې هغه کوم عمل دی؟ نبي علیه السلام وفرمایل: د خدای ذکر. |

**توضیح: ذکر الله**: په ظاهره خو داسې معلومېږي چې د دې ذکر نه ذکر قلبي او لساني مراد دی چې

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۲۷ رقم الحديث :۳۴۲۷ .

هغه په ژبه او زړه دواړو سره وي ځکه چې په اذکارو کې دا د ټولو نه غوره ذکر دی. اوس سوال دا دی چې ذکر الله مستحب دی او جهاد فرض دی د مستحبو درجه د فرضو نه څنګه ډېره شوه؟ د دې جواب دا دی چې یو د درجې او مقام او حیثیت معامله وي او یو د ثواب معامله وي جهاد د خپل حیثیت په اعتبار سره غټ فرض دی خو کله کله الله تعالی په مستحب عمل باندې هغه ثواب ورکوي، چې هغه د فرضو نه غټ وي دا اضافي زائد ثواب دی چې د دې لپاره څه قاعده نشته لهذا په دې حدیث سره د جهاد مقدس مرتبه کوزا رول په کار نه دي څنګه چې یې ځینې خلک کوزا روي (المرقات: ۵/۵۳)

علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ وایي: هذا الحديث يدل على ان الثواب لايترتب على قدر النصب في جميع العبادات بل قد يأجر الله تعالى على قليل الأعمال اكثر مما يأجره على كثيرها. (المرقات: ۵/۴۰۵)

ترجمه: دا حدیث په دې باندې دلالت کوي چې په عباداتو کې د ثواب ترتب هرځای کې د عبادت په مقدار باندې نه کېږي بلکې کله کله الله تعالی په لږ عمل باندې هم هغه ثواب ورکوي چې هغه په کثر عملونو باندې نه ورکوي، څنګه چې د جهاد په مقابله کې دلته د ذکر الله اضافي ثواب دی.

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُسْرٍ قَالَ: جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: |
| عبدالله بن بسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې (یو ځل) د نبي عَلَيْهِ السَّلَام مجلس ته یو پاند چې راغلی او وې ویل |
| أَيُّ النَّاسِ خَيْرٌ؟ فَقَالَ: طُوبَى لِمَنْ |
| چې یا رسول الله! کوم سړی غوره دی؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: خوش بختي ده هغه سړي لره (هغه سړی |
| طَالَ عُمُرُهُ وَحَسُنَ عَمَلُهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ الْأَعْمَالِ أَفْضَلُ؟ |
| غوره دی) چې د هغه عمر فراخه او اعمال یې نیک شو هغه وویل چې: یا رسول الله! کوم عمل غوره دی؟ |
| قَالَ: أَنْ تُفَارِقَ الدُّنْيَا وَلِسَانُكَ رَطْبٌ مِنْ ذِكْرِ اللهِ. (۱) |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: کله چې ته د دنیا نه جدا شې نو ستا ژبه د خدای په ذکر باندې لونده وي. |

## د ذکر الله مجلسونه د جنت باغونه دي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا مَرَرْتُمْ بِرِيَاضِ الْجَنَّةِ |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: کله چې تاسو د جنت په باغونو باندې تېرېږی |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۳۸۷ رقم الحديث: ۲۴۳۱.

| فَارْتَعُوا قَالُوا : وَمَا رِيَاضُ الْجِنَّ ؟ قَالَ : |
|---|
| نو ښه میوه وخورئ. صحابو رضي الله عنهم وویل چې د جنت د باغونو نه څه مراد دې؟ نبي علیه السلام وفرمایل: |
| حِلَقُ الذِّكْرِ . (١) |
| د ذکر مجلسونه. |

**توضیح:** حلق: د حلقة جمع ده. حلقه یو ځای ناستې ته وایي. (المرقات: ٥/٥٦)
د دې حدیث اولنې مصداق د ذکر هغه مجلسونه دي چې هغه په خاص طور د دې مقصد لپاره کینولی کیږي لکه د اهل حق په خانقاګانو کې کیږي. د دې دویم مصداق د دیني مدرسو هغه طالبان او استاذان دي، چې هغه د دین په لوستلو او ویلو کې مشغول وي. حفظ او ناظري او د کتابونو د درجو مجلسونه لګیدلي وي. ځینې خلک د خپل وعظ په مجلسونو باندې دا حدیث لګوي، که د دوی په مجلسونو کې ذکر وي، یا د تعلیم او تعلم سلسله جاري وي. نو بېشکه هغوی به د دې حدیث په فضیلت کې زاشي، لیکن که یو جاهل سړی په یو مجلس کې وعظ کوي، په هغې کې سمې او ګکې خبرې کوي. نو د دې فضیلت خو یو طرف ته، بلکې هغه د ګناه سبب دی. چې د هغې نه فرښتې تختي.

## د الله تعالی د ذکر نه خالي ناسته د تاوان سبب دی

| ﴿١٢﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَنْ قَعَدَ مَقْعَدًا |
|---|
| حضرت ابو هریره رضي الله عنه روایت دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: کوم سړی چې په یو مجلس کې کیني |
| لَمْ يَذْكُرِ اللهَ فِيهِ كَانَتْ عَلَيْهِ مِنَ اللهِ |
| او په هغې کې الله یاد نکړي نو د هغه ناسته د الله تعالی د اړخ نه (یعني د الله په حکم او د هغه د قضاء او قدر |
| تِرَةٌ وَ مَنِ اضْطَجَعَ مَضْجَعًا |
| په سبب سره د هغه لپاره افسوس او تاوان خبره به وي او کوم سړی چې په خپله بستره کې ده ولګوي او په |
| لَا يَذْكُرِ اللهَ فِيهِ كَانَ عَلَيْهِ مِنَ اللهِ تِرَةٌ . (٢) |
| په هغې کې الله یاد نه کړي نو دا د الله د طرف نه د هغه لپاره افسوس او تاوان خبره وي. |

---

(١) أخرجه الترمذي في السنن ٥/١٩٤ رقم الحديث: ٣٥٧٧.

(٢) أخرجه أبوداود في السنن ٤/٢٦٤ رقم الحديث: ٩٦

**توضيح:** **تِرَة**: نقصان او خسارې ته وايي. **کانت**: کې ضمير مؤنث مقدر دى چې د **قعدةً** يا **اضطجاعةً** طرف ته به راجع وي. او ترة منصوب کېدو باندې به د هغې خبر وي دا توجيه آسانه ده نور توجيهات هم شته دى، لنډه دا چې کوم انسان په يو مجلس کې کيني، هغه ته په کار دي چې د الله تعالى څه نا څه ذکر وکړي ګنې هم دغه ناسته به ده لپاره وبال جان جوړېږي. (ألمرقات :۵/۵۸)

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا مِنْ قَوْمٍ يَقُومُونَ مِنْ مَجْلِسٍ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل: کوم خلک چې د کوم ناستي نه وروسته |
| لَا يَذْكُرُونَ اللهَ فِيهِ إِلَّا قَامُوا عَنْ مِثْلِ جِيفَةِ حِمَارٍ |
| پاڅېږي او په دغه ناسته کې د خداى ذکر نه وي، نو دهغه ځاى نه د وې پاڅېدل د مردار خر په شان دي. |
| وَ كَانَ عَلَيْهِمْ حَسرَةً. (۱) |
| او په دوې باندې افسوس او افسوس دى. |

## هره بې فائدې خبره د وبال سبب دى

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَا جَلَسَ قَوْمٌ مَجْلِسًا |
| او ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل: کوم خلک چې په يو مجلس کې کيني او هلته |
| لَمْ يَذْكُرُوا اللهَ فِيهِ وَ لَمْ يُصَلُّوا عَلَى نَبِيِّهِمْ إِلَّا كَانَ عَلَيْهِمْ تِرَةً |
| نه خو د الله ذکر وکړي او نه په خپل نبي باندې درود ووايي نو هغه مجلس د دوې لپاره د افسوس سبب به |
| فَإِنْ شَاءَ عَذَّبَهُمْ وَ إِنْ شَاءَ غَفَرَ لَهُمْ . (۲) |
| وي او س که وغواړي نو الله تعالى هغوې لره په عذاب کې اخته کړي او که وغواړي هغوې وبخښي. |
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : كُلُّ كَلَامِ ابْنِ آدَمَ عَلَيْهِ |
| او حضرت ام حبيبه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل: د بني آدم هر کلام د هغه لپاره وبال دى. د هغه |
| لَا لَهُ إِلَّا أَمْرٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ نَهْيٌ عَنْ مُنْكَرٍ |
| کلام نه غير چې هغه د امر بالمعروف (د نيکۍ تاکيد او تعليم کولو) او نهي عن المنکر (د بدۍ نه د ساتلو |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲٦٤/٤ رقم الحديث : ۴۸۵۵.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۱۲۹/۵ رقم الحديث : ۳۴۴۰

| أَوْ ذِكْرُ اللهِ. (۱) |
|---|
| تلقين) يا د الله د ذكر لپاره وي. |

**توضيح**: د دې حديث د ظاهري الفاظو نه داسې معلومېږي چې هر مباح كلام هم په ځان باندې بوج دى. دغه شان به معامله ډېره سخته شي. لهذا علماء ليكي چې دا حديث غير شرعي او ناځوبنه خبرو د ايسارولو لپاره د مبالغې په توګه ارشاد كړى شويدى. **مطلب** دا دى چې د بني آدم هره وينا د هغه لپاره په عقبى كې د افسوس او پښيمانتيا سبب به وي ځكه چې دې سړى ته څه شرعې فائده ترلاسه نشوه، اګركه فى نفسه جائز وو خو! كه امر بالمعروف او نهى عن المنكر وي يا ذكر الله وي، نو دا شيان د فائدې او نفع سبب به وي،له خپل وخت په دې كې مصرف كول په كار دي.(المرقات ۶۰/۵).

## ډېرې خبرې زړه سختوي

| ﴿۱۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا تُكْثِرُوا الْكَلَامَ بِغَيْرِ ذِكْرِ |
|---|
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: د ذكر الله نه بغير ډېرې خبرې مكوى ځكه د |
| اللهِ فَإِنَّ كَثْرَةَ الْكَلَامِ بِغَيْرِ ذِكْرِ اللهِ قَسْوَةٌ لِلْقَلْبِ وَ إِنَّ أَبْعَدَ النَّاسِ مِنَ اللهِ |
| الله ذكر نه بغير ډېرې خبرې د زړه د سختى سبب دى او ياد ساتى چې په سړو كې د ټولو نه د الله نه ډېر لرې |
| الْقَلْبُ الْقَاسِي . (۲) |
| هغه سړى دى چې د هغه زړه سخت وي. |

## لسان ذاكر، قلب شاكر بهتره سرمايه ده

| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْ ثَوْبَانَ قَالَ : لَمَّا نَزَلَتْ ﴿ وَ الَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَ الْفِضَّةَ﴾ |
|---|
| او حضرت ثوبان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې كله دا آيت: كوم خلك چې سره او سپين زر جمع كوي، نازل شو |
| كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ فَقَالَ |
| نو دغه وخت مونږ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په يو سفر كې ؤ ( د دې آيت اوريدلو سره) نو وويل : |

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۳۱۵/۲ رقم الحديث : ۳۹۷۴.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵۲۵/۴ رقم الحديث : ۲۴۱۱.

| بَعْضُ أَصْحَابِهِ : نَزَلَتْ فِي الذَّهَبِ وَ الْفِضَّةِ |
|---|
| بعضي صحابو چې د سره او سپينو زرو په باره کې خو دا آيت نازل شو او مونږ ته د دې شيانو حکم او |
| لَوْ عَلِمْنَا أَيُّ الْمَالِ خَيْرٌ فَنَتَّخِذَهُ ؟ |
| د دې بدې معلومه شوه. کاش مونږ ته دا معلومه شي چې کوم مال غوره دی. دې لپاره چې مونږ هغه |
| فَقَالَ : أَفْضَلُهُ لِسَانٌ ذَاكِرٌ وَ قَلْبٌ شَاكِرٌ وَ زَوْجَةٌ مُؤْمِنَةٌ |
| جمع کړو نبي عليه السلام و فرمايل: د خدای ذکر کونکې ژبه، شکر ايستونکی زړه او مسلمانه ښځه چې هغه |
| تُعِينُهُ عَلَى إِيمَانِهِ . (۱) |
| د خپل خاوند په ايمان کې مرسته کونکې وي. غوره مال دی. |

**توضيح**: په دې حديث کې درې شيان د مسلمان د ژوند سرمايه گرځولی شويده، لسان ذاکر، قلب شاکر او مؤمنه ښځه، په ظاهره خو داسې معلومېږي چې صحابه کرامو د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا پوښتنه کړي وه چې د سرو او سپينو زرو د جمع کولو او سرمايه جوړولو حکم خو مونږ ته معلوم شو چې په دې کې خطره ده. کاش مونږ ته دا معلومه شي چې د دې ظاهرې مال نه غيره کوم شی دی چې دهغې په ذخيره کولو سره خپل مستقبل جوړ کړی شي، او هغه ذخيره په مستقبل کې په کار راشي، په دې باندې نبي کريم صلی الله علیه وسلم درې شيان ذکر کړل، يو خو لسان ذاکر دی، دويم شی قلب شاکر دی. او دريم شی ښځه ده.

**تعينه على ايمانه**: يعنې خاوند د ايمان په اعمالو باندې شروع کوي، دهغه په داسې کارونو کې بنديزنه اچوي چې هغه د ايمان سره متعلق وي خپله هم مؤمنه ده، او د خاوند هم مرسته کونکې ده دا درې هغه سرمايه ده چې ظاهرې مال ندی ليکن په مستقبل کې ډېر فائده مند دې(المرقات ۶۱/۵)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث

### الله تعالى په ذاکرينو باندې فخر کوي

| ﴿۱۸﴾ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ : خَرَجَ مُعَاوِيَةُ عَلَى حَلْقَةٍ |
|---|
| حضرت ابوسعيد رضي الله عنه فرمايي چې يوه ورځ حضرت معاويه رضي الله عنه په يو مجلس باندې تېر شو چې په |

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۵۹۶ رقم الحديث :۱۸۵۶.

فِي الْمَسْجِدِ فَقَالَ : مَا أَجْلَسَكُمْ ؟

يو جمات کې راغونډو وو هغه د مجلس د خلکو نه پوښتنه وکړه چې تاسو دلته کوم شي کينولي ياست؟

قَالُوْا : جَلَسْنَا نَذْكُرُ اللهَ قَالَ : آللهِ

هغوی وويل چې مونږ دلته الله تعالى يادولو لپاره ناست يو معاويه رضي الله عنه وويل چې په خدای قسم

مَا أَجْلَسَكُمْ إِلَّا ذَلِكَ ؟ قَالُوا : آللهِ

آيا تاسو د خدای ذکر دلته کينولي ياست؟ هغوی وويل چې په خدای قسم! په دې کې هيڅ شک نشته چې

مَا أَجْلَسَنَا غَيْرُهُ قَالَ : أَمَا إِنِّي

مونږ فقط د خدای ذکر دلته کينولي يو. حضرت معاويه رضي الله عنه فرمايل: ګورئ! ما تاسو باندې تهمت

لَمْ أَستحلفكم تُهْمَةً لَكُمْ

لګولو لپاره قسم ندی درکړی بلکې ما د نبي عليه السلام د اتباع د مخې قسم درکړی دی. چې نبي عليه السلام

وَ مَا كَانَ أَحَدٌ

هم د غه شان ويلي وو، لکه په راروان حديث کې به راشي. او بيا معاويه رضي الله عنه وفرمايل) چې نبي

بِمَنْزِلَتِي مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَقَلَّ عَنْهُ حَدِيثًا مِنِّي

کريم صلى الله عليه وسلم سره د ډير نزديکت باوجود زما نه به کم حديثونه نقل کونکی کوم صحابي نه وي

د حضرت معاويه رضي الله عنه خور ام حبيبه رضي الله عنها نبي عليه السلام په ازواج مطهرات کې وه په دې اعتبار

وَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

سره حضرت معاويه رضي الله عنه د کور په نزدې خلکو کې شو بهر کيف حضرت معاويه رضي الله عنه فرمايل چې

خَرَجَ عَلَى حَلْقَةٍ مِنْ أَصْحَابِهِ

د غه شان يو ورځ نبي عليه السلام د خپلو صحابو په يو مجلس ته يو ورځ ورسيدلو. نبي عليه السلام هغوی

فَقَالَ : مَا أَجْلَسَكُمْ هَاهُنَا

ته وفرمايل: دلته تاسو کوم شي کينولي ياست؟ (يعنې دلته د کوم مقصد لپاره جمع ناست يئ) صحابو

قَالُوْا : جَلَسْنَا نَذْكُرُ اللهَ وَ نَحْمَدُهُ عَلَى مَا هَدَانَا لِلْإِسْلَامِ

وويل: مونږ دلته الله يادوو، او مونږ د هغه د دې خبرې ستاينه کوو چې هغه مونږ ته د اسلام هدايت

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَ | مَنَّ | بِهِ | عَلَيْنَا | قَالَ : | " آالله |

وکړو او ددې په ذریعه سره یې په مونږ باندې احسان وکړو نبي عَلَیْہِ السَّلَام وفرمایل: چې په خدای قسم!

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَا | أجلسكم | إِلَّا | ذٰلِكَ ؟ | قَالُوْا : | آالله |

(آیا) تاسو دلته فقط دې شي کینولي یاست؟ صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُم وویل: چې په خدای قسم په دې کې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَا | أَجْلَسَنَا | إِلَّا | ذٰلِكَ | قَالَ : | أَمَا إِنِّي |

هیڅ شک نشته چې مونږ دلته دې شي کینولي یو. نبي عَلَیْہِ السَّلَام وفرمایل: ګورئ ما تاسو ته په تاسو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَمْ | أَسْتَحْلِفْكُمْ | تُهْمَةً | لَكُمْ | وَ لٰكِنَّهٗ | أَتَانِي | جِبْرِيْلُ |

باندې د دروغ تړلو لپاره قسم نه دی درکړی بلکې ماته جبرئیل عَلَیْہِ السَّلَام راغلو او هغه ماته وویل چې

فَأَخْبَرَنِي أَنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ يُبَاهِي بِكُمُ الْمَلَائِكَةَ . [1]

الله تعالی خپلو فرښتو ته په تاسو باندې فخر کوي.

﴿۱۹﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُسْرٍ : أَنَّ رَجُلًا قَالَ : يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّ شَرَائِعَ الْإِسْلَامِ

او عبدالله بن بسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې یو سړی عرض وکړو: چې یا رسول الله! د اسلام احکام

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَدْ | كَثُرَتْ | عَلَيَّ | فَأَخْبِرْنِي | بِشَيْءٍ |

(نوافل) په ما باندې ډېر درانه دي نو څکه ته ماته یو داسې څه ووایه چې په هغې باندې زه توکل وکړم

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَتَشَبَّثُ | بِهِ | قَالَ : | " لَا | يَزَالُ | لِسَانُكَ | رَطْبًا |

او دهغې سره زه ونخلم، نبي عَلَیْہِ السَّلَام وفرمایل: ستا ژبه (یعني یا خو هم دا ظاهرې ژبه یا د زړه ژبه) د الله په

بِذِكْرِ اللهِ) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيْثٌ حسن غَرِيْبٌ [2]

ذکر همیشه لونده ) یعني جارې ساتل په کار دي.

**توضیح: اتشبث به:** یعني داسې عمل راته وښایه چې هغه کم خرچ او اوچتې مرتبې والا وي. په دې کې محنت کم وي، هر ځای کې کیدلی شي، په هر حالت کې خپلیدلی شي، دې لپاره چې زه د دې

(۱) أخرجه مسلم ۷۲/۸، رقم الحديث : ۷۰۳۲.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۱۲۶/۵ رقم الحديث : ۳۴۳۵.

سره ځان ونخلوم او هغه د خپل ځان لپاره د ساتنې سامان جوړ کړم. نبي کریم ﷺ جواب ورکړو: چې هر وخت ستا ژبه د الله په ذکر باندې لمده ساتل په کار دي هېڅ وخت کې دې وچه نه شي د دې غټ اجر دی او دا کم خرچ او اوچتې مرتبې والا ثواب دی. (المرقات: ۵/۶۴)

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ: أَيُّ الْعِبَادِ أَفْضَلُ |
| او حضرت ابو سعید رضي الله عنه فرمايي چې نبي علیه السلام نه پوښتنه وشوه چې کوم بنده غوره دی (چې ډېر |
| وَ أَرْفَعُ دَرَجَةً عِنْدَ اللهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ قَالَ: |
| ثواب بیا مومي) او د قیامت په ورځ باندې د الله په نزد د اوچتې درجې مالک دی؟ نبي علیه السلام وفرمایل |
| الذَّاكِرُونَ اللهَ كَثِيرًا وَ الذَّاكِرَاتُ قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ وَ مِنَ الْغَازِي |
| الله لره ډېر یادونکې سړي او ښځې. وویلی شو چې یا رسول الله! آیا دا د جهاد کونکو نه هم غوره دي او |
| فِي سَبِيلِ اللهِ؟ قَالَ: لَوْ ضَرَبَ بِسَيْفِهِ فِي الْكُفَّارِ وَ الْمُشْرِكِينَ |
| اوچتې مرتبې والا دي؟ نبي علیه السلام وفرمایل که یو سړی کافرو او مشرکانو سره په خپله توره باندې جنګ |
| حَتَّى يَنْكَسِرَ وَ يَخْتَضِبَ دَمًا |
| وکړي تر دې چې هغه توره ماته شي او (هغه توره یا مجاهد) په وینو باندې رنګ شي (دا د دې خبرې نه |
| فَإِنَّ الذَّاكِرَ لِلَّهِ أَفْضَلُ |
| کنایه ده چې هغه شهید شي) نو په دې کې هېڅ شک نشته چې د الله ذکر کونکی سړی د درجې په اعتبار |
| مِنْهُ دَرَجَةً. رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرْمِذِيّ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيث حسن غَرِيب [1] |
| سره د دغه سړي نه غوره دی. |

**توضیح:** د دې حدیث تشریح او توضیح د دېنه مخکې حدیث ۹ کې تېر شویدی، هلته دې وکتلی شي، جهاد فرض دی، د دې مقام وپېژنه.

## د الله ذکر د زړه محافظ دی

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الشَّيْطَانُ جَاثِمٌ عَلَى قَلْبِ ابْنِ آدَمَ |
| او ابن عباس رضي الله عنهما اوي دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: شیطان د انسان زړه پسې نختی وي کله چې |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۲۷ رقم الحدیث: ۲۴۳۶.

| فَإِذَا ذَكَرَ اللهَ خَنَسَ وَ إِذَا غَفَلَ |
|---|
| هغه د زړه نه الله یاد کړي نو شیطان شاته شي او کله چې هغه د الله د ذکر نه غافله شي نو شیطان د هغه په |
| وَسْوَسَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ تَعْلِيقاً |
| زړه کې وسوسې اچوي. |

**توضیح:جاثم**: ای لازم الجلوس ودائم اللصوق یعني همیشه نختی ناست وي. چېپ اوږې د لاندې شیطان خپل خرتم خبښ کړي، او ناست وي، د دغه اوږې د لاندې د انسان زړه دی، دا خبیث دغه زړه کنټرول کولو کوښښ کوي. (المرقات :۶۶/۵)

**الخناس**: مطلب دا دی چې یعني د الله د ذکر په وخت کې شیطان پټ شي خو کله چې ذکر بند شي، نو شیطان بیا راشي او خپل کار شروع کړي، الذی یوسوس هم دا مطلب دی. (المرقات :۶۶/۵)

## د الله د ذکر مثال او عظیم فضیلت

| ﴿۲۲﴾ وَ عَنْ مَالِكٍ قَالَ : بَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ يَقُولُ : |
|---|
| او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمایي چې ماته دا روایت رارسیدلی دی چې نبي عَلَیهِ السَّلَام فرمایي: د غافلو په مینځ |
| ذَاكِرُ اللهِ فِي الْغَافِلِينَ كَالْمُقَاتِلِ |
| کې د خدای ذکر کونکی، تختید ونکو نه شاه جنګ کونکې په شان دی. (یعني د هغه سړي په شان دی |
| خَلْفَ الْفَارِّينَ |
| چې هغه د جنګ په میدان کې د خپل لښکر د تختید لو نه وروسته یک یواځې د کافرانو په مقابله کې کلک |
| وَ ذَاكِرُ اللهِ فِي الْغَافِلِينَ كَغُصْنٍ |
| ولاړ وي، د دغه شان سړي د برغت فضیلت نقل شویدی) او د غافلو په مینځ د خدای ذکر کونکی په وچ |
| أَخْضَرَ فِي شَجَرٍ يَابِسٍ وَ فِي رِوَايَةٍ : مَثَلُ الشَّجَرَةِ الْخَضْرَاءِ فِي وَسَطِ الشَّجَرِ |
| بوټي کې د شین ښاخ په شان دی. په یو روایت کې داسې دي چې د بوټو په مینځ کې د تک شین تازه بوټې |
| وَ ذَاكِرُ اللهِ فِي الْغَافِلِينَ مَثَلُ مِصْبَاحٍ فِي بَيْتٍ مُظْلِمٍ وَ ذَاكِرُ اللهِ فِي الْغَافِلِينَ |
| په شان دی. او د خدای ذکر کونکی په تورتم کور کې د ډیوې په شان دی. او په غافلو کې د خدای |

يُرِيهِ اللهُ مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ

ذکر کونکی داسې سړی دی چې هغه ته الله تعالی د هغه په ژوند کې په جنت کې خپل ځای ورښايي

وَ هُوَ حَيٌّ

(يعني يا خو په ذريعه د مکاشفه باندې ښايي يا خوب کې او يا هغه ته داسې يقين ورکوي چې گويا

وَ ذَاكِرُ اللهِ فِي الْغَافِلِينَ يُغْفَرُ لَهُ بِعَدَدِ كُلِّ فَصِيحٍ وَ أَعْجَمٍ.

هغه دا وينې) او په غافلو کې خدای يادونکی داسې سړی دیچې د هغه گناه د هر فصيح او د اعجم

وَ الْفَصِيحُ : بَنُو آدَمَ وَ الْأَعْجَمُ : الْبَهَائِمُ . رَوَاهُ رزين

په اندازه باندې بخښلی کيږي، د فصيح نه مراد انسان او د اعجم نه مراد ځناور دي.

﴿٢٣﴾ وَ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ : مَا عَمِلَ الْعَبْدُ عَمَلًا أَنْجَى لَهُ

او حضرت معاذ ابن جبل ﷺ فرمايي چې داسې يو عمل نشته دی چې هغه بنده وکړي او د الله د ذکر

مِنْ عَذَابِ اللهِ مِنْ ذِكْرِ اللهِ.[1]

نه ډېر د الله د عذاب نه نجات ورکړي.

﴿٢٤﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ تَعَالَى يَقُولُ أَنَا مَعَ عَبْدِي

او ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي عليه السلام وفرمايل: الله تعالی فرمايي چې زه د خپل بنده سره يم

إِذَا ذَكَرَنِي وَ تَحَرَّكَتْ بِي شَفَتَاهُ ".[2]

چې کله ما يادوي او زما د ذکر لپاره دواړه شونډې يو ځای کړي (يعني زړه او ژبه دواړو باندې ذکر کوي)

(يعني زه د هغه سره مرسته کونکی يم هغه ته توفيق ورکوم او په هغه باندې خپل رحمت لېږم)

﴿٢٥﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ : لِكُلِّ شَيْءٍ

او حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نبي عليه السلام نه روايت کوي چې نبي عليه السلام وفرمايل: د هر څه لپاره

---

(١) أخرجه الترمذي في السنن ١٢٨/٥ رقم الحديث :٣٤٣٧ .

(٢) أخرجه البخاري ١٥٣/٩، رقم الحديث : ٧٥٢٣.

صِقَالَةٌ وَ صِقَالَةُ الْقُلُوبِ ذِكْرُ اللهِ وَمَا مِنْ شَيْءٍ

پاکوالی دی، او د زړونو پاکوالی د خدای ذکر دی. او داسې هېڅ شی نشته چې هغه د الله د ذکر په

أَنْجَى مِنْ عَذَابِ اللهِ مِنْ ذِكْرِ اللهِ قَالُوا : وَلَا الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللهِ ؟

برابر د خدای د عذاب نه نجات ورکړي. صحابو رضي الله عنهم عرض وکړو چې آیا د الله په لاره کې جهاد

قَالَ : وَلَا أَنْ يَضْرِبَ بِسَيْفِهِ

کول هم داسې شی نه دی؟ نبي علیه السلام و فرمایل: نه! اګر که هغه (مجاهد) خپله توره و وهي (یعني دومره

حَتَّى يَنْقَطِعَ .[1]

په زور سره یې و وهي) چې د هغه توره ماته شي.

**نوټ**: د دې حدیث توضیح او تشریح مخکې د حدیث ۹ لاندې تیره شوې ده، هلته دې وکتلی شي، دې لپاره چې حدیث په پوهه کې راشي، جهاد فرض دی، د دې غټ مقام دی.

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد و على آله و أصحابه أجمعين



(۱) أخرجه البيهقي في الدعوات الكبير ۲۰/۱ ، رقم الحديث : ۲۰.

# کتاب أَسمَاء الله تَعَالىٰ

قال الله تعالی: ﴿وَلِلّٰهِ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى فَادْعُوْهُ بِهَا﴾. (سورة الاعراف آیت:۱۸۰)

وقال الله تعالی: ﴿قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ اَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ اَيًّا مَّا تَدْعُوْا فَلَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى﴾ (الاسراء آیت:۱۱۰)

شیخ عبدالحق په اشعة اللمعات کې لیکي چې دا خبره پیژندل په کار دي چې د الله تعالی نومونه توفیقي دي، د توفیقي مطلب دا دی چې د شارع په اجازت او سماع باندې موقوف دي. په شریعت کې چې کوم نومونه نقل شوي دي، په هغې باندې اطلاق کول په کار دي. د خپل عقل نه څه نوم ږدول په کار نه دي . اگرکه هغه د منقول اسم سره یو شان معنی باندې وي. مثلاً د عالم اطلاق په شریعت کې شته دی، نو هم دا اطلاق کول په کار دي. د عاقل اطلاق کول په کار نه دي. اگرکه دواړو یو معنی ده. دغه شان د جواد اطلاق دی، د سخي کول په کار نه دي، د غه شان د شافي اطلاق دی، د طبیب کول پکار ندي، د الله تعالی نومونه په دوه قسمه دي. یو اسم ذاتي دی لکه لفظ د الله دی. چې د هغې تعلق د ذات سره دی. دویم قسم اسم صفتي دی، چې د هغې د تعلق د هغه ذات د صفت سره کېږي. اسماء صفات بیا په دوه قِسمه دي. یو قِسم هغه دي چې هغه د الله تعالی د ذات نه د صفات سلبیه نه د سلب او نفی لپاره راځي. چې د هغې نه مقصود د الله تعالی پاکې بیانول وي، دویم قِسم هغه دي چې د هغې تعلق د الله د صفات ثبوتیه د اثبات سره دی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### د الله تعالی ۹۹ نومونه یادولو فضیلت

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ لِلّٰهِ تَعَالىٰ تِسْعَةً وَ تِسْعِيْنَ |
| ابو هریره رضی الله عنه راوي دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: د الله تعالی نهه نوي (۹۹) نومونه دي یعنې یو |
| اِسْمًا مِائَةً إِلَّا وَاحِدًا مَنْ أَحْصَاهَا دَخَلَ الْجَنَّةَ . وَ فِيْ |
| کم سل، کوم سړی چې دا نومونه یاد کړل په هغه به په ابتداء کې بغیر د عذاب نه جنت ته ننوځي. په یو |
| رِوَايَةٍ : وَ هُوَ وِتْرٌ يُحِبُّ الْوِتْرَ.[1] |
| روایت کې دي چې الله تعالی طاق دی او طاق خوښوي. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۱٤/۱۱ رقم الحديث: ٦٤١٠، ومسلم في صحيحه ٢٠٦٢/٤ رقم الحديث:٥- ٢٦٧٧.

**توضیح**: په دې حدیث کې په ۹۹ نومونو کې د حصر ذکر دی خو په راتلونکو حدیثونو کې څه نور نومونه هم راغلي نو علماو د دې تعارض لرې کولو لپاره ویلي چې د ۹۹ شمېره چې په دې حدیث کې ذکر ده، دا هغه تعداد دی چې د هغه لپاره دا خاص بشارت دی چې کوم سړی دا یاد کړي، هغه به جنت ته ځي د دې خصوصیت چې کوم نومونه دي هغه ۹۹ دي، د دې نه غیره نور نومونه هم دي، لهذا په ۹۹ کې حصر نه دی.

**احصاها**: د دې نه په یاده یادول مراد دي. امام بخاري هم د **احصاها** ترجمه په **حفظها** سره کړې ده، د ځینو علماو خیال دی چې د **احصاها** نه مراد په دې باندې عقیده ساتل او په دې باندې ایمان راوړل دي دا قول مرجوح دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

﴿۲﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ لِلّٰهِ تَعَالَى تِسْعَةً وَ تِسْعِيْنَ

ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: د الله تعالی (۹۹) نومونه دي کوم سړی چې دا

اِسْمًا مَنْ أَحْصَاهَا دَخَلَ الْجَنَّةَ هُوَ اللهُ الَّذِي لَا إِلٰهَ هُوَ

نومونه یاد کړي هغه به جنت ته ځي، هغه الله دی چې هغه د هغه نه غیر شوک د عبادت لائق نشته دی او

الرَّحْمٰنُ الرَّحِيْمُ الْمَلِكُ الْقُدُّوْسُ السَّلَامُ الْمُؤْمِنُ

داسم ذات نه غیر نومونه دا دي: (۱) الرَّحْمٰنُ (۲) الرَّحِيْمُ (۳) الْمَلِكُ (۴) الْقُدُّوْسُ (۵) السَّلَامُ (۶) الْمُؤْمِنُ

الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيْزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ الْغَفَّارُ الْقَهَّارُ

(۷) الْمُهَيْمِنُ (۸) الْعَزِيْزُ (۹) الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ (۱۰) الْخَالِقُ (۱۱) الْبَارِئُ (۱۲) الْمُصَوِّرُ (۱۳) الْغَفَّارُ (۱۴) الْقَهَّارُ

الْوَهَّابُ الرَّزَّاقُ الْفَتَّاحُ الْعَلِيْمُ الْقَابِضُ الْبَاسِطُ الْخَافِضُ الرَّافِعُ

(۱۵) الْوَهَّابُ (۱۶) الرَّزَّاقُ (۱۷) الْفَتَّاحُ (۱۸) الْعَلِيْمُ (۱۹) الْقَابِضُ (۲۰) الْبَاسِطُ (۲۱) الْخَافِضُ (۲۲) الرَّافِعُ

الْمُعِزُّ الْمُذِلُّ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ الْحَكَمُ الْعَدْلُ اللَّطِيْفُ الْخَبِيْرُ

(۲۳) الْمُعِزُّ (۲۴) الْمُذِلُّ (۲۵) السَّمِيْعُ (۲۶) الْبَصِيْرُ (۲۷) الْحَكَمُ (۲۸) الْعَدْلُ (۲۹) اللَّطِيْفُ (۳۰) الْخَبِيْرُ

| الْحَلِيمُ | الْعَظِيمُ | الْغَفُورُ | الشَّكُورُ | الْعَلِيُّ | الْكَبِيرُ | الْحَفِيظُ | الْمُقِيتُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (۳۱) الْحَلِيمُ | (۳۲) الْعَظِيمُ | (۳۳) الْغَفُورُ | (۳۴) الشَّكُورُ | (۳۵) الْعَلِيُّ | (۳۶) الْكَبِيرُ | (۳۷) الْحَفِيظُ | (۳۸) الْمُقِيتُ |
| الْحَسِيبُ | الْجَلِيلُ | الْكَرِيمُ | الرَّقِيبُ | الْمُجِيبُ | الْوَاسِعُ | الْحَكِيمُ | |
| (۳۹) الْحَسِيبُ | (۴۰) الْجَلِيلُ | (۴۱) الْكَرِيمُ | (۴۲) الرَّقِيبُ | (۴۳) الْمُجِيبُ | (۴۴) الْوَاسِعُ | (۴۵) الْحَكِيمُ | |
| الْوَدُودُ | الْمَجِيدُ | الْبَاعِثُ | الشَّهِيدُ | الْحَقُّ | الْوَكِيلُ | الْقَوِيُّ | الْمَتِينُ |
| (۴۶) الْوَدُودُ | (۴۷) الْمَجِيدُ | (۴۸) الْبَاعِثُ | (۴۹) الشَّهِيدُ | (۵۰) الْحَقُّ | (۵۱) الْوَكِيلُ | (۵۲) الْقَوِيُّ | (۵۳) الْمَتِينُ |
| الْوَلِيُّ | الْحَمِيدُ | الْمُحْصِي | الْمُبْدِئُ | الْمُعِيدُ | الْمُحْيِي | الْمُمِيتُ | الْحَيُّ |
| (۵۵) الْوَلِيُّ | (۵۶) الْحَمِيدُ | (۵۷) الْمُحْصِي | (۵۸) الْمُبْدِئُ | (۵۹) الْمُعِيدُ | (۶۰) الْمُحْيِي | (۶۱) الْمُمِيتُ | (۶۲) الْحَيُّ |
| الْقَيُّومُ | الواجِدُ | الماجِدُ | الواحِدُ | الأحَدُ | الصَّمَدُ | الْقَادِرُ | الْمُقْتَدِرُ |
| (۶۳) الْقَيُّومُ | (۶۴) الواجِدُ | (۶۵) الماجِدُ | (۶۶) الواحِدُ | (۶۷) الأحَدُ | (۶۸) الصَّمَدُ | (۶۹) الْقَادِرُ | (۷۰) الْمُقْتَدِرُ |
| الْمُقَدِّمُ | الْمُؤَخِّرُ | الْأَوَّلُ | الْآخِرُ | الظَّاهِرُ | الْبَاطِنُ | الْوَالِي | الْمُتَعَالِي |
| (۷۱) الْمُقَدِّمُ | (۷۲) الْمُؤَخِّرُ | (۷۳) الْأَوَّلُ | (۷۴) الْآخِرُ | (۷۵) الظَّاهِرُ | (۷۶) الْبَاطِنُ | (۷۷) الْوَالِي | (۷۸) الْمُتَعَالِي |
| الْبَرُّ | التَّوَّابُ | الْمُنْتَقِمُ | الْعَفُوُّ | الرَّؤُوفُ | مَالِكُ الْمُلْكِ | ذُو الْجَلَالِ وَ الْإِكْرَامِ | |
| (۷۹) الْبَرُّ | (۸۰) التَّوَّابُ | (۸۱) الْمُنْتَقِمُ | (۸۲) الْعَفُوُّ | (۸۳) الرَّؤُوفُ | (۸۴) مَالِكُ الْمُلْكِ | (۸۵) ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ | |
| الْمُقْسِطُ | الْجَامِعُ | الْغَنِيُّ | الْمُغْنِي | الْمَانِعُ | الضَّارُّ | النَّافِعُ | النُّورُ الْهَادِي |
| (۸۶) الْمُقْسِطُ | (۸۷) الْجَامِعُ | (۸۸) الْغَنِيُّ | (۸۹) الْمُغْنِي | (۹۰) الْمَانِعُ | (۹۱) الضَّارُّ | (۹۲) النَّافِعُ | (۹۳) النُّورُ (۹۴) الْهَادِي |
| الْبَدِيعُ | الْبَاقِي | الْوَارِثُ | الرَّشِيدُ | الصَّبُورُ.[1] | | | |
| (۹۵) الْبَدِيعُ | (۹۶) الْبَاقِي | (۹۷) الْوَارِثُ | (۹۸) الرَّشِيدُ | (۹۹) الصَّبُورُ. | | | |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲/۱۲۶۹ رقم الحديث : ۳۸۶۱ .

**توضیح**: د دې نومونو بېلا بېل خاصیتونه دي. ټول شارحینو لیکلي دي. علماو په دې باندې جدا جدا کتابونه لیکلي دي. چې هغه د اسماء حسنی په نوم سره چهاپ شویدي. تفصیلات هلته وګورۍ. د تنګې لمن (ځای د کموالي) د وجې نه تفصیل نشم کولی. بس هر لوستونکو باندې لازم دي چې دا یاد کړي، برکات او فائدې خپله په لوستلو سره ترلاسه کړي.

## د الله تعالی اسم اعظم

﴿۳﴾ وَ عَنْ بُرَيْدَةَ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعَ رَجُلًا يَقُولُ: اَللّٰهُمَّ إِنِّي

حضرت بریده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام دیو کس نه دا دعا واوریدله چې: ای الله! زه ستا نه د خپل

أَسْأَلُكَ بِأَنَّكَ أَنْتَ اللهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ الْأَحَدُ

مقصد او مطلوب په دې وسیلې سره غوارم چې ته الله یې ستا نه غیر څوک معبود نشته ته داسې یو اځې او

الصَّمَدُ الَّذِي لَمْ يَلِدْ وَ لَمْ يُولَدْ وَ لَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ

بې نیازه یې چې نه خو دده نه څوک پیدا دي او نه دا د چا نه پیدا دی او نه دده څوک برابر شته (دې اوریدلو

فَقَالَ : دَعَا اللهَ بِاسْمِهِ الْأَعْظَمِ الَّذِي

سره) نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل چې دې سړی د الله تعالی نه په اسم اعظم سره دعا وغوښتله داسې اسم اعظم

إِذَا سُئِلَ بِهِ أَعْطَى . وَ إِذَا

چې کله د الله تعالی نه د دې په ذریعه سره سوال وشي نو هغه سوال پوره کېږي او کله چې د دې په ذریعه سره

دُعِيَ بِهِ أَجَابَ . [1]

دعا وغوښتلی شي نو الله تعالی هغه قبلوي یعنې هغه دعاء اکثر قبلیږي.

**توضیح**: ډیره راجحه هم دا ده چې اسم اعظم د الله تعالی په نومونو کې پټ دی څنګه چې جمعې مقبول ساعت او لیلة القدر پټ دی اګرکه ځینې علما وایي چې اسم اعظم لفظ الله دی (المرقات ۵/۱۱۶).

شیخ عبدالقادر جیلاني رَحِمَهُ اللهُ وایي چې کله د زړه او ژبې تناوو او ربط یو کولو سره لفظ الله وویلی شي نو هم دا اسم اعظم دی.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۷۸/۵ رقم الحديث :۳۵۴۲، وأبوداود في السنن ۷۹/۲ رقم الحديث :۱۴۹۳م.

(٤) وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كُنْتُ جَالِسًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ وَرَجُلٌ يُصَلِّي

او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې زه د نبي عليه السلام سره په جومات کې ناست وم او يو سړی لمونځ کولو

فَقَالَ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ

هغه (د مونځ نه وروسته) دا دعا وغوښتله: ای الله! زه ستا نه خپل مطلب په دې وسيلې سره غواړم چې تول

بِأَنَّ لَكَ الْحَمْدَ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ الْحَنَّانُ الْمَنَّانُ بَدِيعُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ

صفتونه تا لره دي ستا نه غير څوک معبود نشته، ته ډير مهربان، ډير ورکونکی او د آسمانونو او زمکو پيدا

يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ يَا حَيُّ يَا قَيُّومُ أَسْأَلُكَ

کونکی يې ای د لوئي او بخښني مالکه! ای ژوندیه! ای خبر اخستونکیه! زه خاص ستا نه سوال کوم (دې

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: دَعَا اللهَ بِاسْمِهِ الْأَعْظَمِ

اوريدلو سره) نبي عليه السلام وفرمايل دې سړی د الله تعالى نه د هغه په غټ نوم سره دعا وغوښتله دا سې غټ

الَّذِي إِذَا دُعِيَ بِهِ أَجَابَ

نوم چې کله د الله تعالى نه د دې په ذريعه سره دعا وغوښتلې شي نو الله تعالى دا قبلوي او کله چې د

وَإِذَا سُئِلَ بِهِ أَعْطَى. (١)

دې په ذريعه سره سوال وکړی شي نو هغه سوال پوره کېږي.

(٥) وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "اسْمُ اللهِ الْأَعْظَمُ

اسماء بنت يزيد رضي الله عنها فرمايي چې نبي عليه السلام وفرمايل: د الله تعالى د ټولو نه غټ نوم (اسم اعظم)

فِي هَاتَيْنِ الْآيَتَيْنِ: ﴿وَإِلَهُكُمْ إِلَهٌ وَاحِدٌ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَنُ

په دې دوه آيتونو کې دی او ستا معبود هغه يو دی د هغه نه غير بل څوک معبود نشته او هغه بخښونکی

الرَّحِيمُ﴾ وَفَاتِحَةُ آلِ عِمْرَانَ: ﴿الم اللهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ

مهربان دی) او د سورة آلعمران دا ابتدايي آيت: هغه الله چې د هغه نه غيره څوک معبود نشته، هغه

(١) أخرجه ابوداود في السنن ٧٩/٢ رقم الحديث: ١٤٩٥.

| الْحَيُّ الْقَيُّومُ ﴾. (۱) |
| --- |
| ژوندی دی او خبر اخستونکی دی. |

## د یونس عَلَيْهِ السَّلَام د دعاء برکت

| ﴿۶﴾ وَعَنْ سَعْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: دَعْوَةُ ذِي النُّونِ |
| --- |
| حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: ماهي والایعنې دیونس عَلَيْهِ السَّلَام هغه دعاء |
| إِذَا دَعَا رَبَّهُ وَ هُوَ فِي بَطْنِ الْحُوتِ ﴿ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ |
| چې هغه یې دماهي په خیټه کې د خپل رب نه غوښتلې وه، داده: ستا نه غیره څوک معبود نشته دی، |
| سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنْتُ مِنَ الظَّالِمِينَ ﴾ لَمْ يَدْعُ بِهَا رَجُلٌ مُسْلِمٌ |
| ته پاک یې، بېشکه زه د کمې کونکو نه وم) کوم مسلمان سړی چې ددې دعاء په ذریعه د خدای نه څه |
| فِي شَيْءٍ إِلاَّ اسْتَجَابَ لَهُ ". (۲) |
| شی وغواړي نو الله تعالی هغه سوال پوره کوي. |

**توضیح**: ذی النون یعنې دماهي والادعاء دذې نه مراد حضرت یونس عَلَيْهِ السَّلَام دی چې هغه د نینوی او موصل په علاقه کې قوم ته دعوت ورکړوقوم انکار وکړو هغه بددعاء وکړه، په دې کې تاخیر کېدلو، دا د ښار نه ووتلو، الله تعالی ته دا وتل خوښ نه شول، یا په آزمیښت کې راوستلو باندې یې په سمندر کې واچولو، ماهي تېر کړو، ده دعاء وکړه، الله تعالی مهرباني وکړه، بیا بېرته قوم ته راغلو، قوم یې استقبال وکړو، او مسلمان شو، بیا هم په دغه قوم کې حضرت یونس عَلَيْهِ السَّلَام وفات شو. (المرقات ۵/۱۱۹)

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۲/۸۰ رقم الحديث :۱۴۹۶ .

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۹۱ رقم الحديث :۳۵۷۲ .

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د اسم اعظم تحقیق

﴿۷﴾ عَنْ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: دَخَلْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسْجِدَ عِشَاءً

بریده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یوه ورځ زه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام سره د ماسخوتن لمونځ لپاره جوماټ ته ننوتلم نو

فَإِذَا رَجُلٌ يَقْرَأُ وَ يَرْفَعُ صَوْتَهُ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ

هلته څه ګورم چې یو سړی (په مونځ کې) قرآن وایي او خپل آواز اوچتوي ما وویل چې یا رسول الله! آیا ته

أَتَقُولُ: هَذَا مُرَاءٍ؟ قَالَ: بَلْ مُؤْمِنٌ مُنِيبٌ

بدې سړی ته ریاکار نه وایې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: نه بلکې مؤمن دی چې (د غفلت نه د ذکر اړخ ته) رجوع

قَالَ: وَأَبُو مُوسَى الْأَشْعَرِيُّ يَقْرَأُ وَيَرْفَعُ صَوْتَهُ فَجَعَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَسَمَّعُ

کوي بریده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې ابوموسی په اوچت آواز باندې قرآن کریم لوستلو او نبي عَلَيْهِ السَّلَام د هغه قرأت

لِقِرَاءَتِهِ ثُمَّ جَلَسَ أَبُو مُوسَى يَدْعُو

اوریدلو بیا ابوموسی (یا په تشهد کې او یا د مونځ نه وروسته د دعا لپاره) کیناستلو او د الله په دربار کې

فَقَالَ: اللَّهُمَّ إِنِّي أُشْهِدُكَ أَنَّكَ أَنْتَ اللهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ أَحَدًا

یې داسې فریاد وکړو: اې الله! ما ته ګواه کړې، هغه د خدای نه د هغه په نوم سره سوال وکړو داسې نوم چې

صَمَدًا لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَقَدْ سَأَلَ اللهَ بِاسْمِهِ

کله د هغې په ذریعه سوال وشي نو الله تعالی هغه سوال پوره کوي، او کله چې د دې په ذریعه سره دعا

الَّذِي إِذَا سُئِلَ بِهِ أَعْطَى وَ إِذَا دُعِيَ بِهِ أَجَابَ قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ

وغوښتلې شي نو دعا قبلیږي بریده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي ما عرض وکړو چې یا رسول الله! ما چې ستا نه دا خبره

أُخْبِرُهُ بِمَا سَمِعْتُ مِنْكَ؟ قَالَ: نَعَمْ فَأَخْبَرْتُهُ بِقَوْلِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

واوریدله دا ابوموسی ته ورسوم نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: هو! نو ما ابوموسی ته د نبي عَلَيْهِ السَّلَام دا خبره

فَقَالَ لِي: أَلْتَ الْيَوْمَ لِي أَخٌ صَدِيقٌ حَدَّثْتَنِي بِحَدِيثِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ رَزِين[1]

ورسولهنو هغه وويل چې دننوړ ځې نه تهزما رښتوني وروروشوي چې تا د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دا خبره ماته را ورسوله

**توضیح:** د دې نه مخکې اشاره کړی شوې ده چې اسم اعظم د الله تعالی په نومونو کې پټ دی. کوم یو شی د دې مصداق نه دی، خو څه علماو د دې د تعین په باره کې لیکلي دي، نو د ځینو علماو په نزد لفظ **الله** اسم اعظم دی، د ځینو بناغلو په نزد دا دی چې: **بسم الله الرحمن الرحیم** اسم اعظم دی. څه علماو **هو** ته اسم اعظم ویلی دی. چې دا سلطان باهو د ټولو نه ډیر استعمال کړې دی، ځینو **الحي القیوم** ته او ځینو **مالك الملك** ته او ځینو **الله الذی لااله الا هورب العرش العظیم** اسم اعظم ګرځولی دی. امام زین العابدین د الله تعالی نه اسم اعظم وغوښتلو نو په خوب کې ورته وویلی شو چې **لااله الاالله** اسم اعظم دی.

ځینې سلف فرمایي چې لفظ **اللهم** اسم اعظم دی. ځینو بناغلو **الٓمٓ** ته اسم اعظم ویلي دي.

د دې باب په څو احادیثو کې نبي کریم ﷺ ځینې دعاګانې اسم اعظم ګرځولي دي. دا ډیر مستند دی.

لیکن دلته که دا وویلی شی نو بې ځایه به نه وي چې شاید اسم اعظم به د خاص الفاظو د خاص ترکیب نوم نه وي. بلکې هر هغه کلمه یا جمله چې هغه د الله تعالی په انتهائي ستاینه باندې مشتمل وي، هغه اسم اعظم دی.

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وعلى آله وأصحابه أجمعين



(۱) أخرجه مشكاة المصابيح ۱۶/۲، رقم الحديث: ۲۲۹۳.

# بَاب ثَوَاب التسبيح والتحميد والتهليل والتكبير

## د تسبيحاتو ثواب

قَالَ الله تعالى : ﴿وَسَبِّحُوْهُ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا﴾ (سورة الاحزاب آيت:۴۲) وقَالَ الله تعالى ﴿فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ﴾ (سورة النصر آيت:۳) وقَالَ تعالى ﴿وَكَبِّرْهُ تَكْبِيْرًا﴾ (سورة بني اسرائيل آيت: ۱۱۱)

د تسبيح نه سبحان الله او د تسبيح د مادې سره متعلق ټول كلمات مراد دي. تحميد نه الحمدلله مراد دى. تهليل نه لا اله الا الله ويل او تكبير نه الله اكبر ويل مراد دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### د ټولو نه غوره او محبوب كلمات

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَفْضَلُ الْكَلَامِ |
| سمرة ابن جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: دانسان په خبرو كې د ټولو نه غوره خبرې |
| أَرْبَعٌ : سُبْحَانَ اللهِ وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ |
| څلور دي (او هغه دا دي) الله ډېر پاک دی ، ټول صفتونه الله لره دي، د الله نه غيره څوک معبود نشته |
| وَ اللهُ أَكْبَرُ " وَ فِي رِوَايَةٍ : "أَحَبُّ الْكَلَامِ إِلَى اللهِ أَرْبَعٌ : |
| الله ډېر لوي دی، په يو روايت كې دي (چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل) د الله په نزد د ټولو نه غوره خبرې څلور |
| سُبْحَانَ اللهِ وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَ اللهُ أَكْبَرُ |
| دي الله ډېر پاک دی ، ټول صفتونه الله لره دي، د الله نه غيره څوک معبود نشته الله ډير لوي دی. په دې |
| لَا يَضُرُّكَ بِأَيِّهِنَّ بَدَأْتَ ".[1] |
| كې د هرې كلمې نه شروع كول ستا لپاره تاواني نه دي. |

**توضيح:افضل الكلام:** د دې حديث دوه مفهومه دي. اول مفهوم دا دى چې د الله تعالى د كلام نه وروسته د انسان په كلام كې دا څلور خبرې د هر څه نه غوره دي. دا قيد ځكه ولګولى شو چې كوم

---

(۱) أخرجه البخاري تعليقا ۵۶۶/۱۱ ، ومسلم في صحيحه ۱۶۸۵/۳ رقم الحديث:۱۲-۲۱۳۷.

کلمات په قرآن کې دي او د الله تعالی کلام وي، هغه د هر څه نه غوره دی. د قرآن نه غیره د الله تعالی په کلام کې دا ذکرشوې خبرې د ټولونه غوره دي.دویم مفهوم دادی چې دانسان په کلام کې دا څلور کلمات د ټولونه غوره دي یعنې الله تعالی ته خوښې او غوره دي لکه په دې حدیث کې په دویم روایت کې ذکر دي.بهرحال په دې څلورو کلماتو کې دالله تعالی نه دصفات سلبیه دنفی کلمات هم شته دی چې د سبحان الله لفظ دی. او د الله تعالی د صفات ثبوتیه لپاره هم کلمات شته دی، د دې جامعیت د وجې نه دا کلمات غوره دي. (المرقات: ۵/۱۲۲)

**بأيهن بدأت**: یعنې په دې سره هیڅ فرق نه راځي چې تا ابتدا د کومې کلمې نه کړیده. ذکر شوی ترتیب هم جائز دی. او د ترتیب نه بغیر لوستل هم فائده مند دي. (المرقات: ۵/۱۲۳)

| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَأَنْ أَقُولَ : سُبْحَانَ اللهِ |
|---|
| او حضرت ابوهریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي علیه السلام و فرمایل: زما داویل: الله ډېر پاک دی، ټول |
| وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَ اللهُ أَكْبَرُ أَحَبُّ إِلَيَّ |
| صفتونه الله لره دي، د الله نه غیر بل څوک معبود نشته، الله ډېر لوی دی، دا ما ته ډېر غوره دی د هر |
| مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ ". (۱) |
| هغه څه نه چې په هغې باندې لمر راخیژي (یعنې دنیا او د دنیا دشیانو نه). |

## ټول ګناهونه معاف کیږي

| ﴿۳﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : "مَنْ قَالَ: سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ فِي |
|---|
| اوحضرت ابوهریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: چاچې وویل سبحان الله وبحمده په |
| يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ حُطَّتْ خَطَايَاهُ وَ إِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ . (۲) |
| یوه ورځ کې سل ځل نوهغه ګناهونه به ختم کړی شي اګر که هغه ددریاب دزګ په اندازه ولې نه وي. |

**توضیح**: بهتر او اولی هم دا ده چې دا وظیفه سل ځل په یو وار وویلی شي. په مینځ کې فرق نه وي، لیکن علامه طیبي وایي چې دا کلمات د سحر نه ترماښام پورې په جدا طریقو باندې هم لوستلی شي ټول ګناهونه چې هغه معاف کیږي، نو د دې نه صغائر ګناهونه مراد دي. ځکه چې د کبائر لپاره د

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۰۶/۱۱ رقم الحديث: ۶۴۰۵، ومسلم في صحيحه ۲۰۷۱/۴ رقم الحديث:۲۸- ۲۶۹۱.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۰۶/۱۱ رقم الحديث: ۶۴۰۵، ومسلم في صحيحه ۲۰۷۱/۴ رقم الحديث:۲۸-۲۶۹۱.

توبې ضرورت دی خو ! كبائر ضعيفه كېږي خو كه ورسره ورسره توبه هم وكړی شي ښا خو كبائر هم معاف كېږي په دې شرط چې به حقوق العباد كې نه وي. (الكاشف ۵/۷۷، المرقات ۱۲۴-۵/۱۲۵)

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: " مَنْ قَالَ حِيْنَ يُصْبِحُ وَ حِيْنَ يُمْسِي |
| حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: چا چې وويل د سحرا و ماښام په وخت كې |
| سُبْحَانَ اللهِ وَ بِحَمْدِهِ مِائَةَ مَرَّةٍ لَمْ يَأْتِ أَحَدٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِأَفْضَلَ مِمَّا جَاءَ بِهِ |
| سبحان الله وبحمده سل ځل نو د قيامت په ورځ به هېڅوك د هغه نه د غوره عمل والا نه وي د هغه سړی نه |
| إِلَّا أَحَدٌ قَالَ مِثْلَ مَا قَالَ أَوْ زَادَ عَلَيْهِ. [۲] |
| غير چا چې د ده په شان يا د ده نه ډېر دا كلمات ويلي وي. |

**توضيح:** **اوزاد عليه:** سوال دادی چې په دې حديث كې د اول سړی د افضليت ختمولو لپاره يې فرمايلي دي چې راتلونكی سړی چا چې دده په شان كه سل ځله دا تسبيح ويلي وي نو هغه به بهتر وي، او حال دا دی چې په دې كې هېڅ بهتري نشته دی، اول سړی هم سل ځله ويله، ده هم دهغه په شان سل ځله ويله، نو غوره والی ورته څنګه ترلاسه شو؟ د دې آسان جواب دا دی چې د حديث په آخر كې د او چې كوم لفظ دی، داد واو په معنی دی، مطلب دا شو چې دا فضيلت هغه سړی ته ترلاسه كېږي چې هغه سل ځله ووايي او څه ډېر ووايي. (المرقات: ۵/۱۲۵، والكاشف: ۵/۷۷)

## دوه كلمې الله تعالى ته خوښې دي

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " كَلِمَتَانِ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: دوه كلمې دي چې سپكې دي په ژبه |
| خَفِيْفَتَانِ عَلَى اللِّسَانِ ثَقِيْلَتَانِ فِي الْمِيْزَانِ |
| باندې خو په تله كې درندې دي (يعنې د دوی ثواب به د عمل په ميزان كې درونده وي) او ډېرې خوښې |
| حَبِيْبَتَانِ إِلَى الرَّحْمٰنِ : سُبْحَانَ اللهِ وَ بِحَمْدِهِ |
| دي الله تعالى ته او هغه دوه كلمې دا دي: سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم يعنې الله پاك دی |

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۷۱/٤ رقم الحديث:۲۹-۲۶۹۲.

| سُبْحَانَ اللهِ الْعَظِيمِ ". (۱) |
|---|
| او د خپل حمد سره موصوف دی، پاک دی، کوم الله چې لویې دی. |

**توضيح: كلمتان**: نه مراد دوه كلمي دي چې دوه كلمي . **حبيبتان**: دا د **محبوبتان** په معنی دی، مرا دا دی چې د دې لوستونکی الله تعالی ته محبوب کېږي. (المرقات :۵/۱۲۶)

**خفيفتان**: سپک کېدلو مطلب دا دی چې د دې مشقت کم دی، ثواب یې ډېر دی، څکه د کم خرچ فائده ډیر په شان دی، یا داسې ووایی چې په دې کې څه مشهور سخت حرف نشته دی، ځکه سپک دي، یا داسې ووایی چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په بیان کې کومه سجعه ده، دې سجع دا خفیف کړې دی. یا دا چې دا تشویق سپک جوړ کړې دي. یعنې هره کلمه د بلې کلمې شوق راولي. کله چې وویلی شو چې کلمتان نو اوریدونکی متوجې شو، کله چې **حبيبتان** لفظ راغلی نو اوریدونکې راپورته شو، کله چې **ثقيلتان** وویلی شو نو اوریدونکو د ډېرې خوشحالۍ او سختې مینې نه خپله وویله چې سبحان الله! دا څومره غټ دولت دی، لږ ژر ووایه، نو د دې په جواب کې دا کلمي راغلي: **سبحان الله وبحمده** په دې کې دالله تعالی دصفات سلبیه دنفې لپاره یوه جمله ده او د صفات ثبوتیه د اثبات لپاره دویمه جمله ده، نو الله تعالی کامل او مکمل صفت په دې کې راغلی. (المرقات ۵/۱۲۶، الکاشف ۵/۷۸).

## د زرو نيکيو والا دعاء

| ﴿۶﴾ وَ عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ : قَالَ : كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| او حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه فرمايي چې یوه ورځ مونږ د نبي علیه السلام سره ناست وو نبي علیه السلام |
| فَقَالَ : أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَكْسِبَ كُلَّ يَوْمٍ أَلْفَ حَسَنَةٍ ؟ |
| وفرمایل آیا په تاسو کې څوک په دې خبره باندې قادر ندی چې هره ورځ زر (۱۰۰۰) نیکی ترلاسه کړي؟ په |
| فَسَأَلَهُ سَائِلٌ مِنْ جُلَسَائِهِ : كَيْفَ يَكْسِبُ أَحَدُنَا أَلْفَ حَسَنَةٍ ؟ |
| مجلس کې ناستو صحابو کې یو صحابي وویله چې په مونږ کې یو کس (هره ورځ په آسانتیا سره) زر نیکۍ |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۶۶/۱۱ رقم الحديث: ۶۶۸۲، ومسلم في صحيحه ۲۰۷۲/۴ رقم الحديث: ۳۱-۶۹۴.

قَالَ : يُسَبِّحُ مِائَةَ تَسْبِيحَةٍ فَيُكْتَبُ لَهُ أَلْفُ حَسَنَةٍ

څنګه ترلاسه کړي؟نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: هغه دې سل ځله سبحان الله و وايي هغه لپاره به زر نيکۍ

أَوْ يُحَطُّ عَنْهُ أَلْفُ

وليکلی شي (په هره نيکۍ باندې لس نيکۍ ليکلی کېږي) يا دده به يو زر (صغيره ياکه الله نو کبيره)

خَطِيئَةٍ . [1] وَ فِي كِتَابه : فِي جَمِيعِ الرِّوَايَاتِ عَنْ مُوسَى الْجُهَنِيِّ :

ګناه به ليرې کړې شي. ابوبکر برقاني رَحِمَهُ الله فرمايي چې په صحيح مسلم کې د موسی جهنی نه کوم

أَوْ يُحَطُّ قَالَ أَبُو بَكْرٍ الْبَرْقَانِي وَ رَوَاهُ شُعْبَةُ وَ أَبُو

روايتونه نقل دي، په دې ټولو کې لفظ الف ندی ليکل شوی، او يحط نقل شويدی، ليکن شعبه، ابو

عَوَانَةَ وَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّان عَنْ مُوسَى فَقَالُوْا : و يُحَطُّ

عوانه اويحيی بن سعيد قطان چې دموسی جهنی نه هم دا روايت نقل کړيدی، په دې کې لفظ دو يحط

بِغَيْرِ أَلف هٰكَذَا فِي كتاب الحميدِي .

بغير د الف نه ذکر شويدی او د حميدی په کتاب کې يعنی جمع بين الصحيحين کې هم دغه شان منقول دی

**توضيح:** او يحط: حط يحط د غورزولو په معنی دی، دلته د ګناهونو معاف کيدل مراد دي، دلته دا خبره ياد ساته چې په او يحط کې د او کلمه د واو په معنی دی. لهذا وس هيڅ اعتراض نه راځي، مطلب دا چې زر نيکۍ به ورکول کېږي، او زر ګناهونه به معاف کېږي، دا هم کم خرچ بالانشين د قبلي نه دی. (المرقات :۵/۱۲۷)

﴿۷﴾ وَ عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ : سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الْكَلَامِ أَفْضَلُ ؟ قَالَ:

حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه پوښتنه وشوه چې کوم کلام غوره دی؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام

"مَا اصْطَفَى اللّٰهُ لِمَلَائِكَتِهِ : سُبْحَانَ اللهِ وَ بِحَمْدِهِ ". [2]

وفرمايل: هغه کلام کوم چې الله تعالی د خپلو فرښتو لپاره غوره کړی (هغه دا دی) سبحان الله وبحمده

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۷۳/۴ رقم الحديث: ۳۷-۲۶۹۸.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۹۳/۴ رقم الحديث: ۷۴-۲۷۳۱.

## په دعاء کې اعتبار کیفیت ته دی، نه کمیت ته

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْ جُوَيْرِيَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ خَرَجَ مِنْ عِنْدِهَا |
| او جویریه رضی الله عنها نه (چې د نبي عليه السلام بي بي ده) نقل دي چې یو وړځ نبي عليه السلام وتلو د دې د خوانه |
| بُكْرَةً حِينَ صَلَّى الصُّبْحَ وَ هِيَ فِي مَسْجِدِهَا ثُمَّ رَجَعَ |
| د سحر په وخت کې د مونځ لپاره او دا په خپله مصلّی باندې ناسته وه کله چې نبي عليه السلام را واپس شو |
| بَعْدَ أَنْ أَضْحَى وَ هِيَ جَالِسَةٌ |
| د څابښت په وخت کې نو دا په خپل ځای یعنې په مصلّی باندې هماغه شان ناسته وه نبي عليه السلام دې |
| قَالَ : مَا زِلْتِ عَلَى الْحَالِ الَّتِي فَارَقْتُكِ عَلَيْهَا ؟ |
| کتلو سره و فرمایل چې په کوم حالت کې چې ما ته پرېښودلې وې هغه شان په مصلّی باندې ناسته یې؟ هغې |
| قَالَتْ : نَعَمْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " لَقَدْ قُلْتُ بَعْدَكِ أَرْبَعَ كَلِمَاتٍ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ |
| وفرمایل: هو! نبي عليه السلام وفرمایل ما ستا د خوانه تللو نه وروسته څلور کلمې درې ځلې وویله هغه |
| لَوْ وُزِنَتْ بِمَا قُلْتِ مُنْذُ الْيَوْمِ |
| څلور کلمې دا سې دي که دا د هغه څه سره وتللی شي چې هغه کې ته د ابتداء د ورځې نه تر اوسه پورې |
| لَوَزَنَتْهُنَّ : |
| مشغوله وې نو دا څلور کلمې به پرې درنې وې په هغه څه چې کوم تا کړي وي او هغه څلور کلمې دا دي |
| سُبْحَانَ اللهِ وَ بِحَمْدِهِ عَدَدَ خَلْقِهِ وَ رِضَاءَ نَفْسِهِ |
| زه د الله پاکي بیانوم او د هغې صفت کوم د هغه د مخلوقاتو د شمیرې په اندازه او هغې د ذات د رضا موافق |
| وَ زِنَةَ عَرْشِهِ وَ مِدَادَ كَلِمَاتِه ".[1] |
| او د هغې د عرش د وزن په مطابق او هغه د کلمو د مقدار په اندازه. |

**توضیح:** دلته حضرت جویریه رضی الله عنها تر ناوخته پورې د سحر د لمونځ نه وروسته کیناستله او ډېرې دعاګانې یې وکړې لیکن نبي عليه السلام فقط څلور کلمې ویلې دي چې هغه د کیفیت او شان والا وي،

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۹۰/۴ رقم الحديث: ۷۹-۲۷۲۶.

نو ځکه د دې وزن ډېر شو، ددې نه معلومه شوه چې د الله په ذکر کې او دغه شان په هره دعا، کې د کیفیت اعتبار دی، کمیت او د کثرت اعتبار نشته دی دغه شان مثلا یو سړی لفظ الله یالفظ الحمد لله داسې زر زر وایي چې په هغې کې فقط لس سیکنډ مصرف شي او یو سړی په لس سیکنډه کې زر زر پنځه ځل پورې ووایي ددې نه دهغه یو ځل ویلو ثواب ډېر دی. وخت او توجو باندې ثواب ورکولی کېږي. (المرقات ۵/۱۲۸).

## د شیطان نه د ځان ساتنې آسانه طریقه

|
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " مَنْ قَالَ : لَا |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه روایت دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: کوم سړی چې دا کلمات ووایي نشته |
| إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَ لَهُ الْحَمْدُ وَ هُوَ عَلٰى |
| معبود مګریو الله چې یو دی او شریک نه لري دهغه لپاره باچایي ده او دهغه لپاره صفتونه دي. هغه په |
| كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ فِي يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ كَانَتْ لَهُ عَدْلَ عَشْرِ رِقَابٍ |
| هر څه باندې قادر دی په ورځ کې سل ځل هغه ته دسلو غلامانو دآزادولو ثواب ورکولی کېږي، دهغه |
| وَ كُتِبَتْ لَهُ مِائَةُ حَسَنَةٍ وَ مُحِيَتْ عَنْهُ مِائَةُ سَيِّئَةٍ وَ كَانَتْ لَهُ حِرْزًا مِنَ الشَّيْطَانِ |
| لپاره سل نیکۍ لیکلی کېږي، دهغه سل ګناهونه ختمیدې شي، او وي به ده ته پناه د شیطان نه په دغه |
| يَوْمَهُ ذٰلِكَ حَتّٰى يُمْسِيَ وَ لَمْ يَأْتِ أَحَدٌ بِأَفْضَلَ مِمَّا جَاءَ بِهِ |
| ورځ باندې او (د قیامت په ورځ) څوک د هغه د راوړلی شوي عمل نه به غوره عمل راونوړي، د هغه |
| إِلَّا رَجُلٌ عَمِلَ أَكْثَرَ مِنْهُ ".[1] |
| سړی نه غیره چا چې دا کلمات د هغه نه ډېر ویلي وي. |

**توضیح**: شارع علیه السلام چې په تسبیحاتو او دعاو کوم تعداد ویلی دی، دا مقدار د تاثیر لپاره د شرط درجه لري. د دېنه په کم کې به مطلوب ترلاسه نه شي، اوس که یو سړی د دېنه ډېر ووایي، نو مطلوب به ترلاسه شي او که نه؟ نو علامه نووی او داسې نورو لیکلي دي چې به دې کې هم هغه تاثیر دی. پاتې شوه دا خبره چې ددې یو خاص عدد ذکر ولې کیدی شي؟ نو دا مفوض الی الله والی رسوله ده.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۰۱/۱۱ رقم الحدیث: ۶۴۰۳، ومسلم في صحيحه ۲۰۷۱/۴ رقم الحدیث: ۲۸-۲۶۹۱.

مونږ لره د دې حکمت لټول په کار نه دي د ټولو نه غټ حکمت خو دا دی چې شارع فرمايلي دي. (المرقات ۵/۱۳۰).

## د جنت خزانه تر لاسه کړه

{۱۰} وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ

او حضرت ابو موسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل مونږ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره په يو سفر کې وُچې خلکو

فَجَعَلَ النَّاسُ يَجْهَرُونَ بِالتَّكْبِيرِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا أَيُّهَا النَّاسُ

(يو ځای کې) په زوره زوره تکبير ويل شروع کړل نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دې او ريدلو سره و فرمايل: خلکو د خپلو

ارْبَعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ إِنَّكُمْ

ځانونو سره نرمي وکړئ (يعنې په دومره اوچت آواز سره تکبير مه وايی) ځکه چې تاسو (د تکبير په

لَا تَدْعُونَ أَصَمَّ وَلَا غَائِبًا إِنَّكُمْ تَدْعُونَ سَمِيعًا بَصِيرًا وَ هُوَ

ذريعه) کوم کوڼ يا غائب نه رابلئ بلکې تاسو هغه رابلئ چې هغه اوريدونکی او ليدونکی دی او هغه

مَعَكُمْ وَ الَّذِي تَدْعُونَهُ أَقْرَبُ إِلَى أَحَدِكُمْ مِنْ عُنُقِ رَاحِلَتِهِ

ستاسو سره دی او څوک چې تاسو راغواړئ هغه په تاسو کې د هر سړي، د هغه د سپرلۍ د څټ نه ډېر نزدې

قَالَ أَبُو مُوسَى: وَ أَنَا خَلْفَهُ

دی. حضرت ابو موسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه (دغه وخت کې) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ پسې شاته (او ښ باندې

أَقُولُ: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ فِي نَفْسِي فَقَالَ: يَا عَبْدَ اللهِ بْنَ قَيْسٍ

ياپياده وم او په زړه کې مې لاحول ولاقوة الابالله ويله) چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل: يا عبد الله بن قيس!

أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى كَنْزٍ مِنْ كُنُوزِ الْجَنَّةِ؟ فَقُلْتُ: بَلَى يَا رَسُولَ اللهِ

آيا زه تا ته د جنت په خزانو کې يوه خزانه ونه ښايم؟ ما ورته ويل چې: هو يا رسول الله! خامخا و ښايه.

قَالَ: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ.[1]

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل: هغه خزانه لاحول ولاقوة الابالله ده.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۱۸۷ رقم الحديث: ۶۳۸۴، ومسلم في صحيحه ۴/۲۰۷۶ رقم الحديث: ۴۴-۲۷۰۴.

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## په جنت کې بوټی نال کړه

﴿۱۱﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ قَالَ سُبْحَانَ اللهِ الْعَظِيمِ وَبِحَمْدِهِ

حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې نبي عليه السلام وفرمايل: چاچې وويل (سبحان الله العظيم وبحمده)

غُرِسَتْ لَهُ نَخْلَةٌ فِي الْجَنَّةِ. (۱)

د هغه لپاره په جنت کې د کهجورې بوټي لګولی کیږي.

﴿۱۲﴾ وَعَنِ الزُّبَيْرِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا مِنْ صَبَاحٍ يُصْبِحُ الْعِبَادُ فِيهِ إِلَّا مُنَادٍ

او حضرت زبير رضي الله عنه فرمايي چې نبي عليه السلام وفرمايل: داسې هيڅ يو سحر نشته چې يو فرښته دا آواز

يُنَادِي سَبِّحُوا الْمَلِكَ الْقُدُّوسَ. (۲)

ونه کړي چې پاک باچا د هغه د پاکۍ سره ياد کړه.

## بهتره ذکر او بهتره دعاء

﴿۱۳﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَفْضَلُ الذِّكْرِ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ

او حضرت جابر رضي الله عنه راوي دی چې نبي عليه السلام وفرمايل: ذټولو نه غوره ذکر لا اله الا الله دی او دټولو

وَأَفْضَلُ الدُّعَاءِ: الْحَمْدُ لِلهِ ". (۳)

نه بهتره دعاء الحمد لله ده.

**توضيح:** لا اله الا الله ته غوره دعاء ځکه ويلی شوی چې دا د اسلام او ايمان بنيادي رکن دی ددې نه بغير نه عقيده صيحح کيدی شي او نه د احکامو او اعمالو څه اعتبار شته. د دې کلمې نه د انسان د باطن ټول باطل معبودان چې ځنګه غورزيږي. دغه شان دا کلمه چې کله په زړه کې ننوتلو نه وروسته په ژبه باندې راشي نو دانسان ظاهري معبودان باطله لره غورزوي. **سوال:** الحمد لله په ظاهره

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٥/١٧٤، رقم الحديث :٣٥٣٢ .

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ٥/٢٢٣، رقم الحديث :٣٦٢٠ .

(۳) أخرجه الترمذي في السنن ٥/١٣٠، رقم الحديث :٣٤٤٢ .

غوره دعاء ګرځولی شوې ده، او حال دا چې په ظاهره دې کې هيڅ دعاء نشته ؟ **جواب**: شارحين ليکي چې په حمد کې د الله صفت دی . او د هر يو سخې چې کله صفت وشي نو هغه فقط په صفت باندې د غوښتلو نه بغير ورکول کوي. او الله تعالى خو ډېر لوی دی،اودعظمت په ټولو کمالاتو باندې متصف دی، کله چې د هغه صفت کېږي نو هغه صفت کونکې ته دومره ورکړي چې دومره په غوښتلو باندې هم نه ورکوي، ځکه يې وفرمايل: الحمد لله غوره سوال دی.دويمه وجه دا چې الله تعالى منعم حقيقي دی، د هغه صفت په حقيقت کې دهغه دنعمتونو شکر ادا کول دي او شکر په حقيقت کې د يو نعمت په بدله کې راځي او په نعمت باندې شکراداکول دبرکت سبب کېدوباندې په نعمت کې ډېروالی کوي لکه﴿لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ﴾ کې د ډېروالي وعده ده. د دې وجې نه الحمد لله غوره سوال ګرځولی شويدی. د دې حديث نه وروسته راتلونکې حديث کې د دې حقيقت بيان شته دی. چې په هغې کې شکر لره د حمد جرړه ګرځولی شويده. (المرقات ۵/۱۳۴، الکاشف ۵/۸۴)

## د الله تعالى حمد د الله شکر ادا کول دي

| |
|---|
| ﴿۱٤﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ |
| اوحضرت عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل:د الله تعالى حمداوصفت داد |
| رَأْسُ الشُّكْرِ مَا شَكَرَ اللهَ عَبْدٌ لَا يَحْمَدُهُ. |
| شکر سر دی کوم بنده چې د خدای صفت ونه کړو هغه د خدای(کامل)شکر ادا نه کړو. |
| ﴿۱۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَوَّلُ مَنْ يُدْعَى إِلَى |
| اوحضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل:اول هرهغه څوک چې رابللې کيږي |
| الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الَّذِينَ يَحْمَدُونَ اللهَ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ.[1] |
| جنت ته په ورځ د قيامت دا هغه خلک دي چې د الله تعالى حمد بيانوي په خوشحالۍ او سختۍ کې |

## د لا اله الا الله لوی شان

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قَالَ مُوسَى عَلَيْهِ السَّلَامُ. |
| اوحضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: حضرت موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ ووېل |

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الإيمان ۹۰/٤، رقم الحديث : ۴۳۷۳.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَا | رَبِّ | عَلِّمْنِي | شَيْئًا | أَذْكُرُكَ | بِهِ | وَ | أَدْعُوكَ | بِهِ |

چې اى ربه! ماته څه داسې شى وښايه چې دهغې په ذريعه سره زه تا يادوم، او ستا نه دعا غواړم؟ نو

فَقَالَ : يَا مُوسَى قُلْ : لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ فَقَالَ : يَا رَبِّ كُلُّ عِبَادِكَ يَقُولُ هٰذَا

الله تعالى وفرمايل: اى موسى! لااله الاالله ووايه، موسى عليه السلام وويل: زماربه! ستاټول بندګان دا

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّمَا | أُرِيدُ | شَيْئًا | تَخُصُّنِي | بِهِ | قَالَ : | يَا | مُوسَى |

كلمه وايي زه خو څه داسې څه غواړم چې هغه ته زما لپاره خاص كړي، الله تعالى وفرمايل: اى موسى!

لَوْ أَنَّ السَّمَاوَاتِ السَّبْعَ وَ عَامِرَهُنَّ غَيْرِي وَ الْأَرَضِينَ السَّبْعَ وُضِعْنَ فِي كِفَّةٍ

كه اووه آسمانونه او مانه غير ددې اوسيدونكي (ټولې فربنتې) او اووه زمكې په يوه تله كې كيخودلى شي

وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ فِي كِفَّةٍ لَمَالَتْ بِهِنَّ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ ". [۲]

او لااله الاالله يعني ددې ثواب په بله تله كې كيخودلى شي نو درنه به شي تله د لااله الاالله.

**توضيح**: الله تعالى د موسى عليه السلام په زړه كې د الهام په توګه دا واچوله چې هغه داسې سوال وكړي چې په جواب يې ټول خلك مستفيد شي، نو الله تعالى په جواب كې د لااله الاالله عظمت او حقيت واضح كړو چې د الله نه غير ټول شيان او كائنات مكمل ډهانچه كه دتلې په يوه پله كې كيخودى شي او لااله الا الله په بله پله كې كيخودى شي نو ددې پله به درنه وي، **سوال**: دلته دا سوال په ذهن كې پيدا كيږي چې حضرت موسى عليه السلام د الله تعالى نه د يو خاص دعا سوال كړى و، چې په هغې كې د ده اختصاص وي او هغه د ټولو نه بهتر وي، الله په جواب كې ورته لااله الاالله وفرمايل، چې دا په حقيقت كې د حضرت موسى عليه السلام د دسوال د جواب سره مطابقت نه لري، ځكه چې به دې كې څه تخصيص او اختصاص نشته دى، بلكې د دنيا ټول خلك دا وايط، لوي خوبښكه دى ليكن تخصيص د موسى عليه السلام چيرته دى؟ كله چې سوال د تخصيص وو **جواب**: كه په ژور نظر سره وكتلى شي نود الله تعالى د ويلو نه وروسته موسى عليه السلام دا سوال د يو محال شى سوال وو، ځكه چې د لااله الاالله نه لوي شي نه، او اتفاقي كار دا چې دا كلمه د چا سره خاص نه ده بلكې د هرچالپاره عام

---

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ٤٩٢/٥ رقم الحديث: ٣٤٣٠ .

ده. او موسی علیه السلام د ټول نه د غوره شي تخصیص غوښتلو، نو ځکه الله تعالی و فرمایل: چې هم دا کلمه وایه، ددې نه بهتر شی نشته، او نور ما په خپل رحمت سره عام کړیده، لکه باد عام دی، او به عام دی، لمر سپوږمۍ عام دي، کوم شی چې څومره قیمتې وي، هغه د الله په نزد هغومره عام وي (المرقات ۱۳۵–۵/۱۳۶، الکاشف ۵/۸۷)

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ وَأَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ |
| حضرت ابو سعید رضي الله عنه او حضرت ابو هریره رضي الله عنه وایه فرمایي چې نبي علیه السلام و فرمایل کوم سړی |
| قَالَ : لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَ اللهُ أَكْبَرُ صَدَّقَهُ رَبُّهُ |
| چې داوایي د الله نه غیر څوک معبود نشته او الله ډېر لوی دی) نو د هغه رب هغه لره ریښتوني کوي. |
| قَالَ : لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا وَ أَنَا أَكْبَرُ وَ إِذَا |
| الله تعالی فرمایي بېشکه زما نه غیر بل څوک د عبادت لائق نشته دی او زه ډېر لویې یم او چې کله دا |
| قَالَ : لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ |
| و وایي د الله نه غیر بل څوک د عبادت لائق نشته هغه یک یو اځې دی، د هغه څوک شریک نشته، نو |
| يَقُولُ اللهُ : لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا وَحْدِي لَا شَرِيكَ لِي وَ إِذَا قَالَ : لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ لَهُ الْمُلْكُ وَ لَهُ |
| الله تعالی فرمایي : بېشکه زمانه غیر بل څوک د عبادت لائق نشته، خاص مال لره باچایي ده او خاص ما |
| الْحَمْدُ قَالَ : لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا لِيَ الْمُلْكُ وَ لِيَ الْحَمْدُ وَ إِذَا قَالَ : لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَلَا حَوْلَ |
| لره صفتونه او کله چې دغه سړی و وایي د الله نه غیر بل څوک د عبادت لائق نشته او د ګناهونو نه د ساتلو |
| وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ قَالَ : لَا إِلَهَ |
| او د تابعداری قوت مونده خاص د الله په مدد سره دي، نو الله تعالی فرمایي بېشکه مانه غیر بل څوک |
| إِلَّا أَنَا لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِي" |
| د عبادت لائق نشته، د ګناهونو نه ساتل او د تابعداری قوت مونده خاص زما په مرسته سره دي او |
| وَ كَانَ يَقُولُ : مَنْ قَالَهَا فِي مَرَضِهِ |
| نبي علیه السلام به فرمایل چې کوم سړی دغه (ذکر شوي) کلمات د الله تعالی د جوابونو نه غیر په خپلمنا روغی. |

| ثُمَّ | مَاتَ | لَمْ | تَطْعَمْهُ | النَّارُ .[1] |
|---|---|---|---|---|

کې ووایې او بیا مړشي نو هغه به (د دوزخ) اور نه سوزوي یعني هغه به د دوزخ د اور نه محفوظ وي.

## د تسبیح اړولو ثواب

﴿۱۸﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ أَنَّهُ دَخَلَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى امْرَأَةٍ

د حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روایت دی چې هغه یو وړځ د نبي عَلَیْهِ السَّلَام سره د یوې ښځه ځای

وَ بَيْنَ يَدَيْهَا نَوًى أَوْ حَصًى تُسَبِّحُ بِهِ

ته لاړل هغه وخت د دغه ښځې مخې ته د کهجورو زړي یا واړه کاڼي پراته وو او هغې په دې باندې تسبیح

فَقَالَ : أَلَا أُخْبِرُكِ بِمَا

ویله (یعني په دې به یې تسبیح شمارل) نبي عَلَیْهِ السَّلَام دې ته کتلو سره و فرمایل چې: آیا زه تا ته یو داسې

هُوَ أَيْسَرُ عليكِ مِنْ هٰذَا أَوْ أَفْضَلُ ؟

تسبیح و نه ښایم چې هغه نه یواځې دا چې د دې تسبیح (یعني د دې دومره ډیرو زړو باندې د تسبیح ویلو

سُبْحَانَ اللّٰهِ

په مقابله کې ستا لپاره) ډېر آسان دی. بلکې هغه تسبیح غوره ده، هغه دا دی چې الله لپاره پاکي ده، د

عَدَدَ مَا خَلَقَ فِي السَّمَاءِ وَ سُبْحَانَ اللّٰهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ فِي الْأَرْضِ

هغه مخلوق په اندازه چې په آسمان کې دی او الله لره پاکي ده د هغه مخلوق په اندازه چې په زمکه کې دی،

وَ سُبْحَانَ اللّٰهِ عَدَدَ مَا بَيْنَ ذٰلِكَ وَ سُبْحَانَ اللّٰهِ

او الله لره پاکي ده د هغه مخلوق په اندازه چې د زمکې او آسمان مینځ کې دی او الله لره پاکي ده د هغه

عَدَدَ مَا هُوَ خَالِقٌ وَ اللّٰهُ أَكْبَرُ

مخلوق په اندازه چې هغه د دې نه وروسته یا د ازل نه ترا و سه پورې پیدا کیدونکی دی او الله اکبر دې هم

مِثْلَ ذٰلِكَ وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ مِثْلَ ذٰلِكَ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ مِثْلَ ذٰلِكَ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ

داسې ووایې او الحمد لله دې هم داسې ووایې او لا اله الا الله دې هم داسې ووایې او لا حول ولا قوة لا بالله

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ١٥٦/٥ رقم الحديث : ٣٤٩٠ .

مِثْلَ ذَٰلِكَ . قَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1]

دي هم داسې ووايي.

**توضيح:** **لوی او حصی:** **نواة** او **حصاة** زړو او وړو کاڼوته وايي. راوي ته په دې کې شک شو چې کوم لفظ ئې داحديث دنن سبامروج تسبيح دجوازلپاره دليل دی اګرکه دنبي کريم ﷺ په زمانه کې دغه شان په تار کې به د تسبيح داني نه وي، ليکن فقط داني په استعمال کې راوړی شوی دي او د مطلوبه شميري ترلاسه کولو لپاره يوه ذريعه اختيار کړی شوی چې دزړو او کاڼو په صورت کې وه نبي کريم ﷺ د دې نه انکار نه دی کړی بلکې ددې نه يې د آسانۍ طريقې ښودنه کړی. لهذا نن سبا که دزمانې دجدت دوجې نه په زمکه باندې دخبرو زړو په ځای باندې په يو تار کې وپيلل شو او مطلوبه شماره ترلاسه کولولپاره دااستعمال کړی شونو په دې کې د بدعت کېدو يادناجائز کېدو کومه خبره ده بلکې داحديث دتسبيح دثبوت لپاره داصل په توګه موجود دی. تسبيحات د ذکر الله لپاره مذکرات دي. او دا د شيطان لپاره درّه ده. په احاديثو کې د ځينو وظائفو لپاره خاص عدد ذکر شويدی. مثلا سل ځل استغفار دی. ۳۳ ځل الحمدلله او سبحان الله دی. ۳۴ ځل د الله اکبر حکم دی. آخر دا شمېره خو به په يو څه باندې په شمارلو سره پوره کولی کېږي. هغه شی که د تسبيح داني وي نو په حقيقت کې دا خپله د مامور به په حکم کې داخل دي، په ګوتو باندې شمېره کول هم جائز دي، خو د دې حساب کول ګران دي. (المرقات ۱۳۸-۵/۱۳۹)

**والله اکبر مثل ذلك:** يا خو دا کلام خپله د نبي کريم ﷺ دی، او ظاهره هم دا ده، په دې کې نبي کريم ﷺ د مخکنو جملو تفصيل ارخ ته په اختصار کولو سره اشاره کړيده، ټول عبارت داسې دی: يعني: **والله اکبر عدد ما خلق الخ** يا دا کلام د راوي دی. چې هغه په حديث کې اختصار کړيدی او وې فرمايل چې نبي کريم ﷺ په مخکنو جملو کې څنګه وفرمايل، دغه شان يې دلته هم وفرمايل چې: **والله اکبر عدد ما خلق الخ**. (المرقات ۵/۱۴۰)

## د تسبيح او تهليل او تحميد او تکبير عظيم ثواب

﴿۱۹﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ

او حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه نه نقل کوي چې نبي عليه السلام وفرمايل: کوم

---

[1] أخرجه ابوداود في السنن ۲/۸۰ رقم الحديث: ۱۵۰۰ .

سَبَّحَ اللهَ مِائَةً بِالْغَدَاةِ وَ مِائَةً بِالْعَشِيِّ

سړی چې سل ځله دورځې په اولنۍ برخه کې او سل ځله دورځې په آخرې برخه کې سبحان الله و وايي، نو

كَانَ كَمَنْ حَجَّ مِائَةَ حَجَّةٍ وَ مَنْ

هغه په ثواب کې د هغه سړي په شان دی، چا چې سل نفل حجونه کړي وي، او کوم سړی چې سل ځله

حَمِدَ اللهَ مِائَةً بِالْغَدَاةِ وَ مِائَةً بِالْعَشِيِّ كَانَ كَمَنْ

دورځې په ابتدائي برخه کې او سل ځله دورځې په آخرې برخه کې الحمد لله و وايي نو دا د هغه سړي په شان

حَمَلَ عَلَى مِائَةِ فَرَسٍ فِي سَبِيلِ اللهِ وَ مَنْ

دی چا چې سل کسان د خدای په لاره کې په سلو آسونو سپاره کړي وي، او کوم سړی چې سل ځله د

هَلَّلَ اللهَ مِائَةً بِالْغَدَاةِ وَ مِائَةً بِالْعَشِيِّ كَانَ كَمَنْ

ورځې په اولنۍ برخه کې او سل ځله دورځې په آخرې برخه کې لا اله الا الله و وايي دا د هغه سړي په شان

أَعْتَقَ مِائَةَ رَقَبَةٍ مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ وَ مَنْ

دی چا چې د اسماعيل عَلَيْهِ السَّلَام په اولاد کې سل غلامان آزاد کړي وي، او کوم سړی چې سل ځله د

كَبَّرَ اللهَ مِائَةً بِالْغَدَاةِ وَ مِائَةً بِالْعَشِيِّ

ورځې په اولنۍ برخه کې او سل ځله دورځې په آخرې برخه کې (الله اکبر) و وايي نو په هغه ورځ يعنې

لَمْ يَأْتِ فِي ذَلِكَ الْيَوْمِ أَحَدٌ بِأَكْثَرَ مِمَّا أَتَى بِهِ إِلَّا مَنْ

د قيامت په ورځ به څوک د دې ثواب نه د هر ثواب رانه وړي کوم چې دا راوړي د هغه سړي نه غير چا چې

قَالَ مِثْلَ ذَلِكَ أَوْ زَادَ عَلَى مَا قَالَ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1]

دده په شان (الله اکبر) ويلي وي يا هغه سړی چې هغه دده نه ډېر ويلي وي (نو دا به د هغه نه هم بهتر وي)

**توضيح: مائة حجة:** مطلب دا چې د حج يو اصلي ثواب دی چې هغه به هغه سړي ته ورکول کېږي، چا چې پيسه خرچ کړه، وخت يې ورکړو، او محنت کولو سره خپله لاړو، يو د حج اضافي ثواب دی، هغه الله تعالى په دغه اذکارو سره ورکوي، فلا اشكال. (المرقات ۵/۱۴۰)

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۷۶/۵ رقم الحديث :۳۵۳۸ .

**ولد اسمٰعيل:** د دې تصريح ضرورت ځکه پيدا شو چې په انسانانو کې د عربو خلک د عجمو په مقابله کې بهتر دي. نو مطلب دا شو چې د داسې غلامانو ثواب به ورکول کېږي، چې هغه د اسماعيل په اولاد کې اعلى او غوره غلامان وي، او زاد: او بمعنى واو دى، په فصل اول کې حديث نمبر ۴ د لاندې يې تفصيل تېر شويدى، خامخا يې وګوره. (المرقات ۵/۱۴۱)

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: التَّسْبِيحُ نِصْفُ الْمِيزَانِ |
| او حضرت عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل سبحان الله ويل د اعمالو نيم ميزان |
| وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ يَمْلَؤُهُ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ لَيْسَ لَهَا حِجَابٌ دُونَ اللهِ |
| ډکوي الحمد لله ويل د عمل تول ميزان ډکوي او لا اله الا الله لپاره تر خدايه (رسيدلو کې) هيڅ پرده نشته |
| حَتَّى تَخْلُصَ إِلَيْهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ [۱] |
| دى دا (نيغ) خداى ته رسېږي. |

**توضيح:** يعنې سبحان الله سره نيم ميزان ډکېږي او پاتې نيم به الحمد لله سره ډکېږي، نو د دواړو په يو ځاى کولو سره يوه تله (ميزان) پوره کېږي. پاتې شو لا اله الا الله نو د دې خو څه حساب نه دى معلوم، لا اله الا الله بهتر دى.

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا قَالَ عَبْدٌ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: کله چې يو بنده د زړه په اخلاص (بغير |
| لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ مُخْلِصًا قَطُّ إِلَّا فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ حَتَّى يُفْضِيَ إِلَى الْعَرْشِ |
| د ريانه) لا اله الا الله ووايي نو د دې کلمې لپاره د آسمان دروازې خلاصې شي تر دې چې ورسي عرش ته |
| مَا اجْتَنَبَ الْكَبَائِرَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. [۲] |
| يعنې ژر قبلېږي، که دا کلمه ويونکى د کبيره ګناهونو نه ځان ساتي. |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۹۷ رقم الحديث: ۳۵۸۴.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۳۳ رقم الحديث: ۳۶۶۰.

**توضیح: ما اجتنب الکبائر**: دا جمله د اصل ثواب د صحیح کېدلو او نه کېدلو لپاره شرط ندی، بلکې ژر قبلیدلو لپاره شرط دی که ګناه نه وي نو دا کلمه ډېر ژر عرش ته رسېږي. او که ګناه وي نو ژر نه ځي. (المرقات ۵/۱۴۲، الکاشف ۵/۹۱)

## د جنت په خالي زمکه کې تسبیحات بوټي دي

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَقِيتُ إِبْرَاهِيمَ |
| او ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: زما ملاقات وشو د ابراهیم علیه السلام سره د |
| لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِي فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ أَقْرِئْ أُمَّتَكَ مِنِّي السَّلَامَ وَ |
| معراج په شپه، هغه ماته وفرمایل چې: ای محمده صلی الله علیه وسلم ستا په امت باندې زما سلام وایه او |
| أَخْبِرْهُمْ أَنَّ الْجَنَّةَ طَيِّبَةُ التُّرْبَةِ عَذْبَةُ الْمَاءِ وَ أَنَّهَا قِيعَانٌ |
| هغوی ته ووایه چې د جنت خاوره پاکه ده، د دې او به خوږې دي، د دې میدان هوار او د بوټونه خالي دی |
| وَأَنَّ غِرَاسَهَا سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ. [1] |
| او د جنت بوټي: سبحان الله الحمد لله لا اله الا الله او الله اکبر دي. |

**توضیح: وانها قیعان**: دا د قاع جمع ده. د دشتي خالي میدان ته ویل کېږي. پوښتنه دا ده چې په جنت کې باغونه خو شته دی، خو د دې ټوله زمکه نه خو خالي ده او نه په ټولو کې باغونه دي، بلکې عمارتونه او داسې نور شیان هم دي، حالانکې د دې حدیث نه معلومېږي چې ټول هوار میدان دی؟ د دې جواب دا دی چې کومه زمکه د باغونو لپاره مختص ده، د هغې په باره کې یې وفرمایل چې هغه خالي ده، په دې کې بوټي ولګوی، د ټول جنت په باره کې نه دي فرمایلي. (المرقات ۵/۱۴۰)

## په ګوتو باندې تسبیحات ویل بهتر دي

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ يُسَيْرَةَ وَكَانَتْ مِنَ الْمُهَاجِرَاتِ قَالَتْ: قَالَ لَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت یسیرة رضي الله عنها چې د مهاجراتو نه ده هغه فرمایي چې مونږ ته نبي علیه السلام ته وفرمایل چې: |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۷۳ رقم الحديث: ۳۵۲۹ .

| |
|---|
| عَلَيْكُنَّ بِالتَّسْبِيحِ وَ التَّهْلِيلِ وَ التَّقْدِيسِ |
| لازم کړئ په ځان باندې سبحان الله، لااله الاالله سبحان الملك القدوس یا سبوح قدوس رب الملائکة |
| و اعقِدْنَ بالأنامِلِ فإنهنَّ مَسْؤُولاتٌ مُسْتَنْطَقَاتٌ |
| ویل او دا تسبیحات وشمارئ په خپلو ګوتو باندې ځکه دې ګوتو نه به پوښتنه کیږي او دوي به ګویا شي |
| وَلَا تَغْفُلْنَ فَتَنْسَيْنَ الرَّحْمَةَ . [1] |
| او د ذکر نه مه غافله کیږئ، یعنې ذکر مه پرېږدئ ګني د رحمت نه به تاسو هیر کړی شئ. |

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## بهترينه وظيفه

| |
|---|
| ﴿۲٤﴾ عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ : جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه راوي دي فرمايي چې (يوه ورځ) يو باندچي راغي نبي عليه السلام ته |
| فَقَالَ : عَلِّمْنِي كَلَامًا أَقُولُهُ : قَالَ : |
| اووي ويل چې ماته څه داسې ذکر وښايه چې هغه زه وايم (يعنې هغه خپل ورد جوړ کړم) نبي عليه السلام |
| قُلْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ |
| وفرمايل چې داوايه: دالله نه غير بل څوک عبادت دلائق نشته دی، هغه يو دی د هغه سره څوک شريک |
| اللّٰهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيرًا وَ سُبْحَانَ اللّٰهِ رَبِّ |
| نشته، الله ډېر لوي دی په لوئي سره، او خاص الله لره ډېر صفتونه دي، او پاکي ده الله لره چې پالونکی |
| الْعَالَمِينَ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ الْعَزِيزِ |
| دی د ټول عالم، د ګناه د ساتنې طاقت او د عبادت کولو قوت خاص دالله په مرستې سره دی چې غالب او |
| الْحَكِيمِ . فَقَالَ فَهَؤُلَاءِ لِرَبِّي فَمَا لِي؟ |
| حکمت والادی. دغه باندچي وويل: دا کلمات خو زما درب د ذکر لپاره دي، زما لپاره کوم کلمات دي |

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۲/۸۱ رقم الحديث: ۱۵۰۱.

فَقَالَ : قُلِ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِيْ

چې زه پرې د خپل ځان لپاره دعا غواړم. نبي عليه السلام و فرمايل: داسې غواړه: اې زما ربه! ما وبخښې،

وَ ارْحَمْنِيْ وَ اهْدِنِيْ وَ ارْزُقْنِيْ

په ما رحم وکړې (غوره اعمالو او احوالو ارخ ته) زما هدايت وکړې، د حلال مال نه ماته روزي راکړې.

وَ عَافِنِيْ . شَكَّ الرَّاوِيْ فِيْ عَافِنِيْ .[1]

او ماته عافيت وبخښې. راوي ته شک دې د عافني په باره کې (چې آيا روايت کې دا لفظ شته او که نه)

﴿۲۵﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَرَّ عَلَى شَجَرَةٍ يَابِسَةِ الْوَرَقِ

او حضرت انس رضي الله عنه راوي دی چې يو ځل نبي عليه السلام تير شو په يوه ونه باندې چې پاڼې يې وچې وې

فَضَرَبَهَا بِعَصَاهُ فَتَنَاثَرَ الْوَرَقُ

نو نبي عليه السلام خپله همسا مبارکه د هغې په ښاخونو باندې ووهله چې د هغې نه پاڼې راګوزار شوې، بيا

فَقَالَ : إِنَّ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَ اللّٰهُ أَكْبَرُ تُسَاقِطُ ذُنُوْبَ الْعَبْدِ كَمَا

يې و فرمايل چې الحمد لله، سبحان الله، لا اله الا الله او الله اکبر ويل د بنده ګناهونه داسې رژوي لکه

يَتَسَاقَطُ وَرَقُ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ[2]

څنګه چې د دې بوټي پاڼې رژېږي.

## د آفتونو نه د بچ کېدو لپاره وظيفه

﴿۲۶﴾ وَعَنْ مَكْحُوْلٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَكْثِرْ مِنْ قَوْلِ:

او حضرت مکحول رحمه الله د ابو هريره رضي الله عنه روايت کوي چې نبي عليه السلام ما ته و فرمايل: ډير وايه

لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ فَإِنَّهَا مِنْ كَنْزِ الْجَنَّةِ ". قَالَ مَكْحُوْلٌ : فَمَنْ

لا حول ولا قوة الا بالله ځکه چې دا د جنت په خزانو کې يوه خزانه ده، حضرت مکحول وويل چې کوم سړی

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۷۲/٤، رقم الحديث . ۳۳-۲٦۹٦.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲۰۳/٥ رقم الحديث .۳۵۹۹ .

قَالَ : لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ

داووايي: قوت اونفع ترلاسه کولو طاقت دالله تعالی په حفاظت او دهغه په قدرت سره دي او دالله تعالی

وَلَا مَنْجَا مِنَ اللّٰهِ إِلَّا إِلَيْهِ كَشَفَ اللّٰهُ عَنْهُ

د عذاب نه نجات دهغه (درضا او رحمت توجه) باندې منحصر ده نو الله تعالی لرې کوي دهغه سرې نه

سَبْعِينَ بَابًا مِنَ الضُّرِّ أَدْنَاهَا الْفَقْرُ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ وَمَكْحُولٌ لَمْ يَسْمَعْ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ (۱)

اويا قسمونه د نقصان چې په هغې کې ادنی درجه نقصان فقر او محتاجي ده.

## لاحول ولاقوة الابالله د ۹۹ ناروغيو شفاء

﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ دَوَاءٌ

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي عليه السلام وفرمايل: لاحول ولاقوة الابالله دا دوا

مِنْ تِسْعَةٍ وَتِسْعِينَ دَاءٍ أَيْسَرُهَا الْهَمُّ. (۲)

ده د ۹۹ (دنياوي او اخروي) ناروغيو، چې په هغې کې ادنی ناروغي (دنياوي او اخروي) غم دي.

﴿۲۸﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى كَلِمَةٍ

اوحضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې نبي عليه السلام وفرمايل: آيا زه تاسو يوه داسې کلمه ونه ښايم چې

مِنْ تَحْتِ الْعَرْشِ مِنْ كَنْزِ الْجَنَّةِ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ

هغه دعرش دلاندې د جنت دخزانونه راکوزه شويده او هغه داده: لاحول ولاقوة الابالله کله چې يو بنده

يَقُولُ اللّٰهُ تَعَالَى: أَسْلَمَ عَبْدِي وَاسْتَسْلَمَ ". (۳)

دا کلمه ووايي نو الله تعالی فرمايي: زما بنده تابعدار او ډېر فرمانبردار شو.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲۳۸/۵ رقم الحديث ۳۶۷۱.

(۲) أخرجه ابن ابي الدنيا ذكره في كنزالعمال ۴۵۴/۱ رقم الحديث: ۱۹۵۶.

(۳) أخرجه البيهقي في الدعوات الكبير ۲۲۸/۱، رقم الحديث: ۱۵۵.

## د سبحان الله نا اشنا فضيلت

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾ وَ عَن ابن عمر أَنَّهُ قَالَ : سُبْحَانَ اللهِ هِيَ صَلَاةُ الْخَلَائِقِ |
| او د حضرت ابن عمر رضي الله عنه روايت شويدی چې هغه وفرمايل: سبحان الله دا عبادت دی د مخلوقاتو |
| وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ كَلِمَةُ الشُّكْرِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ كَلِمَةُ الْإِخْلَاصِ |
| او الحمد لله دا كلمه د شكر ده او لا اله الا الله دا اخلاص كلمه ده (چې دا د لوستونكي لپاره دا ورند خلاصي |
| وَ اللهُ أَكْبَرُ تَمْلَأُ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَ الْأَرْضِ وَإِذَا قَالَ الْعَبْدُ : |
| سبب دی) او د الله اكبر ثواب د زمكې او آسمان مينځ ډكوي او كله چې يو بنده ووايي د زړه په اخلاص |
| لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ قَالَ اللهُ تَعَالَى: أَسلم عَبدِي واستَسلَم. رَوَاهُ رزين. |
| سره لاحول ولاقوة الا بالله ووايي نو الله تعالى فرمايي: دا بنده فرمانبردار شو. |

**توضيح: صلوٰة الخلائق:** يعني د سبحان الله چې كومه كلمه ده، دا د ټول مخلوقات عبادت دی.

**الخلائق** د خليقة جمع ده، د مخلوقات په معنى دی، او په مخلوقات كې ټول عالم داخل دی، كه هغه انسان وي، كه ځناور وي يا پيريان او فرښتې وي، يا جمادات او نباتات وي، مطلب دا شو چې دا ټول د الله په تسبيح كې مشغول دي، نو تسبيح د مخلوق عبادت دی (المرقات: ۵/۱۵۰).

په قرآن كې دي: ﴿وَإِنْ مِّنْ شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيحَهُمْ﴾ (سورة بني اسرائيل آيت: ٤٤).

اللهم لك الحمد كما ينبغي لجلال وجهك وعظيم سلطانك

الله اكبر كبيرا و الحمد لله كثيرا وسبحان الله بكرة و اصيلا

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد و على آله و أصحابه أجمعين



# بَابُ الْاِسْتِغْفَارِ وَالتَّوْبَة
## د استغفار او د توبې بیان

قال الله تعالٰی: ﴿وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ (سورة مزمل آیت:۲۰)

وقال الله تعالٰی: ﴿وَتُوْبُوْا اِلَى اللّٰهِ جَمِيْعًا اَيُّهَا الْمُؤْمِنُوْنَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ﴾ (سورة النور آیت:۳۱)

**استغفار** د باب **استفعال** مصدر دی. د دې معنی **طلب المغفرة** دی. مغفرت مصدر میمی دی. د دې لغوي معنی پټول دي. لیکن د مغفرت اصطلاحی تعریف: **محو الذنوب وازالة اثره** یعنې ګناه معاف او ختمیدل او د هغې اثر زائل کیدل دي. (الکاشف: ۵/۹۷)

**التوبة:** توبه د تاب یتوب مصدر دی. د دې لغوي معنی رجوع کول او راګرځیدل دي. د توبې اصطلاحي تعریف علامه میر سید شریف الجرجانی په التعریفات کې داسې کړیدی: **التوبة فی الشرع الرجوع عن الافعال المذمومة الی الممدوحة** . د توبې قبلیدلو لپاره درې شرطونه دي: اول شرط دا چې په ژبه سره توبه وکړي او د ګناه نه په شاه شي. دویم شرط دا چې په خپلو کړو باندې په زړه کې شرمندګې او پښیمانتیا وي. دریم شرط دا چې د بیا لپاره د غه ګناه ارخ ته نژدې نه ورتګ کلک اراده وي. دا خو د حقوق الله نه د توبې خبره وه. که په حقوق العباد کې د نقصان نه توبه کول غواړي نو د دې لپاره څلورم شرط دا چې د چا حق دې لاندې کړی هغه ادا کړه نو هله به توبه قبلیږي که غصب کړی مال بېرته نه ورکوي نو په دې صورت کې توبه قبوله نده. (المرقات ۵/۱۵۱، الکاشف ۵/۹۷).

دلته په ترجمة الباب او عنوان کې د استغفار نه وروسته د توبې لفظ زیات کړی شوی د دې متعلق دومره عرض کوو چې توبه او استغفار فقیر او مسکین په شان دي که جدا ذکر شوې وي نو په دې کې ترادف او اجتماع ده، د دواړو یو معنی ده او که یو ځای ذکر شي نو په دوې کې افتراق دی لکه ویلی شوی: **الفقیر والمسکین اذا اجتمعا افترقا واذا افترقا اجتمعا**، دلته اوس دا دواړه لفظونه یو ځای ذکر شوي، نو په اصولي توګه باندې په دوې کې فرق ضروري دی. یو فرق خو دا چې د استغفار تعلق د هغه ګناه سره دی چې هغه په تېره شوي زمانه کې شوي وي یعنې استغفار د ماضي زمانې سره خاص دی. یعنی **وقایة شر ما مضٰی** او توبه د مستقبل د ګناهونو نه د ځان ساتلو نوم دی. ګویا استغفار خو د ګناه پرېښودل شو او توبه اطاعت خپلول شو. هم دا وجه ده چې په قرآن او حدیث کې استغفار مخکې ذکر شوی، او بیا توبه ذکر کړه لکه ﴿ وَأَنِ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ﴾ د کفر او

شرک کولونه وروسته توبه او استغفار جنت ته دننوتلو لپاره اول شرط دی او کله چې د یو انسان نه معصیت او ګناه وشي نو په ده باندې استغفار واجب دی. ګنې دد خول في النار خطره ده د دېنه غیریو استغفار داسې هم دی چې هغه دیونیک کار کولونه وروسته سړی کوي دې لپاره که څه کمی پاتې شوی وي هغه لرې شي، په داسې موقع باندې استغفار کول مستحب دي. او انبیاء کرامو استغفار په داسې وختونو کې کړېي، ضروري نده چې استغفار په یوه ګناه باندې متفرع وي ممکنه ده چې ګناه بېخې نه وي او د استغفار حکم ورکړی شوی وي یا استغفار په ګناه باندې متفرع کول او بیا ددې لپاره ګناه لټول بې عقلي هم ده او بدفهمي هم ده. مودودی صیب ته هم دا غلطي لګېدلې ده ځکه هغه دهر استغفار نه مخکې نبي او غیرنبي دټولو لپاره نقصان لټوي. استغفار کله توبې لره متضمن وي نو داستغفار ذکر د توبې لپاره کافي کېږي لیکن کله داستغفار په ضمن کې توبه نه راځي دلته هم داسې شویده، ځکه د استغفار نه وروسته د توبې ذکر په مستقل توګه باندې شوید ی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د نبي کريم ﷺ توبه او استغفار

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: وَ اللهِ إِنِّي لَأَسْتَغْفِرُ اللهَ |
| حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې نبي علیه السلام وفرمایل: قسم په الله! زه د الله تعالی نه استغفار |
| وَأَتُوبُ إِلَيْهِ فِي الْيَوْمِ أَكْثَرَ مِنْ سبعينَ مرَّةً.[1] |
| غواړم او توبه کوم په ورځ کې د اویا ځل نه ډیر. |

**توضیح:** دنبي علیه السلام توبه او استغفار د څه ګناه په وجه نه وو. انبیاء کرام علیهم السلام خود کبائرونه قبل النبوة او بعد النبوة معصوم وي. دلته استغفار من الطاعة دقبیلې نه دی چې په عبادت کې کیدی شي د اعلی په ځای غیر اعلی صورت پیدا شوی وي نو ځکه د **حسنات الابرار سیئات المقربین** د قاعدې لاندې استغفار به یې کولو یا د امت لپاره تعلیم وو چې کوم ذات معصوم او مغفور دی، هغه دومره محنت کویو نو کوم چې په ګناه کې ککړ خلک دي، هغوی لپاره د دې نه ډېر محنت ضرورت دی. اویا (۷۰) ځله ذکر کیدی شي د کثرت نه کنایه وي فقط د اویا تحدید مقصود نه وي. (المرقات ۵/۱۵۲).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰۱/۱۱ رقم الحديث: ۶۳۰۷.

## دزړې خیرې لرې کولو لپاره استغفار په کار دي

﴿۲﴾ وَعَنِ الْأَغَرِّ الْمُزَنِيِّ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّهُ لَيُغَانُ عَلَى قَلْبِي

او حضرت اغر مزنی رضي الله عنه فرمایي چې نبي علیه السلام و فرمایل: چې زما په زړه باندې پرده خوره کړی

وَإِنِّي لَأَسْتَغْفِرُ اللهَ فِي الْيَوْمِ مِائَةَ مَرَّةٍ.[1]

شي او زه به ورځ کې اویا ځل د الله نه استغفار غواړم.

**توضیح: انه لیغان علی قلبي:** غان یغین نه یغان دمجهول صیغه ده. غین او غیم نرۍ وریځې ته هم وایي اولړ تورتم ته هم وایي او پردې ته هم وایي. (المرقات: ۵/۱۵۲)

ددې په شرح کې ملاعلي قاری رحمه الله فرمایي: ای یطبق ویُغَشّٰی اویستر ویُغَطّٰی په پښتو کې د دې ترجمه په گردسره وکړی شي نو ډېره به مناسبه وي. (المرقات: ۵/۱۵۲)

په دې جمله کې د نبي علیه السلام د قلب اطهر خبره راغلي ده . نو ځکه د ادب په حوالې سره دا حدیث د پوهیدلو په اعتبار سره ډیر گران شویدی. او په دې جمله کې د شارحینو ډېر اقوال جوړ شوي: ۱: ځینې شارحین وایي چې دا حدیث د متشابهاتو د قِسم نه دی. لهذا **مایلیق بشان الرسول** ویلو سره چپ پاتې کیدل ډېر غوره دي. ۲: امام الصوفیاء امام ابو الحسن شاذلي رحمه الله د دې متشابه په متعلق فرمایي **هو غین الانوار لاغین الاغیار**. ملاعلي قاری فرمایي: **هو غین الانوار لاغین الاغیار**. دا د صوفیاو داسې اطلاقات دي چې په دې باندې د پوهې لپاره د غټ صوفي ضرورت دی. ددواړو عبارتونو مطلب دا دی چې دا د خپلو سیوری دئ، د پردو نه دی. ملاعلي قاری لیکلي دي چې کله د امام لغت شیخ اصمعي رحمه الله نه د دې غین په باره کې پوښتنه وشوه نو هغه وویل چې دا د چا د زړه د خبرې پوښتنه کوي؟ سائل وویل: قلب نبي په متعلق پوښتنه کوو. ده جواب ورکړو: **لوکان عن قلب غیره لافسره.** دا هم دې اړخ ته اشاره ده چې دا د متشابهاتو نه دی. ملاعلي قاری فرمایي: **لایقاس الملوك بالحدادین.** قاضي عیاض او ابن ملک هم توجیهات کړیدي. چې هغه ملاعلي قاری رحمه الله ذکر کړیدي لیکن د عوامو او خواصو د پوهیدلو په اعتبار سره چې کومه خبره لیکل شویده، هغه علامه طیبي رحمه الله لیکلي ده فرمایي چې د نبي علیه السلام قلبي تعلق به هر وخت د خپل رب سره وو. لیکن کله

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۷۵/٤ رقم الحديث: ٤١/۲۷۰۲.

کله مباح شی مثلا خوراک څکاک او د نفس غوښتنه نکاح، ماکولات او مشروبات او منکوحات او مرغوبات اړخ ته توجه ارادي يا غير ارادي توګه باندې وشوه، هم دا شيان به د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د زړه لپاره حجاب جوړيدو، او هم دا شيان به د نبي عَلَيْهِ السَّلَام او د رب تعالی ترمينځ يو قِسم حائل جوړيدو چې په هغې باندې به نبي عَلَيْهِ السَّلَام استغفار کولو دې لپاره چې د زړه نه دا ګرد لرې شي، او زړه پاک شي دا شيان اګر که ګناه نه ده ليکن د نبي عَلَيْهِ السَّلَام عالی شان په نسبت سره دا د تنزل درجه وه. چې دا د ګناه سره مشابه وګڼلی شو، او دې لپاره استغفار وکړی شو. (المرقات: ۱۵۲-۵/۱۵۴)

علامه طيبي ددې تحقيق نه حديث په خپل ظاهري مفهوم باندې پاتې شو، او په پوهه کې هم راغلو. دا هم هغه قِسم دی چې دهغې په باره کې صوفياء قبض او بسط د کيفيت په نوم سره يادوي. نو دې قبض لره په بسط کې د بدلولو لپاره استغفار به کېدلو. ملاعلي قاري جمله زما خوښه شوه: وايي:

**لايقاس الملوك بالحدادين** يعني چې نسبت خاک را با عالم پاک. ځينو شارحينو ليکلي چې دا غين به د خلاف اولی امورو په کولو باندې کېدلو، دا علی او ادنی فرق به وو افضل او غير افضل خبره به وه چې هغه د حسنات الابرار سيئات المقربين دا صول لاندې غټ وګڼلی شو طيبي رَحِمَهُ اللهُ د کلام خلاصه هم داده. (المرقات: ۵/۱۵۳)

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: يَا أَيُّهَا النَّاسُ تُوبُوا إِلَى اللهِ |
| او حضرت اغر مزنی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: ای خلکو! الله تعالی ته توبه وکړئ |
| فَإِنِّي أَتُوبُ إِلَيْهِ فِي الْيَوْمِ مِائَةَ مَرَّةٍ.[1] |
| ځکه زه هم توب کوم الله تعالی ته د ورځې سل ځله |

## يو جامع حديث

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا |
| او حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د هغه حديثونو په باره کې چې هغه به نبي عَلَيْهِ السَّلَام د |
| يَرْوِي عَنِ اللهِ تَبَارَكَ وَ تَعَالَى أَنَّهُ قَالَ: يَا عِبَادِي إِنِّي حَرَّمْتُ الظُّلْمَ |
| الله تعالی نه روايت کول، وې فرمايل چې الله تعالی فرمايي ای زما بنده ګانو! ما حرام کړی دی ظلم |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۷۵/۴ رقم الحديث: ۲۷۰۲/۴۲.

عَلَى نَفْسِي وَ جَعَلْتُهُ بَيْنَكُمْ مُحَرَّمًا

په خپل ځان باندې (يعني زه د ظلم نه پاک يم) او ظلم زما په حق کې هم داسې دی څنګه چې ستاسو په حق کې

فَلَا تَظَالَمُوا يَا عِبَادِي كُلُّكُمْ ضَالٌّ إِلَّا مَنْ

دی نو تاسو خپل مينځ کې ظلم مه کوئ، ای زما بندګانو! تاسو ټول ګمراه ياست غير د هغه سړي نه چې

هَدَيْتُهُ فَاسْتَهْدُونِي أَهْدِكُمْ يَا عِبَادِي

هغه ته زه هدايت وکړم نو تاسو ټول زما نه هدايت وغواړئ، زه به تاسو ته هدايت وکړم. ای زما بندګانو!

كُلُّكُمْ جَائِعٌ إِلَّا مَنْ أَطْعَمْتُهُ فَاسْتَطْعِمُونِي

تاسو ټول د خوراک محتاج يئ، د هغه سړي نه غير چې هغه ته زه خوراک ورکړم. نو تاسو ټول زما نه

أُطْعِمْكُمْ يَا عِبَادِي كُلُّكُمْ عَارٍ

خوراک وغواړئ، زه به تاسو ته خوراک درکړم. ای زما بندګانو! تاسو ټول د سترپټولو لپاره محتاج يئ

إِلَّا مَنْ كَسَوْتُهُ فَاسْتَكْسُونِي

د هغه سړي نه غير چا ته چې ما د اغوستلو لپاره ورکړه، نو تاسو زما نه جامه وغواړئ، زه به يې په تاسو

أَكْسُكُمْ يَا عِبَادِي إِنَّكُمْ تُخْطِئُونَ بِاللَّيْلِ وَ النَّهَارِ وَ أَنَا أَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا

باندې واغوندم ای زما بندګانو! تاسو اکثر د شپې او ورځې خطاګانې کوئ او زه ستاسو خطاګانې بخښم

فَاسْتَغْفِرُونِي أَغْفِرْ لَكُمْ يَا عِبَادِي إِنَّكُمْ لَنْ تَبْلُغُوا ضَرِّي

نو تاسو ټول زما نه بخښنه وغواړئ ای زما بنده ګانو! تاسو هيڅ بري زما ضرر ته نشئ رارسيدلی د پاره

فَتَضُرُّونِي وَ لَنْ تَبْلُغُوا نَفْعِي فَتَنْفَعُونِي يَا عِبَادِي

چې ما ته نقصان را اورسوی او هيڅ بري زما فائدې ته نشئ رارسيدلی چې ما ته فائده ورسوی ای زما بنده

لَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ وَ آخِرَكُمْ وَ إِنْسَكُمْ وَ جِنَّكُمْ كَانُوا أَتْقَى قَلْبِ

ګانو که ستاسو مخکني او وروستني انسانان او پيريان په تاسو کې د يو نيک سړي د زړه په شان شي چې

رَجُلٍ وَاحِدٍ مِنْكُمْ

ټول د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په شان پرهيزګاره شي چې په مخ د زمکه هيڅوک هم داسې پاتې نه شي چې د ګناه

| مَا | زَادَ | ذَلِكَ | فِي | مُلْكِي | شَيْئًا |
|---|---|---|---|---|---|

لږ شان اثر ورباندې وې نو په دې سره به زما په مملکت او سلطنت کې لږ شان ډیروالی هم ونه شي،

يَا عِبَادِي لَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ وَ آخِرَكُمْ وَ إِنْسَكُمْ وَ جِنَّكُمْ كَانُوا عَلَى أَفْجَرِ قَلْبِ وَاحِدٍ مِنْكُمْ

اې زما بنده ګانو! که ستاسو مخکني او وروستني انسانان او پیریان په تاسو کې د یو بدکار سړي د

| مَا | نَقَصَ | مِنْ | مُلْكِي | شَيْئًا | يَا | عِبَادِي |
|---|---|---|---|---|---|---|

زړه په شان شي نو په دې سره به زما په مملکت او سلطنت کې لږ شان کموالی هم ونشي. اې زما بندګانو

| لَوْ | أَنَّ | أَوَّلَكُمْ | وَ | آخِرَكُمْ | وَ | إِنْسَكُمْ | وَ | جِنَّكُمْ | قَامُوا | فِي | صَعِيدٍ | وَاحِدٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

که ستاسو مخکني او وروستني انسانان او پیریان ټول په شریکه باندې په یو ځای باندې ودرېږي او ما

| فَسَأَلُونِي | فَأَعْطَيْتُ | كُلَّ | إِنْسَانٍ | مَسْأَلَتَهُ |
|---|---|---|---|---|

نه بیا وغواړي او زه یې هر یو ته د هغه د غوښتني مطابق (په یو وخت کې او په یو ځای کې) ورکړم نو

مَا نَقَصَ ذَلِكَ مِمَّا عِنْدِي إِلَّا كَمَا يَنْقُصُ الْمِخْيَطُ إِذَا أُدْخِلَ الْبَحْرَ

زما ورکړه د هغه څه نه چې زما سره دي، دومره کموي، څومره چې یو ستنه په سمندر کې ډوبولو سره (د

| يَا | عِبَادِي | إِنَّمَا | هِيَ | أَعمالكم | أُحْصِيهَا | عَلَيْكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|

هغې او به کموي) اې زما بندګانو! پوهه شئ زه ستاسو اعمال یاد ساتم، او هغه ستاسو لپاره لیکم، زه به

| ثُمَّ | أُوَفِّيكُمْ | إِيَّاهَا | فَمَنْ | وَجَدَ | خَيْرًا | فَلْيَحْمَدِ | اللهَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

تاسو ته د هغې پوره پوره بدله درکوم، کوم سړي چې ښیګړه و مومي نو هغه دې د الله تعالی حمد بیان کړي

وَ مَنْ وَجَدَ غَيْرَ ذَلِكَ فَلَا يَلُومَنَّ إِلَّا نَفْسَهُ.[1]

او کوم سړي چې د ښیګړې نه غیر و مومي (یعنې د هغه نه څه ګناه وشي) نو هغه دې خپل نفس ملامت کړي

## د اخلاص توبه رحمت ځان ته راکاږي

﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ

او حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه راوي دی چې نبي علیه السلام و فرمایل: د بني اسرائیلو په قوم کې یو

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۹۹٤/٤، رقم الحديث: ۲۵۷۷/۵۵.

رَجُلٌ قَتَلَ تِسْعَةً وَ تِسْعِينَ إِنْسَانًا ثُمَّ خَرَجَ يَسْأَلُ

سړی وو چې هغه(۹۹)قتلونه کړي وو او بیا (د خلکو نه دې)پوښتنې لپاره ووتلو (چې که زه توبه وکړم

فَأَتَى رَاهِبًا فَسَأَلَهُ فَقَالَ :

نو هغه توبه به قبلیږي او که نه)نو په دې سلسله کې دیو عابد زاهد خواته لاړو او د هغه نه یې پوښتنه وکړه

أَلَهُ تَوْبَةٌ قَالَ : لَا فَقَتَلَهُ

چې آیا ده لپاره توبه شته؟ هغه عابد زاهد ورته وویل چې نه دې سړی دې خبرید و سره دا عابد هم ووژلو

وَ جَعَلَ يَسْأَلُ فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ ائْتِ قَرْيَةَ كَذَا وَ كَذَا

او بیا یې د نورو خلکو نه پوښتنه کوله یو سړی هغه ته وویل چې فلانکې کلي ته لاړشه هغه داسې او داسې

ده (یعنې د هغه کلي نوم یې واخیستلو او ورته یې وویل چې هغه د ډېر ښه کلی دی، هلته یو عالم او سیږي

فَأَدْرَكَهُ الْمَوْتُ

هغه به ستا د توبې قبلید لو فتوی درکړي) نو دغه سړی دغه کلي ته روان شو چې لاره کې مرګ ورته راغې

فَنَاءَ بِصَدْرِهِ نَحْوَهَا

نو هغه ته د مرګ نښې محسوس شوې نو هغه خپله سینه دغه کلي اړخ ته تیټه کړه، او بیا د هغه د روح

فَاخْتَصَمَتْ فِيهِ مَلَائِكَةُ الرَّحْمَةِ وَ مَلَائِكَةُ الْعَذَابِ

قبض کولو په وخت کې د رحمت او د عذاب فرښتې (د ملک الموت سره یې بحث شروع کړو) نو

فَأَوْحَى اللّٰهُ إِلَى هٰذِهِ أَنْ تَقَرَّبِي

نو الله تعالی دغه کلي (چې د هغې اړخ ته د توبې کولو لپاره تللو) ته حکم وکړو چې دې مړي ته رانژدې

وَ إِلَى هٰذِهِ أَنْ تَبَاعَدِي

شي او هغه کلي ته چې په کوم کې هغه قتل کولو وروسته راروان وو د هغه مړي نه لرې شي بیا الله تعالی

فَقَالَ قِيسُوا مَا بَيْنَهُمَا

دغه فرښتو ته وفرمایل تاسو د دواړو کلو په مینځ کې پیمائش (ناپ) وکړئ د دواړو کلو په مینځ کې

فَوُجِدَ إِلَى هٰذِهِ أَقْرَبَ

نو فرښتو چې کله ناپ وکړو نو هغه د توبې لپاره کوم کلي ته چې روان وو، هغې ته یو ولیشت نږدې

| بِشِبْرٍ فَغُفِرَ لَهُ ".[1] |
| --- |
| و موندل شو، نو الله تعالی هغه وبخښلو. |

**توضیح**: الله توبة: دا اوږد حدیث د توبې ترغیب ورکوي، په ناحقه د مړو کولو تعلیم نه ورکوي، راهب دې سړي ووژلو ځکه چې راهب دا ښخې نا امیده کړی ؤ په راهب باندې خو خوف غالب وو او په ویره کې شو چې د ۹۹ کسانو قاتل څنګه معاف کیدلی شي، حالانکې که د دې مقتولینو ورثا و دغه سړی معاف کړی وی، نو دغه سړی به معاف شوی وو. بهرحال د سلو شمېره پوره شو. او دغه سړی بیا هم د توبې په غرض سره سرګردانه پریشان زغلیدلو چې ناڅاپه مرګ راګیر کړو، او دا مړ شو. رحمت او د عذاب فرښتو ترمینځ اختلاف پیدا شو چې څوک د هغه روح قبض کړي. **نآء بصدره** یعني دغه سړی چې کله د مرګ لپاره په زمکه باندې ګوزار شو، نو د سینې په زور ته مخکې ارخ ته یې ځان راخکلو، دا د دې سړي د اخلاص دلیل دی، د فرښتو اختلاف الله تعالی ختم کړو، او دغه سړی یې وبخښلو. (المرقات: ۱۵۹-۱۶۰/۵).

**سوال**: دلته یو مشهور سوال دي چې د دې سړي په ذمه چې کوم ګناهونه وو د هغې تعلق د حقوق الله سره نه وو بلکې د حقوق العباد سره وو نو دا سړی څنګه معاف شو، وارثانو خو نه وو معاف کړی؟

**جواب**: علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ دا سوال کړي دی او هم هغه یې جواب کړی دی چې الله تعالی کله د دې بنده نه راضي شو، او د ده توبه یې قبوله کړه، نو وس دغه مقتول او د هغه وارثان به هم الله تعالی راضي کوي، بهرحال دا حدیث د توبې ترغیب ورکوي، د قتل نه ترغیب نه ورکوي. مخکنو امتونو کې دیو چا جزئې واقعه ده، زمونږ لپاره قاعده نه ده. (الکاشف ۵/۱۰۴)

## د ګناهګارانو وجود ضروري دی

| ﴿۶﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَالَّذِي |
| --- |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: قسم دی په هغه ذات چې د هغه د قدرت |
| نَفْسِي بِيَدِهِ لَوْ لَمْ تُذْنِبُوا لَذَهَبَ اللهُ بِكُمْ وَ لَجَاءَ بِقَوْمٍ |
| په قبضه کې زما ساه ده که تاسو ګناه ونکړی نو الله تعالی به تاسو واخلي او (ستاسو په ځای) به داسې |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۱۲/۶ رقم الحديث: ۳۴۷۰، وأخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۱۸/۴ رقم الحديث: ۴۶/۲۷۶۶.

| يُذْنِبُونَ | فَيَسْتَغْفِرُونَ | اللّٰهَ | فَيَغْفِرُ | لَهُمْ .[۱] |
|---|---|---|---|---|
| خلک پیدا کړي چې هغوی به ګناه کوي او د خدای نه به بخښش غواړي او بیا به الله تعالی هغوی و بخښي | | | | |

**توضيح**: الله تعالى خو حقيقي باچا دی. او په باچا کې د کمال ټول صفتونه کيدل ضروري دي. وس د غفران او غفاريت صفت لپاره ضروري ده، چې ګناهګار موجود وي، چې هغوی بې اختياره لاس اوچت کړي او د د زړه په صدق سره د بخښني دعا وغواړي. عارفين وايي:

در کار خانه عشق از کفر ناگزير است ❁ دوزخ کرا بسوزد گر بولهب نه باشد

دا حديث هم د توبې د ترغيب لپاره دی، د ګناه د تشويق لپاره نه دی.

## الله تعالى توبه کونکې طرف ته لاس اوږدوي

| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ يَدَهُ بِاللَّيْلِ |
|---|
| او حضرت ابو موسى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: الله تعالى د شپې خپل لاس اوږدوي، |
| لِيَتُوبَ مُسِيءُ النَّهَارِ وَ يَبْسُطُ يَدَهُ بِالنَّهَارِ لِيَتُوبَ مُسِيءُ اللَّيْلِ |
| دې لپاره چې دورځې ګناه کونکی توبه وکړي او د ورځې لاس اوږدوي دې لپاره چې د شپې ګناه کونکی |
| حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا .[۲] |
| توبه وکړي، تردې چې لمر د مغرب د اړخ نه راوخيژي. |

| ﴿۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّ الْعَبْدَ |
|---|
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي کله چې بنده (په خپلو ګناهونو |
| إِذَا اعْتَرَفَ ثُمَّ تَابَ تَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِ .[۳] |
| باندې پښيمانتيا او شرمندګۍ سره) اقرار وکړي، او بيا توبه وکړي، نو الله تعالى د هغه توبه قبلوي. |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۱۳/٤ رقم الحديث :۲۷٤۹/۱۱.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۱۳/٤ رقم الحديث :۲۷٤۹/۱۱.

(۳) أخرجه البخاري في صحيحه ٤۳۱/۷ رقم الحديث :٤۱٤۱، أخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۲۹/٤ رقم الحديث :۲۷۷۰/٥٦.

## د توبې حد

﴿۹﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ تَابَ قَبْلَ
او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: كوم سړی چې توبه وكړي مخكې د
أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا تَابَ اللهُ عَلَيْهِ . [1]
راختلو د لمر د مغرب نه ، نو الله تعالی به د هغه توبه قبوله كړي.

**توضيح:** انسان چې ترڅو عالم آخرت په خپلو سترګو ونه ويني نو د دې نه مخكې هر وخت د توبې كولو وخت شته هو! كه د نزع په حالت كې يې د آخرت څه منظر وكتلو نو اوس د داسې سړی توبه نه قبلېږي، دغه حالت په راتلونكې حديث كې **مالم يغرغر** په الفاظو سره بيان كړی شويدی. يعنې كوم وخت چې د غيب پرده پورته شي، او هر څه ښكاره شي، بيا توبه نه قبلېږي، د مغرب نه د لمر راختلو باندې هم د توبې د قبليدلو دروازه بندېږي.

## الله تعالی په توبه كولو باندې ډېر خوشحالېږي

﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " لَلَّهُ أَشَدُّ فَرَحًا بِتَوْبَةِ عَبْدِهِ
او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: الله تعالی ډير خوشحالېږي په توبه د بنده
حِينَ يَتُوبُ إِلَيْهِ مِنْ أَحَدِكُمْ
سره چې كله توبه وكړي الله تعالی ته د ومره خوشحالېږي څومره په تاسو كې هغه سړی خوشحالېږي چې
كَانَ رَاحِلَتُهُ بِأَرْضٍ فَلَاةٍ فَانْفَلَتَتْ مِنْهُ وَ عَلَيْهَا طَعَامُهُ وَ شَرَابُهُ
د هغه سپرلي د ځنګل په مينځ كې وي او بيا تړې وركه شوي وي او په دې سپرلۍ د ده خوراك او څښاك هم
فَأَيِسَ مِنْهَا فَأَتَى شَجَرَةً فَاضْطَجَعَ فِي ظِلِّهَا
وي او هغه د دې د لټولو نه نااميده شي او د يو بوټي خوا ته راغلو او ده يې ولګوله د دې وني سيوري ته
قَدْ أَيِسَ مِنْ رَاحِلَتِهِ فَبَيْنَمَا هُوَ كَذٰلِكَ إِذْ هُوَ بِهَا قَائِمَةً عِنْدَهُ
چې نااميده وي د خپلې سپرلۍ نه او بيا په دغه حالت كې هغه ناڅاپه خپله سپرلۍ خپلې خوا ته ولاړه ووينې

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ٢٠٧٦/٤ رقم الحديث :٢٧٠٣/٤٣.

فَأَخَذَ بِخِطَامِهَا ثُمَّ قَالَ مِنْ شِدَّةِ الْفَرَحِ : اللَّهُمَّ أَنْتَ عَبْدِي

نو هغه د خپلې دې سپرلۍ واګې نيولو باندې په ډېره خوشحالۍ کې سره دا وواېي: اې الله! ته زما بنده يې

وَأَنَا رَبُّكَ أَخْطَأَ مِنْ شِدَّةِ الْفَرَحِ". رَوَاهُ مُسْلِم[1]

او زه ستا رب يم. د ډېر خوشحالۍ نه د هغه د ژبې نه دا غلط الفاظ ووځي.

## الله تعالى بيا بيا توبه قبلوي

﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ عَبْدًا

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې نبي عليه السلام وفرمايل: (ددې امت نه يا د تېر شوو امتونو نه) يو

أَذْنَبَ ذَنْبًا فَقَالَ : رَبِّ أَذْنَبْتُ فَاغْفِرْهُ فَقَالَ رَبُّهُ

بنده ګناه وکړه او بيا يې ووېل: اې زما ربه! ما ګناه کړيده، ته زما دغه ګناه وبخښې، نو ووېل الله تعالى

أَعَلِمَ عَبْدِي أَنَّ لَهُ رَبًّا يَغْفِرُ الذَّنْبَ وَ يَأْخُذُ بِهِ ؟

فرښتو ته چې آيا زما د ابنده پوهېږي چې دده يو رب دى چې د بنده ګناه هم بخښي او د بنده په ګناه مواخذه

غَفَرْتُ لِعَبْدِي ثُمَّ مَكَثَ مَا شَاءَ اللهُ

هم کوي (نو پوهه شي) ما خپل بنده وبخښلو دغه بنده تر هغه وخته پورې چې الله غوښتل (د ګناه کولو نه)

ثُمَّ أَذْنَبَ ذَنْبًا فَقَالَ : رَبِّ أَذْنَبْتُ ذَنْبًا فَاغْفِرْهُ

منع وو ددې نه وروسته هغه بيا ګناه وکړه، او وې ويل چې: اې زما ربه! ما ګناه کړيده، ته هغه وبخښه

فَقَالَ رَبُّهُ : أَعَلِمَ عَبْدِي أَنَّ لَهُ رَبًّا يَغْفِرُ الذَّنْبَ وَ

الله تعالى فرښتو ته فرمايي چې آيا زما د ابنده پوهېږي چې د هغه يو رب دى. چې هغه ګناه بخښي او

يَأْخُذُ بِهِ ؟ غَفَرْتُ لِعَبْدِي ثُمَّ مَكَثَ مَا شَاءَ اللهُ

په هغې نيو که کوي ما د ابنده وبخښلو دغه بنده تر هغه پورې چې الله غوښتل (د ګناه کولو نه) منع وو

ثُمَّ أَذْنَبَ ذَنْبًا قَالَ : رَبِّ أَذْنَبْتُ ذَنْبًا آخَرَ فَاغْفِرْ لِي

ددې نه وروسته هغه بيا ګناه وکړه، او وې ويل چې: اې زما ربه! ما ګناه کړې ده، ته هغه وبخښه، نو

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۰٤/٤ رقم الحديث : ۲۷٤۷.

| |
|---|
| فَقَالَ : أَعَلِمَ عَبْدِي أَنَّ لَهُ رَبًّا يَغْفِرُ الذَّنْبَ وَ |
| الله تعالى فرښتو ته فرمايي چې آيا زما دا بنده پوهېږي چې د هغه يو رب دی. چې هغه گناه بخښي او |
| يَأْخُذُ بِهِ ؟ غَفَرْتُ لِعَبْدِي فَلْيَفْعَلْ مَا شَاءَ " . [1] |
| په هغې نيو که کوي ما دا بنده وبخښلو نو ترڅو (پورې چې هغه استغفار کوي) څه چې کوي هغه دې کوي |

**توضيح:** أعلم عبدي: يعنې آيا زما بنده په دې باندې پوهه شو چې د هغه يو رب دی، چې هغه قادر مطلق دی. د گناهونو د وجې نه انسان نيسي هم او معاف کوي هم. کله چې د ده دغه شان عاليشان عقيده ده نو ما خپل بنده معاف کړو. څه چې کوي، هغه دې وکړي. دې قِسم احاديثو سره مسلمانانو ته د توبې ترغيب او تشويق ورکول دي. د گناه ترغيب ندی. (المرقات : ۵/۱۶۴)

## په يو مسلمان باندې د دوزخ حکم مه لګوه

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَ عَنْ جُنْدُبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ حَدَّثَ : |
| او حضرت جندب رضي الله عنه اوي دی چې نبي عليه السلام دا بيان وکړو چې (د دې امت نه يا د تېرشوو امتونو نه) |
| "أَنَّ رَجُلًا قَالَ : وَ اللَّهِ لَا يَغْفِرُ اللَّهُ لِفُلَانٍ وَ أَنَّ اللَّهَ تَعَالَى قَالَ : مَنْ |
| يو سړی وويل چې په خدای قَسم! الله تعالى به فلانی سړی نه بخښي او الله تعالى وفرمايل چې څوک |
| ذَا الَّذِي يَتَأَلَّى عَلَيَّ أَنِّي لَا أَغْفِرُ لِفُلَانٍ فَإِنِّي قَدْ غَفَرْتُ لِفُلَانٍ |
| دی هغه سړی چې هغه په ما قَسم خوړلو سره وايي چې زه به فلانی سړی نه بخښم ما هغه سړی وبخښلو |
| وَ أَحْبَطْتُ عَمَلَكَ ". أَوْ كَمَا قَالَ . [2] |
| او ستا عمل مې ضائع کړو (يعنې ستا قَسم مې دروغژن کړو). |

**توضيح:** د چا په باره کې به قطعي توګه باندې د جنتي يا دوزخي حکم لګول په کار نه دي ځکه چې دا د غيب معامله ده په ذکر شوي حديث کې قَسم خوړونکې دومره زړورتيا وکړه چې قَسم خوړلو باندې يې وويل چې والله فلانی سړی به کله هم الله تعالى نه بخښي، دغه شان په يقين سره قَسم خوړلو باندې ويناکول په حقيقت کې په الله تعالى باندې يوه فيصله مسلط کول دي دې طرف ته اشاره ده.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۴۶۶ رقم الحديث :۷۵۰۷، أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۱۱۲ رقم الحديث :۲۷۵۸/۲۹.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۲۳ رقم الحديث :۱۳۷/۲۶۲۱.

**من يتألی**: څوک دی چې هغه دغه شان قسمونو سره وايي چې فلانی سړی به الله تعالی نه بخښي. (المرقات: ۵/۱۶۶)

## سيد الاستغفار

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "سَيِّدُ الِاسْتِغْفَارِ |
| حضرت شداد بن اوس رضي الله عنه فرمايي چې نبي عليه السلام و فرمايل: بهترا استغفار دا دی چې تا سو دا سي |
| أَنْ تَقُولَ: اللَّهُمَّ أَنْتَ رَبِّي لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ خَلَقْتَنِي |
| ووايئ: اى الله! خاص ته زما پرورد ګاريې ستا نه غير بل څوک د عبادت لائق نشته، تا زه پيدا کړی يم |
| وَأَنَا عَبْدُكَ وَأَنَا عَلَى عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ |
| زه ستا بنده او ستا په وعده يم (يعني په وعده باندې ولاړيم) او ستا په وعده باندې يم د خپل طاقت په اندازه |
| أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ أَبُوءُ لَكَ بِنِعْمَتِكَ عَلَيَّ |
| زه پناه غواړم د هغه شر نه چې په کوم کې اخته يم، زه اقرار کوم ستا په هغه نعمتونو کوم چې تا په ما کړي |
| وَأَبُوءُ بِذَنْبِي فَاغْفِرْ لِي فَإِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ". |
| او د خپلو ګناهونو هم اقرار کوم نو ته ما وبخښه ځکه چې د ګناهونو ستا نه غيره څوک بخښونکی نشته |
| قَالَ: وَمَنْ قَالَهَا مِنَ النَّهَارِ مُوقِنًا بِهَا |
| بيا نبي عليه السلام و فرمايل: کوم سړی چې دغه کلمات د ورځې د دې په معنو باندې په يقين لرلو سره |
| فَمَاتَ مِنْ يَوْمِهِ قَبْلَ أَنْ يُمْسِيَ فَهُوَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَمَنْ |
| وايي او په دغه ورځ باندې د ماښام نه مخکې مړشي نو هغه په جنتيانو کې دی. او کوم سړی چې دغه |
| قَالَهَا مِنَ اللَّيْلِ وَهُوَ مُوقِنٌ بِهَا فَمَاتَ قَبْلَ أَنْ يُصْبِحَ |
| کلمات د شپې د دې په معنو باندې يقين لرلو سره وايي او بيا په دغه شپه د سحر کېدو نه مخکې مړشي |
| فَهُوَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ. [1] |
| نو هغه هم د جنتيانو د جملې څخه دی. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱ ۹۱ رقم الحديث: ۶۳۰۶

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

**﴿۱٤﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " قَالَ اللهُ تَعَالَى: يَا ابْنَ آدَمَ**

انس رضي الله عنه فرمايي چې نبي عليه السلام و فرمايل: الله تعالى فرمايي چې اى ابن آدم! ترڅو چې ته زما

**إِنَّكَ مَا دَعَوْتَنِي وَ رَجَوْتَنِي غَفَرْتُ لَكَ عَلَى مَا كَانَ فِيكَ**

نه د ګناهونو معافي غواړې او زمانه اميد ساتې زه به تا بخښم، تا چې هر څه بد کار کړي وي زما به د هغې

**وَلَا أُبَالِي يَا ابْنَ آدَمَ**

څه پرواه نه وي (که هر څو مره هم غټ ګناهګار يې، زما په نزد ستا بخښل څه غټه خبره نده) اى ابن آدم!

**إِنَّكَ لَوْ بَلَغَتْ ذُنُوبُكَ عَنَانَ السَّمَاءِ ثُمَّ اسْتَغْفَرْتَنِي غَفَرْتُ لَكَ**

که ستا ګناهونه د آسمان او چتوالي ته ورسيږي او ته ما نه بخښنه وغواړې نو زه به تا وبخښم او زما به په دې

**وَلَا أُبَالِي يَا ابْنَ آدَمَ إِنَّكَ لَوْ لَقِيتَنِي بِقُرَابِ الْأَرْضِ خَطَايَا**

هيڅ پرواه نه وي. اى ابن آدم! که ته زما سره په دې حال کې مخ شې چې ستا سره د ګناهونو ډکه زمکه

**ثُمَّ لَقِيتَنِي لَا تُشْرِكُ بِي شَيْئًا لَأَتَيْتُكَ بِقُرَابِهَا**

وي نو زه به تا ته د بخښنې او مغفرت نه ډکه زمکه راوړم. په دې شرط سره چې تا زما سره شريک نه

**مَغْفِرَةً". وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ**[1]

وي جوړ کړې (يعنې په شرک کې نه وي اخته شوى)

**توضيح:** عنان السماء: په وريځ باندې د دې اطلاق کيږي مراد د آسمان او چتوالى دى (المرقات ۵/۱۶۹)

**﴿۱۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "قَالَ اللهُ تَعَالَى:**

او ابن عباس رضي الله عنهما د نبي عليه السلام نه نقل کوي فرمايي چې نبي عليه السلام و فرمايل: الله تعالى فرمايي

**مَنْ عَلِمَ أَنِّي ذُو قُدْرَةٍ عَلَى مَغْفِرَةِ الذُّنُوبِ غَفَرْتُ لَهُ**

چې کوم سړى په دې پوهه شو چې زه د ګناهونو په بخښلو باندې قادر يم نو زه به هغه وبخښم، او زما

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۰۷ رقم الحديث ۳۶۰۸.

| وَلَا أُبَالِي مَا لم تشرك بِي شَيْئًا ".[1] |
| --- |
| به په دې باندې څه پرواه نه وي، په دې شرط چې هغه زما سره څوک نه شريکوي. |

**توضيح**: يعنې الله تعالى فرمايي چې يو سړى فقط دومره پوهېږي او د دې پخه عقيده ساتي چې زه د قدرت مالک يم، او د بخښلو اختيار او قدرت زما سره دى. او زه د شرک نه غيره هره يوه ګناه معاف کوم، زما په حق کې د غه شان عقيده ساتونکې ټول ګناهونه معاف کوم، ګويا د غه سړى زما صفات جلاليه او جماليه تسليم کړل، او په ما باندې يې ښه ګمان وکړو نو انا عند ظن عبدى د اصول مطابق ما هغه معاف کړو. دا حديث قدسي دى. (المرقات: ۵/۱۷۰)

## الله تعالى د استغفار دوجې نه ډېر څه ورکوي

| ﴿۱۶﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ لَزِمَ الِاسْتِغْفَارَ |
| --- |
| او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: څوک چې استغفار په خپل ځان لازم وګرځوي |
| جَعَلَ اللهُ لَهُ مِنْ كُلِّ ضِيقٍ مَخْرَجًا وَ مِنْ كُلِّ هَمٍّ فَرَجًا |
| نو الله تعالى د هغه لپاره د هرې تنګۍ نه د وتلو لاره راوباسي او هغه د هر غم او پريشانۍ نه خلاصوي |
| وَ رَزَقَهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ .[2] |
| دغه شان هغه ته د داسې ځاى نه (پاک حلال) رزق ورکوي چې د هغه ځاى نه د ده ګمان هم نه وي. |

**توضيح**: په دې حديث کې دې آيت ته اشاره ده ﴿ فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا ﴾. (سورة النوح آيت: ۱۱-۱۰) او دا حديث د دې آيت نه ماخوذ او د دې اقتباس دى ﴿ وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ ﴾ (سورة الطلاق آيت: ۲).

## په ګناه باندې دوام کول نه دي په کار

| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَا |
| --- |
| حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دى چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: کوم سړى چې (په خپله ګناه باندې) |

(۱) أخرجه شرح السنة ۳۸۸/۱۴، رقم الحديث : ۱۹۱.

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۸۵/۲ رقم الحديث : ۱۵۱۸.

| أَصَرَّ مَنِ اسْتَغْفَرَ وَ إِنْ عَادَ فِي الْيَوْمِ سَبْعِينَ مَرَّةً.[1] |
|---|
| استغفار وکړو هغه په ګناه باندې دوام و نه کړو اګر که هغه په ورځ کې اویا ځل ګناه وکړي. |

**توضيح**: کوم سړی چې په یوه ګناه باندې دوام وکړي، هم دا په ګناه باندې اصرار دی، په ګناه باندې اصرار یو قبیح امر دی، ځکه چې په دې سره صغیره ګناه کبیره جوړیږي. او په کبیره ګناه باندې دوام کول و سره د کفر حد ته درسید و خطره ده. په دې حدیث کې د توبې او استغفار ترغیب دی. چې خلاصه یې داده چې یو سړی په خپله یوه ګناه باندې شرمنده شي او د هغې نه استغفار کوي، نو هغه سړی په ګناه باندې د اصرار کولو د حد نه ووځي، که هغه ګناه صغیره وي یا ګناه کبیره وي، که هغه په ورځ کې اویا ځل دغه ګناه کړي وي، یا د دېنه یې هم ډېر ځل کړي وي. (المرقات: ۱۷۱-۵/۱۷۲).

بهرحال توبه او استغفار او اصرار دواړه یوځای نه شي او سیدلی، په دې حدیث کې د توبې غټ ترغیب دی خو اخلاص په کې شرط دی ګڼي:

سبحه بر کف توبه بر لب دل پُر از ذوقِ گناه ❁ معصیت را خنده می آید بر استغفار ما

## د توبه کونکو فضيلت

| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كُلُّ بَنِي آدَمَ خَطَّاءٌ |
|---|
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل هر انسان خطاکار دی (یعنې هر انسان ګناه کوي |
| وَخَيْرُ الْخَطَّائِينَ التَّوَّابُونَ.[2] |
| د انبیاء کرامو نه په غیر) او غوره خطاکار هغه دی چې هغه توبه کوي. |

## په ګناه کولو سره په زړه باندې تور داغ جوړیږي

| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا أَذْنَبَ |
|---|
| او حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي فرمایي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: چې یو مؤمن کله ګناه کوي |
| كَانَتْ نُكْتَةٌ سَوْدَاءُ فِي قَلْبِهِ فَإِنْ تَابَ وَ اسْتَغْفَرَ |
| نو د هغه په زړه یو تور داغ جوړ شي بیا که هغه د دغه ګناه نه توبه وکړي او استغفار وکړي نو د هغه زړه نه |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۱۸ رقم الحديث: ۳۶۳۰، وأخرجه ابوداود في السنن ۲/۸۴ رقم الحديث ۱۵۱۴.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۷۰ رقم الحديث: ۲۶۱۶

| صُقِلَ | قَلْبُهُ | وَ | إِنْ | زَادَ | زَادَتْ | حَتَّى | تَعْلُوَ | قَلْبَهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دغه تور داغ پاک کړی شي او که ګناه ډېره کړي نو هغه تور داغ ډېرېږي تردې چې د ده په زړه باندې خور شي | | | | | | | | |
| فَذٰلِكُمُ | الرَّانُ | الَّذِي | ذَكَرَ | اللهُ | تَعَالَىٰ : | ﴿ كَلَّا | بَلْ | رَانَ عَلَىٰ |
| هم دا ران یعنې زنګ دی چې د دې متعلق الله تعالی فرمایي: داسې هیڅکله نه ده بلکې دا د دوی په | | | | | | | | |
| قُلُوبِهِمْ مَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴾ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ [1] | | | | | | | | |
| زړونو باندې د دغه شي (یعنې ګناه) زنګ دی، کوم چې به دوی کولو. | | | | | | | | |

**توضیح:** انسانې زړه د خیر او شر دواړو لپاره مرکز دی، فرښتې په دې کې نیک الهاماتو سره د نیکۍ کروندې کوښښ کوي، او شیطان په دې کې د بدو وسوسو کرونده کولو کوښښ کوي. وس کله چې شیطان په ګناه باندې انسان راتیز کړو، او د ګناه تور داغ په زړه باندې پرېوتلو نو په نیکۍ او استغفار سره دغه داغ وینځل شي، او زړه بیا پاک شي، لیکن که یو انسان د ګناه نه وروسته استغفار نکوي، نه توبه کوي، او نه نیک عمل کوي، نو دا داغ ډېرېږي، تردې چې د هغه ټول زړه ونیسي، د دې نوم ران دی او هم دا د جباریت مهر دی. ﴿كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ﴾ (سورة مطففین:۱۴) کې دې ته اشاره ده په دې حدیث کې د توبې او استغفار ترغیب ورکړی شوی دی. (المرقات: ۱۷۲-۵/۱۷۳)

## د توبې د قبلېدو آخرې وخت د غرغرې نه مخکې دی

| ﴿۲۰﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللهَ يَقْبَلُ تَوْبَةَ الْعَبْدِ | | |
|---|---|---|
| او ابن عمر رضي الله عنه فرمایي چې نبي علیه السلام وفرمایل: الله تعالی د بنده توبه تر هغه وخته پورې قبلوي | | |
| مَا | لَمْ | يُغَرْغِرْ . [2] |
| ترڅو چې د غرغرې حالت شروع نه شي. | | |

**توضیح:** د زنکدن په حالت کې چې کله د ټول بدن نه روح په راوتلو سره په حلق کې ایسار شي او څه لږ وخت وروسته وتل غواړي د دې حالت نوم په غرغره سره یاد کړی شویدی، مقصد دا دی چې کله په انسان باندې د عالَم غیب پرده برسیرته کړی شي، او هغه د عالَم آخرت د څه شي کتنه هم وکړي، دغه وخت د توبې سلسله ختمه شي، دغه شان د مغرب نه د لمر راختلو نه وروسته د توبې دروازه

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۰۵ رقم الحديث: ۳۳۹۰

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۵۶ رقم الحديث: ۳۶۰۳

بنده شي. (المرقات: ۵/۱۷۴، والكاشف: ۵/۱۱۶)

## د خدای د مغفرت فراخوالي

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الشَّيْطَانَ قَالَ: |
| او ابو سعيد خدري رضي الله عنه راوي دی چې نبي عليه السلام و فرمايل: شيطان الله تعالى ته وويل چې زما دې |
| وَعِزَّتِكَ يَا رَبِّ لَا أَبْرَحُ أُغْوِي عِبَادَكَ مَا دَامَتْ أَرْوَاحُهُمْ |
| ستا په عزت قسم وي ای زما ربه! زه به ستا بندګان هميشه ګمراه کوم تر څو چې د هغوی روحونه د هغوی |
| فِي أَجْسَادِهِمْ فَقَالَ الرَّبُّ عَزَّ وَجَلَّ: وَعِزَّتِي وَجَلَالِي وَارْتِفَاعِ مَكَانِي |
| په بدنونو کې وي، الله تعالى ورته و فرمايل: زما دې قسم په خپل عزت او خپله مرتبه وي زما بندګان |
| لَا أَزَالُ أَغْفِرُ لَهُمْ مَا اسْتَغْفَرُونِي". [1] |
| چې تر څو پورې زما نه بخښنه غواړي، زه به هميشه هغوی بخښم. |
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللهَ تَعَالَى |
| او حضرت صفوان بن عسال رضي الله عنه راوي دی فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: الله تعالى |
| جَعَلَ بِالْمَغْرِبِ بَابًا عَرْضُهُ مَسِيرَةُ سَبْعِينَ عَامًا لِلتَّوْبَةِ |
| ګرځولي مغرب طرف ته يو دروازه چې هغه د توبې لپاره ده چې د هغې پلنوالي د اويا کاله د مزل (په |
| لَا يُغْلَقُ مَا لم تطلع عَلَيْهِ الشَّمْسُ مِنْ قِبَلِهِ |
| اندازه) ده. او دا دروازه به تر هغه وخته نه بندولی کيږي تر څو چې لمر د مغرب د اړخ نه راونه خيژي |
| وَذَلِكَ قَوْلُ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ: ﴿يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا |
| او د الله تعالى د دې ارشاد: چې په هغه ورځ به راشي ځيني نښې ستا د رب فائده به نه ورکوي يو نفس ته |
| إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ﴾. [2] |
| د هغه ايمان چې هغه د مخکې نه ايمان نه وي راوړی. |

---

(۱) أخرجه مسند أحمد ۲۹/۳، رقم الحديث . ۱۱۲۵۵.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲۵۵/۵ رقم الحديث : ۳۶۰۲.

## د توبې د قبلیدو بندیدل

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَ عَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَنْقَطِعُ الْهِجْرَةُ حَتَّى |
| او حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل: هجرت به نه بندیږي، تر هغه وخته چې |
| يَنْقَطِعَ التَّوْبَةُ وَلَا تَنْقَطِعُ التَّوْبَةُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا.[1] |
| توبه بنده نه شي او توبه نه بندیږي ترڅو چې لمر د مغرب د طرف نه راونه خیژي. |

**توضیح: لاتنقطع الهجرة**: د دې جملې د پوهیدلو لپاره دوه طریقې دي: اوله طریقه دا چې الهجرة د ګناهونو نه په شاه تګ او ترک ذنوب په معنی واخستلی شي، عام شارحینو او ملاعلی قاري دې ته ترجیح ورکړیده، د دې مطلب به دا شي چې د ګناهونو نه بېلیدلو او د دې د پرېښودلو او د هغې نه د ځان خلاصون وخت تر هغه وخته پورې شته دی ترڅو چې د توبې د قبلیدلو زمانه وي، کله چې د توبې لرې بنده شوه نو د ګناهونو نه هجران او د دې پرېښودل به هم بې فائدې شي او د دې لرې به بنده شي او د توبې دروازه به تر هغه وخته پورې نه بندیږي ترڅو چې د مغرب نه لمر راختل نه وي شوي کله چې لمر د مغرب نه راوخیژي نو د توبې سلسله به بنده شي. د دې جملې دویم مطلب علامه طیبي داسې بیان کړیدی، چې دلته د الهجرة نه مراد د ګناهونو نه ځان ساتنه نده، ځکه د دې نه وروسته خپله د توبې ذکر دی، ترڅو چې توبه نه وې بنده شوي، هغه فرمایي چې الهجرة نه مراد هم هغه متعارف عام هجرت دی، یعنې هجرت به تر هغه وخته پورې جاري وي ترڅو چې د توبې دروازه بنده نه شي، او د توبې دروازه به تر هغه وخته پورې خلاصه وي، ترڅو چې د مغرب د طرف نه لمر راونه خیژي. (المرقات ۵/۱۷۷)

اوس بحث دا دی چې د لمر راختلو نه مخکې کوم خلک نابالغه دي، او وروسته توبه کول غواړي یا د لمر راختلو نه وروسته ماشومان پیدا شول، نو د هغې به څه کېږي؟ علماوو د دې جواب کړیدی چې بس کوم حکم د حدیث دی، دغه شان به کېږي، دویم جواب دا دی چې د دې حدیث په حکم کې به هم هغه خلک راځي، چې هغه دغه وخت مکلف وي، او کوم خلک چې دغه وخت مکلف نه وي، د هغوی توبه به وروسته قبلېږي، دا هم ممکنه ده چې د ماشومانو د پیدائش سلسله به بنده وي.

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۳ رقم الحديث: ۲۴۷۹.

## په چا د دوزخي حکم مه لګوئ

﴿۲۴﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ رَجُلَيْنِ كَانَا فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ

او ابو هریره رضی الله عنه روایت دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: په بني اسرائیلو کې دوه کسانو وو چې خپل

مُتَحَابَّيْنِ أَحَدُهُمَا مُجْتَهِدٌ لِلْعِبَادَةِ وَ الْآخَرُ يَقُولُ : مُذْنِبٌ

مینځ کې دوستان وو په دوي کې یو خو به په عبادت کې ډېر محنت کولو او دویم به ګناه کوله او ویل به یې

فَجَعَلَ يَقُولُ :

چې زه ګناهګار یم (یعنې هغه به د خپلو ګناهونو اقرار کولو) نو عبادت کونکې هغه ته وینا شروع کړه په

أَقْصِرْ عَمَّا أَنْتَ فِيهِ فَيَقُولُ

کوم څه کې چې ته اخته یې (یعنې ګناه کې) د دې نه منع شه ګناهګار به د دې په جواب کې ویل چې ته ما په

خَلِّنِي وَ رَبِّي حَتَّى وَجَدَهُ يَوْمًا

خپل رب پرېږده (هغه غفور او رحیم دی) تر دې چې هغه عابد یوه ورځې دا په داسې ګناه کې اخته و کتلو

عَلَى ذَنْبٍ اسْتَعْظَمَهُ فَقَالَ : أَقْصِرْ فَقَالَ :

چې هغه دا ډېره لویه ګناه ګڼله. هغه ده ته وویل: چې د دې ګناه نه منع شه، ګناهګار جواب ورکړو

خَلِّنِي وَ رَبِّي أَبُعِثْتَ عَلَيَّ رَقِيبًا ؟ فَقَالَ :

چې ته ما په خپل رب باندې پرېږده، او آیا ته زما نګران رالېږلی شوی یې (عابد د دې په اورېدو سره) وویل

وَ اللّٰهِ لَا يَغْفِرُ اللّٰهُ لَكَ أَبَدًا وَلَا يُدْخِلُكَ الْجَنَّةَ

چې قسم په خدای! الله به تا نه بخښي او نه به دې جنت ته داخل کړي، د دې نه وروسته الله تعالی دې

فَبَعَثَ اللّٰهُ إِلَيْهِمَا مَلَكًا فَقَبَضَ أَرْوَاحَهُمَا

دواړو ته د فرښته لېږلو باندې د دوي روحونه قبض کړل. او بیا دغه دواړه (یعنې د دوي روحونه) د

فَاجْتَمَعَا عِنْدَهُ فَقَالَ لِلْمُذْنِبِ :

د الله تعالی په دربار کې (برزخ کې یا د عرش د لاندې) حاضر شول، نو الله تعالی ګناه خو ګناهګار ته

ادْخُلِ الْجَنَّةَ بِرَحْمَتِي وَ قَالَ لِلْآخَرِ :

وفرمایل: چې ته زما د رحمت په سبب سره جنت ته داخل شه، او دویم ته یې وفرمایل: چې آیا ته دا

| |
|---|
| أَ تَسْتَطِيعُ أَنْ تَحْظُرَ عَلَى عَبْدِي رَحْمَتِي ؟ فَقَالَ : لَا يَا رَبِّ |
| طاقت لري چې زما بنده زما د رحمت نه محروم کړې؟ هغه و ویل: نا الهی ! یا الله تعالی هغه فرښتو ته |
| قَالَ: اذْهَبُوا بِهِ إِلَى النَّارِ". [1] |
| و فرمایل: چې دا دوزخ اړخ ته بوځئ. |

**توضیح**: کیدی شي دې عبادت کیش صوفی په خپل عبادت باندې غرور وکړو او دهوکه شو، او یو مسکین گناهگار یې سپک گڼلو باندې په هغه قطعي دوزخ حکم ولگولو، گویا هغه د جنت او دوزخ فیصله خپله وکړه، چې په هغې سره رب تعالی ناراض شو، او هغه یې په وزخ کې واچولو، دا جدا صورت دی، او په یو گناه باندې یو چا ته دوزخي ویل بېل صورت دی، هغه جائز دی، ځکه چې هغه یوه قاعده ده، چې دا مخکې نه فیصله شوې ده، چې څوک داسې کوي نو هغه به داسې کېږي.
(المرقات ۵/۱۸۰)

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ قَالَتْ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سلم يَقْرَأُ : |
| او حضرت اسماء بنت یزید رضي الله عنها فرمایي چې ما د نبي عليه السلام نه اورید لي چې هغه به دا آیت لوستلو |
| ﴿ يَا عِبَادِي الَّذِي أَسْرَفُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا |
| ای زما بندگانو! چې هغوی د (گناه کولو په سبب) په خپل ځان باندې زیاتی کړیدی، مه نا امیده کیږي |
| مِنْ رَحْمَةِ اللهِ إِنَّ اللهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا ﴾ وَلَا يُبَالِي. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ [2] |
| د الله د رحمت نه ځکه چې الله گناهونه بخښي او نبي عليه السلام و فرمایل چې د الله تعالی په دې څه پروا نشته |
| ﴿۲۶﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاس : فِي قَوْله تَعَالَى : ﴿ إِلَّا اللمم ﴾ قَالَ |
| او ابن عباس رضي الله عنهما نه د الله تعالی د دې قول اِلَّا اللَّمَمَ د تفسیر په ضمن کې روایت دی چې و فرمایل |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنْ تَغْفِرِ اللَّهُمَّ تَغْفِرْ جَمًّا وَ أَيُّ عَبْدٍ لَكَ |
| نبي عليه السلام: ای الله! که بخښي نو ټول گناهونه وبخښي. او ستا کوم بنده دی چې هغه غټ او اوړه |

---

(۱) أخرجه مسند أحمد ۱۴/۴۶، رقم الحديث : ۸۲۹۲ .

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۴۸ رقم الحديث : ۳۲۹۰.

| لَا أُلِمَّا . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ [1] |
|---|
| ګناهونه، نه دي کړي. |

**توضیح**: دا يو جامع شعر دی، او د شب بېدارۍ په وخت کې د راز او نياز لپاره ډېر فائده مند دی.

دغه شان دا شعر هم دی:

الهی عبدك العاصی اتاك ❁ مقرا بالذنوب وقد دعاك

فان تغفر فانت لذاك اهل ❁ وان تطرد فمن يرحم سواك

دغه شان دا شعرونه هم دي:

يامن يرٰى مدّ البعوض جناحه ❁ فی ظلمة الليل البهيم الأليل

فاغفر لعبد تاب من فرطاته ❁ قد كان منه فی الزمن الاول

بادشاه جرم ما را در گذار ❁ ماگناه گاریم وتو آمرزگار

جرم بے اندازو بے حد کرده ايم ❁ روئے سياه پيش تو آورده ايم

دغه شان چا ويلي دي:

زما رب رحمان غفور رحيم دی ❁ زه له هغه د مغفرت اميد کومه

## د بنده په چون چرا د خدای په خدائي کې فرق نه راځي

| ﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَقُولُ اللهُ تَعَالَى يَا عِبَادِي كُلُّكُمْ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| او ابو ذر رضي الله عنه راوي دی چې نبي عليه السلام وفرمايل: الله تعالى فرمايي: چې ای زما بندګانو! تاسو ټول | | | | | |
| ضَالٌّ | إِلَّا | مَنْ | هَدَيْتُ | فَاسْأَلُونِي | الْهُدَى |
| بې لاري ياست. د هغه سړی نه غير چې هغه ته ما هدايت کړی دی. نو تاسو زما نه هدايت وغواړئ زه به | | | | | |
| أَهْدِكُمْ | وَ | كُلُّكُمْ | فُقَرَاءُ | إِلَّا | مَنْ | أَغْنَيْتُ |
| تاسو ته هدايت وکړم (تاسو ټول په ظاهر او باطن کې) محتاج ياست، د هغه سړی نه غير چې هغه ما غني | | | | | |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٥/٧١ رقم الحديث : ٣٣٣٨.

فَاسْأَلُونِي أَرْزُقْكُمْ وَ كُلُّكُمْ مُذْنِبٌ

کړيدی تاسو ټول زمانه روزي وغواړئ زه به تاسو ته (حلال پاکه) روزي درکړم تاسو ټول ګناهګار یاست

إِلَّا مَنْ عَافَيْتُ فَمَنْ عَلِمَ مِنْكُمْ

(يعني د ټولو نه ګناه متصور ده) د هغه سړي نه غير چې هغه ماؤ ساتلو (يعني انبياء کرام) نو په تاسو کې

أَنِّي ذُو قُدْرَةٍ عَلَى الْمَغْفِرَةِ فَاسْتَغْفَرَنِي

چې څوک په دې باندې پوه شو چې زه په بخښلو باندې قدريم او بيا هغه زمانه بخښنه وغوښتله نو زه به د

غَفَرْتُ لَهُ وَلَا أُبَالِي وَ لَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ وَ آخِرَكُمْ

هغه (يعني ټول ګناهونه) وبخښم او زما به په دې هيڅ پرواه نه وي او که ستاسو مخکني وروستني ستاسو

وَ حَيَّكُمْ وَ مَيِّتَكُمْ وَ رَطْبَكُمْ وَ يَابِسَكُمْ

ژوندي، ستاسو مړي، ستاسو لمده اووچه (يعني ټول مخلوقات) زما په بندګانو کې د ټولو نه ډېر متقي

اجْتَمَعُوا عَلَى أَتْقَى قَلْبِ عَبْدٍ مِنْ عِبَادِي مَا زَادَ فِي مُلْكِي جَنَاحَ

زړه بنده (محمد ﷺ) په شان شي نو زيا توالي به را نشي په دې سره به زما په خدايۍ کې دو زرد

بعوضة وَ لَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ وَ آخِرَكُمْ وَ حَيَّكُمْ وَ مَيِّتَكُمْ وَ رَطْبَكُمْ وَ يَابِسَكُمْ

يو مچ په اندازه او که ستاسو مخکني وروستني، ستاسو ژوندي، ستاسو مړي، ستاسو لمده او وچه زما

اجْتَمَعُوا عَلَى أَشْقَى قَلْبِ عَبْدٍ مِنْ عِبَادِي مَا نَقَصَ ذَلِكَ مِنْ مُلْكِي

په بندګانو کې د ټولو نه ډېر بدبخت بنده شيطان په شان شي نو کمي به را نشي زما په خدائي کې د يو

جَنَاحَ بَعُوضَةٍ. وَلَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ وَآخِرَكُمْ وَحَيَّكُمْ وَمَيِّتَكُمْ وَرَطْبَكُمْ وَيَابِسَكُمْ اجْتَمَعُوا

وزرد مچ په اندازه او ستاسو مخکني، وروستني، ستاسو ژوندي، ستاسو مړي، ستاسو لمده او وچه جمع

فِي صَعِيدٍ وَاحِدٍ فَسَأَلَ كُلُّ إِنْسَانٍ مِنْكُمْ مَا بَلَغَتْ أُمْنِيَّتُهُ فَأَعْطَيْتُ كُلَّ سَائِلٍ

شي د خپل انتهايي غوښتني او خواهش مطابق باندې او بيا به په تاسو کې هر يو سړي ته د هغه د غوښتني

مِنْكُمْ مَا نَقَصَ ذَلِكَ مِنْ مُلْكِي إِلَّا كَمَا لَوْ أَنَّ

مطابق ورکوم نو په دې سره زما په خدايۍ کې هيڅ کمي نه راځي (خو بالفرض که کمي هم راشي نو) دومره

| أَحَدُكُمْ | مَرَّ | بِالْبَحْرِ | فَغَمَسَ | فِيهِ | إِبْرَةً | ثُمَّ | رَفَعَهَا | ذٰلِكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چې مثلاً تاسو کې يو سړى په درياب تېرېږي او هغه په هغې کې ستنه ورډننه کولو سره بېرته راوباسي | | | | | | | | |
| بِأَنِّي | جَوَادٌ | مَاجِدٌ | أَفْعَلُ | مَا | أُرِيدُ | عَطَائِي | كَلَامٌ | وَ عَذَابِي |
| او دې سبب دادى چې زه ډېر سخي يم، ډېر ورکونکى يم، او څه چې وغواړم، کوم يې. زما ورکول فقط | | | | | | | | |
| كَلَامٌ | إِنَّمَا | أَمْرِي | لِشَيْءٍ | إِذَا | أَرَدْتُ | أَنْ | أَقُولَ | لَهُ |
| حکم کول دي، او زه چې کوم شي پيدا کول وغواړم نو دهغې لپاره زما فقط دومره حکم چې زه وو ايم | | | | | | | | |
| (كُنْ فَيَكُونُ). [1] | | | | | | | | |
| شه او هغه کېږي. | | | | | | | | |

**توضيح: اتقى قلب عبد:** نه مراد د نبي عَلَيْهِ السَّلَام قلب اطهر دى. (المرقات: ۵/۱۸۴)

**اشقى قلب:** ددې نه مراد ابليس دى. (المرقات: ۵/۱۸۴)

**عطائي كلام:** يعنې د خداى خزانې په کوم ګودام کې نه دي چې په خرچ کولو سره به ګودامونه خالي شي بلکې د الله تعالى ذات خپله خزانه ده. د دې تعلق د الله تعالى د کلمې كُنْ سره دى. ددې کلام نه عطاء ده او د دې کلام نه سزا ده. لهذا څوک دې دا خيال نه کوي چې په دې خزانو کې به کمى راشي. (المرقات: ۵/۱۸۵)

| ﴿۲۸﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنَّهُ قَرَأَ: ﴿ هُوَ أَهْلُ التَّقْوَى |
|---|
| او حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دى چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا آيت ولوستلو: هغه الله د تقوى صاحب |
| وَ أَهْلُ الْمَغْفِرَةِ ﴾ قَالَ: قَالَ |
| دى او صاحب د بخشش دى) بيا نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې آيت په تفسير کې وفرمايل: چې فرمايي |
| رَبُّكُمْ أَنَا أَهْلٌ أَنْ أُتَّقَى فَمَنِ |
| ستاسو رب چې زما د شان تقاضا دا ده چې خلک زما سره د چا شريکولو نه ځان وساتي لهذا څوک چې |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٦٧/٤ رقم الحديث: ٢٦١٣.

اتَّقَانِي فَأَنَا أَهْلٌ أَنْ أَغْفِرَ لَهُ ".[1]

د شرک نه ځان ساتي، نو زما سره لائق هم دا دي چې زه هغه وبخښم.

﴿۲۹﴾ وَعَن ابْن عمر قَالَ: إِنْ كُنَّا لَنَعُدُّ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَجْلِسِ يَقُولُ:

او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی وايي چې مونږ به دا شمارل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به په يو مجلس کې دا دعا ويله

رَبِّ اغْفِرْ لِي وَتُبْ عَلَيَّ إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الْغَفُورُ مِائَةَ مَرَّةٍ.[2]

زما ربه! ما وبخښې او زما توبه قبوله کړې، بېشکه ته بخښونکی او توبه قبلونکی يې، سل ځلې.

﴿۳۰﴾ وَعَنْ بِلَال بْنِ يسَار بْنِ زَيْدٍ مَوْلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: حَدَّثَنِي

او د بلال بن يسار بن زيد چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ازادا کړی شوي غلام دی فرمايي ماته حديث بيان کړي

أَبِي عَنْ جَدِّي أَنَّهُ

زما پلار (حضرت يسار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) هغه زما دنيکه (حضرت زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نه نقل کړی دی چې زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " مَنْ قَالَ: أَسْتَغْفِرُ اللهَ الَّذِي

د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي چې: کوم سړی چې دا ووايي زه د الله نه بخښنه غواړم هغه الله

لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْحَيَّ الْقَيُّومَ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ

چې نشته بل د عبادت لائق د هغه نه غير، چې هغه ژوندی دی او خبراخستونکی دی او توبه ويستونکي

غُفِرَ لَهُ وَإِنْ كَانَ قَدْ فَرَّ مِنَ الزَّحْفِ" وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[3]

يم دې الله ته، نو د ده بخښنه کېږي، اګر که هغه د جهاد نه تختيدلی وي (چې دا يوه لويه ګناه ده).

**توضيح: من الزحف:** يعنې د دې دعا په برکت سره د هغه سړی ټول ګناهونه معاف کېږي، اګر که هغه د غټې نه غټې ګناهګار ولې نه وي. ترد چې د جنګ په دوران کې د جنګ د ميدان پرېښودلو باندې وتختيدلو نو دا غټه ګناه هم الله معاف کوي. (المرقات: ۵/۱۹۰)

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۰۲ رقم الحديث: ۳۳۴۸.

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۲/۸۵ رقم الحديث: ۱۵۱۶

(۳) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۲۸ رقم الحديث: ۳۶۴۸، أخرجه ابوداود في السنن ۲/۸۵ رقم الحديث: ۱۵۱۷.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِث

## د ځېلو مړو لپاره استغفار کول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ لَيَرْفَعُ الدَّرَجَةَ لِلْعَبْدِ الصَّالِحِ |
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي عليه السلام وفرمايل: الله تعالى او چتوي درجه دنيک بخته بنده |
| فِي الْجَنَّةِ فَيَقُولُ: يَا رَبِّ أَنَّى لِي هٰذِهِ؟ فَيَقُولُ: |
| په جنت کې، نو هغه پوښتنه کوي: زما ربه! ماته دا درجه څنګه راکړی شوه! نو الله تعالى ورته فرمايي |
| بِاسْتِغْفَارِ وَلَدِكَ لَكَ".[1] |
| ستا لپاره ستا د ځوی د استغفار په وجه باندې؟ |
| ﴿۳۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا الْمَيِّتُ فِي الْقَبْرِ |
| او عبد الله بن عباس رضي الله عنه راوي دی چې نبي عليه السلام وفرمايل: په قبر کې د مړي حالت داسې دی |
| إِلَّا كَالْغَرِيقِ الْمُتَغَوِّثِ |
| لکه چې يو سړی د وبېږي او چاته چيغې وهي (چې څوک دهغه لاس ونيسي او داوبو نه يې راوباسي) نو |
| يَنْتَظِرُ دَعْوَةً تَلْحَقُهُ مِنْ أَبٍ أَوْ أُمٍّ أَوْ أَخٍ |
| دغه مړی هر وخت په دې انتظار کې وی، چې دهغه د پلار دا ړخ نه يا دهغه د مور دا ړخ نه يا دهغه د ورور |
| أَوْ صَدِيقٍ فَإِذَا |
| دا ړخ نه يا دهغه د دوست دا ړخ نه هغه ته دعا ورسېږي کله چې هغه ته (د چا دا ړخ نه دعا ورسېږي نو دا |
| لَحِقَتْهُ كَانَ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا وَإِنَّ اللهَ تَعَالَى |
| د دعا رسيدل دهغه لپاره د دنيا او د دنيا د ټولو شيانو نه خوښه وي او الله تعالى د قبر خلکو ته د دنيا د خلکو |
| لَيُدْخِلُ عَلَى أَهْلِ الْقُبُورِ مِنْ دُعَاءِ أَهْلِ الْأَرْضِ أَمْثَالَ الْجِبَالِ وَإِنَّ هَدِيَّةَ الْأَحْيَاءِ إِلَى الْأَمْوَاتِ |
| دا ړخ نه د دعا ثواب د غرېه شان (يعنې د پر ثواب جوړ رولو باندې) وررسوي او د ژوندو دا ړخ نه مړو لپاره |

(۱) أخرجه مسند أحمد ۲/۵۰۹، رقم الحديث: ۱۰۶۱۸.

الإِسْتِغْفَارُ لَهُمْ. [1]

بهترينه ډالۍ استغفار دی.

## خوشحالي دې وي هغه سړی ته چې په عملنامه کې يې استغفار ډېر وي

﴿۳۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُسْرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: طُوبٰى لِمَنْ

حضرت عبد الله بن بسر رَضِيَاللهُعَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِالسَّلَام وفرمايل: خوش بختي ده دهغه سړي لپاره

وَجَدَ فِيْ صَحِيفَتِهٖ اسْتِغْفَارًا كَثِيرًا. [2]

چا چې په خپله اعمال نامه کې ډېر استغفار وموندو (يعني قبول شوي استغفار).

﴿۳۴﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ: اللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنَ الَّذِيْنَ

حضرت عائشه رَضِيَاللهُعَنْهَا فرمايي چې نبي عَلَيْهِالسَّلَام به دا دعا کوله: ای الله! ما په هغه خلکو کې کړه چې هغه

إِذَا أَحْسَنُوا اسْتَبْشَرُوا وَ إِذَا أَسَاؤُوا اسْتَغْفَرُوا. [3]

نيکي وکړي، نو تا سې خوشحاله اوسئ، او چې کله بدي وکړي، نو استغفار وکړي.

## فاسق سړی ګناه د مچ برابر هم نه ګڼي

﴿۳۵﴾ وَعَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ حَدِيثَيْنِ:

او حضرت حارث بن سويد رَحِمَهُاللهُ فرمايي چې عبد الله بن مسعود رَضِيَاللهُعَنْهُ ما ته دوه حديثونه بيان کړل

أَحَدُهُمَا عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْآخَرُ عَنْ نَفْسِهٖ قَالَ: إِنَّ الْمُؤْمِنَ

يو خو هغه د نبي عَلَيْهِالسَّلَام نه نقل کړو او دويم يې د خپل اړخ نه بيان کړو هغه وفرمايل چې: مؤمن خپلو

يَرَى ذُنُوبَهٗ كَأَنَّهٗ قَاعِدٌ تَحْتَ جَبَلٍ يَخَافُ أَنْ

ګناهونو ته داسې ګوري لکه چې هغه د يو غرلاندې ناست وي او په ويره کې وي چې غر په هغه باندې

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الإيمان ۳۰۲/٦، رقم الحديث : ۷۹۰۵.

(۲) أخرجه سنن ابن ماجه ۱۲۵٤/۲، رقم الحديث : ۳۸۱۸، سنن النسائي ۱۱۸/٦، ۱۰۲۸۹.

(۳) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰۲/۱۱ رقم الحديث :٦۳۰۸، أخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۰۲/٤ رقم الحديث :۲۷٤٤/۳.

يَقَعَ عَلَيْهِ وَ إِنَّ الْفَاجِرَ يَرَى ذُنُوبَهُ كَذُبَابٍ مَرَّ عَلَى أَنْفِهِ

راكوزارنشي او فاجر خپلو ګناهونو ته داسې ګوري لکه مچ ته چې ګوري چې د هغه په پوزه باندې کيني

فَقَالَ بِهِ هٰكَذَا أَيْ بِيَدِهِ فَذَبَّهُ عَنْهُ ثُمَّ قَالَ :

او دا دهغې اړخ ته داسې يعنې په لاس سره اشاره وکړي او هغه پاڅي بيا حضرت عبد الله رضي الله عنه وويل

سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم يَقُول: " لَلّٰهُ أَفْرَحُ بِتَوْبَةِ عَبْدِهِ الْمُؤمِنِ مِنْ رَجُلٍ

چې ما د نبي عليه السلام نه دا اوريدلي دي چې الله تعالى د خپل مؤمن بنده په توبه باندې د هغه سړي نه

نَــزَلَ فِي أَرْضٍ دَوِيَّةٍ مَــهْلَكَةٍ

ډېر خوشحالېږي (چې هغه د خپل سفر په جريان کې) په يو داسې ويرونکې ميدان راشي چې هلته د

مَعَهُ رَاحِلَتُهُ عَلَيْهَا طَعَامُهُ وَ شَرَابُهُ

شينکي او بوټي نوم هم نه وي او ده سره چې کومه سپرلۍ ده په دې باندې د ده د خوراک څکاک سامان

فَوَضَعَ رَأْسَهُ فَنَامَ نَوْمَةً فَاسْتَيْقَظ

وي بيا (هغه د آرام لپاره) په زمکه باندې سر کېږدي او اوده شوی وي او کله چې ويخيدلو نو روسته ده

وَ قَدْ ذَهَبَتْ رَاحِلَتُهُ فَطَلَبَهَا

ته معلومه شوه چې د سامان نه ډکه د ده سپرلۍ ورکه شويده نو دا دهغې په لټون کې مصروفه شوی وي

حَتَّى إِذَا اشْتَدَّ عَلَيْهِ الْحَرُّ وَ الْعَطَشُ أَوْ مَا شَاءَ اللهُ

تردې چې د ګرمۍ د سختۍ او د تندې د سختۍ او د دې نه غير نور تکاليف چې هغه الله ته منظور وو په

قَالَ: أَرْجِعُ إِلَى مَكَانِي الَّذِي كُنْتُ فِيهِ

هغه باندې غالبه شو نو هغه دا ويلي وي چې زه به خپل ځای ته بېرته لاړ شم چېرته چې (زه اوده شوی وم)

فَأَنَامُ حَتَّى أَمُوتَ فَوَضَعَ رَأْسَهُ عَلَى سَاعِدِهِ

هلته به اوده شم، چې د خوب په حالت کې زه مړ شم. نو هغه په خپل څنګل باندې سر کيخودلو سره د

لِيَمُوتَ فَاسْتَيْقَظَ فَإِذَا رَاحِلَتُهُ

مرګ په انتظار کې اوده کېږي چې د هغه سترګې بر سيرته شي او ناڅاپه هغه وګوري چې د هغه سپرلي

عِنْدَهُ عَلَيْهَا زَادُهُ وَ شَرَابُهُ فَاللهُ

دهغه مخې ته ولاړه ده، چې په هغې باندې دهغه د خوراک سامان پروت دی، نو الله تعالی دخپل مؤمن

أَشَدُّ فَرَحًا بِتَوْبَةِ الْعَبْدِ الْمُؤْمِنِ مِنْ هَذَا بِرَاحِلَتِهِ

بنده په توبه باندې ددې سړی نه هم ډېر خوشحالېږي چې خپله سپرلي خوراک څکاک سامان موندلو

وَ زَادِهِ ". [۱]

باندې خوشحالېږي. مسلم رَحِمَهُ اللهُ په دې دواړو روايتونو کې فقط دا روايت نقل کړيدی کوم چې ابن

الْمَرْفُوع إِلَى رَسُول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُ فَحَسْبُ

مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه نقل کړی (په کوم کې چې دمؤمن بنده دتوبې دوجې نه دالله تعالی د

خوشحاليدو بيان دی) او دا روايت يې ندی نقل کړی کوم چې ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل اړخ نه بيان کړی

وَ رَوَى الْبُخَارِيّ الموقوفَ عَلَى ابنِ مَسْعُود أَيْضاً.

او بخاري رَحِمَهُ اللهُ دا روايت هم نقل کړی دی، کوم چې ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دخپل طرف نه بيان کړيدی.

**توضيح: تحت الجبل:** يعنې نيک سړی لړه ګناه هم دومره درنده ګڼي چې ګويا په هغه باندې غرا غورځي ليکن فاسق او فاجر سړی ګناه دومره بې وزنه ګڼي لکه د يو چا په پوزه باندې چې مچ کيني او هغه د لاس په اشاره سره والوزولو، دغه شان ګناه باندې خلک بيا هميشوالی کوي، تردې چې د کفر حد ته نزدې شي، غوره ګناهګار هغه دی چې هغه ته د ګناه احساس وي. (المرقات: ۵/۱۹۰)

## په توبې سره توبه کونکی ګناهګار محبوب جوړ شي

﴿۳۶﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْعَبْدَ الْمؤمنَ

او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت کوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: الله تعالی هغه بنده مؤمن لره ډېر دوست

المفتَّنَ التَّوَّابَ. [۲]

ساتي چې هغه په ګناه کې اخته کېږي او ډېره توبه کوي.

**توضيح: المفتن:** يعنې په آزميښتونو او فتنو او ګناهونو کې ککړ سړی چې کله په ژړا ژړا باندې

---

(۱) أخرجه صحيح المسلم ۹۲/٤، رقم الحديث: ۷۱۳۱.

(۲) أخرجه مسند أحمد ۴۲/۲، رقم الحديث: ۶۰۵.

توبه کوي، الله تعالی هغه لره محبوب ساتي. (المرقات: ۵/۱۹۳)
ملاعلی قاري د المفتن درې درجې لیکلي دي: اوله درجه: دا چې په ګناهونو کې راګیر وي. دویمه درجه دا چې په غفلتونو کې پروت وي، دریمه درجه دا چې د مشاهدي په مقابله کې د حجاباتو (په پردو) کې پروت وي. نو یا خو د سیئاتو ښکار دی، یا د غفلاتو ښکار دیو یا د حجاباتو ښکار دی. په دې درجه کې چې کله مؤمن وي، هغه خپل ځان قصور وار ګڼي، نو د تکبر او غرور نه ځان ساتي او د ناز په ځای په نیاز کې اوسیږي. **التواب:** ډېر توبه کونکی، کله دا توبه د سیئاتو نه طاعاتو اړخ ته وي. کله دا رجوع د غفلاتو نه ذکریاتو اړخ ته وي. او کله دا رجوع د حجاباتو نه مشاهداتو اړخ ته وي. په درې واړو صورتونو کې دا سړی د الله تعالی محبوب جوړ شي. دلته د ګناهونو تلقین ندی بلکې د توبې او استغفار ترغیب دی. په ځوانۍ کې د توبې لوی شان دی.

*درجوانی توبہ کردن شیوہ پیغمبراں ۞ وقت پیری گرگ ظالم ہم شود پرہیزگار*

## په توبې کولو سره ګناه وینځل کیږي

| |
|---|
| ﴿۳۷﴾ وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَا أُحِبُّ |
| حضرت ثوبان رضي الله عنه فرمايي چې ما نبي عليه السلام نه اوريدلي چې نبي عليه السلام به فرمايل: زه خوښوم |
| أَنَّ لِي الدُّنْيَا بِهٰذِهِ الْآيَةِ: ﴿يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا﴾ الْآيَةَ فَقَالَ رَجُلٌ: |
| دا آیت: ﴿يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا﴾ الأية د ټولې دنیا د حصول نه نو یو کس وویل |
| فَمَنْ أَشْرَكَ ؟ فَسَكَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| چې کوم سړي شرک وکړو (آیا هغه هم ددې آیت د زیرې حقدار دی؟) نبي عليه السلام (لږ ساعت) چپ شو |
| ثُمَّ قَالَ: أَلَا وَمَنْ أَشْرَكَ |
| بیا نبي عليه السلام و فرمایل: پوهه شئ کوم سړي چې شرک وکړو (او په خپل ژوند کې یې توبه وکړه او توبه |
| ثَلَاثَ مَرَّاتٍ.[1] |
| یې قبوله شوه نو هغه هم ددې آیت د زیرې حقدار دی) دا خبره نبي عليه السلام درې ځل وفرمایل. |

(۱) أخرجه مسند أحمد ۵/۲۷۵، رقم الحديث: ۲۲۴۱۶.

**توضیح**: **الا ومن اشرك**: د حرف تنبیه سره حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د څه دمې خبرو سره په جواب کې وفرمایل: چې شرک په شان د غټې ګناه هم څوک توبه وباسي نو شرک هم بخښلی کېږي ګویا چې دې آیت انسان نا امیده پرې نخودلو. (المرقات: ۵/۱۹۴)

هم دا وجه ده چې دې آیت ته ارجی الآیات في القرآن ویلی شوی دی. حضرت علي رضي الله عنه فرمایلي دي:

ایا صاحب الذنب لا تقنطن ✿ فان الاله رئوف رئوف

ولا ترحلن بلا عدة ✿ فان الطریق مخوف مخوف

نومید هم نه باش که رندان باده نوش ✿ ناګاه بیک خروش بمنزل رسیده اند

ملا علی قاري رحمه الله دلته یو اشکال کړیدی چې د مشرک مغفرت څنګه کیدلی شي. حال دا دی چې د قرآن آیت ﴿إِنَّ اللهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ﴾ اعلان کوي چې د مشرک مغفرت نشته دی. بیا هغه د جواب ورکولو کوښښ کړی دی یو جواب یې دا ورکړی دی چې مشرک هم توبه وباسي نو هغه لپاره هم د الله د رحمت نه نا امیده کېدل په کار نه دي. بیا ملا علی قاري دا جواب رد کړو چې دا خو یو بدیهی سوال او جواب دی. ددې ضرورت صحابو ته نه شو پیښیدلی خبره بل څه ده. بیا علامه طیبي رحمه الله هم د جواب ورکولو کوښښ کړی دی او لیکلی یې دي چې نا امیدي منع ده. ملا علی قاری د دی جواب یې رد کړي دی او بیا یې لیکلي دي چې په جواب کې دا ویل ممکن دي چې د پوښتنه کونکې په سوال کې (فمن اشرك؟) نه مراد هغه خلک وي چې هغه په هغه وخت کې په شرک باندې وو. د هغوی باره کې صحابې پوښتنه وکړه چې هغه هم نا امیده نه وي؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم په جواب کې د ابهام نه کار واخستلو او وفرمایل چې یاد وساتئ کوم خلک چې دې وخت کې په شرک کې اخته دي. د هغوي معامله تر وسه مبهمه ده. یا خو به هغه خلک د توبې په وجه معاف کړی شي او که چرې توبه یې وو نکړه نو په عذاب کې به اخته شي. لنډه دا چې توبه د هغه مشرکانو لپاره هم فائده منده ده خو دا معلومه نه ده چې دا خلک به توبه وکړې که نه. لهذا د دوې معامله مبهمه ده. (المرقات: ۵/۱۹۴)

| |
|---|
| ﴿۳۸﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللهَ تَعَالَى |
| حضرت ابو ذر رضي الله عنه راوي دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: الله تعالی د خپل بنده (په ګناهونو کې چې کوم |
| لَيَغْفِرُ لِعَبْدِهِ مَا لَمْ يَقَعِ الْحِجَابُ. قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ وَ |
| غواړي) هغه بښي تر څو چې د بنده او الله د رحمت (تر مینځ پرده رانه شي. صحابو وویل: یارسول الله |

مَا الْحِجَابُ ؟ قَالَ أَنْ تَمُوتَ النَّفْسُ وَ هِيَ مُشْرِكَةٌ.[۱]

پرده څه شی ده؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل: دا چې سړی مړ شي په حالت د شرک کولو کې.

﴿۳۹﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَنْ لَقِيَ اللّٰهَ

حضرت ابوذر رضي الله عنه راوي دی چې نبي عليه السلام وفرمايل څوک چې مخ شي د خدای سره په داسې حال

لَا يَعْدِلُ بِهِ شَيْئًا فِي الدُّنْيَا

کې (يعني په داسې حال کې مړ شي) چې هغه په دنيا کې د الله په شان بل څوک د هغه پشان نه مني

ثُمَّ كَانَ عَلَيْهِ مِثْلُ جِبَالٍ ذُنُوبٌ

(يعني شرک کې اخته نه وی) نو که د مرګ نه وروسته په هغه باندې د غرهو مره ګناهونه وي نو الله تعالی

غَفَرَ اللّٰهُ لَهُ.[۲]

(که چيرې وغواړي نو) د هغه ټول ګناهونه به وبخښي.

**توضيح: لا يعدل:** د عدل نه دي چې هغه د برابرۍ په معنی کې دي دلته شرک مراد دی څرنګه چې قرآن کې آيت دی ﴿ ثُمَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ ﴾ ای يشرکون: مشرک هم خپل معبود د الله تعالی سره برابر ودروي. (المرقات ۵/۱۹۵)

## چا چې توبه وکړه ګويا هغه ګناه نه ده کړې

﴿۴۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : التَّائِبُ مِنَ الذَّنْبِ

او عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې نبي عليه السلام فرمايلي: ګناهونو نه (صحيح او پخه) توبه

كَمَنْ لَا ذَنْبَ لَهُ . رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ وَقَالَ تَفَرَّدَ بِهِ النَّهْرَانِيُّ

کوونکې سړی د هغه چا پشان دی چې هغه ګناه نه وي کړې. بيهقي ويلي چې دا روايت صرف نهراني

وَ هُوَ مَجْهُولٌ . وَ فِي ( شَرْحِ السُّنَّةِ ) رَوَى عَنْهُ

نقل کړي او دا مجهول دی. او بغوي رحمه الله په شرح السنة کې د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه روايت

---

(۱) أخرجه مسند أحمد ۲۷۵/۵، رقم الحديث : ۲۲۴۱۶.

(۲) أخرجه مسند أحمد ۱۷۴/۵، رقم الحديث : ۲۱۵۶۲.

| مَوْقُوفًا قَالَ : النَّدَمُ تَوْبَةٌ |
| --- |
| موقوف نقل کړی دی. چې هغوي ویلي دي (گناهونه باندې ملامتیا او) پښیمانتیا مطلب توبه ده |
| و التَّائِبُ كَمَنْ لَا ذَنْبَ لَهُ.(۱) |
| او توبه کونکې سړی د هغه چا پشان دی چې هغه گناه نه وي کړي. |

**توضیح**: دا ده دې امت ډیر غټ فضیلت دی چې په ژبه سره توبه کولو او زړه نه د گناه شوق ویستلو سره سړی داسې پاک شي گویا هغه گناه کړي نه ده. حال دا دی چې یهودو او نصاراوو لپاره د توبې کولو ډیر غټ شرطونه وو. ده دې امت د توبې لپاره فقط کلکه اراده او د نیت د اخلاص ضرورت دی. ده دې نه بغیر توبه داسې ده څنگه چې شاعر ویلي دي:

*سبحه بر کف توبه بر لب دل پُر از ذوق گناه ۞ معصیت را خنده می آید بر استغفار ما*

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد و على آله و أصحابه أجمعين



(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱٤۱۷/۲ رقم الحديث : ٤۲۵۰، شرح السنة ۹۲/۵ ، رقم الحديث : ۱۳۰۷.

# باب سعة رحمة الله
## الله تعالی د فراخه رحمت بیان

قال الله تعالی: ﴿كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلَى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ﴾ (سورة الانعام آیت: ۱۵٤)

وقال الله تعالی: ﴿إِنَّ رَبَّكَ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ﴾ (سورة النجم آیت: ۳۲)

د مشکوة شریف په اکثرو نسخو کې دلته صرف باب دی څه عنوان نشته. ځینې شارحینو پاس ذکر شوی عنوان لګولی دی چې هغه ابواب الاستغفار سره ډیر مناسب دی.

## د الله رحمت د هغه په غضب غالب دی

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَمَّا قَضَى اللهُ |
| حضرت ابو هریره رضي الله عنه راوي دي چې نبي علیه السلام فرمایلی دی: الله تعالی چې کله شروع وکړه د |
| الْخَلْقَ كَتَبَ كِتَابًا فَهُوَ عِنْدَهُ فَوْقَ عَرْشِهِ: |
| دمخلوقاتو پیدا کولو نو یو کتاب یې ولیکو هغه کتاب الله تعالی سره عرش د پاسه دی چې په کې لیکلي |
| إِنَّ رَحْمَتِي سَبَقَتْ غَضَبِي. وَ فِي رِوَايَةٍ |
| شوي چې بېشکه زما رحمت زما په غضب مخکې والې کړی دی. یو بل روایت کې دا الفاظ ذکر دي: |
| غَلَبَتْ غَضَبِي ". [1] |
| چې زما رحمت زما په غضب غالب دی. |

**توضیح:** د الله رحمت په ټول کائنات کې شته. که د خداي تعالی رحمت د عالم په وجود کې داخل نه وې نو نن چې کوم څېزونه نفع ورکونکې ښکاري. دا ټول څیزونه به انسان لپاره ضرر رسونکې دي. نو دغه شان چې ترڅو د الله د رحمت نوم پاتې وي قیامت به نه راځې خو کله چې د الله تعالی رحمت د دنیا نه پورته شي او نه خانه کعبه پاتې شي او نه د قرآن حروف پاتې وو او نه په دنیا کې د الله الله کولو والا کوم یو انسان پاتې شو نو هغه وخت به بې له څه وخت تېرولو د عالم وجود ختم شي. د رحمان عام رحمت د رحیم په خاص رحمت باندې غالب دي او د رب العالمین عام ربوبیت د هغه د خاص ربوبیت نه ډیر عام دی. په عالم کې د کلک نه کلک درنده زمري دي خو د زمرې په زړه کې

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۲۲/۱۳ رقم الحديث: ۷٤۰٤، أخرجه مسلم في صحيحه ۲۲۰۷/٤ رقم الحديث: ۲۷۵۱/۱٤.

چې کوم رحمت د خپلو بچو سره دی. هغه د لیدلو او د تعجب قابل دې. د مار ښشان زهرجن ځناور ته وګورې او د سپي ښشان خسیس ځناور ته وګورې هغه خپلو بچو باندې څومره شفیق او مهربانه دې. پیشو ته لږ وګورې هغه خپل واړه بچي د دښمنانو نه د ساتلو لپاره د حفاظت په غرض څرنګه په خله کې ګرځوي. او د رحمت د دې غلبې اثر دې چې الله تعالی اوبه خوږې او یخې کړې دې یا یې میوې خوږې او خسته کړې دې. په ګلونو کې یې خوشبو کیښوده او د دنیا ټول نعمتونه یې د انسان او ځناور او کافر او مسلمان ټولو لپاره عام کړل. د دې رحمت اثر دې چې د جنت دروازې او طبقې د دوزخ د طبقاتو نه ډیر دې. لږ وګورې چې د انسان خطاګانو ته په کتلو سره د قدرت باوجود هم الله تعالی سمدستې مواخذه نکوي دا د همدغې رحمت اثر دې. بیا د رحمت دا غټه برخه الله تعالی د خپل ځان سره عرش د پاسه کیښودله چې د رحمت دا دریاب هر ساعت د هغې مخې ته وې او د دې لوې رحمت او دولت د الله تعالی له اړخ نه ډیر اکرام او عزت کیږي. بیا خوندوره خبره دا چې د رحمت دا ټولې ښودنې فقط د یو رحمت سیورې دې. ۹۹ رحمتونه به قیامت کې ښکاره کیږي. (المرقات :۵/۱۹۷)

## د الله تعالی د رحمت فراخوالې

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسلم : إِنَّ لِلّٰهِ مِائَةَ رَحْمَةٍ |
| او ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل الله تعالی سره سل رحمتونه دی الله تعالی په |
| أَنْزَلَ مِنْهَا رَحْمَةً وَاحِدَةً بَيْنَ الْجِنِّ وَ الْإِنْسِ وَ الْبَهَائِمِ وَ الْهَوَامِّ فَبِهَا |
| دې کې یو رحمت پیریانو، انسان، څارویو او زهرجن ځناورو کې اچولې نو د دې یو رحمت په وجه هغه |
| يَتَعَاطَفُوْنَ وَ بِهَا يَتَرَاحَمُوْنَ وَ بِهَا تَعْطِفُ الْوَحْشُ |
| په خپلو کې سره یو شان والې لرې او هغې په وجه هغه په خپلو کې رحم کوي او د دې په وجه ځنګلي ځناور |
| عَلَى وَلَدِهَا وَ أَخَّرَ اللّٰهُ تِسْعًا وَ تِسْعِيْنَ رَحْمَةً يَرْحَمُ بِهَا عِبَادَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. [1] |
| د خپلو بچو سره مینه لرې او ۹۹ رحمتونه الله پریښودې دې چې رحم کوي به خپلو بندګانو په ورځ د قیامت |
| وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ عَنْ سَلْمَانَ نَحْوُهُ وَفِي آخِرِهِ قَالَ: فَإِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ أَكْمَلَهَا بِهٰذِهِ الرَّحْمَةِ. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۳۱/۱۰ رقم الحديث :۶۰۰۰، أخرجه مسلم في صحيحه ۲۲۰۸/۲ رقم الحديث :۲۷۵۲/۱۷.

﴿۳﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَوْ يَعْلَمُ الْمُؤْمِنُ

او ابو هریره رضي الله عنه راوي دي چې نبي علیه السلام فرمایلي دي: که مؤمن په دي خبر شي چې د الله سره

مَا عِنْدَ اللهِ مِنَ الْعُقُوبَةِ مَا طَمِعَ بِجَنَّتِهِ أَحَدٌ

څومره عذاب دی نو بیا به یو سړی هم د هغې د جنت امید ونلري (یعني د عذاب د ډیر والي په وجه به د جنت

وَ لَوْ يَعْلَمُ الْكَافِرُ مَا عِنْدَ اللهِ مِنَ الرَّحْمَةِ مَا قَنَطَ

نه نا امیده کړي) او که کافر په دې خبر شي چې د الله رحمت څومره دي نو بیا به څوک نا امیده نه شي

مِنْ جنته أَحَدٌ [۱]

د جنت دده نه.

﴿٤﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْجَنَّةُ أَقْرَبُ إِلَى أَحَدِكُمْ مِنْ

او ابن مسعود رضي الله عنه راوي دي چې نبي علیه السلام و فرمایل جنت په تاسو هر یو سړي ته د بوټ د مزو

شِرَاكِ نَعْلِهِ وَالنَّارُ مِثْلُ ذٰلِكَ. [۲]

په شان نزدې دي او دوزخ هم دغه شان دی.

## د الله تعالی عزت ور کول

﴿٥﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " قَالَ رَجُلٌ لَمْ يَعْمَلْ خَيْرًا

او ابو هریره رضي الله عنه راوي دي چې نبي علیه السلام و فرمایل: یو سړی وو چې هغه کله هم یوه نیکي نه وه

قَطُّ لِأَهْلِهِ وَ فِي رِوَايَةٍ أَسْرَفَ رَجُلٌ عَلَى نَفْسِهِ

کړي. او په بل روایت کې دي چې په خپل ځان یې ظلم کړي وو یعني ډېره ګناهونه یې کړي وو چې هغې د

فَلَمَّا حَضَرَهُ الْمَوْتُ أَوْصَى بَنِيهِ إِذَا مَاتَ فَحَرِّقُوهُ

مرګ وخت نزدې شو نو هغې خپل زامنو ته وصیت وکړو چې هغه کله مړ شي نو ویسیزی او نیمه ایره یې په

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۰۱/۱۱ رقم الحديث: ٦٤٦٩، أخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۰۹/٤ رقم الحديث: ۲۷۵۵/۲۳.

(۲) أخرجه صحيح البخاري ۲۳۸۰/٥، رقم الحديث: ٦١٢٣.

| |
|---|
| ثُمَّ اذْرُوا نِصْفَهُ فِي الْبَرِّ وَ نِصْفَهُ فِي الْبَحْرِ فَوَ اللهِ لَئِنْ |
| ځنګل کې والوزوئ او نیمه ویره په دریاب کې لاوو کړئ ځکه چې قسم دې په خدای که الله تعالی د هغې |
| قَدَرَ اللهُ عَلَيْهِ لَيُعَذِّبَنَّهُ عَذَابًا |
| سره حساب وکړو او په حساب کې یې ورسره سختې وکړه نو هغه به هغې داسې عذاب ورکړي چې ترننه |
| لَا يُعَذِّبُهُ أَحَدًا مِنَ الْعَالَمِينَ فَلَمَّا مَاتَ |
| پورې به یې په خلکو کې هیچاله هم نه وي ورکړی نو هرکله چې هغه سړی مړشو نو دهغه زامنو د هغې |
| فَعَلُوا مَا أَمَرَهُمْ |
| وصیت باندې عمل وکړو (هغه یې وسوزلو او نیمه ایره یې په ځنګل کې والوزوله او نیمه ایره یې په دریاب |
| فَأَمَرَ اللهُ الْبَحْرَ فَجَمَعَ مَا فِيهِ وَ أَمَرَ الْبَرَّ |
| کې لاهو کړه) الله تعالی دریاب ته (د هغه د ایرې د را جمع کولو حکم وکړو) او دریاب هغه ایره چې |
| فَجَمَعَ مَا فِيهِ |
| په کې لاوو کړې شوې وه را جمع یې کړه او ځنګل ته یې حکم وکړو او هغه ټوله ایره یې هم را جمع کړه |
| ثُمَّ قَالَ لَهُ : لِمَ فَعَلْتَ هٰذَا ؟ قَالَ : |
| بیا چې دا ایره جمع شوه نو الله تعالی د دې سړي نه پوښتنه وکړه چې داسې کار دې ولې وکړو نو هغه جواب |
| مِنْ خَشْيَتِكَ يَا رَبِّ وَ أَنْتَ أَعْلَمُ |
| ورکړو چې ای پروردګاره: ستا د ویرې نه. حقیقت د حال خو تا ته ښه معلوم دی. الله تعالی دا واوریدل |
| فَغَفَرَ لَهُ ". (۱) |
| او بښنه یې ورته وکړه. |

**توضیح:** دهغې سړي دا خیال و چې کو سړی خښ کړې شې نو عذاب فقط به هغه وې. نو ځکه د خپلې بدعملۍ د ویرې په وجه هغې غوښتل چې د هغې د وجود شته والي ختم شي. دا کافر نه وو. فقط دیر ګناه ګار وو. ځکه هغه وصیت وکړو چې ما وسوزوې او بیا ایره پې دریاب کې لاوو کړئ او په

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۱۲/۱۱ رقم الحديث: ۶۴۸۱، أخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۰۹/۴ رقم الحديث: ۲۷۵۶/۲۴.

دشته کې خوره وره کړي. نن سبا هندوان هم په دې باندې عمل کوي خو هندوانو له پوهه پکار ده چې دا سړی هندو کافر نه وو. بلکه یو گناه گار مسلمان وو. بیا د الله تعالی د ویرې نه د هغې زړه ډک وو. نو په هغې باندې خپل قیاس کم عقلي ده. (المرقات: ۵/۲۰۲)

**لئن قدر الله:** پوښتنه دا ده چې دې سړي چې دا کار کووو نو دا جمله یې هم ویلې وه چې د هغې نه اندازه لگې چې هغې د الله په قدرت کې شک هم کووو. دا خو کفر دې؟ د دې جواب دا دې چې که لئن قدرالله مطلب دا وې چې هغه دا ویل غوارې که الله د هغې مواخذه وکړه او د الله په قهر کې هغه راگیر شونو د هغې به خیر نه وې. په دې باندې خو څه اشکال نشته. که دې سړي د الله قدرت کې شک کړې وې نو د دې اشکل جواب دا دې چې دا سړی صرف د الله په وجه مغلوب الحال او مغلوب العقل شوې وو. په داسې حال کې داسې کلمو باندې مواخذه نه بلکه د یو لېونې لیونتوب وو. چې د هغې قانون او قاعدې سره څه تعلق نشته. (المرقات: ۵/۲۰۳)

## د الله تعالی رحمت د مور د شفقت نه ډیر دی

﴿٦﴾ وَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ : قَدِمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ سَبْيٌ

او عمر بن الخطاب رضي الله عنه فرمایي چې یو ځل نبي علیه السلام ته څه زندانیان راوستل شو چې په هغې یوه

فَإِذَا امْرَأَةٌ مِنَ السَّبْيِ قَدْ تَحَلَّبَ ثَدْيُهَا

ښځه هم وه (او د پیو د ډیروالي په وجه) د هغې د سینو نه پۍ روان وو. (ځکه د هغې زوې د هغې سره نه

تَسْعٰى إِذَا

وو چې د هغې پۍ یې څکلې وې) هغه د خپل پیو ور کولو په وجه اخوا دیخوا منډې وهلې نو هر کله به چې

وَجَدَتْ صَبِيًّا فِي السَّبْيِ أَخَذَتْهُ فَأَلْصَقَتْهُ بِبَطْنِهَا

هغې په زندانیانو کې یو ماشوم ولیدو (نو د خپل بچې په مینه کې) یې هغه د خیټې سره جوخت کړو او

وَ أَرْضَعَتْهُ فَقَالَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أَتُرَوْنَ هٰذِهٖ

پۍ به یې ورکړل نبي علیه السلام چې دا وکتل نو مونږ ته یې وفرمایل چې ستاسو په خیال دا ښځه به خپل

طَارِحَةً وَلَدَهَا فِي النَّارِ ؟

ماشوم اور ته گوزار کړي؟ (یعني چې دا پردي بچې سره دومره مینه کوي نو آیا دا به خپل ځوي اور ته

| فَقُلْنَا : لَا وَ هِيَ تَقْدِرُ عَلَى أَنْ لَا تَطْرَحَهُ |
|---|
| ګوزار کړي؟مونږ ورته وويل هيڅري نه، خو په شرط د دې چې هغه په نه ګوزارولو قدرت لرونکې وي |
| فَقَالَ : لَلّٰهُ أَرْحَمُ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمايل چې دا ښځه چې د خپل بچې سره څومره مينه کوي الله تعالى د خپل (مؤمن) |
| بِعِبَادِهِ مِنْ هٰذِهِ بِوَلَدِهَا. (۱) |
| بندګانو سره د دې نه څوچنده ډېره مينه کوي. |

**توضيح:** السبي: د جهاد په ميدان کې د جنګ دوران کې چې کوم سړي يا ښځې قيد کړي شي نو هغې ته سبي وايي. (المرقات: ۵/۲۰۶)

**تحلب** باب **تفعل** نه دې حلب پيو ته وايي مطلب دا چې پې د پيو د ډېروالې په وجه او د اخپل ځوي د جدا والې په وجه پې د سيني نه روان وو. ځکه هغه کوم يو ماشوم هم د سيني سره لګول غوښتل. ده دې لوې شفقت او مينه او رحم و ترحم ته په کتلو سره نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې الله تعالى په خپلو بنده ګانو باندې ده دې هم ډېر مهربانه دې. طارحة: د ګوازارولو په معنى دې.

## د اعتدال اختيارولو حکم

| ﴿۷﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَنْ يُنْجِيَ |
|---|
| او ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې په تاسو د هغه عمل هغه (او ر نه) خلاص |
| أَحَدًا مِنْكُمْ عَمَلُهُ |
| نه کړي (يعني فقط به عمل ګټور نه وي بلکه کله چې د الله تعالى مهرباني او د هغه رحمت هم ورسره |
| قَالُوا : وَلَا أَنْتَ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ |
| شريک شي نو بيا به ګټور روي) صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وويل آيا تا ته به هم (ستا د عمل باوجود هم به پوره |
| قَالَ : وَلَا أَنَا إِلَّا أَنْ يَتَغَمَّدَنِي اللهُ مِنْهُ بِرَحْمَتِهِ |
| خلاصي نه در کولې کېږي) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل نه، مګر دا الله تعالى ما د خپل رحمت سيوري لاندې کړي |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۶/۱۰؛ رقم الحديث ۵۹۹۹، أخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۰۹/۴ رقم الحديث ۲۷۵۴/۲۲.

| فَسَدِّدُوا وَ قَارِبُوا |
|---|
| نو ځکه تاسو خپل عملونه د غشي پشان نيغ کړئ په عملونو کې اعتدال اختيار کړئ (يعني هيڅ عمل د |
| واغْدُوا وَ رُوْحُوْا |
| کمې يا ډيروالي سره مه کوئ) د ورځې اوله حصه کې هم عبادت کوئ او آخري حصه کې هم عبادت کوئ |
| و شيءٌ من الدُّلْجَةِ و القَصدَ القصدَ |
| او شپه کې هم عبادت کوي (يعني د تهجد مونځ کوي) او عبادت کې اعتدال اختيار کړئ، اعتدال اختيار |
| تَبْلُغُوْا. |
| کړئ، نو خپل منزل ته به ورسېږئ. |

**توضيح: ولا انا:** صحابه کرامو چې کله واوريدل چې نبي عليه السلام په ډير عام الفاظو سره وفرمايل چې هيڅ يو سړی په عمل سره جنت ته نشي تلې. په دې باندې هغوی د نبي کريم صلى الله عليه وسلم باره پخپله د نبي عليه السلام باره کې پوښتنه وکړه. نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل معامله او قانون زما هم همدغه دې خو زما رب ما په خپل رحمت کې دننه کړې ځکه زما معامله کې يقين دې چې رحمت راکړې شوې دې. دې مفهوم د مخې ملا علی قاري رحمه الله وايي چې دلته استثناء منقطعه ده. (المرقات ۵/۲۰۸)

**فسددوا:** يعني قول، فعل، علم، عمل، عقيده سمه ساته او لار هم نيغه ساته. (المرقات ۵/۲۰۸)

**وقاربوا:** يعني نزديکت د الله تر لاسه کړې او ډير په عبادت کې کموالې مه کوي. (المرقات ۵/۲۰۸)

**واغدوا وروحوا:** يعني سحر او مابنام او د شپې په څه حصه کې عبادت کوې. (المرقات: ۵/۲۰۸)

**الدلجة:** په دال باندې ضمه ده لام ساکن دې د شپې څه حصې ته وايې. دا دې آيت طرف ته اشاره ده:

**﴿وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ﴾** (سورت هود الايه: ۱۱٤)

**القصد القصد اى الزموا التوسط في العبادة:** يعني عبادت کې اعتدال اختيار کړې او د زياتې او کمې نه ځان وساتې. خپل منزل ته به ورورسئ. (المرقات: ۵/۲۰۹)

| ﴿۸﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يُدْخِلُ أَحَدًا مِنْكُمْ عَمَلُهُ الْجَنَّةَ |
|---|
| او جابر رضي الله عنه راوي دې چې نبي عليه السلام وفرمايل تاسو کې به څوک د هغه عمل نه جنت ته داخل نه |

وَلَا يُجِيرُهُ مِنَ النَّارِ وَلَا أَنَا

کړي او نه به يې دوزخ ته داخل کړي او نه به زما عمل ما جنت ته داخل کړي ، هو ! هغه څوک چې دالله

إلا برحمةِ الله . [1]

په رحمت سره وي.

## د يو نيکۍ ثواب څو چنده زيات

﴿۹﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: " إِذَا أَسْلَمَ الْعَبْدُ

او ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې کوم يو بنده اسلام قبول کړي او د هغه

فَحَسُنَ إِسْلَامُهُ

اسلام ښه وي (يعني د نفاق نه پاک وي) چې د هغه پټ او ښکاره يو شان وي نو د هغه هغه ټول گناهونه لرې

يُكَفِّرُ اللهُ عَنْهُ كُلَّ سَيِّئَةٍ كَانَ زَلَفَهَا وَ كَانَ بَعْدَ الْقِصَاصِ :

کوي چې هغه د اسلام نه مخکې کړي وو. او د هغې نه وروسته هغه ته بدله ورکړی کېږي (چې د هغې

الْحَسَنَةُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا إِلَى سَبْعِمِائَةِ ضِعْفٍ إِلَى أَضْعَافٍ كَثِيرَةٍ

حساب دا دی چې) د يو نيکۍ په بدل کې ۱۰ نه تر ۷۰۰ پورې نيکۍ ليکلې کېږي بلکې تر ۷۰۰ نه هم زيات

وَ السَّيِّئَةُ بِمِثْلِهَا إِلَّا أَنْ يَتَجَاوَزَ اللهُ عَنْهَا ". [2]

او بدۍ بدله همغه وي (يعني چې څو مره گناه کوي همغه ليکلی کېږي) بلکه الله تعالی هغه هم بخښي.

**توضيح:** يعنې اسلام راوړلو سره مخکنې گناهونه وينځلې کيږي. **وكان بعد اى بعد الاسلام او بعد محو الذنوب.** (المرقات :۵/۲۰۹)

**القصاص:** مساوات د برابرۍ په معنې دې دلته مراد بدله او اجر ملاويدل دې دې اجراو بدله تفصيل په بله جمله کې دې داد خدای د فراخه رحمت ثمره ده چې تر څو پورې گناه نوي شوې فقط په اراده کولو سره نه ليکلې کېږي او د کولو نه پس چې ليکلې کېږي نو ديو عمل په بدل کې ليکلې کېږي

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۷۱/۴ رقم الحديث .۲۸۱۷/۷۷.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۹۸/۱ رقم الحديث :۴۱.

او یو بدی باندی یو ه سزاده. په نیکیو کې تر لسو پورې زیاتول قانون دی. تر ۷۰۰ پورې زیاتوالی دی تر یو لاکه پورې شته او تر (۷) لاکه پورې یو ضعیف حدیث کې شته چې هغه د مجاهدینو باره کې دی نو نهه څلویښت کروړه پورې د تبلیغې تولنې سره دی چې هغه مستند نه دی. او باقي ﴿وَاللَّهُ يُضَاعِفُ لِمَن يَشَاءُ﴾ کې د ضعف کولو اجمالي ذکر دی د دې اندازه څوک نه شي کولې او نه اندازه کول په کار دي شریعت دا لنده پرېښې ده نو لنډ استعمال په کار دی د تعین لپاره د شارع نص ضروري دی.

## د نیکۍ ارادې ثواب شته

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللهَ كَتَبَ الحسناتِ |
| او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: الله تعالی نیکۍ او بدۍ ولیکلې (یعنې |
| و السيئاتِ : فَمَنْ |
| فرشتو ته یې حکم وکړو چې هغه په لوح محفوظ کې د نیکیو او بدۍ باره کې دا تفصیل ولیکي چې) کوم |
| هَمَّ بِحَسَنَةٍ فَلَمْ يَعْمَلْهَا |
| سړی د نیکۍ اراده وکړي او په هغې عمل ونه کړي (یعنې د ارادې کولو باوجود هم په هغه نیکۍ د کولو |
| كَتَبَهَا اللهُ لَهُ عِنْدَهُ حَسَنَةً كَامِلَةً فَإِنْ هم بعملها |
| توان ونه لري) نو الله تعالی د هغه نیکۍ پوره یو ثواب لیکي او چې سړی د نیکۍ کولو اراده وکړي او هغه |
| كَتَبَهَا اللهُ لَهُ عِنْدَهُ عَشْرَ حَسَنَاتٍ إِلَى سَبْعِمِائَةِ ضِعْفٍ |
| نیکي وکړي نو الله تعالی ورله د لسو نه تر اووه سوه بلکه د هغې نه هم ډېرې نیکۍ لیکي (یعنې په خپلو |
| إِلَى أَضْعَافٍ كَثِيرَةٍ |
| بندګانو کې چې چا له هم وغواړي په خپل مهربانۍ سره د اخلاص د نیکۍ کولو په پوره شرطا و ادب کولو |
| وَ مَنْ هَمَّ بِسَيِّئَةٍ |
| سره د هغې نه هم زیات ثواب لیکي) او کوم سړی چې د بدۍ اراده وکړي او بیا د (الله د وېرې نه) هغه |
| فَلَمْ يَعْمَلْهَا كَتَبَهَا اللهُ عِنْدَهُ حَسَنَةً كَامِلَةً فَإِنْ هُوَ هَمَّ فَعَمِلَهَا |
| ګناه ونکړي نو الله تعالی ورله یو ه پوره نیکي لیکي او چا چې د بدۍ اراده وکړه او بیا یې هغه بدی وکړه نو |

| كَتَبَهَا اللهُ لَهُ سَيِّئَةً وَاحِدَةً ".(۱) |
|---|
| د هغې لپاره يو ګناه ليکي. |

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## دبدۍ نه وروسته د نیکۍ کولو ناشنا مثال

| ﴿۱۱﴾ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ مَثَلَ الَّذِي يَعْمَلُ السَّيِّئَةَ |
|---|
| او عقبه ابن عامر رضي الله عنه راوي دې وايي چې نبي علیه السلام وفرمایل: مثال د هغه کس چې بدي کوي |
| ثُمَّ يَعْمَلُ الْحَسَنَاتِ كَمَثَلِ رَجُلٍ كَانَتْ عَلَيْهِ دِرْعٌ ضَيِّقَةٌ |
| او بیا نیکۍ شروع کړي داسې دې چې دیو سړي په بدن باندې تنګه زغره وي او دهغې کړيو دهغې (بدن) |
| قَدْ خَنَقَتْهُ ثُمَّ عَمِلَ حَسَنَةً فَانْفَكَّتْ حَلْقَةٌ |
| راغونډ کړې وي بیا هغه نیکي وکړي او دهغې د زغري یوه کړۍ کولاوشي تردې چې (همدغه شان) د |
| ثُمَّ عَمِلَ أُخْرَى فَانْفَكَّتْ أُخْرَى حَتَّى تَخْرُجَ إِلَى الْأَرْضِ.(۲) |
| هغې کړۍ کولاوېږي او سسته شي او په زمکه را وغرزېږي. |

**توضیح: درع:** زغري ته وايي، **ضیقة:** په معنی د تنګي سره. **خنقته:** چې زغري د هغه مرۍ کلکه نیولې وي یعني زغري د هغه بدن تنګ کړی وي. **انفك:** معنی د کولاویدو او جدا کیدو سره.

| ﴿۱۲﴾ وَ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ: أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُصُّ عَلَى الْمِنْبَرِ |
|---|
| او ابو درداء رضي الله عنه راوی دې چې ده اوریدلي د نبي علیه السلام نه چې په ممبر باندې وعظ او نصیحت کولو |
| وَ هُوَ يَقُولُ: ﴿ وَ لِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ |
| چې نبي علیه السلام وفرمایل: چې څوک ویریدو د قیامت په ورځ د خپل رب مخې ته دا ودریدو نه نو ده ده |
| جَنَّتَانِ ﴾ قُلْتُ: وَ إِنْ زَنَى وَ إِنْ سَرَقَ ؟ يَا رَسُولَ اللهِ |
| لپاره دوه جنتونه دي ما (د تعجب په خاطر) پوښتنه وکړه: که زنا یې وکړه او یا یې غلا وکړه یا رسول الله؟ |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۲۳/۱۱ رقم الحديث: ۶۴۹۱
(۲) أخرجه شرح السنة ۳۳۹/۱۴، رقم الحديث ۴۱۴۹.

فَقَالَ الثَّانِيَةَ : ﴿ وَ لِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ

نو نبي عليه السلام په دويم ځل وفرمايل چې څوک ويريد ود قيامت په ورځ د خپل رب مخې ته دا ودريدونه

جَنَّتَانِ ﴾ فَقُلْتُ الثَّانِيَةَ : وَ إِنْ زَنٰى وَ سَرَقَ ؟

نو دده لپاره دوه جنتونه دي، ما بيا په دويم ځل پوښتنه وکړه: که هغه زنا هم کړې وي او يا يې غلا کړې وي

يَا رَسُولَ اللهِ فَقَالَ الثَّالِثَةَ : ﴿ وَ لِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ

يا رسول الله؟ نبي عليه السلام بيا په دريم ځل وفرمايل چې څوک ويريد ود قيامت په ورځ د خپل رب مخې ته

جَنَّتَانِ ﴾ فَقُلْتُ الثَّالِثَةَ : وَ إِنْ زَنٰى

دا ودريدونه نو دده لپاره دوه جنتونه دي ما بيا په دريم ځل پوښتنه وکړه که هغه زنا هم کړې وي او يا يې

وَ سَرَقَ ؟ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ : وَ إِنْ رَغِمَ أَنْفُ أَبِي الدَّرْدَاءِ .[1]

غلا کړې وي يا رسول الله؟ نبي عليه السلام وفرمايل: اگر که ککړه وي پوزه دابو درداء په خاوره باندې.

**توضيح**: دې سره ترلي بحث په اول جلد کې تير شوی دی. هلته دې و کتلی شي. هلته دا روايت د ابو ذر رضي الله عنه نه منقول دی. دلته د ابو درداء رضي الله عنه نه منقول دی.

## د الله تعالی د رحمت يو مثال

﴿۱۳﴾ وَعَنْ عَامِرٍ الرَّامِ قَالَ: بَيْنَا نَحْنُ عِنْدَهُ يَعْنِي عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ أَقْبَلَ رَجُلٌ

او عامر رام رضي الله عنه فرمايي چې: (يوه ورځ) مونږ نبي عليه السلام سره ناست وو. ناڅاپه يو سړی راغلو

عَلَيْهِ كِسَاءٌ وَ فِي يَدِهٖ شَيْءٌ قَدِ الْتَفَّ عَلَيْهِ

چې د هغه په بدن باندې يو د شړی وه او په لاس کې يې څه شي وُ چې په هغې کې يې خپله شړی تاو کړې

فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ مَرَرْتُ بِغَيْضَةِ شَجَرٍ فَسَمِعْتُ فِيهَا أَصْوَاتَ فِرَاخِ طَائِرٍ

وه هغه پوښتنه وکړه چې يا رسول الله: زه ګڼو بوټو باندې تيريدم چې په بوټو کې د مرغيو د بچو اوازونه

فَأَخَذْتُهُنَّ فَوَضَعْتُهُنَّ فِي كِسَائِي فَجَاءَتْ أُمُّهُنَّ

واوريدل، نو ما هغه ونيول او خپله شړی مې کيخودله چې په دغه وخت کې د هغوی مور راغله او زما په سر

---

(۱) أخرجه مسند أحمد ۲۵۷/۲، رقم الحديث : ۸۶۶۸.

جلد 4 10

| فَاسْتَدَارَتْ | عَلَى | رَأْسِي | فَكَشَفْتُ | لَهَا | عَنْهُنَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| يې تاويدل شروع کړل ما دهغې په مخکې دهغې دبچونه شړې اخوا کړله (چې هغه خپل بچې وینې) بچو | | | | | |
| فَوَقَعَتْ | عَلَيْهِنَّ | فَلَفَفْتُهُنَّ | بِكِسَائِي | فَهُنَّ | أُولَاءِ مَعِي |
| ليدلو سره هغه په هغوي راوغورځېدله او ما مورسره د بچو خپل څادر کې راتاو کړل او اوس هغه ټول ما سره | | | | | |
| قَالَ : ضَعْهُنَّ فَوَضَعْتُهُنَّ | | | | | |
| دي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: دا دلته کېږده او ما هغه هلته کېښوده او دهغې نه مې شړې لرې کړه مور يې | | | | | |
| وَ | أَبَتْ | أُمُّهُنَّ | إِلَّا | لُزُومَهُنَّ | |
| ټول کاروانه پرېښودل او خپل بچو سره په غاړه غړې شوه (مونږ ټولو دهغه بچو سره د مور محبت په تعجب | | | | | |
| فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " أَتَعْجَبُونَ لِرُحْمِ أُمِّ الْأَفْرَاخِ فِرَاخَهَا؟ | | | | | |
| سره کتل) چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل آيا تاسو پدې تعجب کوئ چې ددې بچو مور دوي سره څومره مهربانه | | | | | |
| فَوَ | الَّذِي | بَعَثَنِي | بِالْحَقِّ | لَلَّهُ | أَرْحَمُ بِعِبَادِهِ |
| ده قسم په هغه ذات چې زه يې په حق سره رالېږلی يم الله تعالی په خپلو بندګانو ددې نه زيات رحم کونکې | | | | | |
| مِنْ أُمِّ | الْفِرَاخِ | بِفِرَاخِهَا | ارْجِعْ بِهِنَّ | حَتَّى تَضَعَهُنَّ | مِنْ حَيْثُ |
| دې څومره چې يو مور په خپل بچې رحم کونکې وي اوس لاړ شه او دا بچې هلته کېږده کوم ځای کې چې دې | | | | | |
| أَخَذْتَهُنَّ | وَ | أُمُّهُنَّ | مَعَهُنَّ | ". فَرَجَعَ بِهِنَّ .[1] | |
| دا نيولي وو او مور ور سره هم هلته پرېږده نو ده دا ټول ويوړل او چرته يې چې نيولي وو هلته يې پرېښودل. | | | | | |

**توضیح:** **غيضة شجر:** غيضه غنو (د بوټو جاخه) ته وايي. د بوټو ګڼ ځنګل مراد دی. (المرقات ۱۱۴-۵/۱۱۵).

**فراخ:** جمع د ډيروالي ده او **افراخ** جمع د کموالي ده. فرخ چرګوټي ته وايي. (المرقات: ۵/۱۱۵)

**فلففتهن:** تلفيف د رانغختلو په معنی دی. (المرقات: ۵/۱۱۵)

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۱۸۲/۳ رقم الحديث : ۳۰۸.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د يوې مور د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه عجيبه پوښتنه

﴿۱٤﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ غَزَوَاتِهِ

عبد الله ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې يو ځل مونږ نبي عليه السلام په يوه غزوه کې (روان) وو چې نبي عليه السلام

فَمَرَّ بِقَوْمٍ فَقَالَ: مَنِ الْقَوْمُ؟ قَالُوا: نَحْنُ الْمُسْلِمُونَ

د ځه خلکو په خوا تېر شو او د هغوي نه يې پوښتنه وکړه چې تاسو څوک وئ؟ هغوی وويل مونږ مسلمانان

وَامْرَأَةٌ تَحْضِبُ بِقِدْرِهَا وَ مَعَهَا

يو په دوي کې يوه ښځه هم وه چې هغې خپلې ديګچې ته اور لګولې وو (يعني څه يې پخول) هغې سره د

ابْنٌ لَهَا فَإِذَا ارْتَفَعَ وَ هَجٌ تَنَحَّتْ بِهِ

هغې ماشوم هم ؤ نو چې اور لمبه بهاو چتېده نو هغې به خپل ماشوم يو اړخ ته کړو (دا چې دا ور ګرمائش

فَأَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ: أَنْتَ رَسُولُ اللهِ؟

ورته ضرر و نه رسوي) هغه ښځه نبي عليه السلام خوا ته راغله او وي ويل چې ته د الله رسول يې؟ نبي عليه السلام

قَالَ: نَعَمْ قَالَتْ: بِأَبِي أَنْتَ وَ أُمِّي أَلَيْسَ اللهُ أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ؟

ورته و فرمايل هو هغه ښځې ورته وويل چې آيا الله په خپلو بندګانو باندې د دې نه هم ډېر رحم کونکی نه

قَالَ: بَلَى قَالَتْ: أَلَيْسَ اللهُ أَرْحَمَ بِعِبَادِهِ

دی نبي عليه السلام و فرمايل هو دی، دې ښځې بيا وويل چې آيا الله نه دی ډېر رحم کونکي په خپلو بندګانو

مِنَ الْأُمِّ عَلى وَلَدِهَا؟ قَالَ: بَلَى قَالَتْ:

چې څو مره چې يوه مور په خپل ماشوم رحم کونکې وي؟ نبي عليه السلام و فرمايل ولې نه هغه ښځې بيا وويل

إِنَّ الْأُمَّ لَا تُلْقِي وَلَدَهَا فِي النَّارِ

چې مور خو خپل ماشوم اور ته نه ګوزاری (نو بيا الله تعالى ولې خپل بنده ګان اور ته ګوزاری؟)

فَأَكَبَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَبْكِي ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ

نبي عليه السلام خپل سر ... کړ او ... ژړل بيا (لږ ساعت ... وروسته) نبي عليه السلام را اوچت کړو خپل سر دي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَيْهَا | فَقَالَ : | " إِنَّ | اللهَ | لَا | يُعَذِّبُ | مِنْ | عِبَادِهِ | إِلَّا | |

ښځې طرف ته او وې فرمايل: الله تعالى خپلو بندګانو ته عذاب نه ورکوي خو صرف هغه بندګانو ته عذاب

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْمَارِدَ | الْمُتَمَرِّدَ | الَّذِي | يَتَمَرَّدُ | عَلَى | اللهِ |

ورکوي چې څوک داسې سرکشه وي چې د الله تعالى نه سرکشي کوي (يعنې د الله تعالى احکامات

وَأَبَى أَنْ يَقُولَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ ". [1]

نه مني) او انکار کوي د ويلو د لااله الا الله نه .

**توضيح**: **وهج** په ها باندې فتح ده د اور لمبې او ګرمائش ته وايې. (المرقات: ۵/۲۱۶)

**تنحت**: وروسته کېدو ته وايي. (المرقات: ۵/۱۱۵)

**انت رسول الله؟**: دلته همزه استفهام محذوف دې دې ښځه په پوره ډول نبي عليه السلام نه پېژندو اګر که اجمالي توګه باندې مسلمانه وه. **اکب**: د اکباب نه چې په معنى د سر ټيټولو (خکته کولو) دې يعنې نبي عليه السلام سر خکته کړو او وې ژړل ځکه چې د ښځې سوال هم عجيبه وو او دغه وخت ماحول او منظر هم عجيبه وو. (المرقات: ۵/۱۱۷)

**لايعذب**: يعنې مسلمان د هميشه لپاره په عذاب کې نه ساتي بلکه د سزا وروسته يې د اور نه راوباسي. (المرقات: ۵/۱۱۷)

**الا المارد**: مارد سرکش ته وايې. (المرقات: ۵/۱۱۷)

**المتمرد**: په مارد کې مبالغه ده يعنې د خير نه بېخي خالي وي. د شر نه ډک وي. نبي عليه السلام هغه ښځې په داسې انداز کې جواب ورکړو چې مور او پلار ته ماشوم څومره ګران وي خو همدغه ماشوم چې غټ شي او مور ته ووايي چې ته زما مور نه يې او پلار ته ووايي ته زما پلار نه يې نو هغه ماشوم څنګه څپېړه ورکوي بلکه ماشوم د مور او پلار لپاره د سپي او خنزير په درجه شي همدغه شان د الله تعالى معامله هم ده. (المرقات: ۵/۱۱۷)

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۴۳۶/۲ رقم الحديث: ۴۲۹۷.

## د الله تعالى رضا غوښتونکي لپاره مقام

﴿۱۵﴾ وَ عَنْ ثَوْبَانَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْعَبْدَ

او ثوبان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: کوم (نيک) سړی (د اطاعت

لَيَلْتَمِسُ مَرْضَاةَ اللّٰهِ فَلَا يَزَالُ بِذَالِكَ فَيَقُولُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ لجبريل:

کولو په ذريعه) الله تعالى رضالټوي او بيا هميشه د هغه په لټه کې وي نو الله تعالى جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام

إِنَّ فُلَانًا عَبْدِي يتلمس أَنْ يُرْضِيَنِي أَلَا وَ إِنَّ رَحْمَتِي عَلَيْهِ

ته فرمايي چې زما فلانی بنده زما د رضا په لټه کې دی نو خبر وسېږه چې په دې زما رحمت (کامل)

فَيَقُولُ جِبْرِيلُ : رَحْمَةُ اللّٰهِ عَلَى فُلَانٍ وَ يَقُولُهَا حَمَلَةُ العرش

دې نو جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام وايي چې په فلانی سړی د الله تعالى رحمت وي همدغه خبره د عرش اوچتونکي

وَ يَقُولُهَا مَنْ حَوْلَهُمْ حَتَّى

فرښتې هم وايي بيا همدغه خبره هغه فرښتې هم کوي کومې چې د دوی نه ګيرچاپېره وي تردې دا خبره

يَقُولُهَا أَهْلُ السَّمَاوَاتِ السَّبْعِ ثُمَّ تَهْبِطُ لَهُ إِلَى الْأَرْضِ ". (۱)

د اوه وارو آسمانو فرښتې هم وايي نو دې سړی لپاره زمکې ته رحمت نازلېږي.

**توضيح: تهبط**: داد هبوط نه دی په معنې د راکوزيدلو دې يعني يو سړی د الله تعالى د رحمت په لټه کې وي آخر دا چې الله تعالى د خپل رحمت اعلان وکړي بيا دا اعلان جبريل امين عَلَيْهِ السَّلَام په اسمانونو کې ټولو فرښتو ته ورسوي. بيا د رحمت دا چپه زمکې ته راکوزشي د دې اثر دا وي چې زمکې والا بيا ټول د دې سړي سره مينه کول شروع کړي او دا سړی په عام او خاص مقبوليدو سره منظور الكل اومحبوب الكل شي دا حديث په حقيقت کې د مضمون او مفهوم په اعتبار سره د هغه حديث پشان دی چې په کوم کې حوالې خبره شوې وه چې الله تعالى کله يو بنده محبوب ساتي نو په فرښتو کې اعلان وکړي چې د هغې په وجه د ټول اسمانونو والا د هغه سړي مينه شروع کړي. بيا دا مينه او قبوليت زمکې طرف ته راکوشي نو خلک هم د هغه سره مينه شروع کړي. او د کوم سړي سره الله تعالى دښمنې ساتي نو هغه جذبه هم همدغه شان خوره شي. دلته دا خبره ياد ساتل پکار دي چې قبوليت

---

(۱) أخرجه مسند أحمد ۲۷۹/۵، رقم الحديث : ۲۲۴۵۴.

او عدم قبوليت معيار فاسق او فاجر خلک نه دي بلکه د دې معيار تله اولياءالله او علماء او اتقياو سره ده. چې د هغوی د اکثريت فيصله چې د کوم سړي باره کې کومه وي هغه د اسمان فيصله وي.

## مسلمان، گناهگار او نيک عمله د الله تعالی د رحمت مستحق دي

﴿۱۶﴾ وَ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي قَوْلِ اللهِ عَزَّ وَ جَلَّ:

او حضرت اسامه بن زيد د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د الله تعالی د دغه ارشاد (پس ځيني

﴿ فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِنَفْسِهِ وَ مِنْهُمْ مُقْتَصِدٌ وَ مِنْهُمْ

خلک په دوی په خپل نفس زياتې کونکې دي. ځيني په دوی اعتدال کونکي دي او ځيني په دوی په

سَابِقٌ بِالْخَيْرَاتِ ﴾ قَالَ : كُلُّهُمْ فِي الْجَنَّةِ ".[1]

نيکيو کې مخکې والي کونکې دي) د تفسير په ضمن کې فرمايي چې دا ټول جنتيان دي.

**توضيح: فمنهم ظالم:** په دې حديث کې د سورت فاطر آيت ۳۲ ته اشاره کړې شوې ده. په دې آيت کې درې قسمه مسلمانانو ذکر شوی دی. او دې درې واړو په اړه يې دا حکم کړيدی. (المرقات: ۵/۱۱۹)

ثم اصطفينا من عبادنا: يعنې مونږ په خپلو بنده گانو کې دريمه قسمه خلک خوښ کړل. يو په خپل ځانونو باندې د گناهونو په وجه ظلم کونکې دي. دويم قسم خلک په اعتدلا سره تلونکې دي. او دريم قسم خلک په اوله مرتبه کې سفر کوي. حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې د مخکې والې کونکې نه هغه سړي مراد دي چې د هغې نيکۍ د هغې په بديو باندې ډيرې وي. اعتدل والا هغه سړي دي چې د هغې نيکۍ او بدۍ يو شان وي. او ظالم نه مراد هغه سړي دي چې د هغې بدۍ د هغې په نيکيو غالب وي. د زير بحث حديث نه معلوميږي چې دا درې واړه قسمه خلک به نيکانو خلکو کې دي. لهذا دا به جنتيان وي. اگر که د هغوی جنت ته دخول اول او يا که دويم وي. خو په جنت کې به درجاتو کې تفاوت وي. ليکن د بشارت نه معلوميږي چې کلمه گو مسلمان هم د خير نه خالي نه وي. (المرقات: ۵/۱۱۹)

وصلی الله تعالی علی خير خلقه محمد و علی آله و أصحابه أجمعين



(۱) أخرجه مشكاة المصابيح ۲/۰۳۰۰۳، ال[illegible] ۲۸

# باب ما يقول عند الصباح والمسآء والمنام

## د سحر او ماښام د لوستلو دعاګاني

قال الله تعالى: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا اللَّهَ ذِكْرًا كَثِيرًا وَسَبِّحُوهُ بُكْرَةً وَأَصِيلًا﴾ (سورة الاحزاب آيت:۴۱–۴۲).

سحر او ماښام نه د سحر او د ماښام وختونه هم مراد اخستل کېدی شي او شپه او ورځ هم مراد اخيستل کېدی شي.

**المنام**: نه مراد د خوب کولو ځای هم کېدلي شي. يا **منام** مصدر ميمي دې چې په معنی د خوب دې چې ترينه د اودوکېدو وخت کې دعاګانې مراد دي. (المرقات: ۵/۱۲۰)

د مسلمان دوه دښمنان دي: يو هغه چې ښکاره وي لکه کافران او داسې نور. د هغوی په مقابل کې اسلام د وسلې او چتولو نظام جوړ کړی دی. دويم دښمن هغه دی چې هغه نه ښکاري هغه د شيطان لښکر دی. څنګه چې د نظرونو نه پټ وي نو ځکه اسلام ددې نه د ساتنې لپاره د روحانې ساتنې انتظام کړی دی هغه روحانې ساتنه همدغه دعاګاني دي. چې هغه د مختلف وختونو حملو نه د بچ کېدلو لپاره په مختلف وختونو کې لوستلې کيږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## سحر او ماښام د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعاګاني

|  |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَمْسَى قَالَ: |
| او عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې کله به ماښام شو نو نبي عليه السلام به دا دعا غوښتله: مونږ |
| أَمْسَيْنَا وَأَمْسَى الْمُلْكُ لِلَّهِ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ |
| ماښام کړو او د ماښام په وخت کې بادشاهي هم الحمد لله د الله تعالی ده هغه واحد لاشريک ذات دې |
| لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ. |
| او دې الله تعالی لره بادشاهي ده، او الله تعالی لره حمد و ثناء ده هغه په هر څيز باندې قادر دی. |
| اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِ هَذِهِ اللَّيْلَةِ وَخَيْرِ مَا فِيهَا وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا وَشَرِّ مَا فِيهَا اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَالْهَرَمِ وَسُوءِ الْكِبَرِ وَفِتْنَةِ الدُّنْيَا وَعَذَابِ الْقَبْرِ وَإِذَا أَصْبَحَ قَالَ أَيْضًا: أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ |

الْمُلْكُ لِلّٰهِ . وَفِي رِوَايَةٍ: رَبِّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابٍ فِي النَّارِ وَعَذَابٍ فِي الْقَبْرِ .[۱]

## د اوده کېدو په وخت کې دعاء

﴿۲﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ مِنَ اللَّيْلِ

او حذيفه رضي الله عنه فرمايي نبي عليه السلام چې به کله د شپې بسترې ته راغلو او د اوده کېدو لپاره به پرېوتو

وَضَعَ يَدَهُ تَحْتَ خَدِّهِ ثُمَّ يَقُولُ: اَللّٰهُمَّ

نو خپل ښی لاس تلی به يې د خپل ښی طرف مخ لاندې کېښودو. او دا به يې وفرمايل اې الله: ستا

بِاسْمِكَ أَمُوتُ وَ أَحْيَا . إِذَا

په نوم باندې مړ کېږمه (يعني اوده کېږمه) او ستا په نوم ژوندي کېږمه (يعني پاسېږمه). او چې کله

اسْتَيْقَظَ قَالَ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَحْيَانَا

به نبي عليه السلام د خوب نه راپاڅېدو نو دا به يې فرمايل: حمد او ثناء ده هغه الله لره چې مونږ يې راژوندي

بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَ إِلَيْهِ النُّشُوْرُ . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ وَ مُسْلِمٌ

کړو پس د هغه نه چې مونږ يې مړه کړې وو او دې الله تعالی ته واپسي ده. او مسلم دا روايت نقل کړی

عَنِ الْبَرَاءِ .[۲]

خو مسلم د (حضرت حذيفه رضي الله عنه) په ځای د حضرت براء رضي الله عنه نه روايت کړی دی.

## د اوده کېدو په وخت کې بستره څنډل

﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا أَوَى أَحَدُكُمْ

او ابوهريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي عليه السلام وفرمايل کله چې راشي په تاسو کې څوک (اوده کېدو لپاره)

إِلَى فِرَاشِهِ فَلْيَنْفُضْ فِرَاشَهُ بِدَاخِلَةِ إِزَارِهِ

خپلې بسترې ته نو هغه له پکار ده چې خپله بستره خپلې لنګې سره په ګوډونو باندې وڅنډي ځکه

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱ رقم الحديث: ۶۳۶۵، أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۸۸ رقم الحديث: ۲۷۲۳/۷۴.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳ رقم الحديث: ۳۴۷۷.

| |
|---|
| فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي مَا خَلَفَهُ عَلَيْهِ |
| هغه ته پته نشته چې د هغه په غیر موجودګۍ کې د هغې په بستري باندې څه شی (مثلاً چینجي وغیره) |
| ثُمَّ يَقُولُ : بِاسْمِكَ رَبِّي وَضَعْتُ جَنْبِي وَ بِكَ أَرفعه إِن أَمْسَكت نَفسِي فَارْحَمْهَا |
| غور ځیدلي دي او بیا به ووایي : بِاسْمِكَ رَبِّي وَضَعْتُ جَنْبِي وَبِكَ أَرفعه إِن أَمْسَكت نَفسِي فَارْحَمْهَا |
| وَ إِنْ أَرْسَلْتَهَا فَاحْفَظْهَا بِمَا تَحْفَظُ بِهِ عِبَادَكَ الصَّالِحِينَ". |
| وَ فِي رِوَايَةٍ : ثُمَّ لِيَضْطَجِعْ |
| او په یو روایت کې دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمایلي دي چې کله څوک خپلې بستري ته راشي داوده |
| عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَن ثُمَّ لِيقل : بِاسْمِكَ ". وَ فِي رِوَايَةٍ: |
| کیدو د پاره نو په ښۍ اړخ دې څملي او بیا دې مخکې ذکر شوې دعاء ووایي او په یو راویت کې دي |
| فَلْيَنْفُضْهُ بِصَنِفَةِ ثَوْبِهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ وَ إِن |
| چې هغه له پکار دي چې هغه خپله بستره د خپلې توټې په ګوډونو باندې درې ځله وڅنډي. خو په دې |
| أَمْسَكت نَفسِي فَاغْفِر لَهَا.[1] |
| روایت کې په مخکې ذکر شوې دعاء کې د فارحمها په ځای فاغفرلها دي. |

**توضیح: اوی:** قصر او مد دواړه شان لوستلې شوې دي. د ځای یا منزل نیولو په معنی کې دي. (المرقات: ۵/۲۲۴)

**فلینفض:** د څنډلو په معنی دي. (المرقات: ۵/۲۲۴)

**بداخلة ازاره:** یعني کومه لنګۍ چې هغه اغوستې دا د هغې په دننه حصه دې بستره وڅنډي چې چینجي مینجي پاتې نشي او بستره پاکه شي. د ننه حصه څنډلو کې یوه ګټه دا ده چې دا طریقه آسانه ده. دویمه ګټه دا ده چې پاکوالي وشي او لنګۍ بهرنۍ حصه پاکه شي. په هغې باندې هیڅ قسم ګند نه وي. که څه داغ وه هم اکې نو هغه د لنګۍ په دننه حصه نکي. بیا مطبق لمن مراد ده (المرقات: ۵/۲۲۴)

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۱۱۵ رقم الحديث ۶۳۲۰، اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۸۴ رقم حديث ۶۴/۲۷۱۴.

**ما خلفه:** يعنې بسترې باندې يې د ځان څخه وروسته څه مضر څيز پرېښودلي دې ياپې پليتي د ځانه وروسته پرېښودلې دې. (المرقات: ۵/۲۲۴)

**شقه الايمن:** يعنې په ښې اړخ پروزې. چې په چپ اړخ باندې په زړه بوج نه رازې. زړه ونمنډلي شي. او سحر لمونځ لپاره پاڅېدلو ته آساني وي او په سنت باندې عمل وشي. په اول کې ښې اړخ ته ډېره واوړې. بيا چپ اړخ ته واوړې. ډاکتران وايې. چې چپ اړخ ته ډېره باندې پريوزې. چې په زړه بوج راشي او ښه کلک خوب درشي. او د سحر مونځ لپاره بيا نشي باسيدلي او د سنت خلاف هم وشي. دا دوه متضاد نظامونه دوه متضادې فيصلې دې. مسلمانانو له په خپل نظام عمل کول پکار دې.

خو ښه خپله خپله قسمت خپل خپل

**خپل ځان خداى ته وسپارې او اوده شې**

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ نَامَ عَلَى |
| او براءبن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به چې کله خپله بسترې ته راتلو نو اوده کيدو به په |
| شِقِّهِ الْأَيْمَنِ ثُمَّ قَالَ: |
| ښى اړخ باندې او بيا به يې وفرمايل: |
| اللَّهُمَّ أَسْلَمْتُ نَفْسِي إِلَيْكَ وَوَجَّهْتُ وَجْهِي إِلَيْكَ وَفَوَّضْتُ أَمْرِي إِلَيْكَ وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِي إِلَيْكَ رَغْبَةً وَرَهْبَةً إِلَيْكَ لَا مَلْجَأَ وَلَا مَنْجَا مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ آمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِي أَنْزَلْتَ وَنَبِيِّكَ الَّذِي أَرْسَلْتَ. |
| وَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ قَالَهُنَّ ثُمَّ مَاتَ تَحْتَ لَيْلَتِهِ |
| اونبي عَلَيْهِ السَّلَام به فرمايل چې کوم سړى دا کلمات (دا وده کېدو نه مخکې) ووېل او بيا په هغه شپه مړ شو نو |
| مَاتَ عَلَى الْفِطْرَةِ وَ فِي رِوَايَةٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِرَجُلٍ : " يَا فُلَانُ |
| هغه په دين اسلام مړ شو. په يو بل روايت کې دې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام يو سړي ته وفرمايل: اى فلانيه! |
| إِذَا أَوَيْتَ إِلَى فِرَاشِكَ فَتَوَضَّأْ وُضُوءَكَ لِلصَّلَاةِ ثُمَّ اضْطَجِعْ عَلَى |
| چې کله ته خپلې بسترې ته راشې نو رومبې ته د مونځ دا ودس پشان اودس وکړه) پوره کوه او بيا خپل |
| شِقِّكَ الْأَيْمَنِ ثُمَّ قُلِ : اللَّهُمَّ أَسْلَمْتُ نَفْسِي إِلَيْكَ إِلَى قَوْلِهِ : أَرْسَلْتَ " |
| ښى اړخ باندې پريوتلو سره د **اللهم اسلمت نفسي اليک** نه تر ارسلت پورې (يعنې پاس ذکر شوې) |

وَ قَالَ : فَإِنْ مِتَّ مِنْ لَيْلَتِكَ مِتَّ عَلَى الْفِطْرَةِ

دعاولوله.بيانبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل كه په دې شپه كې تا ته مرګ راغلى نو ته داسلام په دين مړشوې

و إن أصبحت أصبت خَيْرًا .[1]

او كه تا سحر كړو نو خيرونه (يعني ډېر خيرونه به ومومې).

﴿٥﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ قَالَ: اَلْحَمْدُ

او انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به كله خپل بستري ته راتلونو دا به يې ويل ټول تعريفونه هغه

لِلّٰهِ الَّذِي أَطعمَنَا وَ سَقَانَا وَ كَفَانَا وَ آوَانَا

الله لره دي چاچې په مونږ خوراك او څكاك وكړو او زمونږ لپاره كافي شو او مونږ له يې ځاى راكړو څومره

فَكَمْ مِمَّنْ لَا كَافِيَ لَهُ وَلَا مؤوي .[2]

خلك به داسې وي چې له هغوى لپاره به نه څوك كافي وي او نه به څوك د ځاى وركولو والا وي.

**توضيح:لاكافي له:** يعني الله تعالى زمونږ لپاره كافي شو او مونږ يې د دوشمنانانو د شر نه وساتلو. څومره خلك دي چې هغه د دښمن په ګير كې دي الله تعالى هغوى پرېښودلي دي او الله تعالى زمونږ لپاره كافي شوڅومره خلك دي چې دالله د قضا او قدرت لاندې د الله د انعاماتو نه محروم دي هغوى سره د سرپټولو لپاره ځاى نشته او هغه په كوڅو،بازارونو او دسرك په غاړو كې وختونه تېروي نه هغوى ته د ګرمۍ نه د بچ كېدلو لپاره څه اسانتيا شته او نه ورلره د يخنۍ د ضرر نه سيوري شته. (المرقات: ۵/۲۳۱)

**مؤوي:** د اسم فاعل صيغه ده د **افعالو** باب نه د ځاى وركولو په معنى دى. (المرقات: ۵/۲۳۱)

## سترړيا لرې كولو لپاره تسبيحات فاطمه لوستل

﴿٦﴾ وَ عَن عَلِيٍّ : أَن فَاطِمَةَ أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى فرمايي :چې فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راغله نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته چې د ميچن تاوهلو

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۴۶۲ رقم الحديث :۷۴۸۸، أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۸۱ رقم الحديث :۵۶/۲۷۱۰.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۸۵ رقم الحديث :۶۴/۷۱۵.

تَشْكُو إِلَيْهِ مَا تَلْقَى فِي يَدِهَا مِنَ الرَّحَى

په وجه د هغې لاسونه د تکلیف سره مخ دې دد، شکایت یې نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته وکړو (او یوه خادمه یې ترې

وَ بَلَغَهَا أَنَّهُ جَاءَهُ رَقِيقٌ

وغوښته) ځکه فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته معلومه وه چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام سره څه غلامان دي خو دغه وخت کې یې

فَلَمْ تُصَادِفْهُ فَذَكَرَتْ ذَٰلِكَ لِعَائِشَةَ فَلَمَّا

د نبي عَلَيْهِ السَّلَام سره ملاقات ونه شو. نو هغې د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په مخ کې د هغې تذکره وکړه نو هر کله

جَاءَ أَخْبَرَتْهُ عَائِشَةُ قَالَ :

چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام راغلو نو عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ورته د فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خبره وکړه حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي

فَجَاءَنَا وَ قَدْ أَخَذْنَا مَضَاجِعَنَا فَذَهَبْنَا نَقُومُ فَقَالَ :

ددې نه وروسته نبي عَلَيْهِ السَّلَام زمونږ کورته راغلو په داسې حال کې چې مونږ اوده ؤ نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل

عَلَى مَكَانِكُمَا فَجَاءَ فَقَعَدَ بَيْنِي وَ بَيْنَهَا

په خپل ځای پریوزه بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَام مونږ ته نزدې راغلو او زما او د فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په مینځ کې کیناستلو

حَتَّى وَجَدْتُ بَرْدَ قَدَمِهِ عَلَى بَطْنِي فَقَالَ :

دومره نزدې چې ما په خپله خیټه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د قدم یخوالې محسوس کړو بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل:

أَلَا أَدُلُّكُمَا عَلَى خَيْرٍ مِمَّا سَأَلْتُمَا ؟

آیا زه تاسو ته هغه خبره ونکړم چې هغه د هغه شي نه (غلام) نه غوره دي چې هغه تاسو غوښتلې ؤ او هغه

إِذَا أَخَذْتُمَا مَضْجَعَكُمَا فَسَبِّحَا ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ وَاحْمَدَا ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ وَكَبِّرَا ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ

دا چې کله تاسو خپلې بسترې ته راشئ نو ۳۳ ځله سبحان الله ۳۳، ځله الحمد لله، ۳۳ ځله الله اکبر

فَهُوَ خيرٌ لَكُمَا من خَادِمٍ .[1]

وایه دا ستا لپاره له غلام څخه غوره ده.

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٥٠٦/٩١ رقم الحديث :٥٣٦١، أخرجه مسلم في صحيحه ٢٠٩١/٤ رقم الحديث :٢٧٢٧/٨٠.

﴿۷﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ، جَاءَتْ فَاطِمَةُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

او ابو هريره رضي الله عنه راوي دي فرمايي چې : راغله حضرت فاطمه رضي الله عنها نبي عليه السلام ته د دې لپاره

تَسْأَلُهُ خَادِمًا فَقَالَ أَلَا

چې د نبي عليه السلام نه يو غلام وغواړي هر كله چې نبي عليه السلام خبر شو ، نو نبي عليه السلام و فرمايل : آيا

أَدُلُّكِ عَلَى مَا هُوَ خَيْرٌ مِنْ خَادِمٍ ؟ تُسَبِّحِينَ اللّٰهَ ثَلَاثًا وَ ثَلَاثِينَ

زه تا ته هغه څيز ونه ښايم چې هغه د غلام نه غوره دي (او هغه دا چې) و ايه سبحان الله دري ديرش ځله

وَتَحْمَدِينَ اللّٰهَ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ وَتُكَبِّرِينَ اللّٰهَ أَرْبَعًا وَثَلَاثِينَ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ وَ عِنْدَ مَنَامِكِ.[۱]

او الحمد لله دري ديرش ځله او الله اكبر څلور ديرش ځله د هر مونځ نه وروسته او د اوده كيدو په وخت كې.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## د سحر او ماښام دعاګانې

﴿۸﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا أَصْبَحَ قَالَ :

ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې كله به سحر شو نو نبي عليه السلام به په ژبه مباركه دا دعائيه كلمې لوستلې

اَللّٰهُمَّ بِكَ أَصْبَحْنَا وَبِكَ أَمْسَيْنَا وَبِكَ نَحْيَا وَبِكَ نَمُوتُ وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ.

وَ إِذَا أَمْسَى قَالَ :

او چې كله به ماښام شو نو دا دعاء په يې لوستله :

اَللّٰهُمَّ بِكَ أَمْسَيْنَا وَبِكَ أَصْبَحْنَا وَبِكَ نَحْيَا وَبِكَ نَمُوتُ وَإِلَيْكَ النُّشُورُ.[۲]

﴿۹﴾ وَ عنهُ قَالَ : قَالَ أَبُو بَكْرٍ : قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ

او ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې ابو بكر صديق رضي الله عنه فرمايي چې ما عرض وكړو يا رسول الله ماته

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۹۲/۴ رقم الحديث : ۲۷۲۷/۸۱.

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۳۱۷/۴ رقم الحديث : ۵۰۶۸.

| مُرْنِي | بِشَيْءٍ | أَقُولُهُ | إِذَا | أَصْبَحْتُ | وَ | إِذَا | أَمْسَيْتُ | قَالَ : |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

د داسې دعا ګانو لوسلو حکم وکړه چې د سحر او مابنام وخت کې يې وظيفه کوم. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل:

قُلِ اللّٰهُمَّ عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَاطِرَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَمَلِيكَهُ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ نَفْسِي وَمِنْ شَرِّ الشَّيْطَانِ وَشِرْكِهِ

قُلْهُ إِذَا أَصْبَحْتَ وَ إِذَا أَمْسَيْتَ وَ إِذَا أَخَذْتَ مضجعك .[1]

ته دا دعا سحر کې، مابنام کې او د اوده کيدو په وخت کې هم وايه.

## دبدن د صحت لپاره عجيبه دعاء

﴿۱۰﴾ وَ عَنْ أَبَانَ بْنِ عُثْمَانَ قَالَ : سَمِعْتُ أَبِي يَقُولُ : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :

او حضرت ابان ابن عثمان فرمايي چې : ما د خپل پلار نه دا اوريدلي چې نبي ﷺ فرمايلي دي :

مَا مِنْ عَبْدٍ يَقُولُ فِي صَبَاحِ كُلِّ يَوْمٍ وَمَسَاءِ كُلِّ لَيْلَةٍ بِسْمِ اللّٰهِ الَّذِي لَا يَضُرُّ مَعَ اسْمِهِ شَيْءٌ فِي

کوم سړی چې هره ورځ سحر او مابنام وخت کې دا ولولي : بِسْمِ اللّٰهِ الَّذِي لَا يَضُرُّ مَعَ اسْمِهِ شَيْءٌ فِي

الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ وَ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَيَضُرَّهُ شَيْءٌ

الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ۳ ځله نو هغه ته به هيڅ ضرر نشي رسولی او اتفاقا دي وخت

| فَكَانَ | أَبَانُ | قَدْ | أَصَابَهُ | طَرَفُ | فَالَجٍ |
|---|---|---|---|---|---|

کې حضرت ابان د فالج په قسم کې اخته ؤ . نو هغه سړی چې دا روايت يې اوريدو ابان اړخ ته يې

| فَجَعَلَ | الرَّجُلُ | يَنْظُرُ | إِلَيْهِ | فَقَالَ | لَهُ | أَبَانُ : | مَا | تَنْظُرُ | إِلَيَّ ؟ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

(ډیر په تعجب سره) کتل نو ابان دې کس ته وويل ته ما ته ولې په تعجب سره ګورې؟ بنه پوهه شه

| أَمَا | إِنَّ | الْحَدِيثَ | كَمَا | حَدَّثْتُكَ | وَ | لٰكِنِّي |
|---|---|---|---|---|---|---|

دا حديث هم دغه شان دی څنګه چې ما بيان کړو خو چې په کومه ورځ زه په مرض کې اخته شوم نو هغه ورځ

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۴/۳۱۷ رقم الحديث : ۵۰۶۷.

لَمْ أَقُلْهُ يَوْمَئِذٍ لِيُمْضِيَ اللهُ عَلَيَّ قَدَرَهُ.(۱)

ما دا دعا نه وه ويلې. الله چې زما تقدير کې څه ليکلي وو هغه پوره شي.

وَفِي رِوَايَةٍ: لَمْ تُصِبْهُ فُجَاءَةُ بَلَاءٍ حَتَّى يُصْبِحَ وَمَنْ قَالَهَا حِينَ يُصْبِحُ لَمْ تُصِبْهُ فُجَاءَةُ بَلَاءٍ حَتَّى يُمْسِيَ

**توضيح: طرف فالج**: يعني فالج يو قسم له هغې ته لګيدلې وو. **ينظر**: يعني هغه سړی ته شک شو چې د هغه دوعا په روشتنې کې دومره اثر دې نو بيا ابان ته فالج ولې لګيدلې دې؟ حضرت ابان په دې معامله پوهه شو نو هغه جواب ورکولو کې مخکې والي وکړو او وې ويل چې په حديث کې شک مه کوه حديث په خپل ځای ريشتيني دی خو مانه هغه وخت کې دا دوعا ويل هير شوي وو.

**فجاءة فلا**: ناساپه مصيبت ته وايي. (المرقات: ۵/۲۲۵)

﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ إِذَا أَمْسَى:

او حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې ماښام به شو نو نبي عليه السلام به دا دعاء فرمايله چې

أَمْسَيْنَا وَأَمْسَى الْمُلْكُ لِلّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ رَبِّ أَسْأَلُكَ خَيْرَ مَا فِي هٰذِهِ اللَّيْلَةِ وَخَيْرَ مَا بَعْدَهَا وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا فِي هٰذِهِ اللَّيْلَةِ وَشَرِّ مَا بَعْدَهَا رَبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَمِنْ سُوءِ الْكِبَرِ أَوِ الْكُفْرِ.

چې کله به سحر شو نو نبي عليه السلام به همدغه دعاګانې لوستلې خو سحر وخت کې **اسيناً وامسي الملك لله** په ځای به **اصبحنا واصبح لملك لله** ويل.

وَفِي رِوَايَةٍ: مِنْ سُوءِ الْكِبَرِ وَالْكِبْرِ رَبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابٍ فِي النَّارِ وَعَذَابٍ فِي الْقَبْرِ.

او په يو روايت کې دی: مِنْ سُوءِ الْكِبَرِ وَالْكِبْرِ رَبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابٍ فِي النَّارِ وَعَذَابٍ فِي الْقَبْرِ.

وَإِذَا أَصْبَحَ قَالَ ذٰلِكَ أَيْضًا: أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلّٰهِ وَفِي رِوَايَتِهِ لم يذكر: من سوء الكفر.(۲)

او چې کله به صبا شو نو ويل به يې **أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلّٰهِ** او د ترمذي روايت کې **من سوء الكفر** نشته.

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳۲۳/٤ رقم الحديث: ۵۰۸۸.

(۲) أخرجه مسلم ۲۰۸۸/٤ رقم الحديث: ۷٤.

﴿۱۲﴾ وَعَنْ بَعْضِ بَنَاتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُعَلِّمُهَا

او د نبي عَلَيْهِ السَّلَام يوې لور نه روايت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغې ته ښودنه کړې چې کله سحروي نو دا ذکر

فَيَقُولُ: "قُولِي حِينَ تُصْبِحِينَ: سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهِ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ مَاشَاءَ اللّٰهُ كَانَ وَمَا لَمْ يَشَأْ لَمْ

شوې دعا ګانې لولې: سُبْحَانَ اللّٰهِ وَ بِحَمْدِهِ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ مَا شَاءَ اللّٰهُ كَانَ وَمَا لَمْ يَشَأْ لَمْ

يَكُنْ أَعْلَمُ أَنَّ اللّٰهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ وَأَنَّ اللّٰهَ قَدْ أَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا

فَإِنَّهُ مَنْ قَالَهَا حِينَ يُصْبِحُ حُفِظَ حَتَّى يُمْسِيَ

نو چاچې د سحر وخت کې دا کلمات ولوستل نو تر ماښام پورې به (بلاګانو او خطاګانو نه) محفوظ وي

وَ مَنْ قَالَهَا حِينَ يُمْسِي حُفِظَ حَتَّى يُصْبِحَ". [1]

او چاچې ماښام کې دا کلمات وويل نو هغه تر سحر پورې محفوظ وي.

﴿۱۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ:

او ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل کوم سړی چې د سحر وخت دا دعاء وويله:

﴿فَسُبْحَانَ اللّٰهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ وله الحمدُ في السمواتِ والأرضِ وعشيًّا وحِينَ تُظْهِرُونَ﴾

﴿فَسُبْحَانَ اللّٰهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ وله الحمدُ في السمواتِ والأرضِ وعشيًّا وحِينَ تُظْهِرُونَ﴾

إِلَى قَوْلِهِ: ﴿ وَ كَذٰلِكَ تُخْرَجُونَ ﴾ أَدْرَكَ مَا فَاتَهُ فِي يَوْمِهِ ذٰلِكَ

تر ﴿وَكَذٰلِكَ تُخْرَجُونَ﴾ پورې نو ده ته به هغه څه ورکړل شي چې د کوم نه هغه په هغه ورځ پاتې شوي وو.

وَ مَنْ قَالَهُنَّ حِينَ يُمْسِي أَدْرَكَ مَا فَاتَهُ فِي لَيْلَتِهِ ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُد. [2]

او چا چې وويل د شپې نو ده ته به هغه څه ورکړل شي چې د کوم نه هغه په هغه ورځ پاتې شوي وو.

**توضيح:** تمسون کې د ماښام او ماسخوتن وخت ذکر شوي دي او **حين تصبحون** نه د سحر وخت مراد دی. د **عشيًّا** نه مراد د مازيګر مونځ دې او **تظهرون** نه د غرمې مونځ مراد دي. او د پنځه مونځونو

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳۱۹/٤: رقم الحديث ٥٠٧٥

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۳۱۹/٤ رقم الحديث: ٥٠٧٦.

وختونو د تعيين لپاره دا آيت د ټولو نه ډير جامع او واضح دې. (المرقات: ۲۳۹ ۵)

﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِي عَيَّاشٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ قَالَ إِذَا أَصْبَحَ:

او ابو عياش رضي الله عنه فرمايي چې نبي عليه السلام فرمايل: کوم سړی چې د سحر وخت کې دا کلمات وايي

لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ كَانَ لَهُ عَدْلُ

لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ نو ده ته به د يو شي ثواب

رَقَبَةٍ مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ وَ كُتِبَ لَهُ عَشْرُ حَسَنَاتٍ وَ حُطَّ عَنْهُ

ديو غلام د آزادولو دا اسماعيل عليه السلام په اولاد کې او ده لپاره لس نيکۍ ليکلې کېږي او ختميږي دده نه

عَشْرُ سَيِّئَاتٍ وَ رفع عَشْرُ دَرَجَاتٍ وَ كَانَ فِي حِرْزٍ مِنَ الشَّيْطَانِ حَتَّى يُمْسِيَ

لس ګناهونه او اوچتيږي دده لس مرتبې او تر ماښام پورې شيطان (د غولولو د شر نه) په پناه کې وي.

وَ إِنْ قَالَهَا إِذَا أَمْسَى كَانَ لَهُ مِثْلُ ذَلِكَ حَتَّى يُصْبِحَ . قَالَ حَمَّاد بن

او کوم سړی چې دا کلمات ماښام کې ووايي نو تر سحر پورې دا سعادت ورکول کېږي. وايي حماد بن

سَلَمَةَ: فَرَأَى رَجُلٌ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا يَرَى النَّائِمُ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ

بن سلمه چې يو سړی نبي عليه السلام په خوب کې وليدو او عرض يې وکړو چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم:

إِنَّ أَبَا عَيَّاشٍ يُحَدِّثُ عَنْكَ بِكَذَا وَكَذَا قَالَ: صَدَقَ أَبُو عَيَّاشٍ . [1]

ابو عياش رضي الله عنه ستاسو (پاس ذکر شوی حديث) بيانوي؟ نبي عليه السلام وفرمايل: ابو عياش رشتيا وويل

## يوه نا اشنا دعاء

﴿۱۵﴾ وَعَنِ الْحَارِثِ بْنِ مُسْلِمٍ التَّمِيمِيِّ عَنْ أَبِيهِ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ

او حارث ابن مسلم تميمي د خپل پلار نه او هغه د نبي عليه السلام نه نقل کوي چې نبي عليه السلام مسلم تميمي

أَسَرَّ إِلَيْهِ فَقَالَ: إِذَا انْصَرَفْتَ مِنْ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ فَقُلْ قَبْلَ أَنْ تُكَلِّمَ أَحَدًا

ته پټ وفرمايل چې کله ته د ماښام د مونځ نه او ز ګار شي نو وايه مخکې د دې نه چې د چا سره خبرې ونه کړې

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳۱۹/۴ رقم الحديث : ۵۰۷۷

اَللّٰهُمَّ أَجِرْنِي مِنَ النَّارِ سَبْعَ مَرَّاتٍ فَإِنَّكَ إِذَا قُلْتَ ذٰلِكَ ثُمَّ مِتَّ فِي لَيْلَتِكَ

اى الله ! ما داور نه وساتې، او ه ځلې، او كه ته دا كلمه ووايې او بيا په هغه شپه ته مړ شې نو ستا لپاره به

كُتِبَ لَكَ جِوَارٌ مِنْهَا وَ إِذَا صَلَّيْتَ الصُّبْحَ فَقُلْ كَذٰلِكَ

داور نه پناه ليكلې كيږي او كله چې ته د سحر د مونځ نه اوزګار شې او هم دغه شان ووايې (يعنې چا سره د

فَإِنَّكَ إِذَا مُتَّ فِي يَوْمِكَ كُتِبَ لَكَ جِوَارٌ مِنْهَا .[1]

خبرو نه مخكې او ه ځل دا دعا ووايې) او بيا په هغه ورځ كې مړ شې نو ستا لپاره به داور نه پناه ليكلې كيږي.

**توضيح: جوار من النار:** څنګه چې په دې دعا كې اجرني تكې سره دعا غوښتلې شوې دا چې د هغې ترجمه پناه او خلاصي دى. ځكه د پوښتنې په جواب كې **كتب له جواز** بطور ثواب ويلې شوې دې چې هغه سړى لپاره به دوزخ نه د خلاصي او پناه حكم ليكلې كيږي. دا يوه عجيبه دوعا ده. بيخې لنډا دا او په شمير كې هم لنډه. **اللهم اجرني من النار:** ملا علي قاري په مرقات كې ليكلې دې چې دا تكې **جوار** هم منقول دې دلته ما د جوار په بنياد توضيح كړې د. (المرقات: ۵/۲۴۲)

## د سحر او ماښام يوه جامع دعاء

﴿۱۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : لَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَعُ هٰؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ حِينَ

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ووايې چې نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به نه پريښودې دغه دعاګانې په وخت د

يُمْسِي وَ حِينَ يُصْبِحُ : اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَافِيَةَ فِي الدُّنْيَا وَ الْآخِرَةِ اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ

سحر او په وخت د ماښام كې: اى الله! زه ستا نه په دنيا او آخرت كې عافيت غواړم يا الله زه غواړم د تا نه

الْعَفْوَ وَ الْعَافِيَةَ فِي دِينِي وَ دُنْيَايَ وَ أَهْلِي وَ مَالِي اَللّٰهُمَّ

معافي د خپل دين او دنيا كارونو كې (د بديو نه) او د خپل اهل وعيال او د خپل مال سلامتي غواړم اى الله

اسْتُرْ عَوْرَاتِي وَ آمِنْ رَوْعَاتِي اَللّٰهُمَّ احْفَظْنِي

زما په بديو پرده واچوې او ماته د وېرې د څيزونو نه امن كې وساتې او اى الله: ته زما حفاظت وكړې

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۴/۳۰۰ رقم الحديث ۵۰۱۹

مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ وَ مِنْ خَلْفِي وَ عَنْ يَمِينِي وَ عَنْ شِمَالِي وَ مِنْ فَوْقِي وَ أَعُوذُ بِعَظَمَتِكَ أَنْ

د مخکې نه او د وروستو نه او د ښي او چپ طرف نه او د بره نه او ای الله زه پناه غواړم ستا په عظمت سره

أُغْتَالَ مِنْ تَحْتِي . قَالَ وَكِيعٌ : يَعْنِي الْخَسْفَ .[1]

د دې خبرې نه هلاک مې کړې نا ساپه ، وکيع وايي يعنې په زمکه کې د ننه ډو بېدو نه.

﴿۱۷﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ : اللَّهُمَّ

او انس رضي الله عنه راوي دی چې نبي عليه السلام وفرمايل کوم سړی چې سحر وخت کې دا دعا وايي ای الله!

أَصْبَحْنَا نُشْهِدُكَ وَ نُشْهِدُ حَمَلَةَ عَرْشِكَ وَ مَلَائِكَتَكَ وَ جَمِيعَ خَلْقِكَ أَنَّكَ

مونږ سحر کړو مونږ ګواه کړو ستا عرش او چتونکې ستا فرشتې او ملائکې او ټول مخلوق په دې خبره

أَنْتَ اللهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ وَحْدَكَ لَا شَرِيكَ لَكَ وَ أَنَّ

چې ته الله يې ستا نه علاوه بل څوک د عبادت لائق نشته ته يو يې ستا سره څوک شريک نشته او بيشکه

مُحَمَّدًا عَبْدُكَ وَ رَسُولُكَ إِلَّا غَفَرَ اللهُ لَهُ مَا

محمد صلى الله عليه وسلم ستا بنده او ستا رسول دی، نو الله تعالى به و بخښي ده ته هغه ګناهونه چې کوم دده نه

أَصَابَهُ فِي يَوْمِهِ ذَلِكَ مِنْ ذَنْبٍ وَ إِنْ قَالَهَا حِينَ يُمْسِي غَفَرَ اللهُ لَهُ مَا

په دې ورځ کې شوي وي د ګناه نه او څوک چې دا کلمات ماښام و وايي نو الله تعالى دده ټول هغه ګناهونه

أَصَابَهُ فِي تِلْكَ اللَّيْلَةِ مِنْ ذَنْبٍ ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ [2]

معاف کوي کوم چې دده نه په شپه کې شوي وي.

﴿۱۸﴾ وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا مِنْ عَبْدٍ مُسْلِمٍ يَقُولُ إِذَا أَمْسَى

او ثوبان رضي الله عنه فرمايي چې نبي عليه السلام و فرمايل چې کوم مسلمان بنده و وايي چې کله ماښام شي

وَ إِذَا أَصْبَحَ ثَلَاثًا رَضِيتُ بِاللهِ رَبًّا وَ بِالْإِسْلَامِ دِينًا

او په وخت د صبا کې درې ځله دا چې زه راضي يم د الله په ربوبيت او په اسلام په حيثيت د دين باندې

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳۱۸/٤ رقم الحديث : ٥٠٧٤.

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۳۲۰/٤ رقم الحديث : ٥٠٧٨.

وَ بِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا إِلَّا كَانَ حَقًّا عَلَى اللهِ أَنْ يُرْضِيَهُ

اوپه محمد په حيثيت دنبي باندې (نو د الله تعالى د فضل سره) دالازم دي چې الله تعالى دابنده راضي

يَوْمَ الْقِيَامَةِ .[1]

کړي د قيامت په ورځ (يعني الله تعالى به ورته دومره ثواب ورکړي چې هغه به راضي او خوشحاله شي)

﴿۱۹﴾ وَ عَنْ حُذَيْفَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَنَامَ

او حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به کله د اوده کيدو اراده کوله (يعني داوده کيدو لپاره به

وَضَعَ يَدَهُ تَحْتَ رَأْسِهِ ثُمَّ قَالَ : اَللّٰهُمَّ قِنِي عَذَابَكَ

پريوتو) نو خپل لاس به يې د سر لاندې کيخودو او دا دعا به يې ويله: اى الله د هغه ورځې د عذاب نه و ساته

يَوْمَ تَجْمَعُ عِبَادَكَ أَوْ تَبْعَثُ عِبَادَكَ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَ رَوَاهُ أَحْمد عَنِ الْبَرَاءِ.[2]

چې ته خپل بنده ګان راټول کړې. يا چې ته کله خپل بنده ګان راټولې (يعني د قيامت په ورځ).

راوي ته شک دې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د تجمع عبادك وويل يا يې د دې په ځاى تبعث عبادك وويل.

﴿۲۰﴾ وَعَنْ حَفصةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْقُدَ وَضَعَ

او حضرت حفصه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به چې کله د اوده کېدو اراده وکړه نو کينبودو به يې

يَدَهُ الْيُمْنَى تَحْتَ خَدِّهِ ثُمَّ يَقُولُ : اَللّٰهُمَّ قِنِي عَذَابَكَ يَوْمَ

خپل ښى لاس د مخ لاندې او بيا به يې وويل ؟اى الله! ماوساتې د عذاب د هغه ورځې چې ته راپورته

تَبْعَثُ عِبَادَكَ . ثَلَاثَ مَرَّاتٍ .[3]

کوې بندګان خپل، درې ځل به يې دا ويل .

﴿۲۱﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ عِنْدَ مَضْجَعِهِ :

او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي فرمايې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به د اوده کيدو نه مخکې دا دعاء لوستله:

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۳۳ رقم الحديث : ۹ ؛ ؛

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۳۷ رقم الحديث : ۳۴۵۸.

(۳) أخرجه ابوداود في السنن ۴/۳۱۰ رقم الحديث : ۵۰۴۵.

| |
|---|
| اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِوَجْهِكَ الْكَرِيمِ وَ كَلِمَاتِكَ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ |
| ای الله! زه پناه غواړم ستا د عزتمند ذات او د پوره کلماتو په ذریعه د شر د هغه مخلوق نه چې ستا په |
| مَا أَنْتَ آخِذٌ بناصيتهِ اللّٰهُمَّ أَنْت تكشِفُ المغرمَ و المأثمَ اللّٰهُمَّ لَا يُهْزَمُ جُنْدُكَ |
| قبضه کې دې ای الله! ته قرض خلاصونکې یې او ګناهونه بخښنې زما مولا! ستا لښکر ته شکست نشي |
| وَلَا يُخْلَفُ وَعْدُكَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ |
| ورکولې او خلاف نه شي کیدې ستا دوعدې او فائده نه ورکوي مالدار ته مال دده په مقابله ستا کې |
| سُبْحَانَكَ وَ بِحَمْدِكَ.[1] |
| ته پاک یې او تعریف هم ستا لپاره دې. |

**توضیح: الجد**: مال ته وایي نو **ذالجد** نه مراد مالدار سړی دی. **ذاالجد** دې حدیث کې مفعول به واقع دې. **منك ای بمقابلتك**، **الجد** دا د **لاينفع** فاعل دی. (المرقات: ۵/۲۴۸)

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " مَنْ قَالَ حِينَ |
| او حضرت ابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل چا چې وویل په هغه وخت کې چې |
| يَأْوِي إِلَى فِرَاشِهِ : أَسْتَغْفِرُ اللهَ الَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ |
| کله راشي بسترې ته: زه د الله نه بخښنه غواړم هغه شان الله چې دده نه بغیر بل څوک لائق د عبادت نشته |
| الحَيُّ الْقَيومَ و أَتُوبُ إِلَيْهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ غَفَرَ اللهُ |
| او کوم چې دژوندې مخلوق خبراخستلو والا دې او زه دې الله ته توبه کوم، درې کرته نو وبه بخښې الله |
| لَهُ ذُنُوبُهُ وَ إِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ أَوْ عَدَدَ رَمْلِ عَالَجٍ |
| تعالی ده ته ګناهونه دده اګر که هغه د سمندر دزګ برابر وي یا د عالج د شګو (دانو) تعداد برابر وي |
| أَوْ عَدَدَ وَرَقِ الشَّجَرِ أَوْ عَدَدَ أَيَّامِ الدُّنْيَا ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[2] |
| یا دبوټو دپاڼو برابر وي او یا د دنیا د ورځو برابر وي. |

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ٤ / ٣١٢ رقم الحديث ٥٠٥٢.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ٥ / ١٣٧ رقم الحديث : ٣٤٥٧.

**توضيح**: **رمل عالج**: دا ديو ځاى نوم دي چرته چې شګه دومره ډېره وي چې د شګې ډېرې لګيدلې وي **عالج** چې د ځاى نوم و ګڼلي شي نو بيا به **رمل** هغې طرف ته زياتوالي وي. په دې حديث کې تکې او تنويع لپاره دي (المرقات: ٥/٢٤٩)

## دا وده کيدو په وخت کې د قرآن د کوم يو سورت تلاوت کولو ثواب

| |
|---|
| ﴿٢٣﴾ وَعَنْ شَدَّادِبْنِ أَوْسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسلم: مَامن مُسْلِمٍ يَأْخُذُ مَضْجَعَهُ |
| او شداد ابن اوس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايلې دي کوم مسلمان چې هم د خپل خوب ځاى |
| بِقِرَاءَةِ سُورَةٍ مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ إِلَّا |
| تمراشي (دا وده کيدو وخت کې) د قرآن کريم يو سورت تلاوت کړي نو الله تعالى ده سره يوه فرشته مقرره |
| وَكَّلَ اللّٰهُ بِهِ مَلَكًا |
| کړې (او هغه فرشتې ته حکم کوي چې د ضرر رسونکې هر يو څيز نه دا بنده محفوظ وساته) تر دې چې هغه |
| فَلَا يَقْرَبُهُ شَيْءٌ يُؤْذِيهِ حَتَّى يَهُبَّ مَتَى هَبَّ.[1] |
| راپاسيدلي نه وي نو ضرر رسونکې هيڅ يو څيز هم د هغې خوا ته نشي راتلي اګر که هغه هر وخت راپاڅيږي. |

**توضيح**: **سورة** يعنې چې هر يو سورت وې خاص سورت مقرر شوې نه دى. لهذا د قرآن وړوکې سورت مثلاً سورت کوثر يا سورت اخلاص او داسې نورو باندې هم لويه ګټه تر لاسه کيدلى شي. دا عجيب برکت او لو نعمت دى. چې هغه د لګ مصرف ډېره ګټه قسم دي که د هر قسم څوکيدارا انتظام وشو. (المرقات: ٥/٢٥٠)

## کم مصرف ډېره ګټه

| |
|---|
| ﴿٢٤﴾ وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرِوبْنِ الْعَاصِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: خَلَّتَانِ |
| او حضرت عبد الله بن عمرو بن عاص رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل دوه داسې څيزونه دي |
| لَا يُحْصِيهِمَا رَجُلٌ مُسْلِمٌ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ أَلَا وَ هُمَا يَسِيرٌ |
| چې هر يو مسلمان پرې هميشه والې و کړي هغه به جنت ته داخليږي او پوهه شه! دا دوه څيزونه ډير آسان دي |

(١) أخرجه الترمذي في السنن ٥/٤٠: رقم الحديث ٣٤١٨.

| وَ | مَنْ | يَعْمَلُ | بِهِمَا | قَلِيلٌ |
|---|---|---|---|---|
| خو په هغې باندې عمل کونکې ډېر کم دي (يعني د الله د توفيق نه ورکولو په وجه د او مت سره عمل کولو | | | | |

| يُسَبِّحُ | اللّٰهَ | فِيْ | دُبُرِ | كُلِّ | صَلَاةٍ | عَشْرًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| والا ډېر کم دي) په هغې کې يو څيز دا دې چې د هر فرض مونځ نه وروستو لس ځله د الله پاکی سره ياد | | | | | | |

| وَ | يَحْمَدُهُ | عَشْرًا |
|---|---|---|
| کړي يعني سبحان الله و ويلې شي لس ځله د خدای تعريف و شي يعني الحمد لله و ويلې شي او الله اکبر | | |

و يكبِّرهُ عشراً قَالَ : فَأَنَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَعْقِدُهَا

و ويلې شي لس ځله عبد الله ابن عمرو بن العاص رضي الله عنه وايي چې ما نبي عليه السلام وليدلو چې شمارل يې

بِيَدِهِ قَالَ : فَتِلْكَ خَمْسُونَ وَ مِائَةٌ فِي اللِّسَان

دلاس په ګوتو او وې ويل (د پنځه واړه مونځونو مجموعي شمير په اعتبار سره) دا خو په ژبه يو نيم سل

وَ أَلْفٌ وَ خَمْسُ مِائَةٍ فِي الْمِيزَانِ

دي خو د (اعمالو) په تله کې د دوي شمير پنځلس سوه دی (يعني په هره نيکی لس نيکی ليکلې کېږي)

وَ إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ يُسَبِّحُهُ وَ يُكَبِّرُهُ وَ يَحْمَدُهُ مِائَةً

او د ويمه خبره دا چې دا وده کيد و په وخت کې سبحان الله، الله اکبر او الحمد لله سل ځله و وايه يعني

سبحان الله ۳۳ ځله او الحمد لله ۳۳ ځله او الله اکبر ۳۴ ځله و وايه نو د دې مجموعه سل شو، نو دا

فَتِلْكَ مِائَةٌ بِاللِّسَانِ وَ أَلْفٌ فِي الْمِيزَانِ فَأَيُّكُمْ يَعْمَلُ

په ژبه سره سل ځله دي خو د اعمالو په تله کې به (۱۰۰۰) وي، نو په تاسو کې هغه څوک چې کوي په

فِي الْيَوْمِ وَ اللَّيْلَةِ أَلْفَيْنِ وَ خَمْسَمِائَةِ سَيِّئَةٍ ؟ قَالُوا: وَ كَيْفَ لَا نُحْصِيهَا؟

شپه او ورځ کې (۱۵۰۰) بدی؟ صحابو عرض وکړو (چې دا خبره ده نو بيا) مونږ د دې حفاظت ولې نه کوو

قَالَ : " يَأْتِي أَحَدَكُمُ الشَّيْطَانُ وَ هُوَ فِي صِلَاتِهِ فَيَقُولُ:

نبي عليه السلام و فرمايل چې په تاسو کې کوم يو سړی مونځ کوي نو هغه ته شيطان راځي او ورته وايي چې

| |
|---|
| أُذْكُرْ كَذَا أُذْكُرْ كَذَا حَتّٰى يَنْفَتِلَ فَلَعَلَّهُ أَنْ |
| فلاني څيز ياد كړه او فلانى خبره ياد كړه تر دې هغه د مونځ نه فارغ شي نو كيدى شي چې هغه د دې حفاظت |
| لَا يَفْعَلَ وَ يَأْتِيهِ فِي مَضْجَعِهِ فَلَا يَزَالُ يُنَوِّمُهُ حَتّٰى يَنَامَ ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ |
| ونه كړي شي او د غه شان شيطان د هغه د خوب ځاى ته راشي او هغه اوده كړي تر دې چې هغه اوده شي |
| وَ فِيْ رِوَايَةِ أَبِيْ دَاوُدَ قَالَ : خَصْلَتَانِ أَوْ خَلَّتَانِ |
| او د ابو داؤد د روايت كې دى چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: دوه خصلتونه يا دوه (څيزونه) داسې دي چې |
| لَا يُحَافِظُ عَلَيْهِمَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ. |
| كوم يو مسلمان بنده اختيار كړي (يعني په دې روايت كې لا يحصيهما رجل مسلم په ځاى لا يحافظ |
| وَ كَذَا فِيْ رِوَايَتِهِ بَعْدَ قَوْلِهِ : وَ أَلْفٌ وَ خَمْسُ مِائَةٍ فِي الْمِيزَانِ |
| عليهما عبد مسلم دى) همدا رنګې دابو داود په روايت كې د وخمس مائة في الميزان نه وروسته دا الفاظ |
| قَالَ: وَ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا وَ ثَلَاثِيْنَ إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ وَيَحْمَدُ ثَلَاثًا وَثَلَاثِيْنَ وَيُسَبِّحُ ثَلَاثًا وَثَلَاثِيْنَ". |
| دې چې تكبير و وايه ۳۴ ځله چې بسترې ته راشي او حمد و وايه ۳۳ ځله او تسبيح و وايه ۳۳ ځله. |
| وَ فِيْ أَكْثَرِ نُسَخِ المصابيح عَنْ : عَبْدِ الله بن عمر.[1] |
| او د مصابيح په اكثر نسخو كې دا روايت د عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه نقل دې. |

**توضيح: خصلتان** يعني دوه خصلتونه او دوه څيزونه داسې دې چا چې د هغې پابندې او حفاظت وكړو نو هغه سړى به جنت ته داخلېږي. **ألا** دا كلمه حرف تنبيه دي . (المرقات: ۲۵۱-۵/۲۵۲)

**في دبر كل صلوة:** د پنځو واړو مونځونو نه وروسته د دې كلماتو شمير يو نيم سل جوړېږي. په دې حديث كې دې چې دا يو نيم سل كلمات په وزن او ثواب كې د يو نيم زرو (۱۵۰۰) برابر دي. او كه چا دا كلمات د اوده كيدو وخت كې سل ځله وويل نو په وزن او ثواب كې به د دې شمير د زرو (۱۰۰۰) برابر وي. اوس په مجموعي اعتبار سره د ويلې شو كلماتو شمير يو نيم زر (۱۵۰۰) شول. اوس نبي

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳۱۶/۴ رقم الحديث : ۵۰۶۵

عَلَيۡهِٱلسَّلَامُ د صحاب کرامو د پوښتنه وکړه چې په تاسو کې څوک دې چې هغه څلیریش (۲۴) سعاتو کې یونیم زر (۱۵۰۰) ګناهونه کوي. د دې کلمې نبي کریم صَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ دې خبرې طرف ته اشاره وکړه چې د قرآن قانو مطابق یوې نیکۍ سره ګناهونه وینځل کېږي. نو د یویم زر نیکیو سره یونیم زر ګناهونه بخښل کېږي. په تاسو کوم سړی چې شپه او ورځ کې یو نیم زر ګناهونه کوي؟(المرقات: ۵/۲۵۱).

د دې په جواب کې صحابه کرامو **وکیف لانحصیها** وویل. اوس پوښتنه دا ده چې دا جواب د کومې خبرې دې دې نه مخکې خبرې لپاره خو دا جواب نه شي جوړیدی؟.
د دې جواب ملا علي قاري رَحِمَهُٱللَّهُ داسې ورکړی دی چې حقیقت کې دا جمله د محذوف عبارت په جواب کې راغلي ده چې هغه استفهام انکاري دي. هغه محذوف عبارت داسې دي: **فمالکم لاتأتونه بهما ولا تحصونهما؟** یعنې په تاسو څه شوي دي چې په داسې لږ مصرف ډېره ګټه نه کوي او د دوه خصلتونه نه پوره کوي؟ صحابو په جواب کې وفرمایل: دا آسانه ده. د دې کول څه ګران دي. مونږ به د دې حفاظت ولې نه کووو. آخر په څه وجه به دا مونږه نه پاتې شي؟
د دې په جواب کې نبي کریم صَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ وفرمایل چې شیطان په مونځ کې تاسو ته وسوسه اچوي. مونځ کونکې چې کله د مونځ نه اوزګار شي نو هغه د بې غورۍ ښکار شي. نو دغه شان هغه د کلمات نه شي لوستلې. همدغه شان شیطان سړی ته د اوده کیدو وخت کې راشي. او هغه ناراسته کړي او اوده یې کړي نو دا کلمات پاتې شي. (المرقات: ۵/۲۵۱)

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ غَنَّامٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: "من قَالَ حِينَ يُصْبِحُ: |
| او حضرت عبد الله بن غنام رَضِيَٱللَّهُعَنۡهُ فرمایې چې نبي عَلَيۡهِٱلسَّلَامُ وفرمایل چاچې وویل د سحر په وخت کې |
| اللَّهُمَّ مَاأَصْبَحَ بِي مِنْ نِعْمَةٍ أَوْبِأَحَدٍ مِنْ خَلْقِكَ فَمِنْكَ وَحْدَكَ لَا شَرِيكَ لَكَ فَلَكَ الْحَمْدُ وَلَكَ الشُّكْرُ |
| فَقَدْ أَدَّى شُكْرَ يَوْمِهِ وَمَنْ قَالَ مِثْلَ ذَلِكَ حِينَ يُمْسِي فَقَدْ أَدَّى شُكْرَ لَيْلَتِهِ". [1] |
| نو هغه وویستلو شکر د دې ورځې او چاچې دا کلمات د ماښام وخت کې وویل نو هغه د دغه ماښام شکر |
| وویستلو خو د ماښام وخت کې چې کله دا دعا ویلی شي نو د اصبح په ځای دې امسیٰ وویلی شي. |

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳۱۶/٤ رقم الحديث :۵۰۷۳.

﴿۲۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ إِذَا أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ :

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به کله بستري ته راغلو نو دا دعاء به يې ويله :

اللّٰهُمَّ رَبَّ السَّمَاوَاتِ وَرَبَّ الْأَرْضِ وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ فَالِقَ الْحَبِّ وَالنَّوَى مُنْزِلَ التوراةِ والإنجيل والقرآنِ أعوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ كُلِّ ذِي شَرٍّ أَنْتَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهِ أَنْتَ الْأَوَّلُ فَلَيْسَ قَبْلَكَ شَيْءٌ وَأَنْتَ الْآخِرُ فَلَيْسَ بَعْدَكَ شَيْءٌ وَأَنْتَ الظَّاهِرُ فَلَيْسَ فَوْقَكَ شَيْءٌ وَأَنْتَ الْبَاطِنُ فَلَيْسَ دُونَكَ شَيْءٌ اقْضِ عَنِّي الدَّيْنَ وَاغْنِنِي مِنَ الْفَقْرِ . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَرَوَاهُ مُسلم مَعَ اخْتِلَاف يسير [1]

(په حصن حصين کې دي چې دا دعاء دا وده کيدو په وخت کې چې پريوزي وايي دي).

﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِي الْأَزْهَرِ الْأَيمارِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ مِنَ اللَّيْلِ قَالَ:

او ابي ازهر ايماری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به کله د شپې خپلې بستري ته راغلو نو ويل به يې:

بسمِ اللهِ وضعْتُ جَنْبِي لله اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي ذَنْبِي وَاخْسَأْ شَيْطَانِي وَفُكَّ رِهَانِي وَاجْعَلْنِي فِي النَّدِيِّ الْأَعْلَى . [2]

﴿۲۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ مِنَ اللَّيْلِ قَالَ:

او عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به کله د شپې خپلې بستري ته راغلو نو ويل به يې:

الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي كَفَانِي وَآوَانِي وَأَطْعَمَنِي وَسَقَانِي وَالَّذِي مَنَّ عَلَيَّ فَأَفْضَلَ وَالَّذِي أَعْطَانِي فَأَجْزَلَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ اللّٰهُمَّ رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَمَلِيكَهُ والا كُلِّ شَيْءٍ أَعُوذُ بِكَ مِنَ النَّارِ . [3]

﴿۲۹﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ : شَكَا خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُول الله

بريده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي وايي يو ځل شکايت وکړو خالد بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته چې يا رسول الله

مَا أَنَام مِنَ اللَّيْلِ مِنَ الْأَرَقِ فَقَالَ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " إِذَا أَوَيْتَ إِلَى

زه د بې خوبۍ په وجه د شپې اوده کيدلي نه شم؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمايل : چې ته کله راشي خپلې

فِرَاشِكَ فَقُلْ :

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳۱۲/٤ رقم الحديث : ۵۰۵۱

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۳۱۳/٤ رقم الحديث : ۵۰۵٤.

(۳) أخرجه أبوداود ۷۳٤/۲، رقم الحديث : ۵۰۵۸.

بستري ته نو دا دعا وايه:

اللَّهُمَّ رَبَّ السَّمَاوَاتِ السَّبْعِ وَمَا أَظَلَّتْ وَرَبَّ الْأَرَضِينَ وَمَا أَقَلَّتْ وَرَبَّ الشَّيَاطِينِ وَمَا أَضَلَّتْ كُنْ لِي جَارًا مِنْ شَرِّ خَلْقِكَ كُلِّهِمْ جَمِيعًا أَنْ يَفْرُطَ عَلَيَّ أَحَدٌ مِنْهُمْ أَوْ أَنْ يَبْغِيَ عَزَّ جَارُكَ وَجَلَّ ثَنَاؤُكَ وَلَا إِلَهَ غَيْرُكَ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ". وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ والحكمُ بن ظُهَيرٍ الرَّاوِي قد ترك حديثَهُ بعضُ أهل الحَدِيث[1]

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

﴿۳۰﴾ وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِذَا أَصْبَحَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ:

ابو مالک رضي الله عنه راوي دي چې نبي علیه السلام و فرمايل چې کله سحر شي نو په تاسو کې دې هر سړی و وايي

أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ هَذَا الْيَوْمِ فَتْحَهُ وَنَصْرَهُ وَنُورَهُ وَبَرَكَتَهُ وَهُدَاهُ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا فِيهِ وَمِنْ شَرِّ مَا بَعْدَهُ

ثُمَّ إِذَا أَمْسَى فَلْيَقُلْ مِثْلَ ذَلِكَ ". [2]

او چې بيا کله ماښام شي نو دغه شان دې دا دعا و وايي.

﴿۳۱﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ: قُلْتُ لِأَبِي: يَا أَبَتِ أَسْمَعُكَ تَقُولُ كُلَّ غَدَاةٍ:

او عبد الرحمن بن ابو بکره وايي چې ما خپل پلار ته و ويل چې پلاره! زه اورم د تا نه چې ته وايي هره ورځ

اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي بَدَنِي اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي سَمْعِي اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي بَصَرِي لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ

تُكَرِّرُهَا ثَلَاثًا حِينَ تُصْبِحُ وَ ثَلَاثًا حِين تمسي فَقَالَ: يَا بُنَيَّ سَمِعْتُ

ويله به يې درې ځله په سحر کې او درې ځله په ماښام کې نو پلار يې ورته و ويل: ای زويه! ما اوريدلي د

رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَدْعُو بِهِنَّ فَأَنَا أُحِبُّ أَنْ أستن بسننه .[3]

نبي علیه السلام نه چې دعا به يې غوښتله په همدې کلماتو سره نو زه دا خوښوم چې د نبي علیه السلام اطاعت وکړم

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۹۹/۵ رقم الحديث . ۳۵۸۹

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۳۲۲/٤ رقم الحديث : ۵۰۸٤.

(۳) أخرجه ابوداود في السنن ۳۲٤/٤ رقم الحديث : ۵۰۹۰.

﴿٣٢﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَصْبَحَ قَالَ:

او حضرت عبد الله ابن اوفى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: چې كله به سحر شو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام به دا دعاء فرمايله:

أَصْبَحْنَا وَ أَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلّٰهِ وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَ الْكِبْرِيَاءُ وَ الْعَظَمَةُ لِلّٰهِ وَ الْخَلْقُ وَ الْأَمْرُ

سحر كړو مونږ او سحر كړو ملک چې الله دى او حمد او ثناء او لوئي او عظمت دى الله لره او خلقت او حكم

وَ اللَّيْلُ وَ النَّهَارُ وَمَا سَكَنَ فِيهِمَا لِلّٰهِ اللّٰهُمَّ اجْعَلْ

او شپه او ورځ او هغه شيان چې په شپه او ورځ كې استراحت مومي ټول الله لپاره دي، اى الله! وګرځوي

أَوَّلَ هٰذَا النَّهَارِ صَلَاحًا وَ أَوْسَطَهُ نَجَاحًا وَ آخِرَهُ

اوله برخه د دې ورځې نيكي او مينځني برخه د حاجاتو د پوره كولو لپاره جوړه كړې او د دې آخري برخه

فَلَاحًا يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ. ذَكَرَهُ النَّوَوِيُّ فِي كِتَابِ الْأَذْكَارِ بِرِوَايَةِ ابْنِ السُّنِّي.

د خلاصي سبب جوړه كړې. اى په رحم كولو كې د ټولو نه ډير رحم كولو والا.

﴿٣٣﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبْزَى قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِذَا أَصْبَحَ:

او حضرت عبد الرحمن ابن ابزي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به د سحر وخت كې دا فرمايل:

أَصْبَحْنَا عَلَى فِطْرَةِ الْإِسْلَامِ وَ كَلِمَةِ الْإِخْلَاصِ

سحر كړو مونږ په دين اسلام باندې او په كلمه توحيد باندې چې هغه لا اله الا الله محمد رسول الله دى

وَ عَلَى دِينِ نَبِيِّنَا مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ عَلَى مِلَّةِ أَبِينَا إِبْرَاهِيمَ

او د خپل نبي حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دين باندې او د خپل پلار ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام په دين باندې

حَنِيفًا وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ.[1]

چې هغه باطل نه بېزاره او حق طرف ته متوجه ؤ او نه ؤ ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام د شرک كوونكو نه.



(١) أخرجه الدارمي ٢/٢٩٤، رقم الحديث: ٢٧٤٤، مسند أحمد ٣/٤٠٧، رقم الحديث: ١٥٤٠١.

# باب الدعوات في الأوقات

## په مختلفو وختونو کې دعاګانې

کله چې دعاګانې د شارع د طرف نه کوم وخت سره مقید کړی شویدي نو په هغې باندې هغه وخت عمل کول په کار دي. ددې لپاره چې هغه تاثیرولري مناجات مقبول چې هغه حضرت تهانوي رَحِمَهُ اللهُ راغونډ کړې دي یوه ډېره ښه رساله ده چې په هغې دهفته وار (داونی) دعاګانو لپاره بېلا بېل پراونه کېخودلي شوي دي ډېر غوره شي دی ډېر جامع دي هر عالم او هر طالب سره شتون په کار دی.

### د جماع په وخت کې دعاء

﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا أَرَادَ

او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې که چیرته یو کس په تاسو کې اراده وکړي

أَنْ يَأْتِيَ أَهْلَهُ قَالَ: بِسْمِ اللهِ اللّٰهُمَّ

چې راشي خپلې ښځې یا خپلې وینزې ته د جماع د پاره نو دا دعاء دې ووایي په نوم د الله سره، ای الله!

جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ وَجَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا فَإِنَّهُ

مونږ وساتي د شیطان د ضرر نه او وساتي دا ضرار و د شیطان نه هغه اولاد کوم چې ته مونږ ته راکوي نو که چیرته

إِنْ يُقَدَّرْ بَيْنَهُمَا وَلَدٌ فِي ذَلِكَ لَمْ يَضُرَّهُ شَيْطَانٌ أَبَدًا ".[1]

ددوي په تقدیر کې ماشوم وي نو ضرر به ورنه کړي شیطان دې ماشوم ته هیڅکله.

### د سخت غم په وخت کې دعاء

﴿۲﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ عِنْدَ الْكَرْبِ: لَا إِلَهَ

او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به د سخت غم وخت کې دا دعاء ویله: نشته بل څوک لائق

إِلَّا اللهُ الْعَظِيمُ الْحَلِيمُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ رَبُّ

د عبادت په غیر د الله نه چې لوی او تحمل ناک دی. نشته بل څوک لائق د عبادت بغیر د الله نه چې رب د

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٦/٣٣٥ رقم الحديث: ٣٢٧١، أخرجه مسلم في صحيحه ٢/١٠٥٨ رقم الحديث: ١٤٣٤/١١٦.

الْعَرْشِ الْعَظِيمِ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَ رَبُّ

لوي عرش دی. نشته بل څوک لائق د عبادت بغیر د الله نه چې پروردګار دي د آسمانونو او پروردګار دي

الْأَرْضِ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيمِ.[1]

د زمکې او پروردګار دي د عزتمند عرش.

## د غصې کمولو طریقه

﴿۳﴾ وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدَ قَالَ: اسْتَبَّ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ عِنْدَهُ

او سلیمان بن صرد رضي الله عنه فرمایي چې کنځلې وکړې دوه کسانو د نبي علیه السلام د وړاندې او مونږ د لته

جُلُوسٌ وَ أَحَدُهُمَا يَسُبُّ صَاحِبَهُ

ناست وو او یو په دې دواړو کې هغه بل ته د بړې بدې ردې وویلې. هغه د غصې نه ډک وو او سور کیدو

مُغْضَبًا قَدِ احْمَرَّ وَجْهُهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنِّي لَأَعْلَمُ كَلِمَةً لَوْ

یې مخ د ده. نبي علیه السلام (چې د هغه دا حالت ولیدو) وې فرمایل چې زه په یوې کلمې خبریم که چیرته

قَالَهَا لَذَهَبَ عَنْهُ مَا يَجِدُ أَعُوذُ

دا سړی هغه کلمه ووایي نو د هغې غصه به ختمه شي کومه چې ده کې ده او هغه کلمه دا ده: زه پناه

بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ.

غواړم په الله تعالی سره د شیطان رټلي شوي نه (صحابو چې کله دا اولیدل چې هغې سړي دا کلمه ونه

فَقَالُوا لِلرَّجُلِ: لَا تَسْمَعُ مَا يَقُولُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ:

ویله) نو هغه ته یې وویل آیا ته نه اورې چې نبي علیه السلام څه فرمایي؟ هغې سړي وویل چې: زه خو

إِنِّي لَسْتُ بِمَجْنُونٍ[2]

څه لیونی نه یم؟.

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱ ۵ ... رقم الحديث ۵ ... أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۹۲/٤ رقم الحديث ۸۳/ ۲۷۳۰
(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰ ۱۸ ٥ رقم الحديث ۱۵ ... أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۱۵/٤ رقم الحديث ۱۹ ۲۶۱۰.

**توضيح : إني لست بمجنون** : يعني پناه غوښتل د شيطان نه داد ليوني کار دی زه ليوني نه يم داکس څوک منافق او يا جنې سړی ؤ چې د معاشرې د آدابو سره اشنا نه ؤ. حالانکې کومه رويه چې هغې خپله کړې وه هغه خپله ويلي چې ليونې خو ؤ خو غصه د قابو نه وتل هم د ليونتوب يوه شعبه ده. (المرقات ۵/۲۶۷)

## د چرګ آذان ولې او د خر هنارې، هنارې ولې؟

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا سَمِعْتُمْ صِيَاحَ الدِّيَكَةِ فَسَلُوا |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې کله تاسو د بانګې آذان واورئ نو سوال کوئ |
| اللهَ مِنْ فَضْلِهِ فَإِنَّهَا رَأَتْ مَلَكًا وَ إِذَا سَمِعْتُمْ نَهِيقَ الْحِمَارِ فَتَعَوَّذُوا بِاللهِ |
| د الله نه د ده د فضل ځکه چې هغه فرشته ويني او کله چې خر هنارې واورئ نو پناه وغواړئ په الله تعالى |
| مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ فَإِنَّهُ رَأَى شَيْطَانًا.[1] |
| سره د شيطان رټلي شوي نه ځکه هغه شيطان ويني. |

## د سفر دعاء

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا اسْتَوَى عَلَى بَعِيرِهِ خَارِجًا إِلَى السَّفَرِ |
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې کله نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به په اوښ به سپور شوا و وتلو به په سفر باندې |
| كَبَّرَ ثَلَاثًا ثُمَّ قَالَ : ( سُبْحَانَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا |
| نو اول به يې درې ځله الله اکبر وويل او بيا به يې وويل: پاک دی هغه ذات چا چې تابعداره کړې ده مونږ |
| هٰذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ وَ إِنَّا إِلَى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُونَ) |
| ته دا سپرلۍ. حالانکه مونږ د هغې طاقت نه لرو او بېشکه مونږ د خپل رب اړخ ته واپس کيدونکي يو. |
| اللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْأَلُكَ فِي سَفَرِنَا هٰذَا الْبِرَّ وَالتَّقْوٰى وَ مِنَ الْعَمَلِ مَا تَرْضٰى |
| اى الله! مونږ غواړو ستا نه په دې سفر کې نيکي او تقوى او داسې عمل چې په هغې ته راضي کېږې |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۵۰ رقم الحديث :۳۳۰۳، أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۹۲ رقم الحديث :۲۷۲۹/۸۲.

| |
|---|
| اللّٰهُمَّ هَوِّنْ عَلَيْنَا سَفَرَنَا هٰذَا وَاطْوِ لَنَا بُعْدَهُ اللّٰهُمَّ أَنْتَ الصَّاحِبُ |
| اى پروردګاره! آسان کړې مونږ ته دا سفر او رالنډ کړې مونږ ته د دې لرې والى اى الله! ته زمونږ ساتونکې |
| فِي السَّفَرِ وَ الْخَلِيفَةُ فِي الْأَهْلِ وَ الْمَالِ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُبِكَ |
| يې په سفر کې او زمونږ د کور خلکو او مال ته ښه خبريدونکې يې. اى الله! زه پناه غواړم په تا سره |
| مِنْ وَعْثَاءِ السَّفَرِ وَ كَآبَةِ الْمَنْظَرِ وَ سُوءِ الْمُنْقَلَبِ فِي الْمَالِ و الأهلِ". |
| د سفر د تکليف نه او د ليدلو د بد حالت نه او په بد حالت کې راتګ کې د خپل کور والو او مال نه (يعنې د |
| دې هم پناه غواړم چې د سفر نه وروسته خپل مال او کور واله د نقصان په حالت کې ووينم او خفه شم). |
| و إِذا رجعَ قالَهنَّ وَ زَادَ فيهِنَّ : |
| او چې کله به نبي عليه السلام د سفر نه را واپس کيدو نو هم دغه دعاء به يې ويله او زياتول به يې په کې دا |
| آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ . (۱) |
| مونږ د سفر نه را واپس کيدونکي ،توبه کوونکي ،د خپل رب عبادت کونکې او تعريف کوونکې يو. |

**توضيح:** وعثا سخت تکليف ته عثا وايي خاص طور باندې چې کله ختو کې تلل ګران شي. (المرقات ۵/۲۷۲)

**کآبة المنظر:** کئب د باب سمع نه دى، داسې نه برداشت کيدونکې غم ته وايي چې د سړى ملا ماتوي. (المرقات ۵/۲۷۲)

**المنظر:** مصدر ميمي دې د معنى د نظر دې يعنې د داسې حالت نه مو ساتې چې هغه د نه برداشت کولو غم ورکوي. (المرقات ۵/۲۷۲)

**سوء المنقلب:** منقلب هم مصدر ميمي دې انقلاب او لوټني ته وايې **اى من سوء الرجوع بأن يصيبنا حزن او مرض** يعنې کور ته بېا راتلو نه وروستو داسې حالت پېښ نه شي چې د هغې په وجه مشکل پېښ شي. او يا کور ته د تلو وخت کې داسې وې چې سفر کې نقصان شوې وې يا سامان ورک شوي وې يا تجارت کې تاوان شوي وې. (المرقات ۵/۲۷۲)

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۹۷۸/۲ رقم الحديث :۱۳٤۲/٤۲۵.

آئبون ای راجعون من السفر الي اوطاننا تائبون من المعصية الي الطاعة. (المرقات: ۵/۲۷۲)

﴿٦﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَرْجِسَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَافَرَ يَتَعَوَّذُ

او عبد الله ابن سرجس رضي الله عنه فرمايي چې نبي عليه السلام به کله سفر کولو نو پناه به يې غوښتله د مشقت

مِنْ وَعْثَاءِ السَّفَرِ وَ كَآبَةِ الْمُنْقَلَبِ وَ الْحَوْرِ بَعْدَ الْكَوْرِ

د سفر ته او محنت نه د بيا راتلو نه بد حالت نه (نيک عمل او په اولاد او مال کې) ډيروالي نه وروسته

وَ دَعْوَةِ الْمَظْلُومِ وَ سُوءِ الْمَنْظَرِ فِي الْأَهْلِ وَ الْمَالِ.(۱)

د نقصان نه، د مظلوم د بد دعا نه او بيا راتلو نه وروستو د خپل اولاد او د مال د بد حالت کتلو نه.

**توضيح: كآبة المنقلب:** په دي حديث کې دا کلمه داسې ده. خو د دې نه مخکې حديث: ۲ کې د کلمه **كآبة المنظر** ټکی ذکر شوې دی. او **سوءالمنقلب** ټکی هم شته. خو دا ټول ټکې د معنی په اعتبار سره نزدې نزدې دي څه فرق په کې نشته. هلته او دلته وضاحت يو شان دی. (المرقات ۵/۲۷۲)

**والحور بعدالكور:** دواړو ټکو کې حا او کاف باندې فتحه ده او واوو ساکن دې اصل کې کور پګړۍ ترلو او وَل ته ويلی کيږی او حور د هغې د برسيرته کيدو په معنی دی. دلته مراد د ترقی نه تنزل اړخ ته تللو نه پناه غوښتلي شوي ده. نو کور د زيات او اصلاح لپاره استعمال شوي دې او حور فساد او نقصان لپاره استعمال شوی دی. دا چې زيادت نه وروستو نقصان اړخ ته او اصلاح نه وروستو فساد اړخ ته راتلو نه تا پور پناه غواړم. (المرقات: ۵/۲۷۲)

﴿۷﴾ وَعَنْ خَوْلَةَ بِنْتِ حَكِيمٍ قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ نَزَلَ مَنْزِلًا

او خوله بنت حکيم وايي چې ما اوريدلي دې چې نبي عليه السلام به فرمايل کوم سړی چې يو نوي ځای ته

فَقَالَ: أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللّٰهِ التَّامَّاتِ

(که هغه سفر کې وي او يا کور کې) راشي او بيا دا کلمات ووايي: زه پناه غواړم په کاملو کلماتو د الله سره

مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ لَمْ يَضُرَّهُ شَيْءٌ حَتَّى يَرْحَلَ مِنْ مَنْزِلِهِ ذٰلِكَ".(۲)

د ضرر د هغه څه نه چې هغه پيدا کړي، نو ضرر به و نه رسوي ده ته هيڅ څيز تر دې چې دا د دې ځای نه لاړ شي.

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۹۷۹ رقم الحديث ۱۳۴۳ ۴۲۶

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۸۰ رقم الحديث ۲۷۰۸ ۵۴

﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ

او ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو (ورځ) يو سړی راغلو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته او وي ويل: يا رسول الله!

مَا لَقِيتُ مِنْ عَقْرَبٍ لَدَغَتْنِي الْبَارِحَةَ قَالَ:

زه د يو لړم په وجه ډير په تکليف کې يمه چې تېره شپه يې زه خوړلي ومه، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمايل:

"أَمَا لَوْ قُلْتَ حِينَ أَمْسَيْتَ: أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ

پوهه شه! که چيرته دې د ماښام په وخت کې دا کلمات ويلي وې: أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ

مَا خلق لَمْ تَضُرك ". [1]

مَا خَلَق. نو ضرر به نه وو رسولې تا ته لړم.

﴿۹﴾ وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا كَانَ فِي سَفَرٍ وَأَسْحَرَ يَقُولُ:

او ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به کله سفر کولو نو د سحر په وخت کې به يې دا ويل:

سَمِعَ سَامِعٌ بِحَمْدِ اللهِ وَحُسْنِ بَلَائِهِ عَلَيْنَا

واوريدلو اوريدونکي د خدای تعريف کوم چې ماوکړو او د هغه د نعمتونو اقرار کوم چې په مايي کړي

رَبَّنَا صَاحِبْنَا وَأَفْضِلْ عَلَيْنَا عَائِذًا بِاللهِ مِنَ النَّارِ ". [2]

ای زمونږ پرورد ګاره! زمونږ حفاظت او په مونږ فضل وکړه يعني مونږ پناه غوښتونکي يو د اور د دوزخ نه

**توضيح: واسحر**: يعني سحر وخت کې ننوتلو. (المرقات: ۵/۲۷۶).

**سمع سامع**: داد ماضي صيغه ده خو د امر په معنی ده. **اي ليسمع سامع**: يعني په کار ده چې اوريدو والايې واوري او چاچې واوريد و هغه دې ګواه شي چې مونږ د الله تعريف وکړو (المرقات ۵/۲۷۷).

**بحمد الله: اى بحمد الله** يعني مونږ چې کوم تعريف د الله وکړو. (المرقات: ۵/۲۷۷)

**وحسن بلائه: اى بأعترافنا بحسن العامه** يعني مونږ د هغې غوره احسان منو (المرقات ۵/۲۷۷).

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۸۱/٤ رقم الحديث ۲۷۰۹/۹۰

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۸٦/٤ رقم الحديث ۲۷۱۸،٦۸.

ربنا دا آواز دې حرف ندا محذوف دي: اى يا ربنا صاحبنا د امر صيغه ده، يعنې زمونږ حفاظت وکړې او زمونږ مدد وکړې. (المرقات: ۵/۲۷۷)

**وافضل: اى تفضل علينا بادامة النعمة** نعمت هميشه ساتلو لپاره په مونږ احسان وکړې. (المرقات: ۵/۲۷۸).

**قوله: عائذا بالله**: دا حال واقع دې او د کلام رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دى **اي اقول عائذا بالله من النار** يعنې مونږ د دوزخ د اور نه د الله تعالى پناه غواړو. (المرقات: ۵/۲۷۸)

## د حج، عمرې يا جهاد نه د واپسۍ په وخت کې دعاء

﴿۱۰﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَفَلَ مِنْ غَزْوٍ أَوْ حَجٍّ أَوْ عُمْرَةٍ

او ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې کله به نبي عليه السلام د جهاد يا حج يا عمرې نه بېرته د راتګ سفر کولو

يُكَبِّرُ عَلَى كُلِّ شَرَفٍ مِنَ الْأَرْضِ ثَلَاثَ تَكْبِيرَاتٍ ثُمَّ يَقُولُ:

نو په اوچت ځاى به چې ختلو نو درې ځله به يې الله اكبر ويله او بيا به يې ذکر شوې کلمات لوستل.

لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ

نشته لائق د عبادت په غير د الله نه چې يک يواځې دى هغه سره بل څوک شريک نشته هغه لره بادشاهي

وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ آيِبُونَ

ده او هغه لره تعريفونه دې، او هغه په هر څيز باندې قادر دى، مونږ (خپل وطن ته) ستنيدونکې يو،

تَائِبُونَ عَابِدُونَ سَاجِدُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ

توبه کونکې يو، د الله عبادت کونکې يو، الله ته سر خکته کونکې يو او د خپل پروردګار تعريف کونکې

صَدَقَ اللهُ وَعْدَهُ وَنَصَرَ عَبْدَهُ وَ

يو. الله (دين د خورولو) خپله وعده پوره کړه، د خپل بنده (محمد صلى الله عليه وسلم) مرسته يې وکړه او د

هَزَمَ الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ. (۱)

او د کافرو ډلو ته يې ماتې ورکړه.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۶۱۸/۳ رقم الحديث: ۱۷۹۷، ومسلم في صحيحه ۹۸۰/۲ رقم الحديث: ۱۳۴۴/۴۲۸.

﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَبْدُاللّٰهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ: دَعَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْأَحْزَابِ عَلَى الْمُشْرِكِينَ

او عبد الله ابن ابي اوفی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام خيري وکړي د جنګ احزاب په ورځ مشرکانو

فَقَالَ : اللّٰهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ

ته او وي فرمايل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د الله تعالى په درګې داسې وفرمايل. اى دکتاب نازلولو والا الله، او

سَرِيعَ الْحِسَابِ اللّٰهُمَّ اهْزِمِ الأحزابَ اَللّٰهُمَّ اِهْزِمْهُمْ وَزَلْزِلْهُمْ.[1]

زراخستونکې د حساب، اى الله د کفارو لښکرو ته شکست ورکړې او هغوى هلاک کړې.

## د ميلمه نه د دعاء غوښتنه کول

﴿۱۲﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ يسر قَالَ: نَزَلَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَلَى أَبِي

او عبد الله ابن بسر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې (يوه ورځ) نبي عَلَيْهِ السَّلَام زما پلار ته د ميلمه په توګه راغلو. نو

فَقَرَّبْنَا إِلَيْهِ طَعَامًا وَ وَطْبَةً فَأَكَلَ مِنْهَا ثُمَّ

مونږ خوراک او (ماليده پشان يو شى) د نبي عَلَيْهِ السَّلَام مخې ته کيخودل نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغه وخوړل بيا ورله

أُتِيَ بِتَمْرٍ فَكَانَ يَأْكُلُهُ وَ يُلْقِي النَّوَى بَيْنَ أُصْبُعَيْهِ

وچې کهجورې کيخودلې. نبي عَلَيْهِ السَّلَام به کهجورې خوړلې او هډوکي (چپ لاس کې) به د ګوتو مينځ

وَ يَجْمَعُ السَّبَّابَةَ وَ الْوُسْطَى وَ فِي رِوَايَةٍ :

کې کيخودل او ددې لپاره به نبي عَلَيْهِ السَّلَام خپله د شهادت او مينځنۍ ګوته کې يو ځاى کړې وُ په يو بل روايت

فَجَعَلَ يُلْقِي النَّوَى عَلَى ظَهْرِ أُصْبُعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَ الْوُسْطَى

کې دي: چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام (چپ لاس کې) يو ځاى کول هډوکي د خپلو دواړو ګوتو د شهادت او د مينځۍ

ثُمَّ أُتِيَ بِشَرَابٍ فَشَرِبَهُ فَقَالَ أَبِي

ګوتې په شا باندې. بيا مو ورته او به راوړې چې هغه نبي عَلَيْهِ السَّلَام وڅکلې بيا وويل پلار زما چې نيولې

وَ أَخَذَ بِلِجَامِ دَابَّتِهِ : ادْعُ اللّٰهَ لَنَا فَقَالَ :

وې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د سپرلۍ. واګې چې د الله تعالى نه زما لپاره دعا وغواړه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام دا دعا وکړه:

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰۶/٦ رقم الحديث :۲۹۳۳، ومسلم في صحيحه ۱۳٦۳/۳ رقم الحديث:۱۷٤۲/۲۱.

| اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِيمَا رَزَقْتَهُمْ وَ اغْفِرْ لَهُمْ وَ ارْحَمْهُمْ.[۱] |
| --- |
| اى الله دوى ته بركت واچوې په هغه رزق كې چې دوى ته دې وركوى او دوى وبخښې او رحم وربانديې وكړې |

**توضيح:** **النوى:** د نواة جمع ده د كهجورې هډوكي او زړې ته وايي. (المرقات: ۵/۲۸۱).

**بين اصبعيه:** دوه روايتونو كې بېلابېل انداز سره بيان شوي دي. چې كله نبي عليه السلام د كهجورې زړې او دوه ګوتو مينځ كې به يې كيخودل او زور يې وركولو. او كله به يې د دوه ګوتو په شا زړې كيخودل. نو هر وخت كې يې جدا جدا كارونه كړي دي. تعارض نشته. پاتې دا طرز ځكه اختيار كړي شوي دي چې كيداى شي د زړو د غورځولو ځاى نه ؤ. او نبي كريم صلی الله علیه وسلم په تلې كې كيخودل نو غونډ لاس به يې په كهجورو لوند شوې وو. (المرقات: ۵/۲۸۱).

**بلجام:** يعنې د لارې آسانتيا لپاره چې صحابي واګي ونيولې او د دعاء خواست يې وكړو. نو نبي كريم صلی الله علیه وسلم ورته دا دعاء وكړه، چې دا ټول مسنون كارونه دي. (المرقات: ۵/۲۸۱).

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### د سپوږمۍ ليدو په وخت كې دعاء

| ﴿۱۳﴾ عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ إِذَا رَأَى الْهِلَالَ قَالَ: |
| --- |
| طلحه بن عبيد الله رضي الله عنه فرمايي چې: نبي عليه السلام د سپوږمۍ دليدلو په وخت كې دا دعاء لوستله: |
| اَللّٰهُمَّ أَهِلَّهُ عَلَيْنَا بِالْأَمْنِ وَ الْإِيمَانِ وَ السَّلَامَةِ وَ الْإِسْلَامِ |
| اى الله ! راوخيجوې او وبنايې مونږ ته سپوږمۍ په امن او ايمان او سلامتۍ او په اسلام سره (اى |
| رَبِّي وَرَبُّكَ اللّٰهُ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[۲] |
| سپوږمۍ) زما او ستا پروردګار الله دى. |

**توضيح:** د اسلامي مياشتې اول، دويم او دريم تاريخ سپوږمۍ ته هلال وايي. د دې نه وروسته ورته د قمر اطلاق كيږي. د ديارلسمې او څوارلسمې سپوګمۍ ته بدر وايي. د هغې وروسته ورته بيا قمر وايي. اسلام چونكه د توحيد علمبردار مذهب دى. ځكه يې په هره موقع كې د توحيد درس وركړي

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۱۵/۳ رقم الحديث: ۲۰۴۲/۱۴۶.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۱۶۷/۵ رقم الحديث: ۳۵۱۵.

دي سپوږمۍ د يو آب وتاب والا سياره ده. دير خلک ددې عبادت هم کوي اسلام په اول ځل د سپوږمۍ په موقع د توحيد اقرار کړي دی. (المرقات :۵/۲۸۳).

## په مصيبت کې د اخته سړي په ليدو سره دعاء

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ وَأَبِي هُرَيْرَةَ قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنْ رَجُلٍ |
| عمر ابن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دواړه وايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: کوم سړی |
| رَأَى مُبْتَلًى فَقَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي عَافَانِي مِمَّا |
| چې په مصيبت کې څوک ويني او دا دعاء و وايي: ټول تعريفونه الله لره دي چا چې زه د هغه شي نه وساتلم |
| ابْتَلَاكَ بِهِ وَ فَضَّلَنِي عَلَى كَثِيرٍ مِمَّنْ خَلَقَ تَفْضِيلًا إِلَّا لَمْ يُصِبْهُ |
| چې په هغې کې يې ته اخته کړي او فضيلت يې راکړو په خپل ډيرو مخلوقاتو، نو دې کس ته به و نه رسي |
| ذَلِكَ الْبَلَاءُ كَائِنًا مَا كَانَ" رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ. |
| دغه مصيبت هغه چې کوم مصيبت وي. |
| وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَ عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ الرَّاوِي لَيْسَ بِالْقَوِيِّ.[1] |
| امام ترمذي وايي دا حديث غريب دی چې په دې کې عمرو بن دينار راوي قوي نه دي. |

**توضيح:** هغه مريض چې په مصيبت کې اخته وي نو دا دعاء ويلي شي چې انسان د خپل صحت او عافيت شکر ادا کړي. خو علماو ليکلي دي چې د مريض سړي خوا کې دا دعاء په قلاره وويلي شي. مريض ته وانه ورولي شي چې تکليف ورته و نه رسيږي.

## په بازار کې د لوستلو دعاء

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَ عَنْ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ دَخَلَ السُّوقَ فَقَالَ: |
| عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل: کوم سړی چې بازار ته داخل شي او دا کلمات و وايي |
| لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ |
| نشته لائق د عبادت په غير د الله نه بل څوک دا يک يو اځې دی او نشته شريک د ده سره، ده لره بادشاهي ده |

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۱۵۷/۵ رقم الحديث :۳۴۹۲.

وَ لَهُ الْحَمْدُ يُحْيِي وَ يُمِيتُ وَ هُوَ حَيٌّ

او هغه لره تعريف دی، هغه ژوندي کول کوي او هغه مړه کول کوي هغه (دهميشه لپاره) ژوندي دی

لَا يَمُوتُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ وَ هُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ كَتَبَ اللهُ لَهُ

هغې لپاره مرګ نشته. د هغې په لاس کې خير دي. او په هر شي باندې قادر دی، نو وبه ليکلي شي ده

أَلْفَ أَلْفَ حَسَنَةٍ وَمَحَا عَنْهُ أَلْفَ أَلْفَ سَيِّئَةٍ وَ رَفَعَ لَهُ أَلْفَ أَلْفَ دَرَجَةٍ وَ

ته لس لکه نيکي او ختمي به شي دده نه لس لکه بدئ، او اوچتي به کړي شي دده لس لکه درجې، او

بَنَى لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَفِي شَرْحِ السُّنَّةِ:

جوړ په کړي شي ده ته يو کور په جنت کې. او امام ترمذي وايي چې دا حديث غريب دی او په شرح السنة

مَنْ قَالَ فِي سُوقٍ جَامِعٍ يُبَاعُ فِيهِ بدل من دخل السُّوق .[1]

کې د من دخل السوق په ځای باندې من قال في سوق جامع يباع فيه ذکر دي .

## مصيبت راتلو نه مخکې صبر مه غواړئ

﴿۱۶﴾ وَ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ : سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ رَجُلًا يَدْعُو

معاذ بن جبل رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم يو سړی نه په دعا کولو کې واوريدل چې هغه داسې

يَقُولُ : اللهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ تَمَامَ النعمةِ فَقَالَ : أَيُّ شَيْءٍ تَمَامُ النِّعْمَةِ ؟

ويل: ای الله! زه ستا نه پوره نعمت غواړم نبي عليه السلام ورته وفرمايل پوره نعمت څه شي دی؟ هغه سړی

قَالَ : دَعْوَةٌ أَرْجُو بِهَا خَيْرًا فَقَالَ :

وويل دا دعاء ده چې په هغې سره زه د ډيرو خيرونو د حصول اميدلرم. نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل

إِنَّ مِنْ تَمَامِ النِّعْمَةِ دُخُولَ الْجَنَّةِ وَ الْفَوْزَ مِنَ النَّارِ . وَ سَمِعَ رَجُلًا يَقُولُ :

جنت ته تلل او د دوزخ نه خلاصي پوره نعمت دي نبي عليه السلام يو سړی نه په دعا کولو کې دا هم اوريدلي

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۵۵: رقم الحديث :۳۴۸۸.

| يَا ذَا الْجَلَالِ وَ الْإِكْرَامِ |
|---|
| ؤ چې هغه دا الله په در كې (د دې ټكو په ذريعه سره) دعا كوله ياذاالجلال والاكرام (يعنې اى د بزرگۍ |
| فَقَالَ : قَدِ اسْتُجِيبَ لَكَ |
| او بخښنې مالكه) نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: ستا دعا قبوله كړې شوې دا. لهذا چې څه غواړې |
| فَسَلْ. وَ سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا وَهُوَ يَقُولُ : اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الصَّبْرَ |
| نو وغواړه يو ځل نبي عَلَيْهِ السَّلَام واوريدل. يو سړى دا دعا غوښتله: اى الله! زه ستا نه صبر غواړم. نبي |
| فَقَالَ : سَأَلْتَ اللهَ الْبَلَاءَ فَاسْأَلْهُ الْعَافِيَةَ .[1] |
| عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: ته خو د الله نه مصيبت غواړې. حالانكه په كار ده چې د الله نه عافيت وغواړې. |

**توضيح:** مصيبت رالو نه مخكې چې كوم سړى د الله نه دا دعا غواړي چې اى الله ماله صبر راكړه نو د هغې مطلب دا دې چې هغه مصيبت غواړي ځكه مصيبت نه وروسته د صبر ضرورت پېښېږي. ځكه منع كړې شو. اكثر خلک خپل نومونو سره اخر كې صابر لگی. په هغې كې هم نقصان دې.

## د مجلس كفاره

| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " مَنْ جَلَسَ مَجْلِسًا |
|---|
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل كوم سړى چې په يو داسې مجلس كې شريک وي |
| فَكَثُرَ فِيهِ لَغَطُهُ فَقَالَ قَبْلَ أَنْ يَقُومَ : |
| چرته چې بې فائدې خبر كېږي او هلته د پاڅېدو نه مخكې دا دعاء وويل شي نو په هغه مجلس كې چې |
| سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَ بِحَمْدِكَ |
| هر څه شوې وې نو هغه د ده لپاره وبخښلې شي (ترجمه) يعنې پاكوې بيانوو اى الله ستا او حمد وثناء |
| أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ |
| ستا زه گواهي وركوم چې ستا نه بغير بل څوک لائق د عبادت نشته. زه ستا نه بخښنه غواړم او تا ته |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲۰۲/۵ رقم الحديث :۳۵۹۵

وَ أَتُوبُ إِلَيْكَ إِلَّا غُفِرَ لَهُ مَا كَانَ فِي مَجْلِسِهِ ذٰلِكَ ".[1]

توبه وباسم نو ده ته به بخښنه وشي د هغه څه چې په دې مجلس کې تیر شوې وي.

## په سورلۍ د سوریدو په وخت کې دعاء

﴿۱۸﴾ وَ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : أَنَّهُ أُتِيَ بِدَابَّةٍ

د حضرت علي رضي الله عنه باره کې نقل دي چې (یو ځل) د هغه ته خدمت کې سپرلۍ څاروی راوستلې شو

لِيَرْكَبَهَا فَلَمَّا وَضَعَ رِجْلَه فِي الرِّكَابِ

چې دا په هغه سپور شي نو ده خپله خپه په پیدان کې ورکړه. (یعني د سوریدو لپاره یې په پیدان کې

قَالَ : بِسْمِ اللهِ فَلَمَّا اسْتَوَى عَلَى ظَهْرِهَا قَالَ : اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

د خپې ورکولو اراده وکړه) نو وویل: بسم الله بیا چې د هغې شا (ملا) ته وختلو نو وویل الحمدلله

ثُمَّ قَالَ :

یعنې د سورلۍ د نعمتونو او د دې علاوه نعمتونو باندې د الله شکر دي. او بیا یې دا کلمات وویل.

سُبْحَانَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا هٰذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ

پاک دي هغه ذات چاچې دا څاروي یې مونږ لپاره تابعدار کړو او حال دا چې مونږ سره د دې طاقت نه ؤ او

وَ إِنَّا إِلَى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُونَ ثُمَّ قَالَ : اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ثَلَاثًا

بېشکه مونږ خامخا خپل رب طرف ته بیا تلونکې یو. د دې نه وروسته یې درې ځله الحمدلله وویل

وَ اللهُ أَكْبَرُ ثَلَاثًا سُبْحَانَكَ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي

او الله اکبر یې درې ځله وویل او دا یې وویل (اې الله ته پاک یې بېشکه ما په خپل ځان ظلم کړي دي.

فَاغْفِرْ لِي فَإِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ ثُمَّ ضَحِكَ

نو ته ما وبخښه. بېشکه د ګناهونو بغیر د ستا نه بل څوک بخښونکې نشته). بیا علي رضي الله عنه وخندل

---

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۵۷ رقم الحديث :۳۴۹۴.

فَقِيلَ : مِنْ أَيِّ شَيْءٍ ضَحِكْتَ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ ؟ قَالَ : رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ

پو ښتنه ترې وشوه چې امير المؤمنين! تا ولې وخندل؟ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل ما وليدلې ؤ رسول الله

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ صَنَعَ كَمَا صَنَعْتُ ثُمَّ ضَحِكَ فَقُلْتُ :

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې دغه شان يې وكړل څنګه چې ما وكړل. او بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَام وخندل ما عرض وكړو چې

مِنْ أَيِّ شَيْءٍ ضَحِكْتَ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ قَالَ : "إِنَّ رَبَّكَ لَيَعْجَبُ مِنْ عَبْدِهِ

يارسول الله: تاسو څه شي پسې وخندل؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل ستا پروردګار د خپل بنده نه راضي شي

إِذَا قَالَ : رَبِّ اغْفِرْ لِي ذُنُوبِي

چې كله هغه داووايي چې اى زما پروردګاره ما لره زما ګناهونه وبخښې نو كله بنده خپل پروردګار نه

يَقُولُ : يَعْلَمُ أَنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ غَيْرِي ".[1]

بخښنه وغواړي نو پروردګار فرمايي چې بنده پوهيږي چې د ګناهونو زمانه بغير بل بخښونكې نشته.

## د رخصتۍ د وخت دعاء

﴿۱۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وَدَّعَ رَجُلًا أَخَذَ بِيَدِهِ

ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به كله يو سړى (مسافر) رخصتولو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام به

فَلَا يَدَعُهَا حَتَّى يَكُونَ الرَّجُلُ هُوَ يَدَعُ يَدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

ورته لاس ونيولو او تر هغه به يې نه پرېښودو تر څو به چې هغه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام لاس مبارك پرې نخودلو

وَ يَقُولُ : أَسْتَوْدِعُ اللهَ

(يعنې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د ښه اخلاقو او تواضع په خاطر داسې كولو) او بيا به يې فرمايل ما وسپارلو الله

دِينَكَ وَ أَمَانَتَكَ وَ آخِرَ عَمَلِكَ

تعالى ته ستا دين، ستا امانت او ستا آخري عمل (يعنې زه ستا د دين او ستا د امانت د حفاظت غوښتونكې

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳/ ۳٤ رقم الحديث :۲٦۰۲.

وَ فِي رِوَايَةٍ خَوَاتِيمَ عَمَلِكَ . وَ فِي روايتهما لم يذكر : وَآخر عَمَلك .(۱)

يم او الله دي وكړي چې خاتمه پخير سره وي) او يو بل روايت كې وأخر عملك په ځاى وخواتيم عملك

دى. يعني ستا آخري عملونه هم الله ته سپارم (دواړه معنى يو شان دي).

﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ الْخَطْمِيِّ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَسْتَوْدِعَ الْجَيْشَ

عبد الله خطمي رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به كله د لښكر د رخصتولو اراده وكړه نو دا دعاء

قَالَ : أَسْتَوْدِعُ اللهَ دِينَكُمْ وَ أَمَانَتَكُمْ وَ خَوَاتِيمَ أَعْمَالِكُمْ .(۲)

به يې ويله چې ما ستاسو دين، ستاسو امانت او ستاسو آخري عمل الله ته وسپارلو.

﴿۲۱﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : يَا

انس رضي الله عنه وايي چې يو سړى د نبي كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كې حاضر شو، او وې ويل چې يا

رَسُولَ اللهِ إِنِّي أُرِيدُ سَفَرًا

رسول الله! زه په سفر د روانيدو اراده لرم ته ماته توښه راكړه (يعني زما لپاره دعا وكړه) چې د هغې بركت

فَزَوِّدْنِي : فَقَالَ زَوَّدَكَ اللهُ التَّقْوَى .

په سفر كې زما سره د توښې په شان وي نبي عليه السلام وفرمايل: الله تعالى دې تقوى ستا لپاره توښه جوړه

قَالَ : زِدْنِي

كړي (يعني الله دې تاته پرهيزګاري نصيب كړي دا د آخرت دلاري توښه ده) بيا يې وويل: چې نوره دعاء

قَالَ : وَ غَفَرَ ذَنْبَكَ قَالَ : زِدْنِي

هم وكړه نبي عليه السلام وفرمايل چې ودې بخښي ګناهونه ستا بيا يې وويل چې نوره دعاء هم وكړه زما

بِأَبِي أَنْتَ وَ أُمِّي قَالَ : وَ يَسَّرَ

مور پلار دې په تا قربان وي لپاره نوره دعاء هم وكړه نبي عليه السلام وفرمايل: آسان دې كړي الله تعالى

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۳٤ رقم الحديث: ۲٦۰۰.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۳٤ رقم الحديث: ۲٦۰۱.

لَكَ الْخَيْر حيثُما كُنْتَ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ [1]

تا ته د دين او دنيا خير ونه چې چرته هم او سيږې او د هغې توفيق دي تا ته در کړي.

﴿۲۲﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: إِنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُسَافِرَ فَأَوْصِنِي

ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو سړي وويل چې يا رسول الله! د سفر کولو اراده لرمه ماته نصيحت وکړه

قَالَ : عَلَيْكَ بِتَقْوَى اللهِ

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: لازم کړه په خپل ځان باندې د الله تعالى نه ويريدل او (د سفر په لاره کې)

وَ التَّكْبِيرِ عَلَى كُلِّ شَرَفٍ . قَالَ : فَلَمَّا وَلَّى الرَّجُلُ قَالَ :

هر او چت ځای کې الله اکبر ويل بيا چې کله هغه سړی د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د خوانه لاړونو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل

اللّٰهُمَّ اطْوِ لَهُ الْبُعْدَ

ای الله د ده لپاره د سفر لرې والي رالنډ کړي (يعنې الله دې د سفر او ږدوالي لنډ کړي او مشقتونه دې

وَ هَوِّنْ عَلَيْهِ السَّفَرَ . [2]

ترې لرې کړې) او د دې د سفر ټول کارونه په ده آسان کړي.

## سفر کې د شپې په وخت کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعاء

﴿۲۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَافَرَ فَأَقْبَلَ اللَّيْلُ قَالَ:

ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله سفر کولو او شپه به شوه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام به داسې

يَا أَرْضُ رَبِّي وَ رَبُّكِ اللهُ أَعُوذُ بِاللهِ مِنْ شَرِّكِ

فرمايل: ای زمکې زما او ستا پروردګار الله دی زه پناه غواړم په الله سره ستا د شر نه (د خسف وغيره نه)

وَ شَرِّ مَا فِيكِ

او د هغه څه د شر نه کوم چې په تا کې دننه دي (لکه او به يا ستا نه پيدا کيدونکي داسې بوټي او نور شيان

(۱) أخرجه [illegible] في [illegible] ١٦ رقم الحديث: [illegible]

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ٥/٦٣٠ رقم الحديث: ٣٥٠٨

| وَ | شَرِّ | مَا | خُلِقَ | فِيكِ |
|---|---|---|---|---|
| چې هغه خلک تباه کوي) او د هغه شي د شر نه چې هغه په تاکې پیدا کړی شوې دي (لکه زهریله ځناور | | | | |
| وَ | شَرِّ | مَا | يَدِبُّ | عَلَيْكِ |
| او تباه کونکې شیان) او د هغه شیانو د شر نه چې هغه ستا د پاسه ګرځي (لکه د زمکې حشرات او | | | | |
| وَ أَعُوذُ | بِاللهِ | مِنْ | أَسَدٍ وَ أَسْوَدَ | وَ مِنَ الْحَيَّةِ وَ |
| ځناور چې ضرر رسونکې دې) او د الله نه پناه غواړم د زمري، تور مار او د مارانو د نورو قسمونو نه او د | | | | |
| الْعَقْرَبِ | وَ مِنْ | شَرِّ | سَاكِنِ | الْبَلَدِ |
| لړمانو نه او د بدی په آبادی کې او سیدونکو نه (بعضې خلک وايي چې د دې نه مراد پیریان دې چې | | | | |
| وَ مِنْ | والِدٍ | وَمَا | وَلَدَ. [1] | |
| دوي په هره آبادی او هره زمکه کې او سیږي) او د پیدا کونکو د شر او د هغه څه د شر نه چې پیدا کړې شي | | | | |
| (یعنې د شیطان لعنتي او د هغه د اولاد د شر نه یا د هر پیدا کیدونکي او د هغه د اولاد د شر نه پناه غواړم) | | | | |

**توضیح: یدب علیك** یعنې کوم شیان چې په ستا د پاسه ګرځیدونکې دي. (المرقات: ۵/۲۹۲).

**من اسد واسود:** اسد شیر ته وايي او اسود تور غټ مار ته وايي چې ډیر خطرناک وي. دینه وروستو نور مارانو ته الحیة سره ذکر شوې دې. اسود تور غَل ته هم وايی. چې هغه افریقي سوډانې وي. یا غَل توري جامې وي. ځکه یې اسود وویل. (المرقات: ۵/۲۹۳).

**عقرب:** لړم ته وايي. (المرقات: ۵/۲۹۳).

**ساکن البلد:** د ښار وسیدونکو ته ساکن البلد وايې او ښار کې وسیدونکو نه مراد انسان یا پیریان مراد دي. ځکه چې دا په ښار ویسدونکې خلک دې پیریان مراد اخستل ډیر غوره دې. (المرقات: ۵/۲۹۳).

**و من والد:** ویل کیږې چې د دې نه یا آدم عَلَیْهِ السَّلَام مراد دي او شیطان مراد دي. شیطان مراد اخستل ډیر غوره دې د دې لپاره ساکن البلد نه مراد پیریان اخستل ډیر موافق دې. وما ولد: د دې وراد اولاد

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۳۴ رقم الحديث: ۲۶۰۳.

دي اګر که د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ وي او يا که د شيطان وي. ذريت شيطان مراد اخستل ډير غوره دي چې په ټولو جملو کې توافق يو شان وي يعني علاقي کې وسيدونکې پيريان نا په خاصه توګه شيطان مراد دي او د هغې د ذريت د شر نه خداي پورې پناه غواړم. (المرقات: ۵/۲۹۳).

| ﴿۲٤﴾ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا غَزَا قَالَ: |
|---|
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به کله جهاد کولو نو دا به يې لوستل (اي الله هم ته يې چې په تا زه |
| اللّٰهُمَّ أَنْتَ عَضُدِي |
| اعتماد لرم) (يعني زما په هره معامله کې په تا يقين دي) او هم ته زما پروردګاري او د کفارو د هوکي |
| وَ نَصِيْرِي بِكَ أَحُوْلُ وَ بِكَ أَصُوْلُ |
| لري کولو لپاره زه ستا نه قوت غواړم. (يعني د هغوی اړخ ته جنګ ته متوجې يم) او ستا په قوت سره |
| وَ بِكَ أُقَاتِلُ.[1] |
| د دين په دښمنانو باندې حمله کوم او ستا په مدد سره د دين دې دښمنانو سره جنګېږم. |

## د دښمن نه د ويرې په وخت کې دعاء

| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَبِي مُوْسَى: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ إِذَا خَافَ قَوْمًا قَالَ: |
|---|
| ابو موسى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته به کله د يو قوم (د دښمن) ويره وه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به |
| اللّٰهُمَّ إِنَّا نَجْعَلُكَ |
| دا دعاء لوستله: اى الله! مونږ تا د دښمن مقابلې ته مخکې کوو يعني تا ته د دې خبرې عاجزي کوو چې ته |
| فِي نُحُوْرِهِمْ وَ نَعُوْذُ بِكَ |
| مونږ ته د هغوي د شرو ساتې او زمونږه او د هغوی په مينځ کې حائل شي او مونږ پناه غواړو په تا سره |
| مِنْ شُرُوْرِهِمْ.[2] |
| د دوي د شر نه. |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۴۲/۳ رقم الحديث: ۲۶۲۲.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۸۹/۲ رقم الحديث: ۱۵۷۳.

## د كور نه د وتلو په وخت كې دعاء

﴿۲٦﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا خَرَجَ مِنْ بَيْتِهِ قَالَ:

او ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به كله د كور وتلو نو دا دعاء به يې لوستله (كور

بِسْمِ اللهِ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللهِ اللَّهُمَّ إِنَّا نَعُوذُ بِكَ

نه) وزم په اخستلو د نوم ستا سره، اعمتاد وكړو ما په الله باندې اى الله: مونږ ستا پناه غواړو د دې نه

مِنْ أَنْ نَزِلَّ أَوْ نَضِلَّ أَوْ نَظْلِمَ

چې وخوېږو (يعني بې قصد ګناه كې اخته شو) يا مونږ ګمراه شو (يعني قصدا ګناه وكړو) يا مونږ ظلم

أَوْ نُظْلَمَ أَوْ نَجْهَلَ أَوْ يُجْهَلَ عَلَيْنَا. (۱)

وكړو يا په مونږ ظلم وكړې شي يا مونږ په ناپوهۍ كې اخته شو يا مونږ په ناپوهۍ اخته كړې شو.

وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ وَابْنِ مَاجَهْ قَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ: مَا خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَيْتِي قَطُّ إِلَّا رَفَعَ طَرْفَهُ إِلَى السَّمَاءِ فَقَالَ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ أَنْ أَضِلَّ أَوْ أُضَلَّ أَوْ أَظْلِمَ أَوْ أُظْلَمَ أَوْ أَجْهَلَ أَو يجهل عَلَيَّ.

## د شيطان د عاجزه كولو دعاء

﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا خَرَجَ الرَّجُلُ مِنْ بَيْتِهِ

حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ و فرمايل: چې كوم يو سړى د خپل كور نه وځي او بيا دا

فَقَالَ: بِسْمِ اللهِ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللهِ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ

ووايي (وځمه زه د الله نوم سره، يقين وكړو ما په الله باندې، ګناهونو نه د بچ كيدو طاقت او د عبادت كولو

إِلَّا بِاللهِ يُقَالُ لَهُ حِينَئِذٍ

قوت د الله د طرفه دى) نو هغه وخت هغې ته ويلى كيږي (يعني فرشته هغې ته وايي) اى د الله بنده:

هُدِيتَ وَ كُفِيتَ

تا ته نيغه لار ونبودلى شوه. ته (تا ته ټول مهمات په ټولو كارونو كې) د غير نه مستغني كړې شوې،

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ٤/٣٢٥ رقم الحديث: ٥٠٩٠.

| وَ وُقِيتَ فَيَتَنَحَّى لَهُ الشَّيْطَانُ |
|---|
| اوته(دټولو بديونه محفوظ كړې شوې) (نو چې دا واوري) شيطان د هغې نه ليرې شي او بل شيطان |
| وَ يَقُولُ شَيْطَانٌ آخَرُ : كَيْفَ لَكَ بِرَجُلٍ |
| (ددې شيطان دا طمينان لپاره) هغه ته وايي چې ته په هغه سړي باندې څنګه غالب شې چاته چې سمه |
| قَدْ هُدِيَ وَ كُفِيَ وَ وُقِيَ ". و روى التِّرْمِذِيّ إِلى قَوْله : الشَّيْطَان [1] |
| لار خودلې شوې وي څوک چې د بل نه مستغني كړې شوى وي څوک چې دټولو بديونه محفوظ شو. |

**توضيح: هديت:** د مجهول صيغه ده. يعنې تاته سمه لار خودلې شوې ده. ځكه ته دومره بنې بنې دعاګانې غواړې يا دومره خې دعاګانو غوښتلو باندې سمه لار خودلې شوې ده. اوس شيطان يا د هغې ذريت تا نه شي بې لارې كولى. (المرقات: ۵/۲۹۷).

**فيتنحى له الشيطان:** يعنې خپله شيطان يا د شيطان د تكلې شوې مامور د دې دعاء له وجې لرې تختې او ذليل شي. (المرقات: ۵/۲۹۷).

**ويقول شيطان آخر :** يعنې ددغه تختيدونكې شيطان حوصله زياتول او دطمع پيدا كولو دپاره دويم شيطان وايي چې روره ويريږه مه حوصله مه بيله كه چرته ته عاجز شوې او تا په مكمل توګه باندې ماتې اوخوړله نو په دې كې د شرم هيڅ خبره نشته ځكه چې ستا مقابله يو داسې سړي سره وه چې ددعاګانو په روحاني وسلې سره مصلح وو دداسې سړي مقابله تا چرته كولې شوه او هغه تا ګمراه كولې چرته شو چاته چې ددغه دعاګانو په ذريعه نيغه لار خودلې شوې وه او دالله تعالى پوره حفاظتي نظام دهغه په حفاظت كې لګيا وو. (المرقات: ۵/۲۹۷).

## كور ته د ننوتلو په وخت كې دعاء

| ﴿۲۸﴾وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا وَلَجَ الرَّجُلُ بَيْتَهُ |
|---|
| ابو مالک اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: چې كوم يو سړى كور ته ننوځي |
| فَلْيَقُلْ : اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ الْمَوْلِجِ وَ خَيْرَ الْمَخْرَجِ |
| نو هغه ته په كار دي چې دا دعاء ووايي يعنې اى الله! زه ستانه كور ته د ننوتلو او كور نه د وتلو خير غواړم |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۴/۳۲۵ رقم الحديث :۵۰۹۵.

بِسْمِ اللهِ وَ لَجْنَا وَ عَلَى اللهِ

(کورته راتلل او کورنه وتل د خیرو برکت سره وي) د الله نوم سره مونږ کورته ننوتلو او مونږ په الله باندې

رَبِّنَا تَوَكَّلْنَا ثُمَّ . لِيُسَلِّمْ عَلَى أَهْلِهِ " .[1]

چې زمونږ رب دي اعتبار وکړو) د دې نه وروسته په کار دي چې هغه خپل کور والو ته سلام وکړي.

**توضیح:ثم یسلم:** یعني کور والو ته سلام وکړي خو مناسبه دا ده چې اول سړی په کور د سلام کولو ماحول جوړ کړي. ماشومان پوهه کړي او ښځې ته ووایې چې دا سنت طریقه ده دې سره کور کې برکت راځي. دا چې د ښځې زړه او مغزو کې د خاوند قدر وساتل شي. او هغه د د خاوند کمزوری حسابوی. او خیال ونکړي چې نن خو خاوند سلام وکړو نو آیا سبه به ماته سجده هم کوي. صوبه سرحد کې کورونو کې د سلام رواج نشته. دا سنت ژوندي کول په کار دي. (المرقات :۵/۲۹۹).

## دواده زلمي او ناوې لپاره دعاء

﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا رَفَّأَ الْإِنْسَانَ إِذَا تَزَوَّجَ قَالَ:

ابو هریره رضي الله عنه وایي چې کله کوم سړی نکاح کوله او نبي کریم صلی الله علیه وسلم به هغه ته دعاء کوله نو

بَارَكَ اللهُ لَكَ وَ بَارَكَ عَلَيْكُمَا

داسې به یې فرمایل: الله تعالی دې تاسو ته مبارکه کړي او تاسو دواړه (ښځه او خاوند) ته برکت ورکړي

وَ جَمَعَ بَيْنَكُمَا

یعني په تاسو دې خپل رحمت وکړي او اولاد او رزق کې دې درته فراخوالي درکړي) او په تاسو دواړو

فِي خَيْرٍ.[2]

کې دې خیر واچوي (یعني د اطاعت او عبادت توفیق دې درته درکړي صحت او عافیت سره ستاسو

ژوند تېر کړي په تاسو دواړو کې دې مینه او محبت او ښه اخلاق همیشه ولري او ستاسو اولاد دې

نیک او صالحه کړي.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳۲۵/۴ رقم الحديث :۳۴۸۶.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲۴۱/۲ رقم الحديث :۲۱۳۰.

**توضيح:** اذارفأ: **ترفئة** باب **تفعيل** نه د دعاء په معنى کې دی. د اسلام نه مخکې د ودونو په موقع باندې د مبارکۍ لپاره **ترفئة** کلمه استعماليده او داسې به ويل کيدل: **بالرفاء والبنين** رفو ملاويدل او يو ځای کيدو په معنى دی. د دور جاهليت خلکو به د يو ځای کېدلو لپاره دعا کوله. خو د جينکو سره به د بغض په وجه د بنين تکې استعماليدو. اسلام د داسې مبارکۍ د تکو نه منع وکړه او د په ځای بل نعمت ورکړو چې هغه دې حديث کې شته: **بارك الله وبارك عليكما وجمع بينكما بخير.** (المرقات: ۵/۲۹۹).

## د شب زفاف خاص دعاء

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ |
| عمرو بن شعيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل پلار (شعيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نه او هغه د خپل نيکه (عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نه |
| عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : |
| او عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې په |
| إِذَا تَزَوَّجَ أَحَدُكُمْ امْرَأَةً أَوِ اشْتَرَى خَادِمًا فَلْيَقُلْ اللَّهُمَّ |
| تاسو کې کوم يو سړی د ښځې سره نکاح وکړي يا يو غلام واخلي نو هغه دې دا دعاء ووايي ای الله! |
| إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَهَا وَ خَيْرَ مَا جَبَلْتَهَا عَلَيْهِ |
| زه ستا نه د دې (د ذات) خير غواړم او خير د هغه شي چې په کوم تا دا پيدا کړي دی (يعني ښه اخلاق) او |
| وَ أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا وَ شَرِّ مَا جَبَلْتَهَا عَلَيْهِ |
| زه ستا پناه غواړم د دې د بدۍ نه او د هغه شي د بدۍ نه چې په هغې باندې تا دا پيدا کړي دی (يعني د بدو |
| وَ إِذَا اشْتَرَى بَعِيرًا فليأخُذْ بِذروةِ سنامِهِ وَلْيَقُلْ |
| اخلاقو او کارونو نه) او کله اوښ واخلي او د هغه د قوف او چت ځای دې ونيسي او داسې دې ووايي |
| مِثْلَ ذَلِكَ . وَ فِي رِوَايَةٍ فِي الْمَرْأَةِ وَ الْخَادِمِ : ثُمَّ |
| يعنې ذکر شوې دعاء دې ووايي په يو بل روايت کې د ښځې او غلام باره کې دا تکې هم شته چې بيا د |

لِيَأْخُذْ بِنَاصِيَتِهَا وَلْيَدْعُ بِالْبَرَكَةِ.[1]

ښځه یا غلام د تندي ویختان ونیسي او د خیروبرکت دعا وکړي.

## د غم لرې کولو دعاء

﴿۳۱﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: دَعَوَاتُ الْمَكْرُوبِ

ابوبکر رضي الله عنه وایي چې نبي علیه السلام وفرمایل د غمجن سړی دعا چې هغه لوستلو سره غم ځي دا ده

اللّٰهُمَّ رَحْمَتَكَ أَرْجُو فَلَا تَكِلْنِي إِلَى نَفْسِي طَرْفَةَ عَيْنٍ

ای الله! زه ستا د رحمت غوښتونکې یمه نو ما دیو لحظې لپاره ما خپل نفس ته ونسپارې (ځکه هغه

وَ أَصْلِحْ لِي شَأْنِي كُلَّهُ

زما دیر غټ دښمن دي او عاجزه دی. هغه په دې باندې قادر ندیې چې حاجت روائي وکړي) او زما ټول

لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ.[2]

کارونه سم کړې. ستانه بغیر بل څوک لائق د عبادت نشته.

## د قرض خلاصیدو دعاء

﴿۳۲﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَجُلٌ: هُمُومٌ

ابوسعید خدري رضي الله عنه وایي چې یو سړی وویل چې زه غم او فکر نیولي یم او په قرض کې ګیر یم

لَزِمَتْنِي وَ دُيُونٌ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ: أَفَلَا أُعَلِّمُكَ كَلَامًا إِذَا قُلْتَهُ

یا رسول الله! نبي علیه السلام وفرمایل آیا زه تاته داسې دعاء ونه خایم. که چیري ته هغه ولولې نو الله

أَذْهَبَ اللهُ هَمَّكَ وَ قَضَى عَنْكَ دَيْنَكَ؟ قَالَ:

تعالی به ستا فکر لرې کړي او د قرض نه به دې خلاص کړي ابو سعید رضي الله عنه وایي چې هغه سړی چې

قُلْتُ: بَلَى قَالَ: "قُلْ إِذَا أَصْبَحْتَ وَ إِذَا أَمْسَيْتَ:

(ماته) وویل چې ما عرض وکړو چې آو: خامخایې راته ووایه نو نبي علیه السلام وفرمایل سحر او ماښام

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲۴۸/۲ رقم الحديث: ۲۱۶۰.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۳۲۴/۴ رقم الحديث: ۵۰۹۰.

اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ وَ الْحُزْنِ وَ أَعُوذُ بِكَ

دواړه وختونو کې ذکر شوې دعا لوله. اى الله! زه پناه غواړم په تا سره د غمونو نه او پناه غواړم په تا

مِنْ غَلَبَةِ الدَّيْنِ وَ قَهْرِ الرِّجَالِ ". قَالَ : فَفعلت ذَلِكَ

سره د غلبې د قرض او د قهر د خلکو نه، د هغه سړي خبره ده چې ما هم دغه شان وکړل (يعني دا دعاء

فَأَذْهَبَ اللَّهُ هَمِّي وَ قَضَى عَنْ دِيْنِي .[1]

لوستل مې شروع کړل) نو الله تعالى زما فکر لرې کړو او زه يې د قرض نه خلاص کړم.

## د غر په اندازه د قرض د خلاصيدو دعاء

﴿۳۳﴾ وَ عَنْ عَلِيٍّ : أَنَّهُ جَاءَهُ مُكَاتَبٌ فَقَالَ : إِنِّي عَجَزْتُ

د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې منقول دي چې ده ته يو کاتب راغلو او وې ويل چې زه خپل عاجزيم

عَنْ كِتَابَتِي فَأَعِنِّي

د ليکلو نه (يعني د ليکلو ورکولو وخت راغلي دي خو ما سره مال نشته دی) نو زما ته (په مال او دعاء

قَالَ : أَلَا أُعَلِّمُكَ كَلِمَاتٍ عَلَّمَنِيهِنَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

سره) مرسته وکړه. علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: آيا زه تا ته هغه دعا ونه وايم چې هغه نبي عَلَيْهِ السَّلَام ما ته ښودلي

لَوْ كَانَ عَلَيْكَ مِثْلُ جَبَلٍ كَبِيرٍ دَيْنًا أَدَّاهُ اللَّهُ عَنْكَ.

وه که تا باندې د غر په اندازه قرض هم وي نو الله تعالى به ستا هغه قرض خلاص کړي ته دغه ذکر شوې

قُلْ : اللَّهُمَّ اكْفِنِي بِحَلَالِكَ عَنْ حَرَامِكَ

دعا وايه: اى الله! ما د خپل حلال مال په واسطه د حرامو نه بې پروا کړې (يعني ما ته حلال رزق را کړې

وَ . أَغْنِنِي بِفَضْلِكَ عَمَّنْ سِوَاكَ.[2]

چې د هغې په وجه د حرامو نه خلاص شم او په خپل فضل او کرم سره ما ستا نه علاوه مال مالداره کړې

وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ جَابِرٍ: إِذَا سَمِعْتُمْ نُبَاحَ الْكِلَابِ فِي بَابِ تَغْطِيَةِ الْأَوَانِي إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/ ۹۳ رقم الحديث: ۱۵۵۵.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵/ ۲۲۰ رقم الحديث: ۳۶۳۴

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د مجلس د كفارې دعاء

﴿۳٤﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا جَلَسَ مَجْلِسًا أَوْ صَلَّى

عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به كله يو مجلس كې كيناستلو يا به يې مونځ كولو

تكلّم بِكَلِمَاتٍ

(نو د هغه مجلس نه پاڅېدلو وخت كې يا مونځ نه د وزګاريدلو نه وروسته) يو څو كلمات لوستل.

فَسَأَلْتُهُ عَنِ الْكَلِمَاتِ فَقَالَ:

(يو ځل) ما د نبي عليه السلام نه پوښتنه وكړه (چې د هغه كلماتو ويلو څه ګټه وي) نو نبي عليه السلام وفرمايل

" إِنْ تُكُلِّمَ بِخَيْرٍ كَانَ طَابَعًا عَلَيْهِنَّ

كه د دې كلماتو نه مخكې په مجلس كې نيكې خبرې شوي وي نو دا كلمات به مهر شي (په دې نيكو

إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ

خبرو باندې) د قيامت ورځې لپاره (يعنې دې كلماتو ويلو سره د غه نيكې خبرې به تر قيامته پورې

وَ إِنْ تُكُلِّمَ بِشَرٍّ

محفوظې وي چې د هغوي ثواب به نه ضائع كېږي) او كه د دې كلماتو نه مخكې په مجلس كې بدې خبرې

كَانَ كَفَّارَةً لَهُ:

شوي وي نو دا كلمات به د دې بدو خبرو لپاره د بخښنې ذريعه جوړه شي. د هغه كلماتو ترجمه دا ده:

سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَ بِحَمْدِكَ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ

پاك يې ته اى الله او ستا د ستاينې سره ستا پاكي بيانيدې شي ستا نه بغير بل څوك لائق د عبادت نشته.

أَسْتَغْفِرُكَ وَ أَتُوبُ إِلَيْكَ ". [1]

زه ستا نه بخښنه غواړم او تا ته توبه كوم.

(۱) أخرجه النسائي في السنن رقم الحديث: ٦/٧٧.

﴿۳۵﴾ وَعَن قَتَادَةَ : بَلَغَهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ إِذَا رَأَى الْهِلَالَ

دقتاده رضي الله عنه نه روايت دي چې هغې ته دا حديث رسيدلي چې نبي عليه السلام به کله نوي مياشت ليدله

قَالَ : هِلَالُ خَيْرٍ وَ رُشْدٍ هِلَالُ خَيْرٍ وَ رُشْدٍ هِلَالُ خَيْرٍ

نو دا به يې فرمايل: سپوږمۍ دا د خير او د هدايت، سپوږمۍ دا د خير او د هدايت، سپوږمۍ د خير

وَ رُشْدٍ آمَنْتُ بِالَّذِي

او د هدايت (دې سره به يې دا فرمايل) يعني (اې سپوږمۍ) زه په هغه ذات باندې ايمان لرم کوم چې

خَلَقَكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ يَقُولُ : الْحَمْدُ

ته پيدا کړې يې دا به يې هم درې ځل فرمايل او بيا به يې د دې نه وروستو دا ويل: ټول تعريفونه د هغه

لِلّٰهِ الَّذِي ذَهَبَ بِشَهْرِ كَذَا وَ جَاءَ بِشَهْرِ كَذَا .[1]

خداې لپاره دي چا چې دا مياشت ختمه کړه او د دې مياشتې شروع يې وکړه. د کذا (په ځای کې به يې

د تېرې شوې او د راتلونکې مياشتې نوم اخيستلو).

## د سوچ او فکر لرې کولو دعاء

﴿۳٦﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : " مَنْ كَثُرَ هَمُّهُ

ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کوم سړی چې ډېرو فکرونو نيولی وي

فَلْيَقُلْ : اللَّهُمَّ إِنِّي عَبْدُكَ وَ ابْنُ عَبْدِكَ وَ ابْنُ أَمَتِكَ

نو هغه ته په کار دي چې دا دعاء ووايي: اې الله! زه ستا بنده يم، ستا د بنده ځوی يم، ستا د وينځې ځوی يم،

وَ فِي قَبْضَتِكَ نَاصِيَتِي بِيَدِكَ

ستا په قبضه کې زما تندی ويختان دي (ستا نه بغير زما د حرکت او آرام قوت هم ما کې نشته) زما په

مَاضٍ فِيَّ حُكْمُكَ

حق کې ستا حکم دی (يعني ستا د حکم منع کولو والا څوک نشته څه چې ته وي وغواړې هغه کېږي)

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ٤/٣٢٤ رقم الحديث :٥٠٩٢.

عَدْلٌ فِيَّ قَضَائُكَ أَسْأَلُكَ بِكُلِّ اسْمٍ هُوَ لَكَ

زما په حق كې ستا فيصله انصاف دى زه ستا نه ستا د هر نوم په وسيله غواړم كوم نومونه چې تا د خپل

سَمَّيْتَ بِهِ نَفْسَكَ أَوْ أَنْزَلْتَهُ فِي كِتَابِكَ أَوْ عَلَّمْتَهُ أَحَدًا مِنْ خَلْقِكَ

ذات لپاره اختيار كړي يا دې هغه په خپل كتاب كې نازل كړي يا دې هغه خپل مخلوق كې چاته ښودلي

أَوْ أَلْهَمْتَ عِبَادَكَ أَوِ اسْتَأْثَرْتَ بِهِ فِي مَكْنُونِ الْغَيْبِ عِنْدَكَ أَنْ تَجْعَلَ

دي يا تا يې الهام كړې خپلو بندګانو ته او يا تا هغه خپل ځان سره په غيب كې اختيار كړي دا چې ته جوړ

الْقُرْآنَ رَبِيعَ قَلْبِي وَ جِلاءَ هَمِّي و غَمِّي مَا قَالَهَا عَبْدٌ قَطُّ

قرآن زما د زړه پسرلى زما د ستر ګو رڼا او زما د غم او فكرلرې كونكى جوړ كړې دا دعاء چې څوك هم وايي

إِلَّا أَذْهَبَ اللهُ غَمَّهُ. وَ أَبْدَلَهُ فَرَحًا". رَوَاهُ رزين

الله تعالى به دده نه هر يو غم لرې كړي او په بدل كې به ورته خوشحالي وركړي.

﴿۳۷﴾ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : كُنَّا إِذَا صَعِدْنَا كَبَّرْنَا وَ إِذَا نَزَلْنَا

جابر رضي الله عنه وايي چې كله به مونږ په اوچت ځاى ختلو نو الله اكبر به مو ويل او چې كله به را كوزيدو

سَبَّحْنَا.[1]

نو سبحان الله به مو ويله.

## د ميدان جنګ دعاء

﴿۳۸﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا كَرَبَهُ أَمْرٌ يَقُولُ :

انس رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به كله يوې معاملې غمجن كولو نو دا به يې فرمايل:

يَا حَيُّ يَا قَيُّومُ بِرَحْمَتِكَ أَسْتَغِيثُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَلَيْسَ بِمَحْفُوظٍ[2]

اى ژوندي ذاته، اى قائم ساتونكي ذاته زه ستا د رحمت په ذريعه فرياد رسول غواړم.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳۵/۶ رقم الحديث : ۲۹۹۳.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲۰۱/۵ رقم الحديث :۳۵۹۳.

| |
|---|
| ﴿۳۹﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قُلْنَا يَوْمَ الْخَنْدَقِ: يَا رَسُولَ اللهِ! هَلْ مِنْ شَيْءٍ |
| ابو سعید خدری رضي الله عنه وايي چې د خندق په ورځ مونږ وویل یا رسول الله: آیا څه ذکر یا دعاء شته |
| نَقُولُهُ؟ فَقَدْ بَلَغَتِ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ |
| چې هغه مونږ وو ایو او کامیاب شو ځکه زمونږ زړونه مرکنډو نو ته راوختل (یعني ډیرو تکلیفونو نیولي |
| قَالَ: نَعَمْ: اللَّهُمَّ اسْتُرْ عَوْرَاتِنَا وَآمِنْ |
| یو) نبي علیه السلام و فرمایل آو: او هغه داده: ای الله! زمونږ په عیبونو پرده واچوي او مونږ په امن کې وساته |
| رَوْعَاتِنَا قَالَ: فَضَرَبَ اللهُ وُجُوهَ أَعْدَائِهِ بِالرِّيحِ وَهَزَمَ اللهُ بِالرِّيحِ.[1] |
| دوېري نه ابو سعید رضي الله عنه وايي چې الله د دښمنانو په مخ هوا راوسته او د هوا په وجه یې ماتې ورکړه. |

## په بازار کې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم دعاء

| |
|---|
| ﴿٤٠﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ السُّوقَ قَالَ: بِسْمِ اللهِ |
| بریده رضي الله عنه وايي چې نبي علیه السلام به کله بازار ته داخل شو نو دا دعاء به یې لوستله. د الله په نوم |
| اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ هَذِهِ |
| سره، ای الله ستا نه غواړم خیر د دې بازار (یعني حلال رزق راکړې چې په هغې کې ګټه او برکت وي) |
| السُّوقِ وَخَيْرِ مَا فِيهَا وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا وَشَرِّ مَا |
| او د هغه شي چې په دې کې دي (یعني خلک) او پناه غواړم په تا سره د بدۍ نه او د هغې شي د بدۍ نه |
| فِيهَا اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ |
| چې په دې کې دي (یعني فاسد اخستل او خرڅول او نقصان او فاسد خلک). ای الله: زه پناه غواړم |
| بِكَ أَنْ أُصِيبَ فِيهَا صَفْقَةً خَاسِرَةً. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ |
| په تا سره د هغې خبرې نه چې په دې بازار کې څه د تاواني معاملې سره وي. |



(۱) أخرجه أحمد في المسند ۳/۳.

# باب الاستعاذة
## د پناه غوښتلو بيان

قال الله تعالى: ﴿رَبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِينِ وَأَعُوذُ بِكَ رَبِّ أَن يَحْضُرُونِ﴾ (سورت المؤمنون آيت: ۹۷– ۹۸).

الله تعالى نه د دعا غوښتلو عام مفهوم دغه دي چې سړى د خپل مطلب، او ضرورت او د خپلې خوښې شي د الله تعالى نه وغواړي. انسان سره طبعي معامله داسې هم وي چې د خپل ناخوښې شيانو نه لرې تختي. او چرته يو پناه ځاى کې پټ شي. **استعاذة** او تعوذ د همدغې پناه ګاه د لټونې نوم دي. او بيا د دغې انسان يو ظاهرې مادي دښمن دي چې هغه په سترګو ښکاري. د هغې لپاره بېل پناګاهونه وي چې د هغې د حفاظت جدا انتظام او اندازوي چې هغه د تعوذ نه علاوه وي.

ددې نه علاوه د انسان يو دښمن داسې هم شته چې هغه پټ دښمن دى. چې هغه شيطان او د هغې اولاد دى. د هغې نه بچ کېدو لپاره يو جدا انتظام دي چې هغه همدغه تعوذ او استعاذه ده، په دي باب اکثر حديثونو تعلق د همدغې استعاذې سره دي او ويلې شوي دي: **اعوذ بالله من الشيطان الرجيم** يعنې زه د شيطان رټلې شوي نه د الله پناه غواړم.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل
### د غير موافق شيانو نه په خداي سره پناه نيول

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَوَّذُوا بِاللهِ مِنْ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: پناه غواړم په الله تعالى سره د |
| جَهْدِ الْبَلَاءِ وَ دَرَكِ الشَّقَاءِ وَ سُوءِ الْقَضَاءِ وَ شَمَاتَةِ الْأَعْدَاءِ.[1] |
| مصيبت د سختۍ نه بدبختۍ ته د رسيدلو نه، د بد تقدير نه او د دښمنانو د وېرې نه. |

**توضيح:** جهد البلاء: جيم باندې فتحه او ضمه دواړه دي، غټې سختۍ ته وايي.

**بلا:** په معنى د امتحان دى ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ د دې كلمې مطلب داسې بيانوي چې د هغه مصيبتونو

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۱۳/۱۱ رقم الحديث: ۶۶۱۶، ومسلم في صحيحه ۲۰۸۰/۴ رقم الحديث: ۲۷۰۷/۵۳.

نوم دي چې د دين يا د دنيا په اعتبار سره انسان ته رسېږي. او انسان هغه نشي لري کولي او نه په هغي صبر کولي شي. علامه طيبي فرمايي: چې د دې د داسې حالتونو پيښيدل دي چې د هغې نه وروسته انسان مر خوښي. بلکه د مرګ ارمان کوي. حضرت ابن عمر رضي الله عنه د دې تفسير داسې بيان کړي دي چې دا هغه حالت دي چې د انسان مال کم شي او اولاد يې ډېرشي. (المرقات: ۵/۳۱۱ الکاشف: ۵/۲۰۴)

**درك الشقاء:** درك مصدر دي راء باندې فتحه هم ده او سکون هم دی. د مندلو په معنی باندې دی.

**الشقاء** د بدبختي، بد انجام او د هلاکت په معنی دی. يعنې بدبختي، شقاوت او د هلاکت مندلو نه ستا پناه غواړم. (المرقات: ۵/۳۱۲)

**القضاء:** د تقدير په معنی دي مطلب دا چې د داسې فيصلې نه ستا پناه غواړم کوم چې زما په حق کې ښه نوي. (المرقات: ۵/۳۱۲)

**شماتة الاعداء:** په کوم سړي چې کله د دين يا دينا مصيبتونه راشي او دبدخواه دښمن په هغې د خوشحالۍ نه ټقي کوي هغې **شماتة الاعداء** وايي. په دې حديث کې دا څلور کلمات داسې عام دي چې انساني ژوند ټولو شعبو کې شامل دي. لهذا دا دعاء کامله ده. (المرقات: ۵/۳۱۲)

## جامعه پناه غوښتل

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ |
| انس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به دا دعاء غوښتله: اې الله! زه ستا پناه غواړم د ښکر نه |
| وَالْحُزْنِ وَالْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْجُبْنِ وَالْبُخْلِ وَضَلَعِ الدَّيْنِ وَغَلَبَةِ الرِّجَالِ[1] |
| د محتاج کېدو نه، د سستی نه، د وېرې نه، د بخل نه، د قرض د بوج نه او د غلبې د خلکو (يعنې د |
| ظالمانو) نه. |

**توضيح: اللهم:** دا هغه غم ته وايي چې هغه د کوم راتلونکي مصيبت د وېرې نه وي.

**الحزن:** دا هغه غم ته وايي چې د مصيبت د راتلو نه وروسته وي يعنې هم په راغلي غم باندې وي او حزن په افتونو باندې وي. لکه څنګه چې د يو مريض د مرګ ويره وي. دا هم او ويره ده. خو کله چې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۱۷۸ رقم الحديث: ۶۳۶۹.

مړ شي او د هغې وروسته غم راځي هغې ته حزن وايي.

**العجز:** احتیاج، کمزوري او تأخر ته وايي. عبادت کې د سستۍ کول مطلب دی.

**الکسل:** د طاقت لرلو سره هم د کوم يو نيک کار پرېښودلو ته کسل وايي.

**البخل:** يو واجبي حق نه ورکولو ته بخل وايي. دغه شان د ميلمه پالني پرخودلو ته هم بخل وايي.

**الجبن:** دومره ډېره ويره چې جهاد پرېښودلي شي.

**ضلع الدين:** دومره ډير قرض چې د سړي پوښتنۍ ماتي کړي.

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ |
| او عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به دا دعاء کوله: اى الله! زه پناه غواړم په تا سره |
| مِنَ الْكَسَلِ وَالْهَرَمِ وَالْمَغْرَمِ وَالْمَأْثَمِ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ النَّارِ |
| د سستۍ نه، د بوډاوالي نه، تاوان يا د قرض نه او د ګناه نه. اى الله! زه ستا پناه غواړم د عذاب د اور |
| وَفِتْنَةِ النَّارِ وَفِتْنَةِ الْقَبْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ وَمِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْغِنَى وَمِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْفَقْرِ وَمِنْ |
| نه، د فتنې داور نه، د فتنې د قبر نه، د عذاب قبر نه، د شر د فتنې د مالداري نه، د شر د فتنې د فقر نه او د |
| شَرِّ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ اللَّهُمَّ اغْسِلْ خَطَايَايَ بِمَاءِ الثَّلْجِ وَالْبَرَدِ |
| شر د فتنې د مسيح دجال نه. اى الله! د واورې او ګلۍ اوبو سره زما ګناه ووينځې (يعني په جدا جدا |
| وَنَقِّ قَلْبِي |
| مغفرتونو سره زما ګناهونه معاف کړې څنګه چې د واورې او ګلۍ اوبه ګندګي پاکوي او پاک کړې زړه |
| كَمَا يُنَقَّى الثَّوْبُ الْأَبْيَضُ مِنَ الدَّنَسِ وَبَاعِدْ |
| زما د (بداخلاق او بدخيالاتو) نه لکه څنګه چې سپينه توټه په اوبو سره پاکېږي او دومره لرې والې پيدا |
| بَيْنِي وَبَيْنَ خَطَايَايَ كَمَا بَاعَدْتَ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ.[1] |
| کړې زما او زما د ګناهونو په مينځ کې لکه څنګه چې تا د مشرق او مغرب په مينځ کې لرې والې پيدا کړې. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۸۱/۱۱ رقم الحديث: ۶۲۷۵، ومسلم في صحيحه ۲۰۷۸/۴ رقم الحديث: ۵۸۹/۴۹.

**توضیح: الهرم**: دا هغه بوډاوالي ته وايي چې دانسان مازغه په کې کار پرېږدي.(المرقات ۵/۳۱۳)

**المغرم**: هغه تاوان ته وايي چې کوم په يو انسان باندې هيس بېسه راشي يا قرض ته وايی. چې کوم انسان په خپل سر واخلي. (المرقات :۵/۳۱۳)

**فتنة النار**: يعني داسې فتنه راشي چې کوم انسان واجب النار جوړ کړي. (المرقات :۵/۳۱۴)

**ومن فتنة القبر**: يعني منکر نکير په جوابونو کې د بې جوابۍ نه ستا پناه غواړم(المرقات ۵/۳۱۴)

**وعذاب القبر**: يعني د قبر عذاب نه ستا پناه غواړم چې هغه پلک او ستېکې دي، لړمانان او ماران دي، د قبر نه مراد د برزخ اولنۍ مهمه برخه ده. جو هغه دي قبر کې ده. ملا علي قاري رحمه الله په تعريف د قبر کې ليکي : **اوكل ما استقرا جذائه فيه فهو قبر**. (المرقات :۵/۳۱۴).

**ومن فتنة الغنى**: هغه ماداري مراد ده چې هغه د کبر او تفاخر او بغاوت وي. همدغه شان په حرامو طريقو سره مال گټلي وي او په گناهونو کې يې خرچ کوي. (المرقات :۵/۳۱۴)

**فتنة القبر**: د فقر او فاقې فتنه داسې چې د مالدارانو سره حسد کوي. بغض او عناد ساتي او د بعضو مالدارانو نه يې په ذلالت سره غواړي. د هغې د عمل نه په دين کې سستي راشي او دا چې په تقدير باندې صبر نکوي څنگه چې په حديث کې دي.

**كاد الفقران يكون كفرا**: نبي کريم صلی الله علیه وسلم دا تعوذ د امت د تعليم لپاره کړي دی. حال دا چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم ته هيس قسم خطر نه وو. (المرقات :۵/۳۱۴)

**الدجال**: دجل کې مبالغه ده، دهوکې او فريب ته وايی. (المرقات :۵/۳۱۵).

**المسيح**: دجال ته مسيح ځکه وايې چې دا به ټوله زمکه مسح کړي او گرد به گرځي. او ممسوح العين يا ځکه دجال ته مسيح وايې چې د دې ستر گه ورانه شوي ده. (المرقات :۵/۳۱۵)

**الثلج**: واوري ته وايی. البرد گلۍ ته وايی.
د حديث مطلب دا دي چې دا مغفرت په ټولو قسمونو باندې د دې سرې مغفرت وشي نو اوبو په قسمونو نه ځکه د مغفرت قسمونه مراد اخستلي شوي دي. (المرقات :۵/۳۱۵)

## يو څو تعوذات

﴿٤﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ

زيد بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دا دعاء فرمايله: اى الله ستا نه پناه غواړم د

الْعَجْزِ وَ الْكَسَلِ وَ الْجُبْنِ وَ الْبُخْلِ

احتياجى نه (يعني اطاعت باندې د قدرت نه لرو) نيكو كارونو كې د سستى نه، د وېرې نه، د بخل نه،

وَ الْهَرَمِ وَ عَذَابِ الْقَبْرِ اَللّٰهُمَّ آتِ

د بوډاوالي نه (چې په سبب د هغې انداونه بې كاره او بې حسه وي) او عذاب د قبر نه. اى الله! نصيب

نَفْسِي تَقْوَاهَا وَ زَكِّهَا أَنْتَ خَيْرُ مَنْ زَكَّاهَا

كړې زما نفس ته د هغې پرهيزګاري او دا پاک كړې ځكه ددې په پاكولو كې ستا ذات ډېر غوره دى.

أَنْتَ وَلِيُّهَا وَ مَوْلَاهَا اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عِلْمٍ لَا يَنْفَعُ وَ مِنْ قَلْبٍ

ته ددې جوړونكې او مالک يې اى الله: زه ستا پناه غواړم د هغه علم نه چې ګټه ورنه وي، د هغه زړه نه

لَا يَخْشَعُ وَ مِنْ نَفْسٍ لَا تَشْبَعُ وَمِنْ دَعْوَةٍ لَا يُسْتَجَابُ لَهَا.[1]

چې نه وېرېږي، د هغه نفس نه ډكېږي نه او د هغه دعا نه چې قبلېږي نه.

﴿٥﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: كَانَ مِنْ دُعَاءِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دعاګانو كې دا دعاء هم ذكر شوې وه:

اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ زَوَالِ نِعْمَتِكَ

اى الله! زه غواړم په تا سره د زوال د نعمت ستا نه (او نعمت نه مراد ايمان، اسلم، نيكى او عرفان دى)،

وَ تَحَوُّلِ عَافِيَتِكَ

ستا د عافيت د بدليدو نه (مثلاً د صحت په بدله كې مريضتيا او د مالدارى بدله كې احتياج) ستا د

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۸۸/٤ رقم الحديث: ۲۷۲۲/۷۳.

وَ فُجَاءَةِ نِقْمَتِكَ وَ جَمِيعِ سَخَطِكَ. (۱)

ناڅاپي عذاب نه او د ټولو غصو نه.

﴿۶﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ

عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به دا دعاء غوښتله. اى الله! زه ستا پناه غواړم د هغه

شَرِّ مَا عَمِلْتُ وَ مِنْ شَرِّ مَا لَمْ أَعْمَلْ. (۲)

كار د بدۍ نه كوم چې ما وكړو او د هغه كار د بدۍ نه كوم چې ما نه دي كړې.

﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ: اللَّهُمَّ لَكَ أَسْلَمْتُ

ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به دا دعاء غوښتله: اى الله! ما ستا اطاعت وكړو،

وَ بِكَ آمَنْتُ وَ عَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَ إِلَيْكَ أَنَبْتُ

ما په تا ايمان راوړو ما په تا توكل وكړو زه ستا طرف ته راوګرځيدم (يعني ګناهونه مي پرېښودل او ستا

وَ بِكَ خَاصَمْتُ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِعِزَّتِكَ

اطاعت ته متوجه شوم) او زه ستا په مدد سره (د كافرو سره) جنګېږم. اى الله! زه پناه غواړم ستا د عزت

لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ أَنْ تُضِلَّنِي أَنْتَ الْحَيُّ الَّذِي

په واسطه ستا نه بغير بل څوک لائق د عبادت نشته د هغي نه چې ګمراه كړې ما، ته ژوندي يې داسې

لَا يَمُوتُ وَ الْجِنُّ وَ الْإِنْسُ يَمُوتُونَ. (۳)

چې ته مړ كېږې نه او ټول پيريان او انسانان به مړه كېږي.

**توضيح**: پيريان او انسان چونكه مكلف دي نو ځكه يې په خاص د دوې د مرګ ذكر وكړو. حال دا چې مرګ خو هر زنده سر لره وي:

الموت قدح كل نفس شاربها ❀ والقبر باب كل نفس داخلها

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۸۰ رقم الحديث: ۲۷۰۷/۵۳.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۸۵ رقم الحديث: ۲۷۱۶/۹۵

(۳) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱۶/۱۱ رقم الحديث: ۶۳۱۷، ومسلم في صحيحه ۴/۲۰۸۶ رقم الحديث: ۲۷۱۷/۶۷.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د څلورو شيانو نه پناه

﴿۸﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ

ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم به داسې دعا کوله: اې الله! زه پناه غوارم په تا سره

مِنَ الْأَرْبَعِ : مِنْ عِلْمٍ لَا يَنْفَعُ وَ مِنْ قَلْبٍ لَا يَخْشَعُ وَ مِنْ نَفْسٍ لَا تَشْبَعُ

د څلورو شيانو نه: د بې فائدې علم نه، د هغه زړه نه چې عاجزي نه کوي، د هغه نفس نه چې نه صبرېږي

وَمِنْ دُعَاءٍ لَا يُسْمَعُ ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو. وَالنَّسَائِيُّ عَنْهُمَا [۱]

او د هغه دعاء نه چې نه قبلېږي.

**توضيح:** د څلورو شيانو ذکر په دې حديث کې دې خو دا څه محدود نه دی په ورسره روايت کې د پنځه شيانو ذکر دی. د دې نه د ډيرو ذکر هم شته نو دا اهميت په اعتبار سره کله نبي کريم صلی الله عليه وسلم د لږو ذکر کړي او کله يې د ډيرو ذکر کړي دی. همدغه شان راويانو د مختلف احوال نيولو سره کله لږ او کله ډير کړي دي. (المرقات: ۵/۳۲۰)

﴿۹﴾ وَعَنْ عُمَرَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَعَوَّذُ مِنْ خَمْسٍ : مِنَ الْجُبْنِ

ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم به د پنځو شيانو نه د الله پناه غوښتله: ۱- د بزدلۍ نه

وَ الْبُخْلِ وَ سُوءِ الْعُمُرِ

۲- د بخل نه ۳- د عمر د بدی (يعني عمر د ومره ډير شي چې آخر په قوت او حواس کې فرق راشي او د

وَ فِتْنَةِ الصَّدْرِ

عبادت او اطاعت قوت نه وي) د فتنې د سينې نه (يعني د هغه شي نه چې د سينې د ننه بد اخلاق او

وَ عَذَابِ الْقَبْرِ. [۲]

بدې عقيدې جوړوي يا د حق خبره نه قبلوي او د مصيبتونو وخت کې صابره نه وي) ۵: د قبر د عذاب نه

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۸۱ رقم الحديث : ۳۵۴۹.

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۵/۱۸۱ رقم الحديث : ۳۵۴۹.

﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ

ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به ذکر شوې دعاء غوښتله: اى الله! زه پناه غواړم

بِكَ مِنَ الْفَقْرِ وَ الْقِلَّةِ وَ الذِّلَّةِ وَ أَعُوذُ مِنْ أَنْ أَظْلِمَ

په تا سره د احتياجي نه، د قحط نه، د ذلت نه او د دې خبرې نه پناه غواړم چې زه په چا ظلم وکړم او يا

أَوْ أُظْلَمَ. [1]

څوک په ما ظلم وکړي.

**توضيح:** کم والي (قلت) نه مراد د نيکيو کموالى دى.

**الذلة:** د ګناهونو د کولو په وجه د خلکو په سترګو کې ذليل کيدل مراد دي.

﴿۱۱﴾ وَ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ

ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به دا دعاء لوستله: اى الله! زه پناه غواړم په تا سره

مِنَ الشِّقَاقِ وَالنِّفَاقِ وَسُوءِ الْأَخْلَاقِ. [2]

د اختلاف نه، د نفاق نه او بد اخلاقى نه.

## د لوږې او خيانت نه پناه

﴿۱۲﴾ وَ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ يَقُولُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ

ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به دا دعاء لوستله: اى الله! زه پناه غواړم په تا سره د

الْجُوعِ فَإِنَّهُ بِئْسَ الضَّجِيعُ وَ أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخِيَانَةِ فَإِنَّهَا بِئْسَتِ الْبِطَانَةُ. [3]

لوږې نه ځکه چې دا بدتره څوب دي او ستا پناه غواړم د خيانت نه چې هغه د باطن بدتره خصلت دى.

**توضيح:** د لوږې نه ځکه پناه غوښتلې شوې ده چې د انسان ټول ښکاره اندامونه کمزوري شي نو انسان د کوم عبادت کولو جوګه نه وي حال دا دي چې د انسان د پيدائش مقصد د الله تعالى عبادت کول دي.

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۹۱/۲ رقم الحديث: ۱۵۴۴.

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۹۱/۲ رقم الحديث: ۱۵۴۶.

(۳) أخرجه ابوداود في السنن ۹۱۱/۲ رقم الحديث: ۱۵۴۷.

**بئس الجیع**: یعنې ځینې وخت څه شي انسان سره ولږي او داسې ورسره کلک شي چې انسان پخپله حیران شي. ولګه هم همدغه شان نوي میلمه دي ترکومې چې وي نو تنګول کوي لږې کېږي نه. او ځکه بدتره ملګري او بد خوب دی.

**البطانة**: څنګه چې د خیانت واسطه د بدن دننه برخي سره یعنې زړه سره دي نو ځکه یې خیانت د انسان باطني بدتره خصلت ویلي شوې دی. (المرقات :۵/۳۲۵)

| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ : اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ |
|---|
| انس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به دا دعاء لوستله : ای الله! زه پناه غواړم په تا سره د |
| الْبَرَصِ وَالْجُذَامِ وَالْجُنُونِ وَمِنْ سَيِّئِ الْأَسْقَامِ .(۱) |
| برګي نه، د جذام نه، د لیونتوب نه او د بدي مریضتیاګانو نه. |

**توضیح: سيّئ الاسقام**: یعنې بدترینه مرضیتیاګاني دا جمله د تخصیص نه وروسته تعمیم دا. د حدیث خلاصه دا ده چې کومه مریضتیا داسې وي چې خلک د مریض نه منع شي، خپله مریض هم څه د نیک کار کولو توان نه لري، مریض د حقوق الله او حقوق العباد کولو توان ونه لري نو د داسې تباه کونکې مرض نه پناه غوښتل جائز دي بلکې ضروري هم دي. (المرقات :۵/۳۲۵)

## د بداخلاقۍ نه پناه

| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ قُطْبَةَ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ |
|---|
| قطبه بن مالک رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به فرمايل: ای الله! زه پناه غواړم په تا سره د |
| مُنْكَرَاتِ الْأَخْلَاقِ وَالْأَعْمَالِ وَالْأَهْوَاءِ .(۲) |
| بد اخلاقۍ نه، د بدو عملونو نه او بدو خواهشاتو نه. |

**توضیح: منکرات الاخلاق**: منکر هغه ته وايي کوم چې شریعت منع کړي وي او په نیکیو کې نه بلکه بدیو کې شمارل کېږي. د اخلاقو نه مراد باطني اعمال دي. مقصد د زړه غلط احساسات دي. لکه کینه، بغض، حسد او لوبو کې دلچسپي ساتل، دا شیان د زړه باطني مرضونه دي.

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۲/۹۳ رقم الحديث : ۱۵۵۴.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۷۵ رقم الحديث : ۳۵۹۱.

**والاعمال:** بد عملونو ته وايي کوم چې پاس ذکر شوې دي. الاهو: غلط خواهشاتو هو باطله خلکو نظريات او د مبتدعينو بدعات مراد دي. (المرقات: ۵/۳۱۷)

## يوه جامع دعاء

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَ عَنْ شُتَيْرِ بْنِ شَكَلِ بْنِ حُمَيْدٍ عَنْ أَبِيه قَالَ : قُلْتُ: |
| شتیربن شکل بن حمید د خپل پلار (شکل رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ) نه روايت کوي چې هغه وويل ما عرض وکړو چې |
| يَا نَبِيَّ اللهِ عَلِّمْنِي تَعْوِيذًا أَتَعَوَّذُ بِهِ |
| يا رسول الله! ماته داسې تعويذ (يعنې دعاء) وښايه چې دهغې په ذريعه سره زه پناه وغواړم نبي کريم |
| قَالَ : قُلِ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ سَمْعِي |
| صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دا دعاء وايه: اى الله! زه ستا پناه غواړم د خپل اوريدلو دبدۍ نه (چې په خپلو |
| وَ مِنْ شَرِّ بَصَرِي |
| غوږونو بدې خبرې واورم)، د خپل د سترګو نظر نه (چې په خپلو سترګو بد شيان ونه وينم)، د خپلې |
| وَ شَرِّ لِسَانِي وَ شَرِّ قَلْبِي |
| ژبې د شرنه (چې د خپلې ژبې نه بد او بې فائدې کلمات راونه باسم) د خپل زړه بدۍ نه (چې زما په زړه کې غلطې عقيدې او حسد او کينه او داسې د نورو وسوسه نه وي او د غلطو کارونو کلکې ارادې نه کوم) |
| وَ شَرِّ مَنِيِّي.[1] |
| او د شر د خپلې منې نه (چې هغه په حرام خورۍ کې مصرف شي او زه د شهوت په نظر چاته ونه ګورم) |

**توضيح: شر سمعي:** سمع غوږ ته وايي مطلب دا چې زه دا خبرې وانورم چې الله تعالى پرې خفه شي. (المرقات: ۵/۳۲۸)

**شر بصري:** چې زه داسې شيان ونه وينم چې په هغې الله خفه کېږي. (المرقات: ۵/۳۲۸)

**شر لساني:** چې په ژبه داسې خبرې راشي هغه فضول وي. (المرقات: ۵/۳۲۸)

**شر قلبي:** چې داسې عقيدې خپلې نکړم چې په هغې ته خفه شيي. (المرقات: ۵/۳۲۸)

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۲/۹۲ رقم الحديث: ۱۵۵۱.

شر مني: چې مني غالبه شي او زنا رانه وشي. (المرقات: ۵/۳۲۸)

| |
|---|
| ﴿۱٦﴾ وَعَنْ أَبِي الْيُسْرِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَدْعُو: اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ |
| ابي اليسر رضي الله عنه وايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به دا دعاء لوستله: ای الله! زه پناه غواړم په تا سره |
| مِنَ الْهَدْمِ وَ أَعُوذُ |
| د کور دراغورځيدو (يعنې کور يا ديوال په ما را پرې نوزي چې د هغې په وجه زه مړ شمه) نه او زه پناه |
| بِكَ مِنَ التَّرَدِّي وَ مِنَ الْغَرَقِ وَ الْحَرَقِ و الاَرَمِ وَ |
| غواړم په تا سره د اوچت ځای نه د راغورځيدو، د ډوبيدلو نه، د سوزيدلو نه، د ډېر بوډاوالي نه او زه |
| أَعُوذُ بِكَ مِنْ أَنْ يَتَخَبَّطَنِي الشَّيْطَانُ عِنْدَ الْمَوْتِ |
| پناه غواړم د دې خبرې نه چې د مرګ په وخت کې شيطان ما دهوکه کړي (يعنې وسوسې راته واچوي |
| وَ أَعُوذُ بِكَ مِنْ أَنْ أَمُوتَ فِي سَبِيلِكَ مُدْبِرًا |
| او زما دين تباه کړي) زه پناه غواړم په تا سره د دې خبرې نه چې ستا په لاره کې شا کړم (يعنې جهاد کې |
| وَ أَعُوذُ بِكَ مِنْ أَنْ أَمُوتَ لَدِيغًا. وَزَادَ فِي رِوَايَةٍ أُخْرَى الْغَمِّ [1] |
| د کافرو مقابله کې تختيدل) او مړ شم او زه پناه غواړم په تا سره د دې خبرې نه چې مړ شم په لديغ سره |
| (يعنې مار، لړم او نورو زهرجن ځناورو د خوړلو نه مړ شم). |

**توضيح:** **الهدم:** د کور راوليدلو ته وايي. **التردي:** د غر رالويدلو په معنى دى.

**الغرق:** په اوبو کې غرق شي. (المرقات: ۵/۳۲۸)

**الحرق:** په اور سوزيدلو ته حرق وايي. (المرقات: ۵/۳۲۸)

**يتخبطني:** يعنې شيطان ما په خپله دهوکې سره ليوني نکړي. (المرقات: ۵/۳۲۸)

**في سبيلك:** د دينه د جهاد لاره مراد ده. (المرقات: ۵/۳۲۸)

**مدبرا:** د شرعي عذر نه بغير د دښمن مقابله کې تختيدل منع دي. (المرقات: ۵/۳۲۸)

---

[1] أخرجه ابوداود في السنن ۹۲/۲ رقم الحديث: ۱۵۵۲.

## د طمع نه د پناه غوښتو حکم

| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْ مُعَاذٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : أَستعيذُ |
|---|
| معاذ رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي چې نبي عليه الصلاة والسلام وفرمايل: پناه وغواړه د |
| بِاللهِ مِنْ طَمَعٍ يَهْدِي إِلَى طَبَعٍ.[1] |
| الله تعالى پناه وغواړه د طمع نه طبع ته رسوي. |

**توضيح: طمع**: د خداي د مخلوق نه مال او دولت اميد ساتلو ته طمع وايي. (المرقات: ۵/۳۳۰).

**يهدي**: چې څه راوراسوي او لاره اواره کوله کړي. (المرقات: ۵/۳۳۰)

**الي طبع**: طبع ټاپې ته وايي، د اوسپني زنګ ته هم وايي، ګند ته هم وايي او نقص ته هم وايي. ابن مالک د عبارت تفسير کوي : **يعني من الحرص الذي يجر صحبه الى الذل والعيب** . (المرقات ۵/۳۳۰)

د انساني روح او باليد لپاره طمع يو داسې ناسور دي چې هغه ورو ورو د انسان په دين کې ټولو شعبو کې مختلف طريقو سره د زهرو پشان خورېږي. همدغه وجه ده چې طمع دين د فساد جړ دی. لکه تقوي د دين د اصلاح جړله ده. حضرت عمر فاروق صلى الله عليه وسلم د حضرت کعب رضي الله عنه نه پوښتنه وکړه چې **فما اخرج العلم من قلوب العلماء؟ قال الطمع.**

| ﴿۱۸﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ نَظَرَ إِلَى الْقَمَرِ فَقَالَ : يَا عَائِشَةُ |
|---|
| عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم يو ځل سپوږمۍ وليده او وې فرمايل چې اى عائشې! |
| اسْتَعِيذِي بِاللهِ مِنْ شَرِّ هٰذَا فَإِنَّ هٰذَا هُوَ الْغَاسِقُ |
| پناه وغواړه په الله تعالى سره د دې (سپوږمۍ) د بدۍ نه ځکه چې دا غاسق (تورتم خورول والا) ده |
| إِذَا وَقَبَ.[2] |
| چې کله بې رڼا شي. |

---

(۱) أخرجه مسند أحمد ۵/۲۳۲، رقم الحديث : ۲۲۰۷۴.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۴۲۱ رقم الحديث : ۳۳۶۶.

**توضيح**:په دې حديث کې د قرآن کريم يو آيت طرف ته اشاره شوي ده چې په سوره فلق کې داسې دي ﴿ وَمِن شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ ﴾ مطلب دا چې کله سپوږمۍ بې رڼا شي او تندر يې ونيسي. نو د سپوږمۍ تندر نيول د مشکلاتو او مصيبتونو راتلو ته اشاره کوي. لهذا د سپوږمۍ د تندر نيولو په هم پناه غوښتل په کار دي چې دومره لويه ساحه چې مصيبت کې ګيره شوه او بې رڼا شوه نو چرته زما زړه هم د ايمان د رڼا نه بې رڼا نه شي. د دې نه پناه غواړه. د دې حديث معلومه شوه. چې غاسق اذا وقب نه مراد د تندر سپوږمۍ لره نيول دي. اګر که اکثر مفسرينو دا کلمه د شپې د خوريدلو او تورتم کېدلو باندې نيولې دا. (المرقات: ۵/۳۳۰)

## د اوه (۷) خدايانو عبادت کوونکې قصه

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ : قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَبِي: |
| عمران ابن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما پلار (حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) ته وويل (چې |
| يَا حُصَيْنُ كَمْ تَعْبُدُ الْيَوْمَ إِلَهًا ؟ قَالَ أَبِي : |
| هغه وخت کې مسلمان شوي نه ؤ) حصين: نن صباته دڅومره معبودانو عبادت کوې؟زما پلار وويل |
| سَبْعَةً : سِتًّا فِي الْأَرْضِ |
| د اوه معبودانو چې په هغې کې شپږ په زمکه کې دي (او د هغې نومونه دا دي يغوث، يعوق، نسر، |
| وَ وَاحِداً فِي السَّمَاءِ قَالَ : |
| لات، منات او عزى) اويو په آسمان کې دي(چې هغه دټولو خالق دي)نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| فَأَيُّهُمْ تَعُدُّ لِرَغْبَتِكَ وَ رَهْبَتِكَ ؟ |
| بيا په دې کې کوم معبود ستا د طمع او ستا د وېرې مرسته کوونکې دي(يعنې په دې کې د کوم يو معبود |
| قَالَ : الَّذِي فِي السَّمَاءِ |
| نه ته وېرېږې او د هغه نه : خير طمع لرې؟)ده وويل چې کوم په آسمان کې دي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| قَالَ : يَا حُصَيْنُ أَمَا إِنَّكَ لَوْ أَسْلَمْتَ عَلَّمْتُكَ كَلِمَتَيْنِ |
| وفرمايل. حصين. پوهه شه که چرې ته مسلمان شوې نو ما به تاته دوه کلمې خودلې چې هغوی به |
| تَنْفَعَانِكَ : قَالَ فَلَمَّا أَسْلَمَ حُصَيْنٌ |
| تاته (دنيا او آخرت) کې ګټه درسولی. عمران رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې هر کله زما پلار مسلمان شو نو |

| |
|---|
| قَالَ : يَا رَسُوْلَ اللهِ عَلِّمْنِيْ الْكَلِمَتَيْنِ اللَّتَيْنِ وَعَدتَنِيْ |
| وې ویل چې یا رسول الله ! اوس ماته هغه دوه کلمې وښایه د کومو چې تا وعده کړې وه؟ نبي کریم |
| فَقَالَ : قل اللّٰهُمَّ أَلْهِمْنِيْ رُشْدِيْ وَ أَعِذْنِيْ مِنْ شَرِّ نَفْسِيْ. [1] |
| صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل: ای الله ! زما په زړه کې هدایت واچوي او زما نفس د بدیو نه پاک کړې. |

## د ماشومانو په مرۍ کې د تعویذ اچولو ثبوت

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهِ |
| عمرو بن شعیب د خپل پلار (شعیب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ) نه او هغه د خپل نیکه (عبد الله رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ) نه روایت کوي چې |
| أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : " إِذَا فَزِعَ أَحَدُكُمْ فِي النَّوْمِ |
| نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل په تاسو کې کوم یو سړی په خوب کې ویرېږي نو هغه ته په کار دي چې |
| فَلْيَقُلْ : أَعُوْذُ بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّاتِ مِنْ غَضَبِهِ |
| ذکر شوې کلمات ووايي چې (ترجمه): زه د الله په پوره کلماتو سره پناه غواړم د هغې د غضب نه، د |
| وَ عِقَابِهِ وَ شَرِّ عِبَادِهِ وَ مِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِيْنِ وَ أَنْ |
| هغه د عذاب نه، د هغه د بنده ګانو د بدۍ نه، د شیطان د وسوسو نه او د دې خبرې نه چې شیطان ماته |
| يَحْضُرُوْنَ فَإِنَّهَا لَنْ تَضُرَّهُ وَ كَانَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عَمْرٍو |
| راشي لهذا دې کلماتو ویلو سره به شیطان هرګز څه ضرر نه شي رسولې نو عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ |
| يُعَلِّمُهَا مَنْ بَلَغَ مِنْ وَلَدِهِ وَ مَنْ لَمْ يَبْلُغْ مِنْهُمْ |
| دا کلمات په خپل اولاد کې هر هغه سړي ته ښودل چې هغه به بالغه شو او په اولاد کې به چې کوم نابالغه |
| كَتَبَهَا فِيْ صَكٍّ ثُمَّ عَلَّقَهَا فِيْ عُنُقِهِ. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيّ وَهٰذَا لَفْظُه. [2] |
| ؤ نو دا کلمات به یې د کاغذ په ټکړو باندې ولیکل او په مرۍ کې به یې ورته واچول. |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴۸۵/۵ رقم الحديث : ۳۴۸۳.

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۲۱۹/۴ رقم الحديث : ۳۸۹۳.

**توضیح: في صك**: ای کتاب یعني د کاغذ ټکړو باندې به یې لیکل. صك اصل کې چک وو د کاغذ ټکړو ته وايي یعنې حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه به کلمات خپلو بچو ته ولیکل او بیا به یې پرې زده کول. کوم ماشومان به غټ وو او زده کولو جوګه به وو. خو کوم ماشومان به چې واړه وو او د زده کولو جوګه به نه وو نو حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه به د کاغذ په ټکړو باندې ولیکل او په مرو کې به یې ولړه واچول. د دینه معلومیږي چې مری کې تعویذ زوړندا ول منع ندی.

او دا حدیث په جواز باندې ښکاره دلیل دی. ملاعلي قاري رحمه الله وايي: **في عنقه ای في رقبة ولده وهذا اصل في تعليق التعويذات التي فيها اسماء الله تعالى.**

تعویذونو کې اګر چې د علماء اختلافي اقوال شته خو راجح قول دا دی چې کوم تعویذ د جادو په ټوټکو او د غیرالله نه د غوښتلو او شرکیه کلماتو باندې وي یا پکې مبهم کلمات وي یا د هډوکو امېل جوړ کړي او وایې چوي او یا د انتر منتر د قسمونو نه وي نو استعمالول یې حرام دي او کوم تعویذ چې قرآن او حدیث په دعاګانو جوړ کړي شي نو هغه جائز دي.

نور چې نن سبا خلکو د جائزتعویذونو کوم کاروبار شروع کړي دي اګر که د جائز تعویذ عمل د طبیب او ډاکټر د علاج پشان یو محنت دی. پدې باندې پیسه اخستل د ډاکټر د علاج پشان دي نو دي ته حرام نشم ویلي خو د دې کاروبار جوړه ول او د یو هنر په توګه استعمالول مناسب ندي. کیدې شي تجرته مو وي چې د دې خاتمه ښه نه وي. هسي هم عام خلک داسې عالم یا پیر کمزوري ګڼړي اګر که هغه د تعویذونو په وجه څومره هم مالداره شوي ولي نوي. بعضو خلکو سره فن هم کامل نوي. فقط د روپی راټولول لپاره د خداي مخلوق قسم قسم حیلو سره د خپل روزګار وسیله جوړه کړي ده. انالله وانا الیه راجعون.

## داسې دعاء چې جنت به په خپله سفارش وکړي

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ سَأَلَ اللهَ الْجَنَّةَ |
| انس رضي الله عنه راوي دي وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل کوم سړی چې د الله نه وغواړي جنت |
| ثَلَاثَ مَرَّاتٍ |
| دري ځلې (یعني دري ځله دا دعاء وکړي: ای الله! زه ستانه جنت غواړم. یا دا ووایی: ای الله ما جنت |
| قَالَتِ الْجَنَّةُ : اللَّهُمَّ |
| ته داخل کړې او یا په هره یوه ژبه چې د مفهوم او مضمون دري ځله ووایی) نو جنت وایي چې ای الله |

| أُدْخِلْهُ الْجَنَّةَ وَ مَنِ اسْتَجَارَ مِنَ النَّارِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ |
|---|
| ته دا جنت ته داخل کړې او کوم سړی چې درې ځله دا ورنه پناه وغواړي (يعني درې ځله داسې ووايي |
| قَالَتِ النَّارُ : |
| اې الله! ماد اور نه وساتې او يا د دې مفهوم او مضمون چې هره ژبه کې درې ځله ووايي) نو اور وايي |
| اللَّهُمَّ أَجِرْهُ مِنَ النَّارِ ".[1] |
| چې اې الله! ته دا سړی د اور نه وساتې . |

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د سحر نه د بچ کيدو دعاء

| ﴿۲۲﴾ عَنِ الْقَعْقَاعِ : أَنَّ كَعْبَ الْأَحْبَارِ قَالَ : لَوْلَا كَلِمَاتٌ أَقُولُهُنَّ لَجَعَلَتْنِي يَهُودُ حِمَارًا |
|---|
| قعقاع وايي چې کعب احبار به ويل که چېرته ما هغه کلمات نه ويلې نو يهود و به ما نه خرجوړ کړې وې |
| فَقِيلَ لَهُ : مَا هُنَّ ؟ قَالَ : أَعُوذُ |
| پوښتنه ترې وشوه چې هغه څه کلمات دي؟ نو وې وفرمايل چې هغه دا کلمات دي: زه پناه غواړم د |
| بِوَجْهِ اللهِ الْعَظِيمِ الَّذِي لَيْسَ شَيْءٌ أَعْظَمَ مِنْهُ وَ بِكَلِمَاتِ اللهِ |
| دالله د ذات په واسطه چې هغه ډېر لوې دی هغه الله چې د ده نه بل څوک لوې نشته او د هغه د کلماتو |
| التَّامَّاتِ الَّتِي لَا يُجَاوِزُهُنَّ بَرٌّ وَلَا فَاجِرٌ وَ بِأَسْمَاءِ اللهِ |
| په ذريعه سره چې د هغې نه څوک بنه ډېر والي کولې شي او نه څوک بد او د الله د نومونو په واسطه |
| الْحُسْنَى مَا عَلِمْتُ مِنْهَا وَمَا لَمْ أَعْلَمْ |
| چې پاک او نيک دي او په هغې کې کوم زه پيژنم او کوم چې زه نه پيژنم او د هغه شي د بدی نه چې هغه |
| مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ وَ ذَرَأَ وَ بَرَأَ.[2] |
| پيدا کړې او برابر کړې دي . |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۶۰۳/۴ رقم الحديث : ۲۵۷۲.

(۲) أخرجه مالک في الموطأ ۹۵۱.

**توضیح:** حضرت کعب احبار د یهودو په لویو علماو کې ؤ د نبي کریم ﷺ وخت یې موندلي وو خو مسلمان نه شو او نه یې نبي کریم ﷺ لیدلي ؤ. وروسته د حضرت عمرفاروق رضي الله عنه په دور کې مسلمان شو. دده بیان دي چې زه کله مسلمان شوم نو یهود زما مخالف شول. په ما یې قسم قسم جادو کول شروع کړل. نو که چرې ما ذکر شوې دعاګانې نه لوستلې نو قریبه وه چې یهودو په ما نه د خپل جادو به واسطه سره خرجوړ کړې وې یعنې په رشتنې به یې خر شوی وم یا به د خر په شان کمعقل وی. خو د دې کلماتو په ذریعې سره زه محفوظ وم. پوښتنه کونکې تپوس وکړو چې هغه کلمات څه دی؟ نو وې ویل (کوم چې بره حدیث کې ذکر شوې دي). (المرقات ۵/۳۳۶)

**لایجاوزهن:** د کلمات تامه نه قرآن عظیم هغه کلام عظیم دي چې د ده د احکامو نه نه نیک سړی بار وتلي شي چې کوم مسلمان وي او بد سړی بار وتلي شي کوم چې کافر دي او قرآن کې دوه قسمه احکام دي. یو قسم وعد دې دیوم قسم وعید دی. لهذا بر او فاجر نه مووءمن او کافر مراد اخستلي کیږي. د دې کلمې مطلب دا دي چې قرآن عظیم په کافر او مسلمان دواړو باندې غالب دی. یو لپاره زیري دي او بل لپاره یره ده. (المرقات: ۵/۳۳۸)

**ماخلق:** یعني د الله د هر مخلوق دشر نه کوم مخلوق چې الله پیدا کړي دي. وذرأ: او د پیدا کولو نه وروسته یې خواره کړل. وبرء او بغیر د څه تفاوته یې سم کړل. یو د الله والا افریقه کې به یو مجلس کې علماوو ته د لوستلو لپاره داسې دعا وښودله. ای الله! د خپل هر مخلوق د شر نه ما وساتي. (الکاشف: ۵/۳۲۰)

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَ عَن مُسلِم بْنِ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ : كَانَ أَبِي يَقُولُ فِي دُبُرِ الصَّلَاةِ : اَللّٰهُمَّ |
| مسلم بن ابي بکره وایي چې زما پلار (د هر مونځ یا د فرض) مونځ نه وروسته دا دعاء غوښتله: ای الله |
| إِنِّيْ أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكُفْرِ وَ الْفَقْرِ |
| زه پناه غواړم په تا سره د کفر نه، د فقر نه (یعني د زړه د فقر د فتنې نه چې هغه بې صبري او د نعمت ناشکري |
| وَ عَذَابِ الْقَبْرِ فَكُنْتُ أَقُوْلُهُنَّ فَقَالَ : أَيْ |
| وغیره) او د قبر د عذاب نه. نو ما به هم دا کلمات ویله (یو ورځ) زما پلار ما نه پوښتنه وکړه چې ای |
| بُنَيَّ عَمَّنْ أَخَذْتَ هٰذَا ؟ قُلْتُ : عَنْكَ قَالَ : إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| زما ځویه! تا دا کلمات د چا نه زده کړي دي؟ ما ورته وویل: ستا نه. ده وویل چې نبي کریم ﷺ |

كَانَ يَقُولُهُنَّ فِيْ دُبرِ الصَّلَاةِ.(۱)

به د مونځ نه وروسته دا کلمات لوستل.

إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يُذْكَرْ فِي دُبُرِ الصَّلَاةِ وَرَوَى أَحْمَدُ لَفْظَ الحَدِيثِ وَعِنْدَهُ: فِي دُبُرِ كل صَلَاة.

## د قرض او کفر دواړو نه پناه غواړئ

﴿۲٤﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : أَعُوذُ

ابو سعید رضي الله عنه وايي چې ما د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه دا کلمات اوريدلي دي چې : زه پناه غواړم

بِاللهِ مِنَ الْكُفْرِ وَ الدَّيْنِ فَقَالَ رَجُلٌ : يَا رَسُولَ اللهِ

دالله نه د کفر او قرض نه يو سړی (چې دا واوريدل) نو وي ويل چې يا رسول الله: آيا تا برابر کړو کفر

أَتَعْدِلُ الْكُفْرَ بِالدَّيْنِ ؟ قَالَ : نَعَمْ . وَ فِي رِوَايَةٍ اللَّهُمَّ إِنِّي

د قرض سره ؟نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: آو ! او په يو بل روايت کې دا دعاء نقل ده: ای الله! زه

أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكُفْرِ وَ الْفَقْرِ . قَالَ رَجُلٌ : وَ يُعْدَلَانِ ؟

ستا پناه غواړم د کفر او فقر نه (دې اوريدو سره )يو سړي وويل: آيا کفر او قرض برابر کيدې شي؟

قَالَ : نَعَمْ .(۲)

نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: آو .

**توضیح:** کفر او قرض په دې حدیث کې ځکه يو برابر کړی شوي دي چې قرض په وجه انسان دروغ وايي، مکاري او حيلې بهانې کوي، وعده خلافې کوي. بيا بيا وعده کوي او بيا يې ماتوي. دا ټول شيان يا د منافقينو خصلتونه دي يا د کفارو خصلتونه دي. ځکه په کوم مسلمان کې دا شيان راغلل نو هغه د کفارو او منافقينو صف کې اودريدو. کفر او فقر هم برابر وګڼل شول ځکه **کادالفقر ان يکون کفرا** حديث دی. (المرقات :۵/۳۴۰)



(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳۲۵/۵ رقم الحديث : ۵۰۹۰.

(۲) أخرجه المستدرک على الصحيحين ۱۹۲/۲، رقم الحديث: ۱۹۵۰.

# باب جامع الدعآء

## جامع دعاگاني

جامع دعاء هغه وي چې د هغې الفاظ لنډ وي او معنی يې ډيره وي اى معان كثيرة في الفاظ يسيرة داد اضافت موصوف خپل صفت طرف ته دی، اصل عبارت داسې دی: الدعآء الجامع.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

﴿۱﴾ عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَّهُ كَانَ يَدْعُو بِهٰذَا الدُّعَاءِ:

ابو موسی اشعري رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي چې نبي عليه السلام به دا دعاء ويله:

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي خَطِيئَتِي وَ جَهْلِي وَ إِسْرَافِي فِي أَمْرِي وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي

اى الله! ما وبخښې، خطاگانې زما، ناپوهي زما، زما زيات او د هغه گناه نه چې د هغې علم زمانه تاته ډېر

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي جِدِّي وَ هَزْلِي وَ خَطَئِي وَ عَمْدِي

دی. اى الله! وبخښې زما هغه بد كار چې كوم ما قصداً كړى او هغه كار كوم چې ما ارادتاً كړي دي.

وَ كُلُّ ذٰلِكَ عِنْدِي

او هغه كارونه كوم چې به په پوهه او كوم مې چې په ناپوهي كې كړي او دا ټولې خبرې ما كې شته.

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا

اى الله! وبخښې زما هغه گناهونه چې كوم ما مخكې كړي او هغه گناهونه چې كوم (بالفرض والتقدير)

أَخَّرْتُ وَمَا أَسْرَرْتُ وَمَا أَعْلَنْتُ وَمَا

وروسته كېږي. هغه گناهونه كوم چې ما پټ كړي او هغه گناهونه كوم چې ما ښكاره كړي وي او هغه

أَنْتَ بِهِ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي أَنْتَ الْمُقَدِّمُ

گناهونه د كومو چې زمانه تاته ډير علم دی ته چې څوك وغواړې په خپل توفيق سره خپل رحمت ار خ

| وَ أَنْتَ الْمُؤَخِّرُ وَ أَنْتَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ.[1] |
|---|
| ته راول‌... او ته چې څوک وغواړې د خپل رحمت نه يې شاته کړې او هم ته په څه باندې قادر يې. |

**توضیح: وكل ذلك عندي:** نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تواضع او د عاجزۍ په توګه وفرمایل چې دا ټول شیان ما کې شته یا یې د خپل امت د تعلیم لپاره وفرمایل. ځکه هر یو امتي د دې ګناهونو نه په څه نا څه ګناه کې اخته دی. (المرقات ۵/۳۴۱)

| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: اللَّهُمَّ أَصْلِحْ لِي دِينِي |
|---|
| ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دا دعاء لوستله: ای الله! نیک کړې زما دین چې |
| الَّذِي هُوَ عِصْمَةُ أَمْرِي |
| زما د کارونو محافظ دی (یعنې د دین په وجه د ځان او مال او د عزت حفاظت کیږي او د آخرت د عذاب |
| وَ أَصْلِحْ لِي دُنْيَايَ الَّتِي فِيهَا مَعَاشِي وَ أَصْلِحْ لِي آخِرَتِي الَّتِي فِيهَا مَعَادِي |
| نه پرې بچ کیږي) سمه کړې زما دنیا چې زما ژوندون دی، سم کړې آخرت زما چرته چې بیا تلل دي زما، |
| وَ اجْعَلِ الْحَيَاةَ زِيَادَةً لِي فِي كُلِّ خَيْرٍ |
| زما ژوند د هرې نیکۍ زیاتولو سبب جوړ کړې (یعنې ډیر عمر راکړې چې ډیرې نیکۍ په کې وکړم) |
| وَ اجْعَلِ الْمَوْتَ رَاحَةً لِي مِنْ كُلِّ شَرٍّ.[2] |
| او ما لره مرګ د هرې بدۍ نه د راحت او د آرام سبب جوړ کړې. |

## د هدایت دعاء

| ﴿۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: |
|---|
| عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به دا دعاء لوستله |
| اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْهُدَى وَ التُّقَى وَ الْعَفَافَ وَ الْغِنَى.[3] |
| ای الله! زه ستاه غواړم هدایت، تقوی او حرام او مکروه نه د نفس حفاظت (د زړه او ظاهر) استغناء. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۱۹۶ رقم الحديث: ۶۳۹۸، ومسلم في صحيحه ۴/۲۰۸۷ رقم الحديث: ۲۷۱۹/۷۰.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۸۷ رقم الحديث: ۲۷۲۱/۷۱.

(۳) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۸۷ رقم الحديث: ۲۷۲۱/۷۲.

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قُلْ اللَّهُمَّ اهْدِنِي |
| حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمايل چې دا دعا غواړه اى الله! وښايه |
| وَ سَدِّدْنِي وَ اذْكُرْ بِالْهُدَى |
| ماته (سمه لار) او زما عملونه او كارونه سم كړې، ما سم كړې (ورسره نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل) كله چې |
| هِدَايَتَكَ الطَّرِيقَ وَ بِالسَّدَادِ |
| ته هدايت غواړې نو سمې لارې باندې د تللو خيال كوه او چې سموالي غوښتنه كوې نو د تېرپه شان |
| سَدَادَ السَّهْمِ.[1] |
| د نغې لارې خيال كوه. |

**توضیح**: واذكر: يعنې كله چې د هدايت تكې ستا په خله وي نو مغزو كې دا خيال پكار دې چې د هدايت والا لارې لاربنودنه وكړه. هغه لاره چې په كومې ستا نيک بنده ګان تېر شوي دي. او كله چې په ژبه باندې. (المرقات ۵/۳۴۴).

سداد: يعنې د لارې تكې وي نو په مازغه كې دا خيال په كار دي چې داسې سم شم لكه څنګه چې غشى نيغ وي. څكه چې په تېر كې لږ كوږوالي وي نو هغه په نښه سم نه لګي. يعنې پوره هدايت غواړه. (المرقات ۵/۳۴۴).

## د نوي مسلمان لپاره دعاء

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَ عَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْجَعِي عَنْ أَبِيهِ قَالَ: كَانَ الرَّجُلُ إِذَا أَسْلَمَ |
| ابو مالک اشجعي د خپل پلار نه نقل كوي چې هغوى وويل چې كله به څوک مسلمان شو نو ښودنه |
| علمه النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ الصَّلَاةَ ثُمَّ أَمَرَهُ أَنْ يَدْعُوَ بِهَؤُلَاءِ |
| به كوله ده ته نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مونځ، بيا به يې ده ته حكم وكړو چې دا دعاء وغواړي د دې |
| الْكَلِمَاتِ: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي وَ ارْحَمْنِي وَ اهْدِنِي |
| كلماتو په ذريعه يعنې اى الله! ماته بخښنه وكړې، په ما رحم وكړې، ماته هدايت وكړې او پټ كړې |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۹۰/٤ رقم الحديث. ۲۷۲۵/۷۸.

| |
|---|
| وَ عَافِنِي وَ ارْزُقْنِي .[1] |
| زما عیبونه او ماته (حلال) رزق را کړي. |

## آسانه جامع دعاء

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : كَانَ أَكْثَرُ دُعَاءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| انس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به اکثر دا دعا کوله ای الله! راکړي مونږ ته په دنيا کې |
| اللّٰهُمَّ آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَ فِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً |
| د نيکۍ او د خير (يعنې نعمتونه او ښه حالت) او په آخرت کې هم (يعنې د مرګ نه وروسته) هم نيکۍ |
| وَ قِنَا عَذَابَ النَّارِ .[2] |
| او خير (يعنې ښه مرتبه) راکړي او مونږ د دوزخ د عذاب نه وساتي. |

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

| |
|---|
| ﴿٧﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَدْعُو يَقُولُ : رَبِّ أَعِنِّي |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به دا دعاء لوستله: ای پروردګاره زما مدد وکړي |
| وَلَا تُعِنْ عَلَيَّ |
| (يعنې خپل ذکر، شکر او د خپل عبادت د حسن توفيق ماته راکړي) زما خلاف د چا مدد ونه کړي (يعنې |
| کوم طاقتونه چې ماستا د اطاعت او عبادت نه غفلت کې اچوي. اګر که شيطان وي، که زما نفس وي |
| وَ انْصُرْنِي وَلَا تَنْصُرْ عَلَيَّ |
| وي او که کافر وي نو هغه په ما غالب نکړي) ماته بريا راکړي ما باندې بل چاته بريا ورنه کړي (يعنې |
| وَ امْكُرْ لِي |
| په کافرو مې غالب کړي کافر په ما غالب نه کړي) او زما د مدد لپاره د دښمنانو په حق کې تدبير وکړي |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۷۳/٤ رقم الحديث: ٦٩٧/٣٥

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ١٩١/١١ رقم الحديث :٦٣٨٩، ومسلم في صحيحه ٢٠٧١/٤ رقم الحديث: ٢٦٩٠/٢٧.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا | تَمْكُرْ | عَلَيَّ | وَ اهْدِنِي | وَ يَسِّرِ | الْهُدَى | لِي | وَ انْصُرْنِي |

زما ضرر لپاره تدبير ونه کړې، ماته نيغه لار ښانده ې تلل آسان کړي او د هغې خلاف زما مدد وکړې چې

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلَى | مَنْ | بَغَى | عَلَيَّ | رَبِّ | اجْعَلْنِي | لَكَ | شَاكِرًا | لَكَ | ذَاكِرًا | لَكَ | رَاهِبًا لَكَ |

څوک په ما ظلم کوي، اې زما ربه! ما جوړ کړې هر وخت ستا شکر کونکې، ذکر کونکی، ستا نه يريدونکی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِطْوَاعًا | لَكَ | مُخْبِتًا | إِلَيْكَ | أَوَّاهًا | مُنِيبًا |

ستا ډير اطاعت کونکی، تاته عاجزي کونکی، ستا په درکې زارې کونکې او ستا در ته راګرځيدونکې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رَبِّ | تَقَبَّلْ | تَوْبَتِي | وَ اغْسِلْ | حَوْبَتِي | وَ أَجِبْ | دَعْوَتِي |

اې الله! زما توبه قبوله کړې، زما ګناهونه وبخښې، زما دعا قبوله کړې (دنيا او آخرت کې د خپلو دښمنانو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَ ثَبِّتْ | حُجَّتِي | وَ | سَدِّدْ | لِسَانِي |

مخکې) زما دليل او حجت ثابت کړې، زما ژبه رشتينې او نيغه ساته (يعني د دې رشتيانه بغير بل هيڅ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَ اهْدِ | قَلْبِي | وَ | اسْلُلْ | سَخِيمَةَ | صَدْرِي.[1] |

نه وي) زما زړه ته هدايت وکړې او زما د زړه تور والې لرې کړې.

**توضيح: وامکرلي:** د مکر نسبت چې کله الله تعالى ارخ ته وي نو د دې نه مراد د اسلام د دښمنانو باندې په داسې ځاى کې د مصيبت راتلل وي چې د هغې هغوى ته هيڅ ګمان هم نوي، او که د دې نسبت انسان طرف ته وي نو د هوکه مراد وي. (المرقات ۵/۳۴۶).

**راهبالله:** په معنى د خوشحالۍ او د غم حالت کې د يو الله د ويريدلو دى **مطواعاً (کثير الاطاعة)**. (المرقات ۵/۳۴۷).

**مخبتًا:** دا د اخبات نه دى. عاجزي کولو، سر ټيټونکى مراد دى. (المرقات ۵/۳۴۷).

**اواهاً:** کثير الحزن ډير غمګين مراد دى يا ډير ژړيدلو والا مراد دى يا ګناه نه ډير توبه کولو والا مراد دى اى رجاع من الکل الي من له اکل. (المرقات ۵/۳۴۷).

**حوبتي:** حاء باندې فتحه او ضمه دواړه دي، غتې ګناه ته وايي ﴿إِنَّهُ كَانَ حُوبًا كَبِيرًا﴾. (المرقات

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۲/۱۷۵ رقم الحديث : ۱۵۱۰.

۵/۳۴۹).

**واسلل:** د ويستلو په معنى دي. (المرقات ۵/۳۴۹).

**سخيمة:** د زړه خباثت، كينه او بغض او نو د زړه مرضونه. (المرقات ۵/۳۴۹)

**صدري:** ددې نه زړه مراد دى. (المرقات ۵/۳۴۹).

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ قَالَ : قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ ثُمَّ بَكَى |
| ابوبكر رضي الله عنه وايي چې (يوه ورځ) نبي كريم صلى الله عليه وسلم ممبر باندې اودريدو او په ژړا شو او بيا يې |
| فَقَالَ : سَلُوا اللهَ الْعَفْوَ وَ الْعَافِيَةَ فَإِنَّ أَحَدًا لَمْ يُعْطَ بَعْدَ الْيَقِينِ |
| وفرمايل: دالله تعالى نه بخښنه او خيريت وغواړئ ځكه نه دې وركړل شوې هيچا ته د ايمان نه وروسته |
| خَيْرًا مِنَ الْعَافِيَةِ . وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ : هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا .[1] |
| د خيريت نه غوره نعمت (يعنې د ايمان د دولت نه وروسته د خيريت غوښتلو نه غوره نعمت نشته). |
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلًا جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَارَسُولَ اللهِ أَيُّ الدُّعَاءِ |
| انس رضي الله عنه وايي چې يو سړى نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته راغلو او وې ويل چې يا رسول الله كومه دعاء |
| أَفْضَلُ ؟ قَالَ : سَلْ رَبَّكَ الْعَافِيَةَ |
| بهتره ده؟ نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د خپل رب نه عافيت (يعنې د دين او بدن خيريت) وغواړه |
| وَ الْمُعَافَاةَ فِي الدُّنْيَا وَ الْآخِرَةِ |
| او وغواړه دنيا او آخرت كې معافات (د معافات مطلب دا چې الله تعالى تا په دنيا او آخرت كې د خلكو |
| ثُمَّ أَتَاهُ فِي الْيَوْمِ الثَّانِي فَقَالَ : يَا |
| نه او خلک ستا نه په خيريت او حفاظت كې وساتي) ده سړى بيا په دويمه ورځ راغلو او وويل چې يا |
| رَسُولَ اللهِ أَيُّ الدُّعَاءِ أَفْضَلُ ؟ فَقَالَ لَهُ مِثْلَ ذَلِكَ |
| رسول الله كومه يوه دعا غوره ده. نبي كريم صلى الله عليه وسلم ورته بيا همغه شان وفرمايل (كوم يې چې |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۲۱ رقم الحديث : ۳۵۵۸.

ثُمَّ أَتَاهُ فِي الْيَوْمِ الثَّالِثِ

ورته اول ويلي وو). هغه سړی بيا په دريمه ورځ راغلو (او هغې همغه پوښتنه وکړه) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

فَقَالَ لَهُ مِثْلَ ذَلِكَ قَالَ : فَإِذَا أُعْطِيتَ الْعَافِيَةَ وَ الْمُعَافَاةَ فِي الدُّنْيَا وَ الْآخِرَةِ

ورته همغه جواب ورکړو. او وي فرمايل که چيرې تا ته په دنيا او آخرت کې معافات درکړي شي نو تا

فَقَدْ أَفْلَحْتَ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا [1]

خلاصي ومندلو او تا خپل مقصد ترلاسه کړو.

## د الله تعالی سره د محبت دعاء

﴿۱۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ يَزِيْدِ الْخَطْمِيِّ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ فِي

عبد الله ابن يزيد خطمي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به فرمايل په

دُعَائِهِ : اللَّهُمَّ ارْزُقْنِي حُبَّكَ وَ حُبَّ مَنْ يَنْفَعُنِي حُبُّهُ

خپله دعاء کې : ای الله: ما ته نصيب کړې خپل محبت او د هغه سړی محبت چې فائده راکوي ماته د

عِنْدَكَ اللَّهُمَّ مَا رَزَقْتَنِي مِمَّا أُحِبُّ

هغه محبت ستا په نزد ، ای الله ! تا ما ته په هغه څه کې چې زه يې خوښوم چې څه هم راکړی شوي دي

فَاجْعَلْهُ قُوَّةً لِي فِيمَا تُحِبُّ

هغه زما لپاره د قوت سبب جوړ کړي کوم چې ته خوښوي (يعنې تا مال او دولت، عافيت او اطمينان او

د دنيا نور نعمتونه کې چې تا څه راکړي هغه د شکر کولو او اطاعت کولو سبب جوړ کړې چې زه هغه ستا

اللَّهُمَّ مَا زَوَيْتَ عَنِّي مِمَّا أُحِبُّ

په لاره کې او ستا د خوشحالی لپاره مصرف کړم) ای الله ! تا ما ته په هغه څه کې چې زه يې خوښوم

فَاجْعَلْهُ فَرَاغًا لِي فِيمَا تُحِبُّ . (۲)

کوم يو نه دي راکړی نو هغه زما لپاره د خلاصي سبب جوړ کړي کوم چې ته خوښوي.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴۹۹/۵ رقم الحديث : ۴۹۹.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۴۸۸/۵ رقم الحديث : ۳۴۹۱.

**توضيح: مازويت:** اى ما قبضته و نحيته وبعدته يعنې تا چې مانه مال او دولت لرې کړل را دي نه کړل. (المرقات ۵/۳۵۱)

**مما احب:** يعنې کوم چې زه غواړم په مال او په عزت کې. (المرقات ۵/۳۵۱)

**فراغا:** يعنې د خپل محبت لپاره مې د فراغت سبب جوړ کړې. که د دنيا مال حاصل نشي نو ستا د محبت کمال به راته حاصل شي. (المرقات ۵/۳۵۱)

## دومره ور کړل شي چې په هغې کار وشي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : قَلَّمَا كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُومُ مِنْ مَجْلِسٍ |
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې داسې به ډير کم کيدل چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به کله ديو مجلس نه پاڅيدو |
| حَتّٰى يَدْعُوَ بِهٰؤُلَاءِ الدَّعَوَاتِ لِأَصْحَابِهِ : |
| او ددې کلماتو په ذريعې سره د خپل صحابه کرامو لپاره دعا نه غوښتله نبي عليه السلام به دا دعاء لوستله |
| اَللّٰهُمَّ اقْسِمْ لَنَا مِنْ خَشْيَتِكَ مَا تَحُولُ بِهِ بَيْنَنَا وَ بَيْنَ مَعَاصِيكَ |
| اى الله! ته په مونږ کې دومره ويره پيدا کړې چې د هغې په وجه ته زمونږ او د ګناهونو په مينځ کې راشې |
| وَ مِنْ طَاعَتِكَ مَا تُبَلِّغُنَا |
| (يعنې دوېرې دوجې نه مونږ د ګناهونو نه بچ شو) او مونږ ته خپل اطاعت نصيب کړې چې مونږ ورسيږو |
| بِهِ جَنَّتَكَ وَ مِنَ الْيَقِينِ مَا تُهَوِّنُ بِهِ عَلَيْنَا |
| د هغې په وجه د جنت (لويو درجاتو) ته او مونږ ته دومره يقين را کړې چې د هغې په وجه ته مونږ ته آسان |
| مُصِيبَاتِ الدُّنْيَا وَ مَتِّعْنَا بِأَسْمَاعِنَا وَ أَبْصَارِنَا وَ قُوَّتِنَا |
| کړې د دنيا مصيبتونه. مونږ زمونږ د اوريدلو، زمونږ د ليدلو او زمونږ قوتونو باندې تر هغه وخت پورې |
| مَا أَحْيَيْتَنَا وَ اجْعَلْهُ الْوَارِثَ مِنَّا |
| نيک بخته ولرې چې تر څو پورې ته مونږه ژوندي ساتې او نيک بختي زمونږ وراثت و ګرځوې (يعنې |
| وَ اجْعَلْ ثَأْرَنَا |
| زمونږ ټول اندامونه او حواس تر آخره پورې تل سلامت وساتې) زمونږ د کينې او انتقام نه هغه سړى وساته |

| | | |
|---|---|---|
| عَلٰى | مَنْ | ظَلَمَنَا |

چاچې په مونږ ظلم وكړو (يعني دومره طاقت او قوت راكړې چې مونږ دخپلو ظالمانو نه بدله واخستلى

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَ | انْصُرْنَا | عَلٰى | مَنْ |

شو يا زمونږ دطرف نه د هغوى نه بدله واخلى)، مونږ ته فتح راكړې په سړي باندې كوم چې مونږ سره

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَادَانَا | وَلَا | تَجْعَلْ | مُصِيبَتَنَا | فِي |

دښمني ساتي (اگركه هغه زمونږ د دين يا د دنيا دښمن وي) او مؤثر نه كړې زمونږ مصيبتونه زمونږ په

دِينِنَا

دين باندې (يعني مونږ په داسې مصيبتونو كې اخته نه كړې چې هغه د دين دنقصان سبب جوړ شي)

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا | تَجْعَلِ | الدُّنْيَا | أَكْبَرَ | هَمِّنَا | وَلَا | مَبْلَغَ | عِلْمِنَا | وَلَا | تُسَلِّطْ |

دنيا زمونږ لپاره د فكرونو مركز او زمونږ لپاره د علم د فائدې ذريعه جوړه كړې او مسلط نه كړې په

عَلَيْنَا مَنْ لَا يَرْحَمُنَا . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[1]

مونږ باندې هغه خلك چې هغه په مونږ باندې رحم نه كوي.

## د فائده وركونكي علم دعاء

﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: اَللّٰهُمَّ انْفَعْنِي

ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دا دعاء غوښتله: اى الله فائده مندو گرځوې زما

| | |
|---|---|
| بِمَا | عَلَّمْتَنِي |

لپاره هغه څه كوم څه چې تا ماته ښودلي (يعني په علم باندې د عمل كولو توفيق راكړې) او ماته وښايې

| | | |
|---|---|---|
| وَ | عَلِّمْنِي | مَا | يَنْفَعُنِي |

هغه څه چې ماته فائده راكړې (يعني ماته داسې عمل راكړې چې د هغې زده كول او په هغې باندې

| | | |
|---|---|---|
| وَ | زِدْنِي | عِلْمًا |

عمل كول دنيا او آخرت كې زما لپاره د فائدې ذريعه وي) او زما علم (يعني ديني علم) ډير كړې. هر

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴۹۳/۵ رقم الحديث : ۳۵۰۲.

الْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰى كُلِّ حَالٍ وَأَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْ حَالِ أَهْلِ النَّارِ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا[1]

حال کې ټول تعریفونه الله لره دي او زه د الله پناه غواړم د دوزخیانو په شان حالت نه (چې په دنیا کې د فسق او فجور نه او آخرت کې د عذاب نه بچ شم).

﴿١٣﴾ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُنْزِلَ عَلَيْهِ الْوَحْيُ سُمِعَ عِنْدَ

عمر فاروق رضي الله عنه وايي چې کله به په نبي کریم صلی الله علیه وسلم باندې وحې راتله نو اوریدل کیدو به د

وَجْهِهِ دَوِيٌّ كَدَوِيِّ النَّحْلِ فَأُنْزِلَ

نبي علیه السلام خلې مبارکې سره نزدې د شاتو د مچیو په شان اواز ،نو نازله شوه وحې یوه ورځ (زمونږ

عَلَيْهِ يَوْمًا فَمَكَثْنَا سَاعَةً

په مخکې) نبي کریم صلی الله علیه وسلم باندې مونږ لږ ساعت لپاره حصار شو (یعنې مونږ به دې انتظار وو چې کله به د وحې هغه سختنه چې په نبي کریم صلی الله علیه وسلم باندې موجوده وه دا ختمه شي) کله چې د

فَسُرِّيَ عَنْهُ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَ

سختۍ هغه حالت د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه لرې شو. نو نبي علیه السلام قبلې اړخ ته مخ واړولو او خپل

رَفَعَ يَدَيْهِ وَ قَالَ : اللّٰهُمَّ زِدْنَا

دواړه لاسونه به یې الله طرف ته اوچت کړل او داسې به یې فرمایل: اې الله! زیات کړې زمونږ د دنیا

وَلَا تَنْقُصْنَا

او د آخرت نعمتونه یا د مسلمانانو شمېره ډېره کړې او کمي را نه ولې د دنیا نعمتونو او د مسلمانانو شمېره

وَ أَكْرِمْنَا

کې ،مونږ عزتمند کړې (دنیا کې د حاجت پوره کولو سره او په آخرت کې د درجاتو په ذریعه) او مونږ

وَلَا تُهِنَّا وَ أَعْطِنَا وَلَا تَحْرِمْنَا

ذلیله نه کړې ،مونږ ته د دنیا او آخرت خیر ونه راکړې او مونږه د خپل رحمت نه پاتې نه کړې او د خپلې

---

(١) أخرجه الترمذي في السنن ٥/٥٤٠ رقم الحديث ٣١٧٣

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَ | آثِرْنَا | وَلَا | تُؤْثِرْ | عَلَيْنَا | وَ أَرْضِنَا |

ورکړې په ذريعې سره مونږه غوره جوړ کړې او نور خلک په مونږ باندې غالب نه کړې او مونږ راضي

وَ ارْضَ عَنَّا .

کړې په قدرت باندې د صبر او شکر او (هم ته زمونږ په لږ عبادت او اطاعت باندې) مونږ نه راضي شې

ثُمَّ قَالَ : أُنْزِلَ عَلَيَّ عَشْرُ آيَاتٍ مَنْ أَقَامَهُنَّ

بيا نبي کريم ﷺ و فرمايل او س په ما باندې لس ايتونه نازل شوي دي. کوم سړی چې عمل

دَخَلَ الْجَنَّةَ ثُمَّ قَرَأَ :

وکړي په دې باندې هغه به جنت کې (د نيکانو سره) داخلېږي او د هغې نه وروسته ولوستل نبي کريم

﴿ قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ ﴾ حَتَّى خَتَمَ عَشْرَ آيَاتٍ.[1]

ﷺ ﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ﴾ تر لسو ايتونو پورې.

**توضيح:** دوى: د شاتو مچې بنيدلو ته وايي. (المرقات ۵/۳۵۷)

**ورفع يديه:** په دعاء کې لاس اوچتول. د دعا د آدابو نه دي. (المرقات ۵/۳۵۷)

**عشر آيات:** د سورت مومنو اولني لس آيتونه مراد دي. (المرقات ۵/۳۵۷)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د بينائي لپاره دعاء

﴿۱۴﴾ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ حُنَيْفٍ قَالَ : إِنَّ رَجُلًا ضَرِيرَ الْبَصَرِ

عثمان ابن حنيف رضي الله عنه وايي يو سړی و چې د هغې نظر کم و يا داچې هغه د ستر گو رڼا نه محروم و

أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : ادْعُ اللهَ أَنْ

د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو او وې ويل د الله تعالى نه دعا وغواړه چې هغه ماته

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۳۰۵ رقم الحديث : ۳۱۷۳.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يُعَافِيَنِي | فَقَالَ | : | إِنْ | شِئْتَ | دَعَوْتُ |

د بينائي د نقصان نه عافيت را كړي. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمايل كه ته غواړي نو ستا لپاره به دعا وكړم

وَ إِنْ شِئْتَ صَبَرْتَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ . قَالَ : فَادْعُهُ

او كه ته (صبر او رضا) غواړي نو صبر وكړه صبر ستا لپاره غوره دى هغه سړى ووېل زما لپاره دعا وكړه

قَالَ : فَأَمَرَهُ أَنْ يَتَوَضَّأَ فَيُحْسِنَ الْوُضُوءَ

عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (دا اوريدل) نو هغه ته يې حكم وكړو چې اودس وكړه او ښه اودس وكړه (او په يو بل روايت كې دي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته د دوه ركعتونو كولو حكم هم وكړو)

وَ يَدْعُو بِهٰذَا الدُّعَاءِ : اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ وَ أَتَوَجَّهُ إِلَيْكَ

او بيايې دا دعاء وغوښتله: اى الله! زه ستا نه (خپل) مقصد غواړم او متوجې كېږم ستا طرف ته ستا د

بِنَبِيِّكَ مُحَمَّدٍ نَبِيِّ الرَّحْمَةِ إِنِّي تَوَجَّهْتُ

نبي په وسيلې سره چې د هغه نوم محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دى چې هغه د رحمت نبي دي او متوجه كيږم خپل

بِكَ إِلَى رَبِّي لِيَقْضِيَ لِي فِي حَاجَتِي هٰذِهِ اَللّٰهُمَّ

رب طرف ته اى نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ستا په وسيله چې هغه زما د حاجت باره كې حكم وكړي، اى الله!

فَشَفِّعْهُ فِيَّ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ(۱)

زما باره كې د خپل نبي شفاعت قبول كړه.

## د حضرت داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ دعاء

﴿۱۵﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ مِنْ دُعَاءِ دَاوُدَ

ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ په دعاگانو كې ذكر

يَقُولُ : اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ حُبَّكَ وَ حُبَّ مَنْ يُحِبُّكَ

شوي دعا هم وه: اى الله! زه ستا نه غواړم ستا محبت او د هغه سړى محبت چې هغه ستا سره محبت ساتي

(۱) أخرجه الترمذي ۵/۵۶۹، رقم الحديث : ۳۵۷۸.

وَ الْعَمَلَ الَّذِي يُبَلِّغُنِي حُبَّكَ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ حُبَّكَ أَحَبَّ إِلَيَّ مِنْ نَفْسِي

او هغه عمل چې ما ورسوی ستا محبت ته. ای الله! خوګ کړې خپل محبت زما لپاره زما د ځان نه،

وَمَالِي وَأَهْلِي وَمِنَ الْمَاءِ الْبَارِدِ قَالَ: وَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا ذَكَرَ دَاوُدَ يُحَدِّثُ عَنْهُ

زما د مال، اهل و عیال او د یخو اوبو نه. د راوي بیان دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به کله د داؤد عَلَيْهِ السَّلَام خبرې کولې

يَقُولُ: كَانَ أَعْبَدَ الْبَشَرِ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[1]

نو فرمایل به یې چې داؤد عَلَيْهِ السَّلَام (د خپلې وخت) سړو کې لوی عبادت کونکې ؤ.

﴿۱۶﴾ وَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: صَلَّى بِنَا عَمَّارُ

عطاء بن سائب د خپل پلار (سائب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نه نقل کوي چې هغه وویل چې مونځ را کړو مونږ ته عمار

بْنُ يَاسِرٍ صَلَاةً فَأَوْجَزَ فِيهَا

بن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مونځ کې یې اختصار وکړو (یعنې نه خو هغې اوږد قرآت وکړو او نه یې تسبیحات

فَقَالَ لَهُ بَعْضُ الْقَوْمِ: لَقَدْ خَفَّفْتَ وَ أَوْجَزْتَ الصَّلَاةَ

او داسې نور څه ډیر وویل) نو دې وخت کې بعضې خلکو وویل چې تا لنډ مونځ وکړو عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

فَقَالَ أَمَا عَلَيَّ ذَلِكَ لَقَدْ دَعَوْتُ فِيهَا بِدَعَوَاتٍ

ورته وویل چې زما لپاره دا تخفیف هیڅ مضر نه دی ځکه ما ویلی دی هغه دعاګانې د دې لمونځ په

سَمِعْتُهُنَّ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَامَ

قعده او سجده کې چې کومې ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه اوریدلې دي. بیا چې عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تللو نو د ده سره

تَبِعَهُ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ هُوَ أَبِي

شو د دې دلې نه یو سړی او (د حدیث راوي عطاء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایې چې) هغه زما پلار (سائب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ؤ)

غَيْرَ أَنَّهُ كَنَى عَنْ نَفْسِهِ

بغیر د هغې نه چې هغې خپل ځان پټ کړو (یعنې هغې داسې بیان ونه کړو چې د عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره زه

لاړم بلکې د خپل ځان پټولو لپاره یې داسې وویل چې یو سړی د هغې سره شو، بهر حال) هغوي (د

[1] أخرجه الترمذي في السنن ٤٨٨/٥ رقم الحديث: ٣٤٩٠.

فَسَأَلَهُ عَنِ الدُّعَاءِ

عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دهغه دعا باره کې پوښتنه وکړه او عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته هغه دعا وويله چې په مونځ کې

ثُمَّ جَاءَ فَأَخْبَرَ بِهِ الْقَوْمَ اللَّهُمَّ بِعِلْمِكَ الْغَيْبَ

يې لوستلې وه) بيا هغه راغلو او خلکو ته يې وويله هغه دعاء داده: اى الله! ته د خپل علم غيب او د

وَ قُدْرَتِكَ عَلَى الْخَلْقِ أَحْيِنِيْ مَا عَلِمْتَ الْحَيَاةَ

خپل قدرت په حق باندې په خپل مخلوق کې ماژوندې وساتې ترکومې پورې چې ته ژوند زما لپاره

خَيْرًا لِيْ وَ تَوَفَّنِيْ إِذَا عَلِمْتَ الْوَفَاةَ خَيْرًا لِيْ

غوره گڼې او ماته مرګ راکړې چې کله ته ماته مرګ غوره گڼې (يعنې چې ترڅو پورې نيکۍ په بديو

باندې غالبه وي نو ترهغې پورې ژوندون غوره دې او کله چې بدۍ په نيکيو باندې غالبه شي او ښکاره

اللَّهُمَّ وَ أَسْأَلُكَ خَشْيَتَكَ فِي الْغَيْبِ وَ الشَّهَادَةِ

او پټې فتنې راچاپيره شي نو هغه وخت کې مرګ غوره دى) اى الله او غواړم ستا نه ستا ويره پټ او ښکاره

وَ أَسْأَلُكَ كَلِمَةَ الْحَقِّ فِي الرِّضٰى وَ الْغَضَبِ وَ أَسْأَلُكَ الْقَصْدَ

حالت کې او غواړم د حق کلمه (په ويلو باندې) خوشحالۍ کې هم او غم کې هم او غواړم ستا نه اعتدال

فِي الْفَقْرِ وَ الْغِنٰى

د غريبۍ او د ولړې حالت کې هم او د خوشحالۍ حالت کې هم (يعنې نه خو ډېره غريبي او ولږه او غم او

وَ أَسْأَلُكَ نَعِيْمًا لَا يَنْفَدُ

مصيبت کې ګير شم او د ومره خوشحاله شم چې اسراف کونکې جوړ شم) او غواړم ستا نه داسې نعمت

وَ أَسْأَلُكَ قُرَّةَ عَيْنٍ لَا تَنْقَطِعُ

چې کله هم نه ختميږي (يعنې ستا د غيب نعمتونه) او غواړم ستا نه د سترګو يخوالي چې کله هم نه ختميږي

وَ أَسْأَلُكَ الرِّضٰى بَعْدَ الْقَضَاءِ وَ أَسْأَلُكَ بَرْدَ الْعَيْشِ بَعْدَ الْمَوْتِ

او غواړم رضا مندي (ستا) د فيصلې نه وروسته او غواړم ستا نه يخوالي وروسته د مرګ نه (يعنې

وَ أَسْأَلُكَ لَذَّةَ النَّظَرِ إِلٰى وَجْهِكَ وَ الشَّوْقِ

هميشه د برزخ راحت او قيامت کې) او غواړم خوند ليدل ستا مخ طرف ته (آخرت کې) او غواړم شوق

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَى | لِقَائِكَ | فِي | غَيْرِ | ضَرَّاءَ | مُضِرَّةٍ | وَلَا | فِتْنَةٍ | مُضِلَّةٍ | اللَّهُمَّ |
| د ملاقات ستا په داسې حال کې چې ضرر رسونکی نه وي او نه مې د ګمراهۍ په فتنه کې اخته کړې. | | | | | | | | | |
| زَيِّنَّا | بِزِينَةِ | الْإِيمَانِ | | | | | | | |
| اې الله! مونږ د ايمان په ښائست باندې ښائسته کړې (يعني مونږ په ايمان باندې مضبوط کړې او | | | | | | | | | |
| وَ | اجْعَلْنَا | هُدَاةً | مُهْتَدِينَ .[1] | | | | | | |
| ډيرو ډيرو نيکيو کولو توفيق راکړي) او مونږه نيغه لار خودلو والا او په نيغه لار تللو والا جوړ کړې. | | | | | | | | | |

**توضيح: اما علي:** همزه استفهام انکار لپاره دی. ما باندې شد نشته دی. **علي** کې يا باندې شد دی.

اصل عبارت داسې دی: **اتقول هذا اسکت ما علي من ضرر** يعني که ما اوږد مونځ ونکړو نو څه باک نکوي ځکه ما به آخري قعده کې داسې دعاګانې وغوښتلې چې هغه خپله د نبي کريم ﷺ نه اوريدلي دي د هغې نه وروسته حضرت عمار رضي الله عنه کور طرف ته لاړو. (المرقات ۵/۳۶۶)

**هواني:** حضرت عطاء رضي الله عنه وايي چې زما پلار سائب رضي الله عنه وويل چې هغې پسي وروسته يو سړی لاړو عطا وايي چې دا هم زما پلار وو خو هغې خپل نوم ښکاره نکړو. بهرحال د حديث خلاصه دا ده چې عطاء وويل چې حضرت عمار رضي الله عنه يو ځل مونځ وکړو. څه خلکو اعتراض وکړو. نو حضرت عمار رضي الله عنه وفرمايل که لنډ هم وي نو څه باک نکړي ځکه ما دې کې ډيرې نبي دعاګانې لوستلي دې. دا يې وويل او کور اړخ ته روان شو. نو زما پلار ورغلو او د هغې نه يې دعاء معلومه کړله او بيا راغلو او خلکو ته يې همدغه شان وويله. (المرقات ۵/۳۶۶)

**في غير ضراء مضرة:** دا جار مجرور الشوق سره تعلق ساتي او ضراء سخت حالت ته وايی. او مضرة د ضرر او نقصان ورکونکې په معنی دي يعني زه د الله د ديدار او زيارت شوق غواړم. دا د ديدار شوق په داسې سخت حالت کې نه وي چې هغه د نقصان سبب جوړ شي. دا پوښتنه ځکه وکړي شوله چې شوق سړی د ګډوډ والي اړخ ته بوځي. شوق لقاء نه مراد مرګ دي چې مرګ پداسې حالت کې راشي چې نقصان ورکونکې نه وي. (المرقات ۵/۳۶۶، اشعة اللمعات ۲/۳۱۷).

دا جار مجرور احيني سره هم تعلق لري. دواړه جائز دي او معنی ظاهر ده.

---

(۱) أخرجه النسائي ۲/۴۵، رقم الحديث : ۱۳۰۵.

**ولافتنة**: فتنة نه حسي او معنوي امتحان مراد دی. (المرقات ۵/۳۶۶)

**مضلة**: چې د نيغې لارې نه گمراه شي. (المرقات ۵/۳۶۶)

**فائده**: د دې ټولو دعاگانو غوره مجموعه مناجات مقبول ده چې حضرت تهانوي رَحِمَهُ اللهُ را غونډه کړې دې.

## د عمل او فائده ورکونکي علم دعاء

﴿۱۷﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ فِي دُبُرِ صَلَاةِ الْفَجْرِ: اَللّٰهُمَّ

ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سحر لمونځ نه وروسته دا دعاء لوستله: اې الله!

إِنِّي أَسْأَلُكَ عِلْمًا نَافِعًا وَ عَمَلًا مُتَقَبَّلًا وَ رِزْقًا طَيِّبًا. [1]

زه غواړم ستا د فائده ورکولو والا علم، قبليدلو والا علم او حلال رزق.

﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: دُعَاءٌ حَفِظْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا أَدَعُهُ: اَللّٰهُمَّ

ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه دا دعا زده کړې ده چې هغه زه نه پرېږدم: اې الله! ماته

اجْعَلْنِي أُعْظِمُ شُكْرَكَ وَ أُكْثِرُ ذِكْرَكَ وَ أَتَّبِعُ نُصْحَكَ وَ أَحْفَظُ وَصِيَّتَكَ. [2]

توفيق را کړې چې ستا ډير شکر وکړم، ستا ډير ذکر وکړم، ستا نصيحت پوره کړم او ستا وصيت ياد وساتم

﴿۱۹﴾ وَعَنْ عبدِ اللهِ بنِ عَمْرٍو قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ

عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دا دعاء لوستله: اې الله! غواړم ستا نه

الصِّحَّةَ

روغ صحت يعني د بدو مريضتياگانو نه د بدن روغوالي او صحت ياکارونو، احوالو او دعملونو سمون

وَ الْعِفَّةَ وَ الْأَمَانَةَ

او اصلاح او د حرامو نه ځان ساتل او د امانت (يعني د خلکو مالونو کې ياد شريعت ټول حقونو کې خيانت

(۱) أخرجه النسائي ۳۱/۱، رقم الحديث: ۹۹۳۰، سنن ابن ماجه ۲۹۷/۱، رقم الحديث: ۹۲۳، الدعوات الكبير ۱۸٦/۱، رقم الحديث: ۱۱۹.

(۲) أخرجه احمد في المسند ۳۱۱/۲

وَ حُسنَ الْخُلُقِ وَ الرِّضٰى بِالْقَدَرِ.[۱]

ونه کړم) او ښه اخلاق او په تقدیر باندې رضا غواړم.

## د بد خوی نه د بچ کېدو دعاء

﴿۲۰﴾ وَ عَنْ أُمِّ مَعْبدٍ قَالَتْ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : اَللّٰهُمَّ

ام معبد رضي الله عنها وايي چې ما د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه دا دعاء اورېدلې ده چې فرمايل به يې: اې الله!

طَهِّرْ قَلْبِي مِنَ النِّفَاقِ وَ عَمَلِي مِنَ الرِّيَاءِ وَ لِسَانِي مِنَ الْكَذِبِ وَ عَيْنِي مِنَ الْخِيَانَةِ

پاک کړې زړه زما د منافقت نه او زما عمل د ريا نه او زما ژبه د دروغو نه او زما سترګه د خيانت نه

فَإِنَّكَ تَعْلَمُ خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ وَمَا تُخْفِي الصُّدُورُ.[۲]

(يعنې د حرام نظر نه) بېشکه ته پوهېږې د سترګو په خيانت او په هغه څه باندې چې په زړه کې پټ دي

(يعنې خواهشات او ګناه).

## د الله تعالى نه د عافيت دعاء غوښتل په کار دي

﴿۲۱﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ : أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَادَ رَجُلًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ

انس رضي الله عنه وايي چې (يو ورځ) نبي کريم صلى الله عليه وسلم د يو مسلمان د ناروغۍ پوښتنه وکړه چې

قَدْ خَفَتَ فَصَارَ مِثْلَ الْفَرْخِ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :

هغه د مرغۍ د بچي په شان کمزوری شوی وُ رسول الله صلى الله عليه وسلم (د هغه حالت ليدو سره) وفرمايل

هَلْ كُنْتَ تَدْعُو اللهَ بِشَيْءٍ أَوْ تَسْأَلُهُ إِيَّاهُ ؟ .

چې آيا تا به د الله نه د څه شي دعا غوښتله؟ يا يې وفرمايل چې تا به د الله نه د څه شي دعا غوښتلو؟

قَالَ : نَعَمْ كُنْتُ أَقُولُ : اَللّٰهُمَّ مَا كُنْتَ مُعَاقِبِي بِهِ فِي الْآخِرَةِ

هغه ووېل چې آو! ما به دا ويل چې خدايا که ته ما ته په آخرت کې د عذاب راکونکی يې نو (د هغې

---

(۱) أخرجه الدعوات الكبير للبيهقي ۳۵۱/۱، رقم الحديث ۲۵۹

(۲) أخرجه الدعوات الكبير للبيهقي ۳۵۰/۱، رقم الحديث : ۲۵۸.

| |
|---|
| فَعَجِّلْهُ لِي فِي الدُّنْيَا. |
| بدل کې) په دنيا کې په عذاب راکولو کې تندي وکړه نبي کريم ﷺ (چې دا واوريدل) نو وې |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " سُبْحَانَ اللهِ لَا تُطِيقُهُ |
| فرمايل سبحان الله تا ډېره نااشنا دعا غوښتلې. نه ته (په دنيا کې) د الله د عذاب زغملو طاقت لرې |
| وَلَا تَسْتَطِيعُهُ أَفَلَا قُلْتَ : اللّٰهُمَّ آتِنَا |
| او نه آخرت د الله د عذاب زغملو باندې صبر کولې شې. تا داسې دعا ولې نه غوښتله: اى الله! راکړې |
| فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَ فِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَ قِنَا |
| مونږ ته په دنيا کې خير (يعنې عافيت) او آخرت کې هم خير راکړي (يعنې بخښل) او ومو ساتې د |
| عَذَابَ النَّارِ " . قَالَ : فَدَعَا |
| اور د جهنم نه. د راوي بيان دې چې هغه سړي د نبي کريم ﷺ وينا مطابق دا دعاء وغوښته د |
| اللهَ بِهِ فَشَفَاهُ اللهُ.[1] |
| الله تعالى نه نو الله تعالى ده ته شفاء ورکړه. |

**توضيح: خفت**: دا صيغه د نصر ينصر نه ده. چې په معنى د ضعف ده. د ناروغئ په وجه چې کله د انسان اواز ټيټ شي هغې ته خفت وايي. د مريضتيا او ضعف په وجه صحابي رضي الله عنه کمزورى شوى ؤ. (المرقات ۵/۳۷۳)

**مثل الفرخ**: يعنې د کمزورۍ په وجه هغه د مرغۍ د بچي پشان کمزورى شوى. **سبحان الله**: نبي کريم ﷺ د حيرانيدلو په وجه وويل چې سبحان الله. چې داسې مکوه د دې توان ته نه لرې چې جسم او قوت د الله تعالى عذاب ته مخکې کړې بلکه د عافيت دعا کوه. (المرقات ۵/۳۷۳)

## د خپل طاقت نه درووند مسووليت مه اخله

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَا يَنْبَغِي لِلْمُؤْمِنِ أَنْ |
| ابو حذيفه رضي الله عنه راوي دې چې نبي کريم ﷺ وفرمايل مؤمن لپاره مناسب نه دي چې خپل |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۶/۴ رقم الحديث : ۲۳/۲۶۸۸.

| يُذِلَّ نَفْسَهُ . قَالُوا : وَ كَيْفَ يُذِلُّ نَفْسَهُ ؟ قَالَ : |
|---|
| ځان ذليل اورسوا كړي صحابو عرض وكړو چې خپل ځان ذليل كول څنګه وي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل |
| يَتَعَرَّضُ مِنَ الْبَلَاءِ لِمَا لَا يُطِيقُ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حسن غَرِيب (۱) |
| داسې كار په خپل سر واخلي چې د هغې طاقت نه لري. |

**توضيح:** البلا: د دينه ازمائش، مصيبت او مسووليت مراد دى. د موومن د ايماني فراست شان دي چې هغه داسې مسووليت قبول نه كړي چې هغه د هغې د وس او توان نه غټ وي. د خپل ځان خپله د خوارولو او ذليل كولو پشان دى. يا خپل او د نورو خلكو د ژوند لپاره د خطر حالت دى. مثلاً يو سړى په علمي ميدان كې په يو هنر نه پوهېږي او د هغې بوج په خپلو وږو اخلې او رأيي او تدبېر په ميدان په هيڅ نه پوهېږي او د رأيي او مشوره وركولو كوښښ كوي يا ګاډي نه شي چلولي او راشي سټيرنګ ته كيني. نو په دې به هغه خپله هم تباه شي او نور به هم ځان سره تباه كړي يا د خپل طاقت غټ طاقتور سره پنجه وهي او خپله طاقت نه لري په دغه شان كولو سره خپله سپكاوى او ذلالت وي او كار به هم خراب شي. د دې حديث په عموم كې دا خبره هم راځي چې كه يو سړى مثلاً په څه نه پوهېږي. خلك د هغې نه خفه وي او دا سړى د خپل ځان د عزت ساتلو نه بغير د هغوى خوا له ورځي. نو هغه خپل ځان ذليله كوي. داسې ځايونو ته هغه ته تلل نه دي په كار. دا حديث اګرچې د دې باب د عنوان مطابق ندي خو د دې نه مخكې پاس حديث ته وګورى نو دا خبره مغزو ته راشي چې سړى د هغه شي دعا نكوي كومه چې د هغې د توان نه غټه وي.

## د ظاهر او د باطن د ښه كولو دعاء

| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : عَلَّمَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " قُلْ: |
|---|
| عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ماته دښودنې په وخت وفرمايل چې دادعاوغواړه: اى الله |
| اللَّهُمَّ اجْعَلْ سَرِيرَتِي خَيْرًا مِنْ عَلَانِيَتِي وَاجْعَلْ عَلَانِيَتِي صَالِحَةً اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ |
| زما باطن زما د ظاهر نه غوره جوړ كړي او زما ظاهر كې نرم والي پيدا كړي. اى الله! زه ستا نه خير غواړم |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٤/٤٥٣ رقم الحديث : ٢٢٥٤.

مِنْ صَالِحِ مَا تُؤْتِي النَّاسَ مِنَ الْأَهْلِ وَ الْمَالِ وَ الْوَلَدِ غَيْرِ الضَّالِّ وَلَا الْمُضِلِّ".[1]

دهغه شي کوم چې ته خلکو ته ورکوي يعنې اهل، مال، اولاد چې نه بې لارې وي او نه بې لارې کوونکي وي.

**توضيح**: دا حديث د کتاب الدعوات آخري حديث دی دا په ډېر جامعې دعا سره دي چې د ټولو دعاګانو مقصدونه او مطلبونه هم دا دوه شيان دي چې د انسان ظاهر ښه اوسي او باطن يې هم ښه اوسي. بيا خو انسان په يوه معاشره کې اوسيږي. او نور خو د چاپېريال ماحول سره يې واسطه راځي. لهذا د دې احوال د سمولو لپاره يوه بله دعاء هم راغلې دا چې اهل و عيال او مال ښه ملاو شي. بيا ماحول هم ښه ملاو شي. چې د هغې ظاهر او باطن د تاثير لاندې رانه شي او خراب نه شي.

**غير الضال**: يعنې چې نه دا اهل و عيال په خپل ځان ګمراه وي او نه نور خلک ګمراه کونکي وي بس هم دغه بادشاهت دې او هم دغه د دنيا جنت دې او هم دا د مسلمان دړوند حقيقت دې. (المرقات ۵/۳۷۵)



(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۳۴ رقم الحديث : ۳۵۸۶.

۱۵ جمادی الثاني ۱٤۱۰هـ

# كتاب المناسك

## د حج د افعالو بیان

قال الله تعالی: ﴿ وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلاً وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ اللهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعَالَمِينَ ﴾ (سورة آل عمران آیت:۹۷)

**مناسك** جمع ده د دې مفرد منسک دی. سین باندې فتحه ده او کسره هم ده. دا مصدر میمی ده چې دعبادت او قربانۍ دوارو لپاره استعمالیږي. د منسک لفظ ظرف زمان او ظرف مکان هم دي یعنې عبادت کولو وخت یا عبادت کولو ځای. همدغه شان د قربانۍ کولو وخت یا ځای، دلته مناسک نه مراد د حج کارونه (افعال) دي.

**د حج لغوي او اصطلاحي تعریف**: دح حرف باندې فتحه هم ده او کسره هم ده. د فتحه په صورت کې دا مصدر دی او چې د قصد لپاره استعمالیږي او د کسره په صورت دا اسم دی چې د حج نوم دی. (المرقات ۵/۳۷۷) د قصد په معنی کې شاعر داسې استعمال کړې دی:

واشهد من عوف حلولا كثيرة ❁ يحجون سب الزبرقان المزعفرا

یعنې ټول کال د قبیله عوف خلک حاضریدل او د زعفرانو په خوشبو به یې په ځان لګولې وه او د زبرقان بادشاه په شان د قربانۍ قصد کولو.

لفظ د حج د نوم په طور یو شاعر داسې استعمال کړي دی:

وقفت بها بعد عشرين حجة ❁ فلا يأعرفت الدار بعد التوهم

زه د محبوبې کور ته شل کاله وروسته راغلم. د ډیر سوچ او فکر نه وروسته مې دا کور وپیژندلو.

دلته کال ته حجة ویل شوي دي حج ته هم په هم دې مناسبت سره حج وایي چې دا کال وروسته راځي.

قرآن د حج البیت د نوم لپاره استعمال شوی دی.

**د حج اصطلاحي تعریف**: الحج هو القصد الي زيارة الامكنة المخصوصة في زمان مخصوص بافعال مخصوصة. (المرقات ۵/۳۷۷)

یعنې په خاصه زمانه کې د خاصو کارونو سره خاص ځای، نو کې د زیارت کولو نوم حج دی.

**حج کله فرض شو؟** په دې کې څو اقوال دي چې د مکې نه مدینې ارخ ته هجرت کولو نه وروسته حج کله فرض شو. اګر که دا خبره یقینې ده چې حج د هجرت نه وروسته فرض شوی دی. نو د پنځمې

هجرۍ، نه تر لسمې هجرۍ پورې هر كال لپاره بېلا بېل اقوال دي. خو د اعتماد وړ او واضح قول دا دى چې حج ۹ هجرۍ كې فرض شوى وو. نبي كريم ﷺ هم دغه كال حضرت ابو بكر رضي الله عنه د حج امير جوړ كړو او ويې ليږلو او خپله نبي كريم ﷺ په لسمه هجرۍ كې د حجة الوداع لپاره تلى و. بيا په دې خبره كې بحث شوى دى چې آيا حج يوائې پدې امت فرض دى او كه په مخكنيو امتونو باندې هم فرض وو. نو ډېره راجحه او واضحه خبره دا ده چې مخكې نيو امتونو باندې فرض نه وو. (المرقات ۵/۳۷۸)

ملا علي قاري رحمه الله ليكلي دي چې حضرت آدم عليه السلام د هندوستان نه پيدل څلويښت حجونه كړي دي. حضرت جبرائيل عليه السلام يو ځل هغوى ته وويل چې فرشتې د اوه زده (۷۰۰۰) كالو نه د بيت الله طواف كوي. احاديث صحيحه كې د بېلا بېلو انبياء كرامو د حج د كارونو نقشه حضور بيان كړې ده. بهرحال حج د انبياء كرامو او ده دې امت خلكو سره خاص دى. او حج كتاب الله او سنت رسول الله او د امت په اجماع سره ثابت دى. ده دې وجې نه د دې منكر كافر دي او غلطي كونكې يې فاسق او فاجر دى. (المرقات ۵/۳۷۸)

**ربط ترتيب ابواب:** الله تعالى چې په انسانانو باندې كوم عبادات فرض كړي دي د هغې درې قسمونه دي: ۱: خالص بدني عبادت لكه د لمونځ او د روژې عبادت دى.

۲: خالص مالي عبادت لكه د زكوة عبادت دى.

۳: هغه عبادت چې هغه د بدني او مالي عبادتونو مجموعه ده لكه د حج عبادت دى.

او سنن او د فقه كتابونو كې د ټولو نه اول د لمونځ او د هغې د متعلقاتو بحث كيږي. اګر كه پاس ترتيب تقاضا دا وه چې ده لمونځ نه وروسته د روژې بيان وي خو الله تعالى په قرآن كريم د لمونځ سره سره زكوة بيان هم فرمايلي دي نو ځكه لمونځ نه وروسته د زكوة بيان وي. او بيا د روژې بيان وي او آخر كې د حج بيان وي. بعضې علماو د عباداتو د ترتيب داسې ليكلي دى وايي چې د الله تعالى صفات په دوه قسمه دى. يو اجمالي صفت دي او بل جلالي صفت دى. د اجمالي صفاتو مظهر لمونځ او زكوة دى. نو ځكه دي سره سره ترتيب هم يخودلي شوي دي او د جلاليه صفاتو مظهر روژه او حج دي نو ځكه د جماليه صفاتو نه وروسته ترتيب سره دا يخودلي شوي دى.

**نوټ:** د پنځو اركانو د ترتيب عجيب متعلق ما توضيحات په دويم جلد كې كتاب الصلوة په ابتداء كې صفحه نمبر ۲۱ باندې تر يو حده پورې ليكلي دي چې هغه د مقصدونو لپاره كافي دى. بيا ما خپل كتاب علمي خطبات كې د فلسفه حج موضوع د لاندې ښه تفصيل سره د اركان خمسه پس منظر بيان كړي دى. په هغې كې فقط د فلسفئه حج دلته فقط يوه برښه كيخودل غوارم چې د كتاب الحج څه حق ادا كړي شي او هر لوستونكې د حج مقاصدو باندې پوهه شي.

**د حج فلسفه**: د محبوب د حصول لپاره د دنیا د مجازي عاشقانو عادت دا دي چې یو عاشق د خپل محبوب تعریف هم کوي. نو د هغې وروسته ورله تعظیم هم کوي او مال پې هم مصرفوي. خوراک او څکول هم ورته پرېږدي خو بیا هم ورله محبوب په لاس را نشي. نو آخر ده چې هغه د خپل کور پرېښودلو سوچونه کوي او وایي چې په تعریفونو کې د محبوب قصیدي هم وویل، تعظیمونه مې هم ورله وکړل، بنه ډیر مال مې پري هم مصرف کړو او د خوراک او څکاک نه پري هم پاتې شوم. وس د هغې د ژوند څه ضرورت نشته. نو هغه خپلې جامې وشلوي او دومره احساساتي شي چې د سر خولۍ او د خپو بوټان هم غزار کړي او د جذب به داسې حالت کې راشي چې د لیونتوب په حالت دشتو ته مخ کړي. هغې د ابادیو نه نفرت شي او په دي امید کور ته مخابنه ووایي او دشتو منډه کړې چې هغه هغه زیان ووینې چرته چې کومه زمانه محبوب اوسیدلو او چرته چې دا عاشق د خپل محبوب آثار او کهنډرات او اوسیدلو ځایونه او رڼاګانې ووینې. هغه د تېر شوې وخت د ټولو حالاتو جائزه اخلي او د خپل محبوب په هر هغه مقام ژړا کوي چرته چې تېره زمانه کې به محبوب حرکات و سکنات کړې دې. عربې شاعران او عجمې غزل وي ونکې خپلو قصیدو او غزلو کې همدغه نقشه اچوي. بیا هغوی خپله هم ژاړي او نور هم ژړا وي. هغوی په هر ځای کې ودریګې او د تېر شوي وخت فقط صرف نقشي نه اچوي بلکه هلته د غم او ژړاګانو یو ماتم جوړ کړي. د هغې څو مثالونه په خدمت کې عرض کوو. یو زړه پوري شاعر خپل د جذباتو اظهار څه داسې کوي:

أَيَا مَنْزِلَيْ سَلْمَى سَلَامٌ عَلَيْكُمَا هَلِ الْأَزْمَنُ الَّتِي مَضَيْنَ رَوَاجِعُ

اي د سلمظ محبوبه دوه کورنو! په تاسو دواړو دي سلام وي. آیا تېره شوې زمانه به بیا راشي؟

وَ هَلْ يَرْجِعُ التَّسْلِيْمَ أَوْ يَكْشِفُ الْعَمَى ثَلَاثُ الْأَثَافِيْ وَ الدِّيَارُ الْبَلَاقِعُ

آیا د محبوب وران کور او د نغري دري کاڼي به ماته څه لار دخونه وکړي یا به زما د سلام جواب راکړي؟

شاعر ساحر ابو الطیب متنبي وایي:

فَدَيْنَاكَ مِنْ رَبْعٍ وَ إِنْ زِدْتَ نَاكَرْبًا فَإِنَّكَ كُنْتَ الشَّرْقَ لِلشَّمْسِ وَ الْغَرْبَا

ای د محبوب کوره مونږ به تا قربان! اګر که د تېرشوي وخت یادولو په وجي سره زونږ نا قلاري ډېره کړي دا ځکه ته د محبوب لپاره په مشرق او مغرب پشان وي.

وَ كَيْفَ عَرَفْنَا رَسْمَ مَنْ لَمْ يَدَعْ لَنَا فُؤَادًا لِعِرْفَانَ الرُّسُوْمِ وَلَا لُبًّا

او ددې محبوب د کور نښې څنګه وپیژندلې حال دا چې هغې خو د پیژندلو لپاره نه زړه پرېښودلو او نه عقل.

سَقَيْتُهُ عَبَرَاتٍ ظَنَّهَا مَطَرًا سَوَائِلًا مِنْ جُفُوْنٍ ظَنَّهَا سُحُبًا

ما په دې کور داسې رواني ويني وڅکلي چې هغه دې محبوب باران وګڼل، د هغه باڼو نه کوم چې دي وريځې ګڼلې. د ليلى مجنون خو په دې ميدان کې د نورو نه يو څو قدمه وړاندې تلى. هغه خو به محبوبه د ديوالونه څټل او تر طوافه پورې به يې قائل وو. ويل کيږي :

اَمُرُّ عَلَى الدِّيَارِ دِيَارِ لَيْلٰى اُقَبِّلُ ذَالْجِدَارَ وَ ذَا جِدَارَا

زه د محبوبې ليلى په ديوالونو تيريږم نو د خوا او شا ديوالونه هم ښکلوم.

وَمَا حُبُّ الدِّيَارِ شَغَفْنَ قَلْبِيْ وَ لٰكِنْ حُبُّ مَنْ سَكَنَ الدِّيَارَا

د کورونو محبت زما زړه موړ نکړو بلکه د دې کورونو وسيدونکو محبت داسې وکړل.
يو بل شاعر وايي :

عَلَيَّ لِرَبْعِ الْعَامِرِ يَّةِ وَقْفَةٌ لِيُمْلِيْ عَلَيَّ الشَّوْقَ وَ الدَّمْعُ كَاتِبٌ

عامر محبوبه کور سره ودريدل ضروري دي چې هغه زما شوق ډير کړې او وښکې د يو کاتب په حيثيت ليکل وکړي.

وَ مِنْ عَادَتِيْ حُبُّ الدِّيَارِ لِاَهْلِهَا وَ لِلنَّاسِ فِيْمَا يَعْشِقُوْنَ مَذَاهِبُ

زما عادت دي چې زه کورونو سره د دې د وسيدونکو په وجه محبت کوم او به عشق کې د هر سړي خپله خپله طريقه وي.

د محبت د حصول لپاره په پنځمه مرحله شريعت مطهره د حج رکن مقرر کړي دي چې يو رښتني عاشق سوچ کوي چې د رښتني محبوب د حصول لپاره او رضا لپاره حمد او ثناء هم ولوستله، بيا مې لوې تعظيم هم وکړو، بيا مې مال هم مصرف کړو، بيا مې خوراک او څکاک هم پرېښودلو او بيا هم رښتني محبوب په ښکاره توګه په لاس نه نغللو. نو وس دا رښتني عاشق د خپل بدن نه جامې وباسي او د کفن پشان دوه څادرې واغوندي. د سر نه لغړ شي او په خپو کې داسې پوټان استعمالوي چې په هغې خپې په ښه طريقه پټې نشي او د دې سره بيا هم د خپل کور کې ښځه او ماشومان پرېږدي او د ليونې پشان بيا هم د دې ښار اړخ ته راځي. چرته چې د محبوب کور دي او هلته د هغې وزر خو شته. نو دا عاشق ليوني شي بلد الله الحرام ته راورسيږي. په ليدلو د محبوب کور سره دا ليوني صادق کې لاړ شي او طواف شروع کړي چې محبوب ملاو شي. هغه د طواف په شروع کې حجر اسود ښکل کړې لکه په راتلو سره چې د خپل رښتني محبوب ښکل کړو. دلته نفل کول اخر دی. دلته تهجد کول وروسته دي. د ټولو نه اول کار د محبوب د کور نه طواف کول دي چې

ځنګه هم محبوب راضي شي او په لاس را شي. په مجازي عشق کې هم د طواف واقعات شوي دي او کېږي هم. هغه رد کيدلي نه شي.

**دګورنر عاقل قصه**: ګورنر عاقل متحده هندوستان کې د لاهور والي وو. حکومت د شاه جهان باچا وو. زمونږ استاذ د درسونو په منيځ کې دا قصه اورولي وه. چې د هغه والي د شاه جهان د لور زيب النساء سره مينه وه. دا سړی پيدل د لاهور نه د پيدل لال قلعي ته لاړو او لال قلعي ته د رسيدلو سره يې د هغه قلعي طواف شروع کړو، د طواف دوران کې هغې پاس وکتل نو ډير وچت په سره جامه کې يو انسان په نظر راغلو. دا خپله زيب النساء وه. عاقل ورته د لاندې نه وويل:

**سرخ پوشے بلبِ بام نظر مى آيد**

يعنې يوه سره جامه اغستونکې د مانۍ په چت ښکاري.

زيب النساء د دې په جواب کې وويل:

**نه بزورے نه بزارِ نه بزر مى آيد**

يعنې نه سره جامه اغستونکې د طاقت په زور لاس ته راتلي شي، نه په فرياد کولو باندې او به زر او روپۍ سره لاس ته راتلي شي.

**په طواف کې د يو ولي الله قصه**: همدغه شان د يو الله والا قصه ليکلي شوي ده. چې هغې اوولس (۱۷) حجونه کړي وو او به چې هم بيت الله ته ورسيدو نو د لبيك اللهم لبيك چغه به يې وهله. نو جواب به ورکړي شو لا لبيك ولا سعديك اخرج من بيتي يعنې دلته نه وځه نه ستا لبيک قبول دي او نه ستا سعديک قبول دی. يو ځل يو د الله والا دا جواب واوريدلو نو هغې راغلو او دې سړه ته يې وويل چې تاته چې کوم جواب درکړي کېږي آيا ته هغه اورې. هغې جواب ورکړو آو. زه يې ښه اورم. هغې ترينه پوښتنه وکړه چې د څومره وخت دا معامله روانه ده. هغې جواب ورکړو چې د اوولس کالو نه. هغې ورته وويل نو بيا ولې راځې؟ هغه د الله والا (نيک سړی) ورته وويل چې دا د الله دربار پرېږدم نو چرته لاړ شم؟ بس هغه زما خالق او مالک دی. هغه به مو شړي خو مونږ به بيا هم راځو. بهر حال د عشق او ليونتوب نه ډک حاجي صيب د محبوب د حصول لپاره د محبوب د کور طوافونه کوي. کله منډې وهي. اوږې خوځوي نو کله په آرام سره نظرونه خته کړي او ګرځي. کله د حج د يو کار (رکن) مطابق خته کېږي. کله د ملتزم نه پټ پټ چغې وهي او لاړ شي. نو کله د رب د رحمت د لاندې لاړ شي او وريسي چسپ شي. يو شوق دی. يوه ولوله ده. يوه جذبه ده. شور دې او زور دی.

طواف کعبہ ہے وقتِ سحر ہے ٭ ہم دل کشا زورِ حجر ہے

د محبوب د کور طواف مې وکړو. اووه (۷) ځل ترينه وګرځیدم او ستړي شوم، دوه رکعتیز لمونځ مې وکړو، لږ ارام مې وکړو، بیا مې د زم زم اوبه وڅکلې. بیا لږ قوت راغلو او د محبوب پلټنه کې مې د محبوب د کور نه وړاندې په خوار میدان کې مې د یو غر تر بل غره پورې منډې شروع کړې. د غرپاسه ودریدم او د محبوب په کور مې نظر واچو او دعاګانې مې وغوښتلې. بیا غونډۍ ته لاندې کوشوم. ښې تیزې منډې مې ووهلې او ژبه مې ذکر کولو. په بدن مې ګرد وو. اخوا دیخوا منډې ښې ډېرې دي. دلته د محبوب انتظار دی. ټول عمل لکه د لیونتوب دی.

اَمُرُّ عَلَى الدِّيَارِ دِيَارِ لَيْلٰى    اُقَبِّلُ ذَاالْجِدَارَ وَ ذَا جِدَارَا

وَمَا حُبُّ الدِّيَارِ شَغَفْنَ قَلْبِيْ    وَ لٰكِنْ حُبُّ مَنْ سَكَنَ الدِّيَارَا

دا رښتنې عاشق چې کله دا ټولې مرحلې پوره کړي او په ظاهر محبوب ملاو نشي نو دا سړی مدینې منورې ته مخ کړي. چې کوم ذات زه د عشق او محبت پدې میدان اچولی یم چې لاړ شم او د هغې نه معلومه کړم چې د محبوب د حاصلولو څه طریقې دي. مدینه منوره کې حاضرې ور کړي. د نبي کریم ﷺ قبر مبارک مخې ته دورد او سلام وایي. ریاض الجنة کې لمونځونه وکړي. د خپل رښتني پیغمبر جومات ته لاړ شي. د خوږ پیغمبر د تلو راتلو، پاسیدلو او کیناستلو او ګرځیدلو ځاینو ته ګوري. د خوږ پیغمبر د ممبر او محراب زیارت وکړي. بیا د وفا به لاره کې د ستونو غوڅولو والا پتنګانو قبرونو لیدنې کتنې لپاره اُحد ته لاړ شي. د نورو ځاینو زیارت هم وکړي او څه نور نوي تحصیلات اغستلو نه وروسته بیا مکې مکرمې ته راشي. د محبوب د کور نه چارچاپیره غرونو ته منډه کړي. عرفات میدان ته لاړ شي. د رحمت غر ته په تیز تپ کې ودرېږي او د محبوب مخې ته لاس په نامه ولاړ وي. په زوره زوره چغې وهل، او په ژړه ژړه محبوب رضا کوي. تر مابنامه پورې په عاجزۍ سره وخت تېره وي. بیا یوې بلې غونډۍ مزدلفې ته منډه کړي چې کیدې شي چې محبوب هلته راضي شي او لاندې د راتلو وخت کې په زوره زوره وایي:

لبيك اللهم لبيك لبيك لاشريك لك لبيك ان الحمد والنعمة لك والملك لاشريك لك.

بیا وایي:

الله اکبر ما افاض المشعر وبه الوفود تزاحمت تستغفر

الله اکبر ما السماء تزینت بنجومها و بها الکواکب تزهر

مزدلفه کې په خاوره اوده شي. ویختان یې په ګردونو کې ککړ شوي وي. خو په سر کې یو شور پیدا کېږي. د سترګو مخې ته هر ځایې کې د محبوب ښکلا ښکاري. سحر سحر کې د لیونتو ډیرولو

لپاره څه کانړي را وچت کړي او بيا يو غونډۍ منی اړخ ته لاړ شي. په جوش کې وي. محبوب سره په جوړېدلو کې چې وس کوم مزاحمتونه راځي. په هغې باندې عملي ګوزارونه کوي. نيغ زي او ښخي مخي لاره کې يو غټ مزاحمت سره مخ کېږي. کاڼي خو تيار وي. د دې مزاحمت په سر باندې د کاڼو باران وکړي. د بدن ويختان يې غټ شوي دي. نکان اوږده شوي دي. د بريتو بد حال دی. سر باندې ګرد و ويختان دي. بدن باندې کفن دې. يو څادر باس دي او يو لاندې دی. مزاحمتونه لري کوي. څه چې کول وو هغه يې وکړل. او چې څومره کول وو هغومره يې وکړو څومره يې چې کولې شو. وس راشي او بيا د اول نه تر اخر پورې دا ټوله نقشه ګورې چې د چا لپاره د کوم ځايې نه راغلي وم او د څه لپاره راغلي وم او څه حاصل شول؟ په دې نقشه کې چې هغه ګوري چې په ښکاره خو محبوب حاصل نشو نو وس دا ربښتنې عاشق څه نو سوچ کول شروع کړي ځکه چې د دنيا د مجازي عاشقان چې کله په عشق کې ناکام شي او بيا هغوی خپله په خپلې مرۍ باندې چاړه راکاږي او ځان وجنه کوي. اب د خپل ځان د قربنولو اراده ربښتنې عاشق کوي او هغه د مزاحمتونو د لرې کولو لپاره کله چې د کاڼو نه وزګار شي نو د قربانۍ ځای ته منبه کړي چې هغه د خپل ځان قرباني ورکړي او غه هلته لاو شي او سوچ کوي چې تر وسه پورې چې د محبوب د حصول لپاره چې څومره کېدلو شو ما وکړل بس وس د دې ژوند ضرورت نشته دی. وس همده ختم کړم. د قربانۍ ځای ته چې کله راو اسي نو د ربښتنې محبوب اړخ نه د رحمت يو سړکه په هغې ولږي او هغه اشاره کوي چې د ځان پر ځای څاروي هلال (ذبح) کړه هم قبلېږي. دا لاړ شي او دا څاروي پدې نيت باندې هلال کړي چې زه اصل کې خپل ځان هلاله ومه. چې کله په شه جذبي سره تکبير ووايي او څاروي هلال کړي او کوښش کوي نو اوس ربښتينې محبوب راضي شي او حاصل شي. د محبوب د راضي کېدو او حاصليدو نه ربښتنې عاشق ته محبوب د ديدار ځای (مقام) حاصل شي. چې کله په خوش کې راشي نو خپل ځان باندې نظر واچوي. غټ غټ نکونه ورته ښکاره شي نو وايي واه دا څه وشول. دا نوکان دومره ولې غت شوي دي؟ واه دا ويختان دومره ولې غټ شوي دي؟ اوهو! دا جامي ولي دومره خيرنې شوي دي؟ دا په ليدلو سره حمام اړخ ته لاړ شي او غسل وکړي. ځان پاک کړي. نوي جامې واغوندي. نکونه غوڅ کړي. او عطر ولږوي او خپل ظاهر او باطن پاک کړي. حديث کې راغلي دي چې د حج کولو سره انسان داسې پاک شي لکه څنګه چې هغه په هغه ورځ د مور د خيټي نه پيدا شوي وو او راغلي وو. همدغه شان دا عاشقانه عبادت پوره شي او دي حديث باندې پوهه هم راشي: **بني الاسلام علی خمس شهادة ان لا اله الا الله وان محمدا عبده ورسوله واقام الصلوٰة و ايتاء الزكوٰة وصوم رمضان وحج البيت من استطاع اليه سبيلا. صدق الله جل جلاله و صدق رسوله**

النبي الكريم الله تعالى دې ټولو مسلمانانو ته د صحيح حج كولو توفيق وركړي آمين يارب العالمين

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

### حج په ټول عمر كې يو ځل فرض دى

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : خَطَبَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : |
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې (يو ځل) نبي كريم صلى الله عليه وسلم مونږ ته خطبه كوله او وې فرمايل |
| يَا أَيُّهَا النَّاسُ ! قَدْ فُرِضَ عَلَيْكُمُ الْحَجُّ فَحُجُّوا |
| چې اى خلكو ! په تاسو باندې حج فرض كړې شوې دې لهذا تاسو حج وكړئ. (دې اوريدو سره) يو |
| فَقَالَ رَجُلٌ : أَ كُلَّ عَامٍ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ فَسَكَتَ حَتَّى |
| سړي ووېل چې يا رسول الله! آيا مونږ هر كال حج وكړو ؟ نبي كريم صلى الله عليه وسلم چپ پاتې شو تردې چې |
| قَالَهَا ثَلَاثًا فَقَالَ : " لَوْ قُلْتُ : نَعَمْ |
| هغه سړي دا خبره درې ځله وكړه. بيا نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې كه ما آو ويلي وې نو يقينًا |
| لَوَجَبَتْ وَ لَمَا اسْتَطَعْتُمْ " ثُمَّ |
| حج (د هر كال لپاره) به فرض شوي وي او تاسو به (هر كال) د حج كولو توان نه لرئ. بيا نبي عليه السلام |
| قَالَ : ذَرُونِي مَا تَرَكْتُكُمْ |
| وفرمايل چې ترڅو زه تاسو پرېږدم نو تاسو ما پرېږدئ (يعنې چې ترڅو پورې زه څه نه وايم نو تاسو |
| فَإِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ . |
| مانه تپوس مه كوئ) ځكه كوم خلك چې ستاسو نه مخكې تېر شوي دي (يعنې يهود او نصارى) هغه |
| بِكَثْرَةِ سُؤَالِهِمْ وَ اخْتِلَافِهِمْ عَلَى أَنْبِيَائِهِمْ |
| په همدغې وجه هلاك شوي دي ځكه هغوى د خپلو انبياو نه پوښتنه كوله او د هغوى سره به يې اختلاف |
| فَإِذَا أَمَرْتُكُمْ بِشَيْءٍ فَأْتُوا مِنْهُ مَا اسْتَطَعْتُمْ |
| كولو. لهذا چې زه تاسو ته د كومې خبرې حكم وكړم نو په هغې كې تاسو د څومره كولو طاقت لرئ |

| وَ إِذَا نَهَيْتُكُمْ عَنْ شَيْءٍ فَدَعُوْهُ".[1] |
|---|
| نو وكړئ او چې زه كله تاسو د يوې خبرې نه منع كړم نو هغه پرېږدى. |

**توضيح: فقال رجل:** د دې سړى نه اقرع بن حابس مراد دى. هغه دا پوښتنه كړې وه ځكه د هغه خيال ؤ چې د اسلام نور عملونه مكرر دي نو حج به هم كيدې شي چې د نورو عملونو په شان مكرر وي او هر كال به كول كېږي. (المرقات ۵/۳۷۹)

**فسكت:** نبي كريم ﷺ سكوت ځكه وكړو چې نبي كريم ﷺ ته دا پوښتنه ښه ونه لګېدله. يعنې پوښتنه كونكې ته يو قسم له سبق وركول وو خو هغې سړى بيا بيا پوښتنه وكړه نو نبي كريم ﷺ حقيقت واضح كړو) كه چرې ما آو كړې وې نو هغه د الله تعالى حكم وي او بيا به هر كال حج فرض شوي وي چې په هغې عمل كول مشكل وى. ځكه چې تر څو پورې زه خپله څه ونه ويم نو تاسو پوښتنې مكوى او كه د څه حكم ضرورت وي نو زه درته حكم كوم يا مو منع كوم. ما په همدغه حالت كې پرېږدى. ځكه د انبياوو نه په پښتنو پښتنو باندې مخكنې امتونه تباه شوي وو او تاسو داسې مه كوئ. (المرقات ۵/۳۷۹)

په دې حديث كې نبي كريم ﷺ د حج د كولو حكم وكړو. بيا په اتمه (۸) هجرى كې د مكې د بريا نه وروسته حضرت عتاب بن اسيد ﷺ په مشرى كې اولنى حج وكړې شو بيا په نهمه (۹) هجرى كې حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په مشرى او امارت كې مسلمانانو دويم (۲) حج وكړو بيا په لسمه (۱۰) هجرى كې نبي كريم ﷺ په امامت كې ټولو مسلمانانو حجة الوداع وكړو. (المرقات ۵/۳۷۹)

علماوو ليكلي دي چې نبي كريم ﷺ به مكه مكرمه كې د هجرت نه مخكې څو څو حجونه كړي وو خو د مكې د بريا نه وروسته د نبي كريم ﷺ دا اولنى حج وو. د دينه معلومه شوه چې د حج فريضه موسع ده يعنې پدې كې د وروستوالي څه ګنجائش نشته دى. (المرقات ۵/۳۷۹)

## په اسلام كې جهاد د ټولو نه غوره عمل دى

| ﴿۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : سُئِلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَيُّ الْعَمَلِ أَفْضَلُ؟ |
|---|
| ابوهريره رضي الله عنه وايي چې د نبي كريم ﷺ نه پوښتنه وشوه چې كوم يو عمل غوره دى؟ نو |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۹۷۵ رقم الحديث: ۴۱۲/۱۳۳۷.

| قَالَ : إِيمَانٌ بِاللهِ وَ رَسُولِهِ قِيلَ : ثُمَّ مَا ذَا ؟ |
|---|
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې په الله او په رسول باندې ايمان راوړل. پوښتنه وشوه چې بيا کوم يو عمل؟ |
| قَالَ : الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللهِ . قِيلَ : ثُمَّ مَا ذَا ؟ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل د خداي په لاره کې جهاد کول بيا ترې نه پوښتنه وشوه چې بيا کوم يو عمل؟ نو |
| قَالَ : حَجٌّ مبرورٌ .[1] |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې حج مقبول. |

**توضيح: اى عمل:** په اسلام کې کوم يو عمل د ټولو نه غوره دى؟ د دې باره کې په احاديثو کې جدا جدا شيانو ذکر راغلي دي چې د هغې تشريح او وضاحت په جلد اول کې شوي دې خلاصه دا چې د پوښتنه کونکو د احوال په وجه د حيثيت او د ميلان په وجه، د ځاينو په وجه يا د زمانه په وجه باندې تفاوت راغلي دي خو د علماوو په آخر پدې کې اختلاف راغلي دي چې آيا فرض لمونځ غوره دي او که جهاد غوره دى. د يو شمير علماوو راي دا ده چې مطلق لمونځ غوره دى. د دويمې (۲) شميرې علماوو راي دا ده چې جهاد غوره دى. او دا حديث په دې باندې ښکاره دليل دى. (المرقات ۵/۳۸۱)

همدغه شان په بخاري شريف کې يو حديث دي چې د هغې الفاظ داسې دي. **جآء رجل الي النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقال دلني علي عمل يعدل الجهاد قال لا اجد.** دا واضحه دليل دى چې د جهاد سره برابر عمل نشته دى. بيا علماوو د تطبيق پيدا کولو لپاره فرمايلي دې چې کله جهاد فرض کفايه وي نو لمونځ مطلقاً غوره دي خو که جهاد فرض عين وي نو بيا جهاد مطلقاً غوره دى. بهر حال کتاب الحج کې دا واضحه دليل دى. تبليغي خلکو باندې فرض دي چې د جهاد شان وپيژني او ومنى ګني د ايمان جوړ اول به ګران شي.

## مقبول حج د عامو ګناهونو کفاره ده

| ﴿۳﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ حَجَّ |
|---|
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې کوم سړى د الله لپاره حج وکړي او (د |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱/۷۷ رقم الحديث :۲٦، ومسلم في صحيحه ٤/۲۰۸۰ رقم الحديث: ۲۷۰۷/۵۳.

| فَلَمْ يَرْفُثْ وَ لَمْ يَفْسُقْ |
|---|
| حج په مينځ) کې هم بستري د خپلې ښځې سره ونه کړي او نه په فسق کې اخته شي نو هغه داسې (بې |
| رَجَعَ كَيَوْمِ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ.[1] |
| گناه) راستون شي څنګه چې (په هغه ورځ بې ګناه وو) په کومه ورځ چې هغه مور ځېږه ولي وو. |

**توضيح: ولدته امه:** يعنې څنګه چې دا سړی په کومه ورځ د مور د خيټې نه د ټولو ګناهونو نه پاک پيدا شو نو د مقبول حج کولو نه وروسته هم داسې پاک شي دا ډير غټ فضيلت دي او د دې تائيد د دې حديث نه هم کېږي چې په هغې کې دا ټکې راځي. **الحج يهدم ماكان قبله.** خو د فضيلت د ګټلو لپاره په دې حديث کې د درې شرطونو ذکر هم دی. اولني شرط دا دي چې حج به خاص د الله رضا او د خوشحالی لپاره وي. او نوم او د ريا او ښودلو لپاره نه وي. (المرقات ۵/۳۸۲)
دويم شرط دا چې د حج دوران کې دې رفث نکوي. رفث هغه بې حيائي ته وايي چې د ښځو مخې ته د ښځو ښکلا بېانولو سره تعلق لري. جماع باندې هم دې اطلاق کيدې شي. (المرقات ۵/۳۸۲)
دريم شرط دا دي چې چې د حج دوران کې سړی فسق او فجور ونه کړي. يعنې د حج دوران کې داسې ګناه ونکړي چې هغه لويه ګناه وي او سړی فاسق شي او نه د وړه ګناه قصد وکړي چې هغه قصد کولو په وجه لويه ګناه شي. د حج مقبول په علاماتو کې يوه علامه دا ده چې د حج کولو نه وروسته د انسان اخلاقي، عملي او ديني حالات ښه شي. بعضو ويلي دي چې حج مبرور هغه وي چې هغې سره ګناه نه وي شريکه او د حج په دوران کې ګناه وکړه نو هغه حج مبرور نه پاتې کېږي. (المرقات ۵/۳۸۲)

## د قبول شوي حج بدله جنت دی

| ﴿٤﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : اَلْعُمْرَةُ إِلَى الْعُمْرَةِ كَفَّارَةٌ |
|---|
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل يوه عمره د بلې عمرې پورې کفاره ده |
| لِمَا بَيْنَهُمَا وَ الْحَجُّ الْمَبْرُورُ لَيْسَ لَهُ جَزَاءٌ إِلَّا الْجَنَّةُ.[2] |
| د هغه (واړه) ګناهونو لپاره چې هغه د دې دا ورو په مينځ کې وي او د حج مقبول بدله صرف جنت دي. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۸۲/۳ رقم الحديث :۱۵۲۱، ومسلم في صحيحه ۹۸۳/۲ رقم الحديث: ۱۳۵۰/۴۳۸.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۹۷/۳ رقم الحديث :۱۷۷۳، ومسلم في صحيحه ۹۸۳/۲ رقم الحديث: ۱۳۴۹/۴۳۷.

## په رمضان کې عمره د حج برابره ده

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّ عُمْرَةً فِيْ رَمَضَانَ |
| ابن عباس رضي الله عنه راوي دي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې ثواب د عمرې کولو په رمضان کې |
| تَعْدِلُ حَجَّةً . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) |
| د حج کولو برابر دی. |

**توضیح**: یعنې د مقبول حج چې کوم ثواب دي همغه هومره هغه سړی ته حاصلېږي چې هغه د رمضان په میاشت کې عمره کوي. یو بل حدیث کې حجة معي تکې راغلي دي. د دې مطلب دا دي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره حجة الوداع کې د شریک کېدلو ثواب ملاوېږي. سبحان الله والحمد لله. (المرقات ۵/۳۸۳)

## نابالغه ماشوم ته هم د حج ثواب ملاوېږي

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لَقِيَ رَكْبًا |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم (د حج سفر په دوران کې) مخ شو دیوې قافلې سره |
| بِالرَّوْحَاءِ فَقَالَ : |
| په روحاء کې (چې د مدینې نه ۳۶ میله په فاصله باندې دیو ځای نوم دی) نبي علیه السلام پوښتنه وکړه: |
| مَنِ الْقَوْمُ ؟ قَالُوا : الْمُسْلِمُونَ . فَقَالُوا : مَنْ أَنْتَ ؟ |
| تاسو څوک یي؟ د قافلې خلکو ووېل چې مونږ مسلمانان یو بیا د قافلې خلکو تپوس وکړو چې ته څوک یې |
| قَالَ : رَسُولُ اللهِ فَرَفَعَتْ إِلَيْهِ امْرَأَةٌ صَبِيًّا |
| نبي علیه السلام وفرمایل: زه د الله رسول یم (دې اوریدو سره) یوې ښځې اوچت کړویو هلک لره (په لاس |
| کې د کجاوې نه) نبي علیه السلام طرف ته نیولو باندې (یعنې نبي علیه السلام ته یې وښودلو) بیا یې نبي |
| فَقَالَتْ : أَ لِهَذَا حَجٌّ ؟ قَالَ : نَعَمْ وَ لَكِ أَجْرٌ .[1] |
| علیه السلام نه تپوس وکړو آیا دې لپاره حج شته دی؟ نبي علیه السلام وفرمایل: آو! او ستا لپاره هم ثواب دی |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۹۷۴/۲ رقم الحديث: ۱۳۳۶/۴۰۹

**توضيح:** **ولك اجر:** د ټولو فقهاوو په دې باندې اتفاق دی. چې کوچنی ماشوم د مور پلار سره حج لپاره لاړ شي، او حج وکړي، نو د هغه حج صحیح دی، ثواب به ورکول کېږي، لیکن د کوچنوالي دا حج د بلوغ نه وروسته د حج لپاره نه کافي کېږي. بلوغ نه وروسته که دا ماشوم د مال خاوند شو نو په ده باندې د حج به لازم وي، د ماشوم په شان د غلام هم دغه مسئله ده. هو! که مسکین او فقیر سړی حج وکړي او وروسته مالداره شی نو په هغه باندې بیا حج نشته دی، تردې ځایه خو د ټولو فقهاوو اتفاق دی. د صحیح قول مطابق د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ هم دا مسلک دی. هو خو دومره خبره ده چې امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي: چې د ماشوم د حج ثواب به د هغه مور پلار ته ورکول کېږي، او که ماشوم پوهیدونکی نوي نو مور پلار لره په کار دي چې په ماشوم باندې د احرام احترام وکړي، او د احرام د محظوراتو (بندیزونو) نه وساتي. د امت فقهاوو چې دا کومه فیصله کړیده چې د ماشوم حج د فرض حج لپاره کافي ندی، نو هغوی اول دلیل د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حدیث دی. کوم چې امام طحاوي نقل کړیدی، الفاظ یې دا دي: (المرقات ۵/۳۸۴)

**ایما غلام حج به اهله ثم بلغ فعلیه حجة اخرٰی. (طحاوی)**

دویم دلیل د مستدرک حاکم روایت دی: چې د هغې الفاظ دا دي: **قال النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ایما صبي حج عشر حجج ثم بلغ فعلیه حجة الاسلام. (مستدرك)**

بهر حال په زیر بحث حدیث کې ولک اجر الفاظ د ائمه احناف ددې نظر تائید کوي چې د نابالغه ماشوم د حج ثواب به دده والدینو ته ملاویږي.

## د بل چا د طرف نه د حج کولو مسئله

﴿۷﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : إِنَّ امْرَأَةً مِنْ خَثْعَمَ قَالَتْ : يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ فَرِيضَةَ اللهِ

ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایي چې د قبیله خشعم یوې ښځې عرض وکړو چې یا رسول الله! ما د الله فریضه

عِبَادِهِ فِي الْحَجِّ أَدْرَكَتْ أَبِي شَيْخًا كَبِيرًا لَا يَثْبُتُ عَلَى الرَّاحِلَةِ

چې هغه د هغې په بنده ګانو باندې ده. زما پلار بوډا دي چې په سورلۍ کلک نه شي کیناستلي نو زه

أَ فَأَحُجُّ عَنْهُ ؟ قَالَ : نَعَمْ

د هغې لپاره حج وکړم؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل: آو! راوي وایي (د هغې لپاره) چې (نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ او دهغه

| ذٰلِكَ | حَجَّةَ | الْوَدَاعِ .[1] |
|---|---|---|

ښځې په مينځ کې) دا سوال او جواب په حجةالوداع کې وو.

**توضيح:افاحج عنه**: په بوډاوالي يا خو حج داسې فرض شوي وو چې هغه سړی د بوډاوالي حالت کې مسلمان شوي وو يا د دې وجې نه فرض شوي وو چې د بوډاوالي حالت کې مالدارا شوي وو. بهرحال دا سړی شيخ فاني وو. د هغې صحت څه اميد نه وو. نو ځکه د هغې لور د هغې لپاره د حج کولو مسئله تپوس وکړو. اوس تهولو احاديثو او د فقهاو رائيو ته په کتلو سره دوه مسئلې مخې ته راځي. (المرقات ۵/۳۸۵)

**اولنۍ مسئله**: دا چې که پدې سړی حج فرض شوي وو او هغه خپله د حج کولو نه معيوبه وو مثلاً يا دا شيخ فاني (ډير بوډا وو)، يا يې لاس او خپې غوڅ شوي وو يا ړوند وو. نو که د هغې له اړخه بل څوک حج کوي نو دا جائز ده. خو د دې لپاره دوه شرطونه دي:اولني شرط دا دی: چې معذوره سړی له خپل اړخه بل سړی ته حکم وکړي يا د مرګ په وخت کې وصيت وکړي. دويم شرط دا دي چې معذوره سړی د حج د ټولو مصارفو برداشت کولو سره دا سړی حج ته ولېږي. دا دواړه شرطونه فرض دي. خو د بل سړی له اړخه نفلې حج کول غواړې نو په هغې نه څه د وصيت ضرورت شته او د مصارفو ورکلو څه پابندي شته. اوس دا مسئله پاتې شوه چې د خپل مور او پلار له اړه فرض حج کول وي نو په هغه صورت کې به څه وي. بعضې علماء وايي چې دغه وخت کې نه د مور او پلار له اړخه د مصارفو ورکولو ضرورت شته او نه وصيت کولو ضرورت شته. اولاد د خپل مور او پلار له اړخه فرض حج کولی شي. دا حديث هم په دې باندې ښکاره دليل دي او په دويم فصل کې حديث ۲۳ هم پدې باندې ښکاره دليل دی. دا مسئله خو پوره شوه او د دې حديث تعلق د مور او پلار او اولاد سره دي نو لهذا پدې کې څه د تاويل ضرورت نشته.

**دويمه مسئله**: دا چې آيا په شيخ فاني او دائمي معذوره باندې حج فرض کيږي او که نه؟په دې کې فقهاوو اختلاف دی. (المرقات ۵/۳۸۶)

**د فقهاو اختلاف**: امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او د اکثر مشائخو په وړاندې شيخ فاني او دائمي معذوره باندې حج فرض کيږي. که هغه خپله نشي تلي نو بل له دې روپۍ ور کړي او حج دې پرې وکړي. د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ هم يو مرجوح قول همدغه شان دی. خو د امام ابو حنيفه قول راجح دی. چې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۷۸/۳ رقم الحديث :۱۵۱۳، ومسلم في صحيحه ۹۷٤/۲ رقم الحديث: ۱۳۳۵/٤۰۸.

داسې معذرو باندې حج نه وي فرض. لهذا نورو باندې د حج كولو ضرورت نشته. دا سړى د حج كولو نه ازاد دى. (المرقات ۵/۳۸۵)

**دلائل:** امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ د زير بحث حديث نه استدلال كړي دي چې په خپل مدعا باندې واضحه دليل دى. امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ د قرآن د دې آيت نه استدلال كړي دى. ﴿ وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلاً ﴾ پدې آيت د حج د فرضيت لپاره استعداد شرط يخودلي شوي دى. او په بوډاوالي كې ګرځيدلو راګرځيدلو استعداد نه وي. (المرقات ۵/۳۸۵)

د زير بحث حديث جواب دا دي چې په هغه باندې رومبي حج فرض شوي وو وروستنه معذوره شو. په حديث د تېر وخت صيغه ده دې اړخ ته اشاره كوي. لهذا په داسې حالت كې احناف هم د فريضه واجبه ادا كولو قائل دې. دويم جواب دا هم كيدلي شي چې هغه ښځې د نفل حج كولو اجازت غوښتلي وو. نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجازت ور كړو. دا د فرض حج خبره نه وه. (المرقات ۵/۳۸۵).

## دوارث د مورث د طرف نه د حج كولو مسئله

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : أَتَى رَجُلٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : إِنَّ أُخْتِي |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي چې يو سړى نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغى او وى ويل چې زما خورد |
| نَذَرَتْ أَنْ تَحُجَّ وَ إِنَّهَا مَاتَتْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَوْ كَانَ عَلَيْهَا دَيْنٌ |
| حج كولو نذر منلي ؤ خو هغه مره شوه؟ نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ورته وفرمايل كه په هغې باندې څه مطالبه |
| أَكُنْتَ قَاضِيَهُ ؟ قَالَ : نَعَمْ قَالَ : |
| (قرض وغيره) وي نو آيا ته يې وركولي شې؟ ده جواب ور كړو. چې آو!. نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل. |
| فَاقْضِ دَيْنَ اللهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِالْقَضَاءِ .[1] |
| نو بيا د الله مطالبه (يعني نذر منلي شوي حج) وكړه ځكه د هغې كړل ډير ضروري دي. |

**توضيح: فاقض دين الله:** څنګه چې د دې نه مخكې د اوم (۷) حديث په ضمن كې لكلي شوي دې چې اولاد او وارث كه د خپل مورث د طرفه حج كول غواړي نو وصيت كول او د مال وركلو نه بغير هم د

---

(۱) أخرجه البخاري في المسند ۱۱/۵۸٤ رقم الحديث : ٦٦٩٩.

وارث د طرفه صحيح حج كېږي چې د هغې بنياد باندې هغې د حج د مسئلې پوښتنه كړې وه.

## ښځه، خاوند يا د محرم نه بغير حج نه كېږي

| |
|---|
| ﴿٩﴾ وَ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې خلوت دې نه كوي يو سړى د ښځې سره |
| وَلَا تُسَافِرَنَّ امْرَأَةٌ إِلَّا وَ مَعَهَا مَحْرَمٌ. |
| (يعنې د پردې سړي او پردې ښځې په يو ځاى كې راغونډيدل) او سفر دې نه كوي يوه ښځه د محرم نه بغير |
| فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ اكْتُتِبْتُ فِي غَزْوَةِ كَذَا وَ كَذَا |
| دې او ريدو سره يو سړي وويل چې يا رسول الله! چې په فلانۍ فلانۍ غزوه كې زمانوم ليكلې شوى دى |
| (يعنې فلانې جهاد چې كېدلو والا دي او لښكر روانيدو والا دى په هغې كې زمانوم ليكلې شوي دي |
| وَ خَرَجَتِ امْرَأَتِي حَاجَّةً |
| چې زه هم د لښكر سره يو ځاى لاړ شم) او حال دا چې زما ښځې د حج د سفر كولو اراده كړې ده؟ نو څه وكړم؟ |
| آيا جهاد وكړم او ښځه ځان ته حج ته پرېږدم او يا د ښځې سره لاړ شم او جهاد ته لاړ نه شم. نبي كريم |
| قَالَ: اِذْهَبْ فَاحْجُجْ مَعَ امْرَأَتِكَ.[1] |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل لاړ شه او د خپلې ښځې سره حج وكړه (ځكه جهاد ته تلونكې خو ډير دي خو د |
| ښځې سره تلونكى ستا نه بغير بل څوک محرم نشته). |

**توضيح: رجل بامرأة:** يعنې يو سړى دې د پردې ښځې سره هېڅكله هم نه كيني. (المرقات ٥/٣٨٦)

**ولا تسافرن:** يعنې د دري ورځو او دري شپو په مسافت پورې هيڅ يوه ښځه اګر كه هغه پيغله وي او كه بوډۍ وي. خپل محرم يا خاوند نه بغير به هر ګز سفر نكوي. ۴۷ ميله يا تقريبًا ۷۵ كلوميټره مسافت سفر دى. (المرقات ٥/٣٨٦)

**ذومحرم:** د شريعت په اصطلاح كې محرم هغې ته وايي چې د هغې سره د نكاح كول حرام وي اګر كه دا حرمت د قرابت د وجې نه وي او د رضاعت د وجې نه وي يا د مصاهرت د وجې نه وي. د محرم لپاره شرط دې چې عاقل بالغ وي او مجوسي نه وي ځكه د مجوسو په نزد د محرم هيڅ احترام نه وي.

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ١٤٢٠٦ رقم الحديث :٣٠٠٦، ومسلم في صحيحه ٢ ٩٧٨ رقم الحديث: ١٣٤١/٤٢٤.

د حديث مطلب دا را اواتلو چې د پردي سړي او ښځې په تنهايئ کې ناسته حرامه ده. همدغه شان خاوند او د محرم نه بغير د ښځې تر ۴۸ ميله پورې سفر کول حرام دی. وس پاتې شو چې د حج په سفر د ښځي د تلو مسئله. نو پدې د فقهاو اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف** :امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي که چې د حج کونکې ښځې سره سفر کې د نورو ښځو ښه تولګې وي او په دې ښځه باندې حج کول لازم شي. امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي که چرې د هغې سره يوه د اعتماد قابله ښځه هم وي نو بيا هم پدې ښځه باندې حج کول فرض شي. (المرقات ۵/۳۸۶)

امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ او امام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې که د ښځې سره محرم نه وي نو پدې باندې حج فرض نه دی د محرم شتون د فرضيت د حج لپاره ضروري دی. ظاهر حديث د احنافو او حنابلوو دليل دی. (المرقات ۵/۳۸۶)

**اکتتبت في غزوة**: يعنې زما نو به فلانې فلانې غزوه کې ليکلي شوې دی. ما د مجاهدينو سره جهاد د تللو لپاره نوم ليکلي دی. او دلته ښځې حج ته دتللو اراده کړې ده. اوس زه څه وکړم. د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جواب مطلب دا ؤ چې جهاد کې ستا په ځاې يو بل څوک تللې شي ، او ښځې سره ستا تلل متعين او لازم دي لهذا ښځې سره لاړ شه. د دې حديث نه معلومه شوه چې د صحابه کرامو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ په زمانه کې به جهاد کې نو ليکلي کېدو. نن سبا تبليغي حضراتو جهاد پرېښودي دي او د جهاد دا نقشه خپلو چلو، ګشتونو، سه روزو او نورو غير معروف عملونو لپاره استعمالوي. (المرقات ۵/۳۸۶)

## ښځو ته په حج کې د جهاد ثواب ملاويږي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : اسْتَأْذَنْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي الْجِهَادِ. |
| عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وايي چې د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د جهاد (کې تللو) اجازه وغوښتله نو نبي کريم |
| فَقَالَ : جِهَادُكُنَّ الْحَجُّ.[1] |
| صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې ستاحج جهاد دی (يعنې په تاسو ښځو باندې جهاد کول واجب نه دی د دې |
| په ځاې حج ته لاړ شی په شرط د دې د حج کولو استعداد لری. |

**توضيح: استأذنت**: څنګه چې جهاد ثواب ډير دی. قرآن او حديث د ايمان نه وروسته د ټولو نه ډير فضائل د جهاد دې. نو څکه حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا هم د دې لوې اجر ګټلو لپاره په جهاد کې د تللو

(۱) أخرجه البخاري ۳۲/٤، رقم الحديث : ۲۸۷۵.

اجازت وغوښتلو. نو نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل. د ښځو جهاد حج دی. الله تعالی ښځو ته حج کې د جهاد ثواب ور کوي. ځکه به حج مشقت هم شته او لرې ځای سفر هم پکې شته. خپل خپلوانو او د کور او د وطن نه لريوالي هم شته دی. نو ځکه الله تعالی دي نازکه دلي (ښځو) ته د ميدانِ جهاد د ثواب د حج په سفر کې ورکړو. (المرقات ۵/۲۱۲)

## د محرم نه بغير د ښځې د سفر کولو څه حد دی؟

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَا تُسَافِرُ امْرَأَةٌ مَسِيرَةَ |
| ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل چې سفر دې نه کوي يوه ښځه په اندازه |
| يَوْمٍ وَ لَيْلَةٍ إِلَّا وَ مَعَهَا ذُو مَحْرَمٍ.[1] |
| د يوې ورځ او د يوې شپې مګر کولی يې شي خو په هغه وخت کې چې محرم ورسره وي. |

**توضيح: مسيرة يوم وليلة:** ښځه څومره مسافه د خاوند يا د محرم نه بغير تللی شي د او څومره مسافه سفر ځان له نشي کولی؟ پدې کې احاديث او روايت مختلف دي. پدې په حدثي کې دا دي چې ښځه يوه ورځ او يوې شپې مسافه په مقدار سفر د محرم نه بغير نشي کولی. د دينه مخکې چې يو روايت تېر شوي په هغې کې څه حد مقرر شوي ندی. بلکه ويلې شوي چې ښځه د محرم نه بغير مطلقًا سفر نه شي کولی مرقات شرح مشکوة کې ملا علي قاري صيب فتح القدير ابن همام په حواله سره ليکلي دي چې بخاري او مسلم کې داسې حديث دي لا تسافرن امرأة ثلاثًا ومعها ذو محرم. په دې کې د وفوق ثلاث الفاظ هم راځي. بخاري شريف کې ثلاثة ايام الفاظ هم شته دی. (المرقات ۵/۳۸۷)

اوس د دې ټولو رواياتو په نظر د دې خلاصه دا را ووتله چې يو قسمه روايات وايي چې ده دري ورځو مسافه او د هغې نه ډير سفر د ښځو لپاره منع دی. دې دينه کم جائز دی. دويم قسمه روايات وايي چې د دوه ورځو سفر د محرم نه بغير منع دی. د دينه کم جائز دی. بعضې رواياتونه وايي چې بغير د محرم نه د يوې ورځې نه ډير سفر منع دی. د دينه کم جائز دی. او يو قسمه رواياتونه بخې منع کوي. په هغې کې د مسافې قيد او حد نشته. پدې رواياتو کې په ښکاره تعارض دی. د دې تعارض حل دا دي چې اصل مدار د هغوی په رواياتو باندې دي چې په هغې کې د درې ورځو مسافې ذکر

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵٦٦/۲ رقم الحديث :۱۰۸۸، ومسلم في صحيحه ۹۷۵/۲ رقم الحديث. ۱۳۳۸/٤۱۳.

دی. هغه مسافت قصر دی. کوم چې ۴۸ میله دی. چې تقریبًا اوو سل (۷۰۰) کلو متره دی. د دینه دیر سفر کو مه ښځه د محرم نه بغیر نه شي کولی. حکم همدغه دي خو که د فتني خطره وي نو د دوه ورځ د مسافي نه هم پاتې کولي شی. او که د فتني خطره د حد هم دیره ویره لري نو د یوي ورځي په مسافت برابر هم یوه ښځه ځان له سفر کولو نه منع کولي شي. په اعلاء السنن کې نو تفصیل ذکر دی. (اعلاء السنن :۹،۸،۷/۱۰).

د شیخ عبد الحق محدث دهلوي د کلام نه بلکل واضحه ده چې د دې ټولو روایاتو خلاصه دا ده چې ښځه ځاږ ته سفر بلکل مه کوی اګر که مسافه لږه وي یا ډېره. انحصار به مدار ندي بلکه به فسادي احوالو باندې مدار دی. (اشعة اللمعات :۳۲۳-۲/۲۲).

## د حج د مواقیت حکم

﴿۱۲﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : وَقَّتَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم مقرر کړو (میقات د غیر مکې والاو لپاره) د احرام

لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ : ذَا الْحُلَيْفَةِ وَلِأَهْلِ الشَّامِ : الْجُحْفَةَ وَلِأَهْلِ نَجْدٍ : قَرْنَ الْمَنَازِلِ

تړلو په ځای داسې چې د مدینې والاو لپاره ذو الحلیفه، شام والاو لپاره حجفه، نجد والاو لپاره قرن منازل

وَ لِأَهْلِ الْيَمَنِ : يَلَمْلَمَ فَهُنَّ لَهُنَّ

او دیمن والو لپاره یلملم. دا ټول د ذکرشوې علاقې والو لپاره د احرام تړلو ځایونه دي او د دې ځایونونه

وَ لِمَنْ أَتَى عَلَيْهِنَّ مِنْ غَيْرِ أَهْلِهِنَّ

د تېریدو والاهغه خلکو لپاره (هم همدغه میقات دی) چې هغه د دې علاقونه علاوه د نورو علاقو وي

(مثلاً هندوستاني چې کله د یمن په لاره به د یلملم نه احرام وتړي. همدغه شان د نورو ملکونو والاو

لپاره هم همدغه شان دی. چې د هغوی په لارو کې کوم میقات راځي هغه ځای نه د دې احرام وتړي) او

لِمَنْ كَانَ يُرِيدُ الْحَجَّ وَ الْعُمْرَةَ فَمَنْ

دا احرام او احرام تړلو ځایونه) د هغه خلکو لپاره دي هغه د حج او د عمرې اراده وکړي. او کوم سړی

كَانَ دُونَهُنَّ فَمُهَلُّهُ مِنْ أَهْلِهِ وَ كَذَاكَ

چې د دې ځایونو دننه او سیږي نو هغه لپاره د احرام تړلو ځای د هغې د کور نه دې. او همدغه شان تر

| وَ كَذَاكَ حَتّٰى أَهْلُ مَكَّةَ يُهِلُّوْنَ مِنْهَا.[1] |
| --- |
| دې چې مکې والا په مکه کې احرام وتړي. |

**توضیح**: **وقت**: د **توقیت** نه دي میقات مقرر کولو ته وایي په دې حدیث کې د مواقیت بیان دی مواقیت د میقات جمع ده د حج د احکاماتو یو اصطلاحي ټکې دی. میقات هغه ځای او مقام ته وایي د کوم ځای نه چې او عمره کونکې لپاره احرام تړل لازم کیږي. که کوم حاجي یا عمره کونکې د میقات نه بغیر د احرام تړلو نه مخکې شو نو د هغه مواخذه به کیږي چې د هغې تفصیل مخکې راځي. (المرقات ۵/۳۸۹)

**د میقات اقسام**: یو میقات زماني دي او یو میقات مکاني دی. حج لپاره میقات زمانط شوال د ذوالقعده او ذوالحج اوله عشره ده. تر څو پورې چې د شوال میاشت نه وي شروع شوې نو د حج احرام نشي تړلي مثلاً په رمضان کې د عمرې احرام تړلي شي خو څوک د حج لپاره دویم میقات مکانې دي یعني هغه مقام کوم ځای نه چې بغیر له احرامه تېرېدل بنه نه وي. میقات مکاني پنځه دي. خو په دې حدیث کې د څلورو ذکر راغلي دی. چې د هغې تفصیل داسې دی. (المرقات ۵/۳۸۹)

**ذوالحلیفه**: دا د یو ځای نوم دي چې مدینه منوره کې د جنوب د اړخ نه تقریبًا سل کلومتره مسافه باندې دی. دي مقام ته بېر علي او ابیار علي هم وایی. دا مقام مدینه او د مدینې د اړخ نه د راتلونکو لپاره میقات دی. (المرقات ۵/۳۸۹)

**الجحفة**: دا هم د همغه ځای نوم ې کوم چې د مکې مکرمې نه ۱۸۸ کلومټره مسافه باندې دی. د قریشو به دور کې دا مقام د هغه تجارتې لارو مرکزې پړاوو وو. وس دا ځای غیر اباد دی. دیته نژدې رابغ ده کومه چې نن سبا مشهوره ده. مدینې نه چې کله سړی د بدر مخکینې لاره باندې مکې ته راځي نو دا مقام په لاره کې وي. شام او مصر د اړخ نه راتلونکې خلکو لپاره دا مقام میقات دی. (المرقات ۵/۳۸۹)

**قرن المنازل**: دا د یو ځای نوم دي چې د مکې مکرمې نه ۴۸ کلومیټره مسافې سره طائف باندې پروت دی. د نجد او ریاض خلکو لپاره هم دا میقات دی. (المرقات ۵/۳۸۹)

**یلملم**: یلملم د یو ځای نوم دی. د یمن خلک چې کله مکې ته راځي نو د هغې لاره په دې ځای وي.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۳۸۷ رقم الحديث: ۱۵۲۶، ومسلم في صحيحه ۲/۸۳۸ رقم الحديث: ۱۱/۱۱۸۱

هندوستان، پاکستان او د افغانستان خلکو له هم يلملم ميقات دی. (المرقات ۵/۳۸۹)

**ذات عرق**: پاس ذکر شوو مواقيت نه بغير او يو بل ميقات هم شته دي چې د هغې نو ذات عرق دی. چې د هغې ذکر پاس حديث کې ۱۳ کې راغلي دي. دا ځای مکې مکرمې سره عراق ت تللو لاره کې تقريبًا ۹۷ کلوميټره مسافه کې پروت دی. د عراق نه راتلونکو خلکو لپاره هم دغه ميقات دی.

**فهن لهن**: دې کلمې باندې پوهيدل گران دي ځکه د لهن مرجع تعين کول گران دي. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ د دې داسې توجيه کړې ده. **فهذه الواضع مواقيت لهذه البلدان اى لا هلهن الموجودين.** يعني دا مواقيت د ځاينو خلکو لپاره دي کوم چې دلته اوسيږي او د هغه خلکو لپاره هم دلته مواقيت شته کوم چې پدې علاقو باندې تيريږي اگر که هغوی د دې علاقو وسيدونکې نه وي. (المرقات ۵/۳۹۰)

**فمن کان دونهن**: دلته يو څو ټکو باندې پوهه کيدل ضروري دي چې د حج اصطلاحي ټکې ذهن ته راشي.

**آفاقي**: دا هغه سړی ته وايي کوم چې د ذکر شوې مواقيت نه بهر اوسيږي مثلاً پاکستاني وي يا هندوستاني وې د مدينې منوري وسيدونکې وې.

**ميقاتي**: دا هغه سړی ته وايي کوم چې پاس ذکر پنځه مواقيتو کې دننه اوسيږي خو ځمکه يې د حرم نه باروي.

**ارض الحرم**: ده هغه پاکې ځمکې ته وايي چې په هغې کوم قسم وابنه نه ريبل کېږي او نه ښکې ښکار کېږي. نه کوم کافر هلته تلې شي. په دې کې وسيدونکې سړی ته حرمي او عام وسيدونکې ته اهل الحرم وايي. د جدې نه تللو کې په لاره کې شميسي مقام کې د تفتيش مرکز راځي. هم دغلته نه د حرم ځمکه شروع کېږي. او د مدينې مغورې نه راتللو کې په لاره مقام تنعيم نه د حرم ځمکه شروع کېږي. په دواړو ځاينو کې ليکلي شوي دي ممنع دخول المسلمين. مسجد حرام د احترام په وجه حرام ويل کېږي او يا په دې ښکار کول حرام دې. وابنه ريبل حرام دې. د کافر سړی ننوتل حرام دې او جنگ او فساد کول حرام دي.

**ارض الحل**: دې ځمکې ته حل هم وايي. د حرم د ځمکې نع بغير ټوله دنيا حل ځمکه ده. د حل مطلب دا چې هلته ښکار کول، وابنه ريبل او کافرو گرځيدل ټول ناجائز دي بهر حال دا خبره مغزو کې ساتل په کار دي چې د ميقات زماني نه مخکې د حاجې لپاره احرام تړل جائزنه دې. او ميقات مکانې نه مخکې احرام تړل جائز دي د ميقات زمانې تعلق آفاقې او ميقاتې دواړو قسمونو خلکو سره دی. او

دميقات مكاني احرام تعلق دآفاقي سره دی په ميقات کې داخل سړی د خپل کور نه احرام تړلي شي.

**د ميقات نه د احرام تړلو نه بغير د تېريدو مسئله** : **لمن كان يريد الحج والعمرة** : په دې باندې د ټولو اتفاق دی چې کوم سړی د حج يا عمرې په اراده مکې ته روان وي نو د دې مواقيت د احرام تړلو نه بغير نشي تېريدلی خو آيا کوم سړی د خپل ذاتي کار په نيت د دې مواقيت نه د احرام تړلو نه بغير مکې ته داخليدلي شي او که نه؟ په دې کې د فقهاو اختلاف دی.

**د فقهاو اختلاف** : د شوافعو په نز چې د کوم سړی اراده د حج يا د عمرې نه وي نو هغه بغير د احرام نه د مواقيت نه تېريدلي او مکې مکرمې ته داخليدلي شي. ائمه د احنافو په نز آفاقي لپاره بغير د احرام نه د دې مواقيت نه تېريدل مطلقاً ناجائز دي. به شرط د دې چې مکې د ننوتلو اراده وي اگر که هغه د تجارت کولو اراده هم وي. (المرقات ۵/۳۹۰)

**دلائل** : د شوافعو علماء د بحث لاندې حديث ذکر شوې **لمن يريد الحج** د ټکو نه د مفهوم په حيثيت مخالف استدلال کوي. يعنې د چې اراده چې د حج او عمرې وي نو هغوی لپاره احرام ضروري دی. نو د دينه معلومه شوله چې د چا اراده دا نه وي نو هغه بغير د احرام نه مکې مکرمې ته داخليدلي شي. شوافعو د مکې د بريا په ورځې د نبي کريم ﷺ بغير د احرام نه مکې ته ننوتلو هم استدلال کړې دی. د احناف ائمه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د روايت نه استدلال کوي چې په مصنف ابن ابي شيبه او طبراني کې دې ټکو سره ذکر شوې دي. (المرقات ۵/۳۹۰)

**ان النبي صلي الله عليه وسلم قال لا تجاوز المواقيت الا باحرام** (علاء السنن ج ۱ ص ۱۷)

په بعضې روايا تو کې د **لا يجاوز والوقت لا باحرام** د ټکې دي او بعضو کې **لا يجاوز احد الميقات الامحرما** ټکې هم شته دی. احناف عقلي دليل داسې وړاندې کوي چې د احرام تړلو اصل مقصد د حرم ځمکه او هغه بقئه مبارکه اود رحابِ طاهره تعظيم او تکريم دی. او دا ده ټولو لباره عام دي. اگر که هغه حج او عمرې والا وي يا تجارت والا وې او يا د څه بل څه غرض لپاره وي نو هيڅ فرق نه کوي. (فتح القدير : ۲/۴۳۳)

**جواب** : د شوافعو د اولني دليل نه دا دي چې مفهوم مخالف زمونږ په نزد دليل ندی. او چې کله منطق خلاف هم وي نو بيا د تفاوت قابل هم ندی. د دوي د دويم دليل جواب دا دي چې نبي کريم ﷺ د مکې د بريا په ورځ د احرام نه تړلو نه بغير داخليدل د نبي کريم ﷺ خاصه وه. نو تر يوي ورځي پورې هغه قتال کول هم د نبي کريم ﷺ يوه خاصه وه. بهرحال دلائل که څنګه هم وي. د احنافو په مسلک باندې نن سبا عمل کول ممکن نه دي. په دې کې لوي حرج دی.

هره ورځ لاکھونه خلک مکه ته ځي راځي، لکھونه ګاړې او ډریوران او مزدوران به څه کوي؟ احنافو لۀ په دې کې لږه نرمي په کار ده. (فتح القدير: ۲/۴۳۳)

**دونهن:** د دې کلمې مطلب دا دی چې کوم خلک د میقات د ننه خو د حرم د حدودو نه بار اوسیږي نو هغوی لپاره احرام تړلو ځای د هغوی کور نه تر د حرم د حدودو پورې دی. هغوی د بار میقات تللو او هلته د احرام تړلو ضرورت نشته دی. (المرقات ۵/۳۹۰)

**وکذاك وكذاك:** د دې کلمې مطلب دا دی چې د حرم د حدودو نه چې بار کوم خلک په ارض حل کې اوسیږي هغوی له میقات ته د تللو ضرورت نشته دي او د حرم حدودو ته تللو ضرورت شته. حتي اهل مکة یعنې کوم خلک چې د حرم په حدودو کې اوسیږي یعنې مکې خلک دي نو هغوی له پکار ده چې د هلته نه احرام وتړي کم ځای کې چې اوسیږي اګر که هغه د حرم سره وي او یا د خپل کور سره اوسیږي نو هغوی ته بار میقات یا ارض حل پورې د تللو ضرورت نشته دی. (المرقات ۵/۳۹۰)

دا د حج حکم دي خو د عمرې لپاره ضروري دي چې د حرم والا د ارض حل نه احرام وتړي یعنې د حرم د حدودونه دې بار لاړ شي مثلاً تنعیم یا جعرانه نه دې احرام وتړي. ځکه هغه عمرخ د حرم دننه طواف او د سعي نوم دی. او هم هلته ادا کیږي. لهذا یو قسم سفر کول ضروري دي او حج خو د حرم بار په عرفات کې کیږي لهذا د دې لپاره سفر د حرم نه شروع کیږي نو د هم هلته نه د احرام وتړلي شي. (المرقات ۵/۳۹۱)

## که د دوه میقاتو نه د تیریدو امکان وي نو باید څه وکړي شي؟

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ جَابِرٍ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مُهَلُّ أَهْلِ الْمَدِينَةِ مِنْ ذِي الْحُلَيْفَةِ |
| جابر رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل د مدینې خلکو لپاره د احرام ځای ذوالحلیفه |
| وَالطَّرِيقُ الْآخَرُ الْجُحْفَةُ وَمُهَلُّ أَهْلِ الْعِرَاقِ مِنْ ذَاتِ عِرْقٍ وَمُهَلُّ أَهْلِ نَجْدٍ قَرْنٌ |
| دي او بله لاره حجفه ده د عراق خلکو لپاره د احرام ځای عرق دی د نجد خلکو لپاره د احرام ځای قرن دي |
| وَ مُهَلُّ أَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمُ.[1] |
| او د یمن خلکو لپاره د احرام ځای یلملم دی. |

**توضیح: مهل:** میم باندې ضمه ده او ها باندې فتحه ده او لام باندې شد دی. ملا علي قاری رحمه الله

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۸٤۱ رقم الحديث ۱۸/۱۱۸۳.

وايي چې دا اسم مكان دي يعنې د احرام پر ځاى، هلال احرام تړلو تا وايي، تليه لوستلو او نيت كولو ته وايي. احرام تړلو سره سړى تر هغه وخته پورې محرم جوړ شي چې د احرام نه ورسته هغه نيت وكړي او تلبيه ووايي. اصل نيت تلبيه لوستل دي. (المرقات ۵/۳۹۱)

**والطريق الاخر:** د دې كلمې مطلب دا دي چې د مدينې د خلكو ميقات ذوالحليفه دي خو كه د ذوالحليفه والا د مدينې پر ځاى د بدر په لاره حجفه باندې مكه ته تللى غواړي نو د ذوالحليفه پر ځاى حجفه او د رابغ نه احرام تړلي شي. ده ضروري نه ده چې د ذوالحليفه نه احرام وتړي. د مدينې نه مكې ته د تللو دوه (۲) لارې دي يوه مشهوره لاره طريق الهجر ده چې د هغې شروع په ذوالحليفه كې ده او بله لاره زړا لاره ده كومه به چې د هجرت نه مخكې د قريش خلكو استعماله وله. بدې لاره كې د مدينې نه ډير لرې مكې ته نژدې د جحفه ځاى راځي. كه څوك په دې لاره لاړ شي نو د حجفه نه احرام تړلي شي. (المرقات ۵/۳۹۱)

**ذات عرق:** دا ځاى د مكې مكرمې نه دوه پړاوه او دوه منزله او د دوه ورځو په مسافه كې پرته ده. د مكې نه ۹۷ كلوميټره ليرې ده. علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې عرق وركوټي غر ته وايي. په دې ځاى كې وركوټي غر دي هغې ته ذات عرق وايي. بهر حال دا خبره د ياد لرو وړ ده چې كوم خلك د دې پنځو مواقيتو په چاپيريال كې پراته نه دي او هغوى تېريدل كوم ميقات باندې نه كېږي نو د هغوى لپاره مشكل دا دي چې د كوم يو ميقات په چاپيريال او يا د هغې په برابر كوم ځاى وي نو همغه ځاى به د هغوى لپاره ميقات وي. (المرقات ۵/۳۹۱)

## د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حج او عمرې شمار

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: اعْتَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعَ عُمَرٍ كُلُّهُنَّ فِي ذِي الْقَعْدَةِ |
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څلور عمرې كړې دي او دا ټولې په ذي قعده كې كړې |
| إِلَّا الَّتِي كَانَتْ مَعَ حَجَّتِهِ : |
| دي او دې نه بغير يې يوه عمره د حج سره كړې وه او ذي الحجه په مياشت كې يې كړې وه (او د هغه |
| عُمْرَةً مِنَ الْحُدَيْبِيَةِ فِي ذِي الْقَعْدَةِ وَ عُمْرَةً مِنَ الْعَامِ الْمُقْبِلِ |
| څلورو عمرو تفصيل دا دي چې) يوه عمره يې د حديبيه نه ذي قعده مياشت كې بله عمره بل كال هغه هم د |
| فِي ذِي الْقَعْدَةِ وَ عُمْرَةً مِنَ الْجِعْرَانَةِ حَيْثُ قَسَمَ غَنَائِمَ حُنَيْنٍ |
| ذي قعده مياشت كې كړې وه دريمه عمره د جعرانه نه چرته چې د غزوه حنين مال غنيمت تقسيم شوي |

| فِيْ | ذِيْ | الْقَعْدَةِ | وَ | عُمْرَةً | مَعَ | حَجَّتِهِ.[1] |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وو دا عمره هم د ذي قعده میاشت کې وه او څلورمه عمره حج سره چې هغه په ذي الحجه کې کړې وه. | | | | | | |

**توضیح**: اربع عمر: نبي کریم ﷺ د حج فرض کېدلو نه وروسته یوه ځل حج کړي ؤ او د هجرت نه مخکې د بعضو علماو د قول مطابق نبي کریم ﷺ به هر کال حج کولو. اوس پاتې شوه دا خبره چې د هجرت نه وروسته د نبي کریم ﷺ د عمرو شمېره څومره ده؟ پدې روایاتو کې لږ شان اختلاف ښکارې. د حضرت انس رضي الله عنه د روایت مطابق د نبي علیه الصلاة والسلام ټولې عمرې څلور وي. درې عمرې یې ذي قعده میاشت کې وې او یوه عمره د ذالحجه میاشت کې وه. نو د نبي علیه الصلاة والسلام اولنۍ عمره ۲هجرۍ کې په حدیبیه کې شوې وه. په دې کې اگر که نبي علیه الصلاة والسلام د عمرې احکامات پوره نکړې شول. ځکه چې کفارو نبي علیه الصلاة والسلام مکې ته ننوتلو نه منع کړې ؤ خو د ثواب په اعتبار سره دا پوره عمره وه. او ذي قعده په میاشت کې وه. د نبي کریم ﷺ دویمه عمره ۷هجرۍ کې عمرة القضاء عمره وه. کومه چې حدیبیه والا عمره نبي علیه الصلاة والسلام قضائي وکړه. اوده عمره هم په ذي قعده میاشت کې وه د نبي علیه الصلاة والسلام دریمه عمره ۸ هجرۍ کې د جعرانه نوم ځای کې کړې وه. د شوال په میاشت جنګ حنین شوي ؤ او ټول غنیمتونه دجعرانه نوم ځای کې راغونډ کړي شو او بیا تقسیم کړي شو. نو په دغه وخت نبي علیه الصلاة والسلام د خپل یو څو ملګرو سره په پټه د ذي قعده په میاشت کې عمره وکړه. (المرقات ۵/۳۹۲)

او د نبي کریم ﷺ څلورمه عمره په ۱۰ هجرۍ کې د حجة الوداع په موقع شوې وه. دا عمره د ذالحجه په میاشت کې وه. دا خو د بحث لاندې د حدیث تفصیل وو. خو د دېنه وروسته د حضرت براء بن عازب ﷺ روایت کې دي چې د نبي کریم ﷺ ټولې درې عمرې وې. د دې روایت د دې ذکر شوې روایت سره تعارض دی. نو ددې جواب دادي چې براء بن عازب رضي الله عنه حقیقت کې د حدیبیه والا عمره نه ده شمېرلې او د هغې وجه دا ده چې په صلح حدیبیه کې د عمرې احکام په اعتبار سره پوره نه وو. لهذا براء بن عازب رضي الله عنه هغه ذکر نه کړه. خو حضرت انس رضي الله عنه هغه پوره عمره شمیر کړه ځکه چې د ثواب په اعتبار سره هغه پوره وه (المرقات ۵/۳۹۳).

بهر حال حج او عمره کې فرق دا دی چې حج د عرفات وقوف. طواف زیارت. د صفا مروه منډې او د رمې جمرات نو دی. او عمره فقط د بیت الله او د صفا مروه په مینځ کې د منډې نوم دی. خو دا چې د

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٤٣٩/٧ رقم الحديث :٤١٤٨، ومسلم في صحيحه ٩١٦/٢ رقم الحديث: ١٢٥٣/٢١٧.

سنت او نفل هم وي. عمره فرض نه وي فقط سنت او نفل وي او که څوک نذر ومني نو عمره بیا واجب شي. دا د احنافو او مالکي مسلک دي خو شوافع او حنابله په نزد عمره واجب ده.

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: اعْتَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذِي الْقَعْدَةِ قَبْلَ |
| براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې عمره کړې وه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ذي القعده میاشت کې مخکې |
| أَنْ يَحُجَّ مَرَّتَيْنِ ".[1] |
| د حج نه دوه ځلې. |

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## حج صرف يو ځل فرض دی

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ اللهَ |
| حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (کله) وفرمایل چې ای خلکو! الله تعالی |
| كَتَبَ عَلَيْكُمُ الْحَجَّ. فَقَامَ الْأَقْرَعُ بْنُ حَابِسٍ فَقَالَ: أَ فِي كُلِّ عَامٍ |
| په تاسو حج فرض کړې دی نو اقرع بن حابس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دریدو او وې ویل چې آیا هر کال حج کول فرض |
| يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ: " لَوْ قُلْتُهَا: |
| دی یارسول الله؟ نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل که ما د حج (هر کال فرض کیدو) باره کې ویلي وې نو یقیناً |
| نَعَمْ لَوَجَبَتْ وَ لَوْ وَجَبَتْ |
| (هر کال حج کول) واجب (یعنې فرض) کیدل او که هر کال حج کول فرض وې نو تاسو به (په دې حکم |
| لَمْ تَعْمَلُوا بِهَا وَ لَمْ تَسْتَطِيعُوا وَ الْحَجُّ مَرَّةٌ |
| باندې) عمل نه شو کولي او نه تاسو استعداد لرئ حج (په ټول ژوند کې په شرط د استعداد) یو ځل |
| فَمَنْ زَادَ فَتَطَوُّعٌ ".[2] |
| فرض دی او که کوم سړی د یو ځل نه ډیر حج وکړي هغه به نفل وي (په هغې به ورته ډیر ثواب ملاوېږي) |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۶۰۰ رقم الحديث: ۱۷۸۱.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۳۴۴ رقم الحديث: ۱۷۲۱.

## د طاقت لرلو باوجود د حج نه کولو سره د ایمان خطره

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ مَلَكَ زَادًا |
| حضرت علي رضي الله عنه راوي دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل کوم سړی چې مالک وي دلارې د |
| وَ رَاحِلَةً تُبَلِّغُهُ إِلَى بَيْتِ اللهِ |
| سامان او د سپرلۍ چې هغه دې بيت الله ته ورسوي (يعني کوم سړی چې د حج کولو قدرت لري) او |
| وَ لَمْ يَحُجَّ فَلَا عَلَيْهِ أَنْ يَمُوتَ يَهُودِيًّا أَوْ نَصْرَانِيًّا وَ ذٰلِكَ |
| (بيا هم) دا حج ونه کړي نو هيڅ فرق نشته دده ديهودي يا د نصراني مرکېدو (او بغير د حج کولو) کې او دا |
| (يعني حج لپاره دلارې سامان او سورلۍ شرط کيدل او د الوي عبادت پرېښودل باندې ذکر شوي اختار) |
| أَنَّ اللهَ تَبَارَكَ وَ تَعَالَى يَقُولُ : ﴿ وَ لِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ |
| ددې لپاره ده چې الله تعالى وايي چې: د الله تعالى (د رضا) د پاره په خلکو باندې حج د بيت الله دی |
| مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا﴾ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.[1] |
| که چيرته دوی بيت الله ته د تللو طاقت لري. |
| وَفِي إِسْنَادِهِ مَقَالٌ وَهِلَالُ بْنُ عَبْدِ اللهِ مَجْهُولٌ وَالْحَارِثُ يضعف فِي الْحَدِيثِ. |

**توضيح:** استعداد يعنې د تلو راتلو مصرف او کورته د بيا راتللو مصارف چا سره وي نو همدغې ته استعداد وايي. دا استعداد که د چا سره وي او هغه حج ځکه نه کوي چې هغه د حج کولو نه انکار کوي او حج نه مني نو دا سړی يقينًا کافر دی. او د يهودو او نصارئ پشان به په کفر مري. خو که د استعداد نه وروسته دا سړی انکار نه کوي. سستي او بې پروايې کوي نو لويه ګناه ده. بيا هغې ته د يهودي يا د نصرانې په مرګ مرکېدو اختار او رول تغليظاً (يعنې د سختې سزا) دی. خو که د دې نه په هغې خوا د قرآن اشارو ته وکتلی شي نو بيا د ويل به مشکل شي چې د استعداد سره هم يو سړی حج نه کوي نو په هغې کې خطره ده چې د مرګ په وخت کې د هغې ايمان واخيستلی شي. ځکه په ذکر شوې آيت کې آخرې برخه داسې ده ﴿ وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ اللهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعَالَمِينَ﴾ (سورت آل عمران: ۹۷) په دې کې هغه سړی طرف ته د کفر نسبت شوی. لکه په دې تاويل هم کيدلی شي خو په ظاهرې تکو

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۷۶/۳ رقم الحديث: ۸۱۲.

کې د کفر ټکې شتون لري او بيا پدې کې دا هم شته چې الله تعالی د مخلوق نه بې حاجته (بې نيازه) دی. لهذا حدیث کې د دې تفسیر دي چې داسې سړی به کافر مړ کېږي نو الله تعالی د مخلوق نه بې حاجته دی د سزا لپاره شته دی. نبي کريم ﷺ دا آيت پوره لوستلي وي ځکه د پوره آيت نه استشهاد کيدلی شي. کيدی شي چې ځوم يو راوي اختصار کړي وي. (المرقات ۵/۳۹۱)

## په اسلام کې د حج پرېښودل جائز نه دي

| ﴿۱۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا صَرُورَةَ فِي الْإِسْلَامِ ". [1] |
|---|
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل په اسلام کې د حج پرېښودل نشته. |

**توضیح:** لاصرورة: پدې تکې کې تا مبالغه ده. صرورت د نکاح او درويشي او رهبانيت خپلول په معنی دی. د نکاح پرېښودلو متعلق پوره بحث په توضيحات څلورم جلد کې شوي دی. خو دلته د صرورت اطلاق د حج پرېښودلو باندې دي يعنې د استعداد سره هم چې کوم سړی حج نه کوي نو دا سړی مسلمان نه دی. او که انکار کوي نو کافر دي او که سستي کوي نو دا کلام تغليظ او تشديد باندې محمول دی. (المرقات ۵/۳۹۷)

## حج علی الفور واجب دي يا علی التراخي؟

| ﴿۱۹﴾ وَ عَنْهُ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَنْ أَرَادَ الْحَجَّ |
|---|
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل کوم سړی چې د حج کولو اراده وکړي نو |
| فَلْيُعَجِّلْ . [2] |
| هغه ته په کار ده چې جلتي وکړي. |

**توضیح: فليعجل:** يعنې کوم سړی چې استعداد لري او د حج اراده يې هم وي نو هغې لره تندي کول پکار دي او حج وکړي ګينې دير امکان لري چې وروسته نه مال پاتې شي، نه صحت او نه حالات اجازت وکړي. نو ځکه تندي پکار ده. اوس په دې کې د فقهاو اختلاف دي چې حج في الفور واجب دي يا علی التراخي.

**د فقهاوو اختلاف:** د احنافو د امامانو په نز که اسباب شتون لري. قافله تياره وي. حالات مناسب وي نو هغه کال حج کول پکار دي. بې له څه عذره وروستوالي کولو سره سړی فاسق کېږي. او شهادت

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۳۴۸ رقم الحديث :۱۷۲۹.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۳۵۰ رقم الحديث :۱۷۳۲.

یې مردود کېږي. او که په دغه دوران کې د هغه مالداره سړی مال تللو نو فرض حج به بیا د هغې نه ختمېږي (ساقط کېږي). او د حج نه کولو په وجه به ګناه ګار وي. امام مالک او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نز هم جائز نه دی. که په دغه حال کې هغه مړ شو نو ګناه ګار به مري. (المرقات ۵/۳۹۷)

## حج او عمره په یو ځل کولو سره غریبي او ګناه ختمېږي

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَابِعُوا بَيْنَ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ |
| ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل حج او عمره په یو ځل کوی. |
| فَإِنَّهُمَا يَنْفِيَانِ الْفَقْرَ وَ الذُّنُوبَ كَمَا يَنْفِي الْكِيرُ خَبَثَ |
| ځکه چې دا دواړه (حج او عمره) غریبي او ګناهونه داسې لرې کوي لکه څنګه چې بټۍ لرې کوی ګند |
| الْحَدِيدِ وَ الذَّهَبِ وَ الْفِضَّةِ وَ لَيْسَ لِلْحَجَّةِ الْمَبْرُورَةِ ثَوَابٌ إِلَّا الْجَنَّةَ.[1] |
| داوسپنې، او لرې ګند د سره زرو او سپین زرو نه او د حج مقبول ثواب د جنت نه بغیر بل هیڅ نه دي. |
| وَرَوَاهُ أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَهْ عَنْ عُمَرَ إِلَى قَوْلِهِ: خبث الْحَدِيدِ. |

## د حج د فرضیت شرائط

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ مَا |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې یو سړی نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلو او وی ویل یا رسول الله! کوم یو څیز |
| يُوجِبُ الْحَجَّ ؟ قَالَ : الزَّادُ وَ الرَّاحِلَةُ.[2] |
| حج واجب کوي؟ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې د لارې مصرف او سپرلی. |

**توضیح: الزاد و الراحلة:** قرآن او حدیث کې حج سره یو تکې د قید لپاره لګولي شوي دي او هغه تکې **من استطاع الیه سبیلاً** دي یعنې حج په هغه سړی باندې فرض دي کوم چې د حج کولو استعداد لري. وس فقهائي کرامو د استعداد داسې بېلا بېل تشریح او توضیح کړي ده. چې د امام شافع او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نز د یو چا سره د مال شتون استعداد دی. اګر که هغه سړی ګوډ وي او یا صاحب فراش (یعنې بستر شوي سړی) وي خو هغې سره مال او دولت شته نو حج په هغې فرض

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۷۵/۳، رقم الحدیث: ۸۱۰.

(۲) أخرجه سنن ابن ماجه ۹۶۷/۲، رقم الحدیث: ۲۸۹۶.

دی. او دا چې هغه خپله تللو توان نه لري نو هغه به بل څوک خپل نائب کړي او د مصرف پوره انتظام به وکړي او هغه سړی دي لپاره حج وکړي. دیته حج بدل وايي. (المرقات ۵/۳۹۹)
امام مالك رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د استعداد نه مراد روغ بدن دی. چې کله یو سړی په بدن روغ وي. په هغه حال کې په هغې باندې حج فرض دی. هغه به حج ته ځي. په لاره کې به ګټې او خوري به یې او یا به مخکې ځي او ګټې به یې او خوري به یې ځکه هغه ښه روغ دي نو د بل څه شي ارمان جن ی؟
امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د استعداد نه مراد زاد وراحله دي یعنې د تلو راتلو مصرف و سره وي، د لارې کرایه وې او یا ورسره خپله سورلۍ وي. او ښکاره خبره ده چې په دې ضمن کې روغ بدن ضروري دي او همدغه شان د لارې امنیت هم ضروري دی. خو د مکې او د چاپیریال خلکو لپاره د سورلۍ شتون شرط ندی. ځکه بغیر د سورلۍ نه هم حج ته تلي شي. (المرقات ۵/۳۹۹)
**د حج د فرض کېدو شرطونه**: لاندې ذکر شوې شرطونه مندلو سره نه وروسته حج فرض کېږي:
۱: مسلمان کیدل، په کافر حج فرض نه دي. ۲: ازاد کیدل، په غلام یا وینځې باندې حج فرض نه دی. ۳: بالغ کیدل، په ماشومانو باندې حج فرض نه دي ۴: عاقل کیدل، په مجنون، لیوني او یا بې هوشه باندې حج فرض نه دی. ۵: استعداد یعنې دمره قدرې د مال مالك وي چې هغه د قرض نه محفوظ وي او د هغې د لارې سامان او د سورلۍ لپاره بس شي او چې د کومو خلکو نفقه په هغې واجب ده نو د هغې لپاره هم دومره پرېږدي چې تر هغې د راتلو پورې هغوی له کفایت وکړي. کومو خلکو سره چې زمکه وي. که هغوی هغه زمکه خرڅه کړي نو دېره پیسه لاسته راتلي شي چې په هغې هغه حج وکړي. نو په هغه حال کې هم خلك استعداد لرونکي دي. دا د بعضو فقهاوو راي ده چې زمکه هم په استعداد کې داخله ده.
**د حج موانع**: تر دې ځای پورې چې کوم شرائط بیان شول هغه دا وو چې چرې هغه وو نه مندلې شي نو حج ببنې فرض کیدلي نشي یعنې د حج فرضیت به نه ثابتېږي او مخکې چې کوم شرائط بیانېږي هغه داسې دي چې په هغې نه مندلو سره به حج خو فرض پاتې کېږي خو چې تر څو پورې چې منع کونکي شیان شتون ولري نو حج ته تلل به ضروري نه وي او چې کله دا منع کونکې لرې شي نو بیا حج ته تلل فرض کېږي. ۱: په بدن کې داسې عوارضو نه محفوظ کیدل چې د هغې په وجه سفر نه شي کیدي لکه ړوند، ګوډ، شل، فلج شوي او یا داسې بوډا چې په سورلۍ نه شي سوریدلی. ۲: د چا سره په بندي کیدل یا د ظالم بادشاه ویره. چې تر څو دا منع کونکې شیان وي نو حج ته تلل فرض نه دي. ۳: ښځې ته د لارې لپاره د لارې ملګرو کې خاوند یا د بل محرم نشتوالی. ۵: ښځې لره په عدت کې کیدل. خلاصه دا چې پاس ذکر شوې څه شرائط دائمي دي او ځینې عارضي دي. عوارض چې کله لرې شول نو حج فرض کېږي. (البنایة ۴/۱۹:۱۷)

**د حج فرائض**: حج کې پنځه شيان فرض دي: ۱: احرام تړل فرض هم دي او شرط هم. ۲: وقوف عرفات کې اودريدل اگر که هغه يو منټ هم وي او اگر که شپه کې وي. ۳: د طواف زيارت اکثر فرض ده يعنې څلور شوط (څلور چکري). ۴: پاس ذکر شوي فرائضو کې ترتيب ساتل يعنې احرام د وقوف او وقوف د طواف زيارت نه مخکې کول. ۵: هر فرض په هغه وخت او په هغه ځای کې کول کوم ځای کې چې فرض دی. مثلاً د وقوف عمل په ميدانِ عرفات کې دی. طواف بيت الله کې دي او احرام ميقات سره دی. (قدوري: ۱/۹۰)

**د حج واجبات**: حج کې ټول شپږ واجبات دي: ۱: وقوف مزدلفه، ۲: سعي، ۳: رمي، ۴: آفاقي لپاره طواف قدوم، ۵: حلق يا قصر کول، ۶: هر هغه عمل چې د هغې په پرېښودلو باندې دم راځي. به نورو ټکو کې پاس ذکر شوي کارونه به ترتيب سره کول. (قدوري: ۱/۹۰)

## د غوره حج او د ښه حاجي صفت

﴿۲۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: سَأَلَ رَجُلٌ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: مَا الْحَاجّ؟

ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې يو کس د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وکړه چې د حاجي صفت او کيفيت

فَقَالَ: الشعث التَّفِل

څه وي؟ نبي عليه السلام وفرمايل په گرد کې ککړ سر، ګډوډ ويختان او د خولو او خيري په وجه بوی راځي

(يعنې د ښاست نه منع لکه څنگه چې يو رښتني عاشق او د مخلص محبت کونکي نښه وي). بيا يو

فَقَامَ آخَرُ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ اى الْحَجّ أَفْضَلُ؟

بل سړی پاڅېدو او وې ويل چې يا رسول الله! حج کې (د ارکانو نه وروسته) کوم شي ډير ثواب ګټونکي

قَالَ: الْعَجُّ وَ الثَّجُّ.

دی؟ نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل لبيک سره آواز او چتول او قرباني وينه تويول. د دې نه وروسته

فَقَامَ آخَرُ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ مَا السَّبِيلُ؟

يو بل سړی پاڅېدو او وې ويل چې يا رسول الله! سبيل څه وي؟ (يعنې په قرآن کې چې د حج په سلسله

کې دا فرمايلي شوي دي چې من استطاع اليه سبيلا نو په دې آيت کې د سبيل نه څه مراد دی؟ نبي

قَالَ: زَادٌ وَرَاحِلَةٌ. وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ فِي سُنَنِهِ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يذكر الْفَصْلَ الأَخير [1]

عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمایل د لاري سامان او سورلی.

**توضیح: ما الحاج:** یعني کامل حاجي کوم وي. د هغې څه صفت وي؟ (المرقات ۵/۳۹۹)

**الشعث:** یعني د حاجي ښه صفت او ښه حاجي هغه وي چې هغې ویختان د نه وینځلو په وجه ګرد وهلي وي او د نه ګومنځولو په وجه ګډ وډ وي. (المرقات ۵/۴۰۰).

**النفل:** فلم باندې کسره ده خیري ته وایي یعني ښه حاجي هغه وي کوم عطر پرېږدي او خیرن اوسي. **العج:** په زوره زوره تلبیه لوستلو ته عج وایي. (المرقات ۵/۴۰۰)

**الثج:** کثرت سره قرباني او هدایا د څاروو وینې تویولو ته ثج وایي. (المرقات ۵/۴۰۰)

**ما السبیل:** یعني د قرآن آیت کې چې کوم **من استطاع الیه سبیلا** کې چې د **سبیل** تکې راغلي دی. د هغې نه څه مراد دی. (المرقات ۵/۴۰۰)

**الزادوالرحلة:** یعني د تلو راتلو میانه خوراک څکاک وي او د خوراک څکاک سامان سره د سورلی کرایه وي. پخوا زمانه کې به اوښان وو نن سبا هوائي الوتکو د تلو راتلو کرایه مراد ده. اګر که سمندري جهاز کرایه کمه ده خو ظالمانو هغه ختمه کړې ده. (المرقات ۵/۴۰۰)

## د پلار د طرف نه حج کول

﴿۲۳﴾ وَعَنْ أَبِي رَزِينٍ الْعُقَيْلِيِّ أَنَّهُ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابي رزین عقیلی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې منقول دي چې دا د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو او

فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ أَبِي شَيْخٌ كَبِيرٌ لَا يَسْتَطِيعُ الْحَجَّ وَلَا الْعُمْرَةَ

وې ویل چې یا رسول الله! زما پلار ډیر بوډا شوي دی. هغه نه د حج کولو طاقت لري او نه د عمرې

وَلَا الظَّعْنَ قَالَ: حُجَّ عَنْ أَبِيكَ وَاعْتَمِرْ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ [2]

او نه په سپرلی د سپریدلو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې د هغه د طرفه ته حج او عمره وکړه.

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۹۶۷ رقم الحديث: ۲۸۹۶

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۴۰۲ رقم الحديث: ۱۸۱۰.

## د بل لپاره حج کولو نه مخکې خپله حج کول په کار دی

| |
|---|
| ﴿۲٤﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ سَمِعَ رَجُلًا |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د (حج دوران کې) یو سړی نه واوریدل چې هغه د |
| يَقُولُ لَبَّيْكَ عَنْ شُبْرُمَةَ قَالَ : مَنْ شُبْرُمَةُ قَالَ : |
| شبرمه د طرفه لبیک وویل. نبي عَلَيْهِ السَّلَام ترې پوښتنه وکړه چې شبرمه څوک دی؟ دې سړی وویل چې |
| أَخٌ لِي أَوْ قَرِيبٌ لِي قَالَ : أَحَجَجْتَ عَنْ نَفْسِكَ ؟ |
| زما ورور دې یا زما خپلوان دی. بیا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پوښتنه وکړه چې آیا تا خپله حج کړې دی؟ |
| قَالَ : لَا قَالَ : حُجَّ عَنْ نَفْسِكَ ثُمَّ حُجَّ عَنْ شُبْرُمَةَ . رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ وَأَبُو دَاوُد وابنُ مَاجَه[1] |
| ده وویل چې نه. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل اول ته خپله حج وکړه بیا د شبرمه د طرفه حج وکړه. |

**توضیح**: او قریب: او د شک لپاره دی. راوي ته شک پیدا شو. (المرقات ۵/۴۰۱)

**ثم حج عن شبرمة**: شبرمه کې شین باندې ضمه ده. بأء باندې سکون دي او را باندې هم ضمه ده. ددې حدیث د وجې نه او په نورو روایاتو کې د اختلاف نه فقهاوو په منځ په دې با باندې اختلاف شوي دي چې کوم سړی خپله حج نه وي کړي نو هغه بل چا لپاره حج کولي شي او که نه؟ (المرقات ۵/۴۰۲)

**د فقهاؤ اختلاف**: امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ وايي چې کوم سړی په خپله حج نه وي کړي هغه د نورو د طرفه حج نه شي کولی. ځکه چې کله داسې سړی د حج نیت د بل لپاره کوي نو هغه نیت د هغې خپل حج لپاره جوړیږي. د بل له اوښه به نه وي. امام مالک او امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې داسې سړی چې خپله یې حج نه وي کړي هغه د بل لپاره حج کولي شي خو داسې کول مکروه او خلاف اولی دی. که په دې سړی حج فرض وي نو مکروه تحریمي دي او که خپله پدې حج فرض نه وي نو بیا مکروه تنزیهي دی. (المرقات ۵/۴۰۸)

**دلائل**: شوافع او حنابله په د بحث لاندې حدیث نه استدلال کړي دي چې هغه په خپلې مدعا کې واضح دلیل دی. احناف او مالکیه وايي چې د دې حدیث نه مخکې ۷ حدیث کې چې کله خثعمیه

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۴۰۳ رقم الحديث :۱۸۱۱.

ښځې د خپل پلار د طرفه د حج کولو اجازت واغستلو نو نبي کريم ﷺ ورله د حج کولو اجازت ورکړلو او دا يې پوښتنه يې ترينه ونکړه چې تا خپل حج کړي دي او که نا.
جواب د زير بحث حديث کې د جواب ورکولو ضرورت نشته دي ځکه احناف او مالکيه دا حديث استحباب باندې حمل کوي. او داسې کول مکروه ګڼي. (المرقات ۵/۴۰۶)

## د مشرق والاو ميقات

| ﴿۲۵﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : وَقَّتَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لِأَهْلِ الْمَشْرِقِ |
|---|
| ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې نبي کريم ﷺ د مشرق خلکو لپاره د احرام تړلو ځاى (يعني ميقات) |
| الْعَقِيقَ .[1] |
| عقيق متعين کړي دى. |

**توضيح: العقيق**: عقيق د يو ځاى نو دي چې د ذات عرق په محاذ باندې پروت دى. پدې حديث کې هغه خبرې اړخ ته اشاره شوي ده که د څه خلکو مخکې ته هيڅ يو ميقات نه وي تو د احرام تړلو لپاره دې د هغه ميقات محاذ کې چې کوم ځاى راځې هغه بس دى. نو د بحث لاندې حديث کې د مشرق والاوو نه مراد د عراق خلک دي. په دوې کې اکثر په پهلاره کې د ذات عرق ميقات باندې پراته دې. خو د ځينو عراقيانو په لاره کې د عقيق ځاى پروت دى. چې هغه د ذات عرق په محاذاتو کې دى. په دې حديث کې هغه ټولو خلکو لپاره د ذات عرق پشان عقيق هم ميقات ګڼل شوي دى ځينو شارحينو د شرح نه معلوميږي چې حضرت عمر رضي الله عنه دا ميقات مقرر کړي وو. خو ډېره غوره دا ده چې که دا وويلي شي چې د محاذاتو خبره نبي کريم ﷺ يخې وه. حضرت عمر رضي الله عنه خو د عراق د خلکو په ډير خواهش باندې کيدي شي د دې ځاى تعين کړي وي او نور يې هيڅ ندي کړي. په حديث کې د عقيق ذکر شته چې نبي کريم ﷺ دا مقرر کړي دى نو مسئله پاکه ده. بهر حال کوم طرز چې خپل کړي هغه آسان هم دي او عام فهم هم دى. ابن حجر رحمه الله هم همدغه طريقه اختيار کړي ده. ملا علي قارى رحمه الله په بل انداز بيان کړي ده چې هغه ډېره ګرانه ده.

| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَّتَ لِأَهْلِ الْعِرَاقِ ذَاتَ عِرْقٍ.[2] |
|---|
| عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم ﷺ د عراق والو لپاره د احرام تړلو ځاى ذات عرق ټاکلى. |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۳۵۵ رقم الحديث: ۱۷۴۰.
(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۳۵۴ رقم الحديث: ۱۷۳۹.

## د ميقات نه مخکې احرام تړل بهتر دي

﴿۲۷﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ أَهَلَّ
ام سلمه رضي الله عنها وايي چې ما د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي چې فرمايل يې کوم سړی چې احرام
بِحَجَّةٍ أَوْ عُمْرَةٍ مِنَ الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى إِلَى الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ
وتړي د حج يا عمرې لپاره مسجد اقصى (بيت المقدس) نه مسجد حرام (يعنې مکی) پورې (يعنې
بيت المقدس نه حج يا عمرې لپاره روانيدل والا د بيت المقدس نه احرام وتړي او روان شي) نو دهغه
غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ أَوْ
ټول گناهونه بخښلي كيږي. کومې يې چې د دې نه مخکې کړې وي او کوم چې وروسته کوي يا يې
وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ.[۱]
وفرمايل چې د هغه سړی لپاره (ړومبې) جنت واجبيږي (يعنې هغه به شروع کې جنت ته داخليږي).

**توضيح:** او عمرة: دلته لفظ او دتنويع لپاره دي او او وجبت له الجنة کې لفظ او د راوي ته شک جوړ کړي دی. (المرقات ۵/۴۰۳)

**من المسجد الاقصى:** د مسجد اقصى ذکر په دې حديث کې ولې شوي دی په دې کې دوه احتمالات دي: اول احتمال خو دغوره والي په وجه دی. چې بيت المقدس پشان مبارک ځای نه احرام وتړل شي. بيا حاجې يا عمره کونکې په مدينه باندې تېر شي. او د مکې مکرمې پشان مقدس ځای ته راشي نو دغه شان د حاجې سفر د يو مقدس ځای نه شروع شي. او د مدينې پشان مبارک ځای باندې د سفر انتهاء د مکې مکرمې پشان عظيم ځای باندې کيږي. اندازه ولگوی چې دا څومره مبارک سفر دی. نو ځکه د دې د احرام عظمت او غوره والي شته. د مسجد اقصى ذكر كولو دويم احتمال دا دي چې دا ځای د مکې نه ډير لرې دي او د احرام په حالت چې سفر څومره لرې وي نو هغومره به غوره وي. که کوم يو سړی د ممنوعاتو او يا مخطوراتو د احرام نه خپل ځان ساتلي شي نو احرام چې څومره لرې وتړلي شي هغومره غوره دی. گينې د ميقات نه احرام تړل غوره دي. د امام شافعي رحمه الله هم يو داسې قول شته. وس پاتې شوله دا مسئله چې که کوم يو سړی اشهر الحج نه مخکې احرام وتړي يعنې رمضان کې د حج د احرام وتړي. نو د امام شافعي رحمه الله په نز دا احرام د

(۱) اخرجه أبوداود في السنن ۲/۳۵۵ رقم الحديث ۱۷۴۱

حج لپاره ښځې سم نه دی. او د امام ابو حنيفه، امام مالک او د امام حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نز داسې کول مکروه دي. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ د مکروه ټکې مطلق ذکر کړي دي او د فقهاو په اصطلاح کې چې کله مکروه مطلق شي نو د هغې نه مکروه تحريمې مراد اخستلې کېږي. زير بحث مسئله هم مکروه تحريمي په کار ده ځکه چې دا ميقات زمانې نه احرام مخکې دي چې هغه د ضابطې خلاف دي او شوافع خو ديته ښځې جائز نه وايي. (المرقات ۵/۴۰۴)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## اسباب استعمالول د توکل خلاف نه دي

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : كَانَ اَهْلُ الْيَمَنِ يَحُجُّونَ فَلَا يَتَزَوَّدُونَ وَ يَقُولُونَ : |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د يمن والا به کله حج ته راتلل نو د لارې سامان به يې نه راوړو بلکه ويل |
| نَحْنُ الْمُتَوَكِّلُونَ فَإِذَا قَدِمُوا مَكَّةَ سَأَلُوا النَّاسَ |
| به يې چې مونږ توکل کونکې يو. او بيا به چې کله مکې ته راغلل نو د خلکو نه به يې غوښته کوله نو |
| فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى : ﴿ وَ تَزَوَّدُوا |
| الله تعالی (د منع کولو لپاره) دا ايت نازل کړ: او چې کله حج ته ځئ نو د لارې سامان ځان سره اخلئ. |
| فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوَىٰ ﴾.[1] |
| ځکه د ټولو نه غټه خبره د لارې سامانونو کې (د غوښتنې نه) بچ کيدل دي. |

**توضيح: نحن المتوكلون:** د يمن والاوو خيال وو چې مونږ دومره غټ عبادت لپاره ځو. هر څه پرېږدو او الله طرف ته روان يو نو بيا لمنو کې غله وړل د توکل خلاف ده. دا جزبه خو ښه وه. خو مخکې يې بيا پر دې باندې صبر ونه کړو او تنگ شو او خلکو ته يې لاسونه وغوړل. نو الله د ديوې اصلاح لپاره وفرمايل چې ځان د لارې سامان راخلئ. دا نه د توکل خلاف دي او نه تقوی خلاف دی. د توکل خلاف ځکه نه دي چې په اسبابو توکل کول منع دي. د اسبابو استعمالول منع نه دي. قيد او توکل د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد دې: *بر توکل زانوے اشتر ببند*
او د لارې سامان اخستل د تقوی خلاف ځکه نه دي چې د غوښتلو نه بچ کيدل بهترينه تقوي ده.

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۲۸۳/۳

## حج او عمره كې ښځو ته د جهاد ثواب ملاويږي

| ﴿۲۹﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : قُلْتُ : يَا رَسُولَ اللّٰهِ عَلَى النِّسَاءِ جِهَادٌ ؟ |
|---|
| عائشه رضي الله عنها وايي چې ما عرض وكړو چې يا رسول الله! آيا په ښځو باندې جهاد فرض دی؟ نبي كريم |
| قَالَ : " نَعَمْ عَلَيْهِنَّ جِهَادٌ لَا قِتَالَ فِيْهِ : |
| صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې په ښځو باندې داسې جهاد دې چې په هغې كې جنګ نشته دې او هغه |
| اَلْحَجُّ وَالْعُمْرَةُ". (۱) |
| حج او عمره ده. |

**توضيح: جهاد لا قتال فيه:** دا چې د جهاد ډير غوره والي دې نو ځكه عائشه رضي الله عنها د دې بيا بيا پوښتنه كړې ده چې د ښځو لپاره څه لار وشي. خو نبي كريم صلى الله عليه وسلم هغوی په ميدان كې جهاد كولو او د جهاد د كولو ثواب په حج او عمره كې ويلې دی. دې نه مخكې حديث ۱۰ كې د دې تفصيل تېر شوي دی. د بحث لاندې حديث كې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل يقينًا د ښځو لپاره د جهاد يوه موقع شته. او هغه داسې موقع ده چې د جنګ او تورې وهلو نه بغير د جهاد ثواب ملاويږي. او هغه د هغوی حج او عمره ده. د دې حديث نه معلومه شوله چې د سړو لپاره جهاد كې جنګيدل او توره وهل دي. د تبليغي حضراتو همدغه كوښښ دې چې د هغوی جهاد د سړو والا جهاد نه وي بلكه د ښځو والا جهاد وي په هغې كې د جنګ جګړې هيڅ نوم او نښه نه وي. (المرقات ۵/۴۰۵)

## د شرعي عذر نه بغير د فرض حج نه كوونكو لپاره سخت اخطار

| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ لَمْ يَمْنَعْهُ مِنَ الْحَجِّ |
|---|
| ابو امامه رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې كوم سړی چې منع كړي د حج نه |
| حَاجَةٌ ظَاهِرَةٌ أَوْ سُلْطَانٌ جَائِرٌ أَوْ مَرَضٌ حَابِسٌ |
| ښكاره حاجت (چې هغه د سورلۍ او د لارې د سامان نشوالي دی) يا ظالم بادشاه يا خطرناك مرض |

(۱) أخرجه ابن ماجه ۹۶۸/۲ رقم الحديث ۲۹۰۱.

| فَمَاتَ وَ لَمْ يَحُجَّ فَلْيَمُتْ إِنْ شَاءَ يَهُودِيًّا وَ إِنْ شَاءَ نَصْرَانِيًّا.[1] |
|---|
| او هغه د حج نه کولو نه بغیر مړ شي نو هغه لره اختیار دي چې هغه یهودي مړ کېږي او که عیسائی. |

**توضیح**:سلطان جائر: دې نه مخکې حدیث ۲۱ کې د حج د فرض کېدو شرائطو طرف ته اشاره شوي وه. د دې حدیث د لاندې شرائطو او د وجوب د حج په تفصیل کې لکیلي شوي دی. وجوب د حج نه وروسته وجوب د کولو د حج دویمه مرحله ده. چې هغه طرف ته په دې حدیث کې اشاره شوي ده. مطلب دا چې وجوب د حج لپاره څه داسې شرطونه دي که هغه ونه موندلي شي نو هج نه فرض کېږي او څه شرطونه داسې دي که هغه ومندلي شي نو حج فرض پاتې کېږي خو د هغې کول ضروري نه وي. شرائطو ته موانع د حج وایي.زیر بحث حدیث کې د همدغه موانعو بیان دی. چې د هغې تفصیل فقهاو څه داسې کړي دی:۱: د بدن د داسې عوارضو نه محفوظ کیدل چې د هغې په وجه حاجې سفر نشي کولي لکه ګوډ شل، فالج او داسې بوډاوالي چې هغې کې په سورلۍ نه شي کیناستلی. دا د موانع حج اولني مانع دی. ۲: د کوم ظالم بادشاه په زندان کې بندي کیدل او یا د ظالم بادشاه د ظلم ویره کیدل د موانع حج دویم مانع دی. ۳: د بیت الله او حاجې په مینځ کې داسې سمندر حائل کیدل چې د هغې نه اوریدل نشي کیدلي او ډاکوانو په وجه د هغې نه اوریدل غیر محفوظ وي نو موانع حج کې دریم مانع دی. ۴: ښځې سره د حج په سفر د خاوند یا محرم نشوالي د موانع حج څلورم مانع دی. ۵: د ښځې په عدت کې وخت د موانع حج پنځم مانع دی.
د دې ټولو موانعو او د عذرونو په شتون والې کې د حج کول اغیزمن کېږي. اګر که د مالدارۍ په وجه حج چې فرض شوي دی هغه به فرض وي. نو لهذا کله چې موانع ختم شي نو حج به کول غواړیږي. د دې نه مخکې حدیث ۲۱ ک توضیح کې پوره تفصیل لیکل شوي دی.
د بحث د لاندې حدیث کې دا ویلي شوي دي که د حج کولو به وخت موانع او عذرونه نه وي او بیا هم یو سړی حج ونکړي او مړ شي نو الله ته هیڅ باک نشته که هغه یهودي مړ شي او نصراني مړ شي.
(پدې حدیث د قرآن آیت ﴿فَإِنَّ اللهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعَالَمِينَ﴾ طرف ته اشاره ده. (المرقات ۵/۴۰۶)

## حج او عمره کوونکي د الله تعالی میلمانه وي

| ﴿۳۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: الْحَاجُّ وَ الْعُمَّارُ وَفْدُ اللّٰهِ |
|---|
| ابو هریره رضي الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې حج کونکي او عمره کونکي د الله میلمانه |

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۴۵/۲ رقم الحدیث ۱۷۸۵

| إِنْ دَعَوْهُ أَجابَهُمْ وَ إِنِ اسْتَغْفِرُوْهُ غَفَرَ لَهُمْ .[۱] |
|---|
| وي كه هغه د الله نه دعا وغواړي نو الله يې دعا قبلوي او كه هغه مغفرت وغواړي نو الله ورته مغفرت كوي |

**توضيح**: دا چې بيت الله د الله كور دى نو اوس چې څوك د الله د كور زيارت ته ځي نو هغه د الله ميلمه شي او څنګه چې كوربه د ميلمه هر خواهش پوره كوي نو همدغه شان الله هم د خپل ميلمه خيال ساتي او هغه چې كومه دعاء غواړي نو الله يې قبلوي.

## حاجي او غازي او عمره كوونكي د الله تعالى ميلمانه وي

| ﴿۳۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ : وَفْدُ اللهِ ثَلَاثَةٌ |
|---|
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي چې دري قسمه خلك د الله ميلمانه |
| الْغَازِي وَ الْحَاجُّ وَ الْمُعْتَمِرُ .[۲] |
| وي: ۱: جهاد كولو والا ۲: حج كولو والا ۳: عمره كولو والا |

## كور د ننوتلو نه مخكې په حاجې صيب باندې دعاء وغواړئ

| ﴿۳۳﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِذَا لَقِيتَ الْحَاجَّ |
|---|
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې كله ته د يو حاجي سره ملاقات وكړې |
| فَسَلِّمْ عَلَيْهِ وَ صَافِحْهُ وَ مُرْهُ أَنْ يَسْتَغْفِرَ لَكَ قَبْلَ |
| نو سلام وكړئ او د هغه سره مصافحه وكړئ او په هغه باندې ځان لپاره بخښنه (د دعا كولو) وغواړئ |
| أَنْ يَدْخُلَ بَيْتَهُ فَإِنَّهُ مَغْفُورٌ لَهُ .[۱] |
| مخكې د دې نه چې هغه كور ته لاړ شي او د دې لپاره چې د هغې بخښنه شوي وي. |

**توضيح**: په يو روايت كې دي چې حاجي مستجاب الدعوات شي او د حج كولو نه څلويښت ورځو پورې هغه همدغه شان مستجاب الدعواة وي. لهذا كور ته د داخليدو نه مخكې مخكې خلكو ته په كار دي چې په حاجې په باندې دعا وكړي. پخوا زمانه كې به خلكو هم دغه شان كول او د حاجيانو استقبال به كېدو. نن سبا د استقبال په ځاى استدبار كوي.

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۹۶۶ رقم الحديث ۲۸۹۲
(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۹۶۶ رقم الحديث ۲۸۹۳
(۳) أخرجه مسند أحمد ۲۷۲/۹، رقم الحديث ۵۳۷۲.

کور ته د داخلیدو شرط حدیث کې ځکه لګولي شوي دي چې سړی چې د ښځو او بچو سره ملاوو شو نو د هغې په زړه او مغزو کې د بچو سره محبت پیوسته کیږي. اوس د هغه دعاء د اول په شان نه پاتې کیږي. (المرقات ۵/۴۰۷)

## حج، عمره او د جهاد په سفر کې مړ کیدونکو ته پوره ثواب ملاویږي

| |
|---|
| ﴿۳٤﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ خَرَجَ حَاجًّا أَوْ مُعْتَمِرًا |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کوم سړی چې ووتلو په اراده د حج یا عمره |
| أَوْ غَازِيًا ثُمَّ مَاتَ فِيْ طَرِيقِهِ كَتَبَ اللهُ لَهُ أَجْرَ الْغَازِي |
| او یاد جهاد په اراده د (کور نه) او بیا هغه لاره کې مړ شي نو الله تعالی ثواب لیکي د ده لپاره د غازي |
| وَ الْحَاجِّ وَ الْمُعْتَمِرِ. [1] |
| (جهاد کوونکې) حج کونکې او د عمره کونکې. |

**توضیح:** مطلب دا دی چې د سفر، حج یا سفر عمره او جهاد باندې یو سړی روان شي خو هغه مړ شي نو هغه سړی ته د جهاد، حج او عمره پوره ثواب ملاویږي. ثواب کې به هیڅ کمي نه راځي اګر که هغه عمل پوره نه کړو. د دیني علوم طالب علم حکم هم همدغه دی.



(۱) أخرجه البيهقي في شعب الإيمان ۴۷۴/۳، رقم الحديث: ۴۱۰۰.

۲۲ جمادی الثاني ۱٤۱۰هـ

# باب الاحرام والتلبية

## د احرام تړلو او لبیک ویلو بیان

قال الله تعالی: ﴿وَأَذِّن فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ﴾ (سورة حج آیت: ۲۷).

په زړه کې د حج یا عمره یا د دواړو نیت کولو سره تلبیه ویلو نوم احرام دی. د هغې نه وروسته د احرام تول پابندیانې شروع شي. د حج او عمرې لپاره احرام داسې دی لکه څنګه چې د لمونځ لپاره تکبیر تحریمه ده. او د حج او عمرې کارونو نه حلق یا تقصیر کول داسې دی لکه څنګه چې د لمونځ لپاره سلام دی. (المرقات ۵/۴۰۸)

د احنافو په نزد د احرام تړلو مسنونه طریقه داده چې د احرام نه مخکې سړی خپل حجامت او داسې نور کاورنه وکړي. ویختان او نوکان او داسې نور شیان سم کړي او غسل وکړي او بیا خوشبو استعمال کړي. ګنډل شوي جامې وباسي او د احرام څادر واغوندي او که وخت مکروه نه وي نو دوه رکعته نفل دي وکړي، دا نفلونه دې د څادر اغوستلو سره وکړي.

ددې نه وروسته دې څادر لرې کړي او نیت دې وکړي. که د حج نیت وي نو په ژبې سره دې داسې ووایي: اللهم اني اريد الحج بیسره لي وتقبله مني او که د عمرې نیت قِران وي نو داسې دې ووایي: اللهم اني اريد العمرة فيسر هالي وتقلبها مني او که د دواړو نیت د قِران لپاره یو ځای وي نو داسې دې ووایي: اللهم اني اريد الحج والعمرة فيسر هما لي وتقلبهما مني د هغې نه وروسته دې بیا هلته په ناسته ناسته تلبیه ووایي. وس دا سړی محرم شو. (المرقات: ۵/۴۰۸)

ائمه ثلاثوو په نزد محرم کېدلو لپاره صرف نیت بس دی. په ژبې سره ویلو ته د څه ضرورت نشته دی. امام ابو حنیفه رحمه الله وایي چې د نیت سره تلبیه ویل هم ضروري دي. که فقط نیت وکړي او تلبیه ونه کړي نو احرام نه شروع کېږي. (المرقات: ۵/۴۰۸)

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## د احرام تړلو نه مخکې د خوشبو مږلو مسئله

﴿۱﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كُنْتُ أُطَيِّبُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِإِحْرَامِهِ قَبْلَ

عائشه رضي الله عنها وایي: چې ما به خوشبو لګوله نبي کریم صلی الله علیه وسلم باندې د احرام لپاره مخکې د

| |
|---|
| أَنْ يُحْرِمَ وَ لِحِلِّهِ قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ بِالْبَيْتِ بِطِيبٍ فِيهِ |
| احرام تړلو نه او د احرام د تلو لپاره مخکې د کعبې د طواف نه او داسې خوشبو به مې لګوله چې په هغې |
| مِسْكٌ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى وَبِيصِ الطِّيبِ فِي مَفَارِقِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| کې به مشک وُ ګویا چې زه اوس هم د نبي کريم ﷺ په اندامونو کې د خوشبو پرقارې ګورم |
| وَ هُوَ مُحْرِمٌ.(۱) |
| په داسې حال کې چې زه د نبي کريم ﷺ احرام تړم (يعنې هغه پرقار زما دستر ګو لاندې دی). |

**توضيح: قبل ان يحرم**: يعنې حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې د احرام تړلو نه مخکې ما نبي کريم ﷺ ته خوشبو لګوله چې د هغې اثر به د احرام نه وروسته هم پاتې وه. د دې حديث نه معلومه شوه چې د غسل کولو نه وروسته د احرام تړلو نه مخکې د خوشبو استعمالول جائز دي. اګر که د دې اثر د احرام نه وروسته هم پاتې کېږي. د امام ابو حنيفه رحمه الله او د امام احمد بن حنبل رحمهم الله هم دغه مسلک دی چې دا جائز دي او د احرام تړلو نه وروسته مخکينی خوشبو استعمالول جائز دي. خو امام مالک او امام شافعي رحمه الله وايي د احرام تړلو نه مخکې هم داسې خوش بو لګول مکروه دي چې د هغې اثر د احرام نه وروسته پاتې کېږي. (المرقات :۵/۴۰۹)

**ولحله قبل ان يطوف**: د دې جملې مطلب دا دی چې حاجې کله د عرفات نه مزدلفې ته راشي نو بيا دې منی کې جمرات وولي او حلق او قرباني دې وکړي. نو د هغې نه وروسته دده لپاره د طواف زيارت کولو نه وروسته خوشبو لګول جائز دي. حضرت عائشه رضي الله عنها هم دغه خبره کوي چې په دې موقع باندې ما هم نبي کريم ﷺ ته خوشبو لګوله. دې ته تحليل اول وايي . دده نه وروسته د ښځو سره د جماع وروسته هر څه حلال شي د طواف زيارت نه مخکې جماع کول منع دي. (المرقات ۵/۴۰۹)

**وبيص**: تيل يا عطر لګولو نه وروسته د هغې پرقار ته **وبيص** وايي .

**مفارق د مفرق** جمع ده د سر اندامونو ته **مفرق** وايي . حديث کې د جمعې صيغه راوړې شوې ده دا د سر جدا جدا طرفونو د وجې نه راوړې شوي. ګينې يو سر کې هم مفرق لاروي. (المرقات ۵/۴۰۹)

---

(۱) أخرجه البخاري ۲ /۱۳٦، رقم الحديث : ۱۵۳۹.

## د تلبيې كلمات

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې ما د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه تلبيه داسې په اوچت اواز سره ويلې اوريدلې |
| يُهِلُّ مُلَبِّدًا يَقُولُ: لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ |
| چې هغه وخت يې تلبيد كول او فرمايل به يې: حاضريم زه ستا په خدمت كې اى الله! حاضريم زه ستا |
| لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ |
| په خدمت كې، زه ستا په خدمت كې حاضريم، ستا سره بل څوك شريک نشته، حاضريم ستا په خدمت |
| إِنَّ الْحَمْدَ وَ النِّعْمَةَ لَكَ وَ الْمُلْكَ |
| كې، بېشكه ټول تعريفونه او ټول نعمتونه ستا لپاره دي. او بادشاهت هم ستا لپاره دى. ستا سره بل |
| لَا شَرِيكَ لَكَ. لَا يَزِيدُ عَلَى هَؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ. (۱) |
| څوک شريک نشته دى. نبي كريم صلى الله عليه وسلم د دينه ډير كلمات نه لوستل. |

**توضيح: يهل:** اهلال په اوچت اواز سره تلبيه ويلو ته وايي. (المرقات: ۵/۴۱۱)

**ملبدا:** دا د تلبيد نه دى. د سر ويخته د جوړولو او پټولو او راغونډولو ته وايي. د دې مفهوم دا دي چې ويختان د خوريدو نه د بچ كولو لپاره او هغه د ګنده كولو نه بچ ساتلو لپاره ګوند يا خطمي يا په بل څه باندې جوړولو او راغونډولو ته تلبيد وايي. د شوافعو په نز د محرم لپاره داسې كولو جائز دي. امام ابو حنيفه رحمه الله وايي چې په داسې كولو سره دم (قرباني) لازمېږي. ځكه دا سر د پټولو په حكم كې دي. كه د خوشبو والا شي سره سر پټ كړي شو نو دوه دمه (قرباني) ره راځي. په زير بحث حديث كې نبي كريم صلى الله عليه وسلم كيدې شي څه د عذر په بنياد داسې كړې وي يا تلبيد خپله لغوي معنى ده چې فقط د جوړه ولو او راغونډه ولو په معنى كې دى. د پټولو په معنى نه دى. (المرقات ۵/۴۱۱)

**لبيك:** دا ټكې ديو چا درا غوښتلو په جواب كې راځي. اوس دلته د راغوښتلو والا څوک دى. چې د هغې په جواب كې حاجي صيب وايي چې زه حاضريم، بيا بيا حاضريم. نو واضحه هم دغه ده چې د

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۱۳/۱۱ رقم الحديث: ۶۶۱۶، ومسلم في صحيحه ۲۰۸۰/۴ رقم الحديث: ۲۷۰۷/۵۳.

حضرت ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ درا غوښتلو په جواب کې دی. حضرت ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ چې کله د بیت الله عمارت پوره کړو نو جبل ابو قبیس باندې اودریدو او خلک یې داسې راوغښتل **یا ایها الناس ان ربکم اتخذ بیتاً فحجوه** په دغه اواز چې چا هم لبیک وویله نو هغه ضرور حج کوي. بعضو علماو لیکلي دي چې دا آواز حضرت جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ کړي ؤ. ځینو وویل چې پخپله الله تعالی راغوښتي ؤ. اولنی قول واضحه دی. (المرقات: ۵/۴۱۱)

**لا یزید:** د تلبیاتو په کلمو کې کمي کول مکروه دي. په دې کې ډیر والي کول څنګه دي. نو امام طحاوي او داسې نورو علماوو هم ډیروالي کول هم مکروه ګڼلی دی. خو ملا علي قاری رَحِمَهُ الله وايي چې ډیروالي کول مکروه نه دي ځکه چې دبعضو صحابو نه ډیروالي نقل دي لکه څنګه چې حدیث ۱۲ کې دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه منقول دي. کنزالدقائق کې بعضو شارحینو لیکلي چې ډیروالي بالکل په آخر کولي شي خو په مینځ کې یې ډیروالي کول جائز نه دی. ځکه د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کلام سره د التباس خطر دی. او دا حکم د هر مسنون او منقول دعاء لپاره دی. (المرقات: ۵/۴۱۱)

## نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تلبيه د کوم ځای نه شروع کړي وه؟

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَدْخَلَ رِجْلَهُ فِي الْغَرْزِ وَاسْتَوَتْ بِهِ نَاقَتُهُ قَائِمَةً |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله خپلې خپې په رکاب کې واچولې او اوښه پاڅېدله |
| أَهَلَّ مِنْ عِنْدِ مَسْجِدِ ذِي الْحُلَيْفَةِ.[1] |
| نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ذوالحلیفه جومات سره نزدې تلبیه وکړه (په اوچت اواز سره یې وویله). |

**توضیح: استوت به ناقته:** نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تلبیه د کوم ځای نه شروع کړه؟ په دې کې درې قسمه روایات منقول دي: ۱: یو قسم هغه روایات دي چې په هغې ذکر دي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوه نفل وکړل او د هغې نه وروسته یې په مصلی باندې تلبیه ویل شروع کړل. ۲: په بعضو روایاتو کې دي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه وخت کې تلبیه وویله کله چې یې خپل قدم مبارک په رکاب کې کېښودو او اوښه پاڅېدله. ۳: بعضو روایاتو کې دي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مقامِ بېدا نه تلبیه لوستل شروع کړل. اصل کې دلته په روایاتو کې تعارض یا تضاد نشته بلکه وشول دا چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ذوالحلیفه کې کله دوه رکعته لمونځ وکړو نو په مصلی باندې یې تلبیه وویل. بیا

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۶۹/۶ رقم الحديث: ۲۸۶۵، ومسلم في صحيحه ۸۴۵/۲ رقم الحديث: ۱۱۸۷/۲۷.

چې دهغې نه وروسته په اوښه باندې سُور شو، هغه وخت یې هم وویل او مقام بېدا ته چې ورسیدو نو بیا یې وویل. نو د تلبیې بیا بیا ویل مستحب دي. په دې کې څه ممانعت نشته. اوس چې کوم صحابي چرته د نبي کریم ﷺ اول په زور لوستلو سره تلبیه واوریدل نو هغې د همغه مقام ذکر وکړو. نو ځکه چا د ذوالحلیفه ذکر وکړو. چا د فوق الناقه ذکر وکړو یا د عند الناقه ذکر وکړو. او چا د مقام بېدا ذکر وکړو. امام ابو حنیفه رحمه الله او امام مالک رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله د اولني قسمه روایات اختیار کړي دي چې دوه رکعته نفلو نه وروسته تلبیه لوستل ډیر غوره دي. امام شافعي رحمه الله په سورلۍ باندې د سوریدو وخت کې تلبیه ویل غوره ګڼل دي. (المرقات ۵/۴۲۵-۴۱۲) د هر چا خپله خپله خوښه او د هر چا خپل خپل نصیب.

عبارا تنا شتی و حسنک واحد ۞ وکل الی ذاک الجمال یشیر

| ﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ : خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| ابو سعید خدری رضی الله عنه وایي چې مونږ د نبي کریم ﷺ (د حج سفر کې) داسې روان شو چې |
| نَصْرُخُ بِالْحَجِّ صُرَاخًا .[1] |
| مونږ حج لپاره چغې وهلې (یعنې حج لپاره به مو اوچت آواز سره لبیک ویله). |

**توضیح:صراخا:** چغو وهلو ته وایي. مطلب دا دي چې مونږ به په واضحه ټکو د حج د کولو اعلان کولو چې د حج کولو لپاره ځو. ښکاره خبره ده چې صحابه به حج ته تلل. نو نبي کریم ﷺ به هم د حجة الوداع لپاره حج ته تللو. د دې نه دا مطلب اخستل لرې خبره ده چې دا حج افراد دی او که حج قِران دلته فقط د حج ذکر شوې دی. تفصیل یې په نورو روایاتو کې دي. (المرقات ۵/۴۱۳)

## د حج قِران ثواب

| ﴿٥﴾ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : كُنْتُ رَدِيفَ أَبِي طَلْحَةَ وَإِنَّهُمْ |
|---|
| انس رضی الله عنه وایي چې زه سورلۍ باندې د ابو طلحه رضی الله عنه پسې ناست وم. او (اکثر) صحابه |
| لَيَصْرُخُونَ بِهِمَا جَمِيعًا : الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ .[2] |
| دوه شیانو یعنې حج او عمرې لپاره چغې وهلې (یعنې په وچت اواز سره به یې لوستل). |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ٢/٩١٤ رقم الحديث: ١٢٤٧/٢١١.

(٢) أخرجه البخاري ٤/٥٥، رقم الحديث : ٢٩٨٦

**توضيح: بالحج والعمرة:** د حضرت انس رضي الله عنه د دې حديث نه په واضحه کېږي چې اکثرو صحابو د حجة الوداع په ورځ باندې حج قِران کړي ؤ. اوس دا معلوموول چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم هم قارن ؤ يا نه نو هغه د دې نه معلوميږي چې صحابو هغه عمل خپل کړي ؤ کوم به چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم ؤ دا ممکنه نه وه چې صحابو ته معلومه وي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم مفرد يا متمتع ؤ. او صحابه کرامو رضي الله عنهم د دينه بل صورت اختيار کړي وي. کله چې صحابو حج قِران اختيار کړو نو څنګه چې زير بحث حديث کې دي. نو دا د دې خبرې دليل دې چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم هم حج قِران کړي وو. همدغه احنافو غوره حج ګرځوليدلی. مخکې يې تفصيل راغې. (المرقات: ۵/۴۱۴)

## حجة الوداع کې نبي کريم صلى الله عليه وسلم کوم قسم حج کړي ؤ

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې مونږ د حجة الواداع په کال نبي کريم صلى الله عليه وسلم سره (حج لپاره) روان شو |
| فَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ وَ مِنَّا |
| نو په مونږ کې ځيني خلکو شتون لرو چا چې د فقط د عمرې لپاره احرام تړلو او ځيني هغه خلک وو |
| مَنْ أَهَلَّ بِحَجٍّ وَ عُمْرَةٍ وَ مِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِالْحَجِّ |
| چا چې د حج او عمرې دواړو لپاره احرام وتړلو او ځيني هغه خلک وو چا چې فقط د حج لپاره احرام وتړلو |
| وَ أَهَلَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِالْحَجِّ. فَأَمَّا مَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ |
| او نبي کريم صلى الله عليه وسلم هم فقط د حج لپاره احرام تړلي ؤ لهذا چا چې فقط د عمرې لپاره احرام تړلي |
| فَحَلَّ وَ أَمَّا مَنْ أَهَلَّ بِالْحَجِّ أَوْ جَمَعَ الْحَجَّ وَ الْعُمْرَةَ |
| ؤ هغه خو حلال شول (د احرام نه بهر شو) او چا چې فقط د حج او يا د حج او عمره دواړو لپاره احرام تړلي |
| فَلَمْ يَحِلُّوا حَتَّى كَانَ يَوْمُ النَّحْرِ.[1] |
| ؤ هغه حلال نه شول تر دې چې د قرباني ورځ راغله. |

**توضيح: عام حجة الوداع:** وداع مصدر دی او په دې کې واو باندې فتحه هم ده. بيا دا د باب د **تفعيل**

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۴۲۱ رقم الحديث: ۱۵۶۲، ومسلم في صحيحه ۲/۸۷۳ رقم الحديث: ۱۱۸/۱۲۱۱.

مصدر خو **ديعاً** او **داعاً** دی. د رخصت کولو په معنی دی. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ ليکلي دي چې په واوو باندې کسره هم ده. د هغه وخت پوريې به دا د باب مفاعله مصدر وي. موادة ووداعاً چې هغه د يو بل د رخصت کولو په معنی دی. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې موقع باندې خپل امت رخصت کړو يا يې حرم شريف رخصت کړو. او که باب د مفاعله نه واخلي نو ټولو يو بل رخصت کړل. بهر حال نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هجرت نه وروسته دا اول او آخرې حج وو او تقريبًا ۹۰ ورځې وروسته د دې دنيا نه لاړو.

**دحج اقسام او دافضليت ترتيب**:د حج درې قسمونه دی: ۱: افراد ۲: تمتع ۳: قِران. حج افراد کولو والا ته مفرد وايي. او تمتع کولو ته متمتع وايي او قِران کولو والا ته قران وايي.

**۱: حج افراد** دا چې حاجې د اشهرالحج کې فقط حج وکړي، عمره دې نکوي. اشهر حج دشوال او ذيقعده پوره او ذوالحجه اولنی عشره ده. **۲: حج تمتع** داچې حاجي اشهر حج کې اول فقط عمره وکړي او د حلال کېدو نه وروسته دې احرام کولاو کړي. او بيا دهمدې ځای نه د حج احرام وتړي او حج دې وکړي. که عمره کې يې د ځان سره ځاروي راوستلي وي نو بيا دې عمره وکړې او احرام دې نه کولاوی ګويا د تمتع عمره دوه قسمه باندې ده يو کې معتمر سائق الهدي نه وي او بل کې سائق الهدي وي. **۳: حج قِران** دا چې حاجې د ميقات نه د حج او عمره دواړو احرام يو ځای وتړي او عمره دې وکړي. بيا دې احرام نه کولاوی بلکه په همدغه احرام سره دې حج وکړې. (البناية :۴/۱۸۸)

اوس پدې خبره د ټولو ائمو اتفاق دي چې د حج هم دغه درې واړه قسمونه جائز دي. کوم مسلمان چې کوم يو حج کوې نو کولي شي. اختلاف پدې کې دي چې پدې اقسامو کې کوم قسم حج غوره دی دغوره والي داختلاف په رواياتو باندې ده چې حجة الوداع کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حج حالت قسم کوم يو ؤ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې په کوم قسم کې حج کړي ؤ نو هم هغه به د ټولو نه غوره وي.

**د فقهاو اختلاف** :د امام مالک امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نز د ټولو نه غوره حج افراد دی. بيا تمتع او بيا قِران دی. د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ به نزد ټولو نه غوره حج تمتع دی. بيا افراد او بيا قِران دی. د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نز د ټولو نه غوره حج قِران دی. بيا تمتع او بيا افراد دی. د ائمو اربعه په اقوالو کې څه تفاوت هم شته خو ما چې کوم بيان کړي دي دا راجح اقوال دي. (البناية :۴/۱۸۸)

**دلائل** : امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ خپل مسلک د راجح ثابت کولو لپاره زيربحث حديث کې د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حديث نه استدلال کړي دي چې په هغې کې واهل رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راحج ټکې دې. هغه وايي چې ښکاره هم دغه ده چې د حج نه مراد افراد مراد دی. ځکه چې مطلق د حج ذکر دی. قِران او تمتع ته هيڅ اشاره نشته دی. په دغه قسمه نور احاديث هم شته

دی. مالکيه او شوافعو هم د دې احاديثو نه استدلال کړي چې په هغې کې د افراد ذکر دی مثلاً مسلم ج ا ص ۳۸۹ باندې يو حديث دې چې په هغې کې عائشه رضي الله عنها وايي ان رسول الله صلى الله عليه وسلم **افرد بالحج** همدغه شان مسلم شريف ج اول ص ۳۹۱ باندې د حضرت جابر رضي الله عنه روايت کې دا الفاظ دي: **عن جابر انه قال اقبلنا مهلين مع رسول الله صلي الله عليه وسلم بحج مفرداً الخ...**

**(مسلم :۱/٤۰٤)**

امام احمد بن حنبل رحمه الله د دې حديث نه وروسته د حضرت ابن عمر رضي الله عنه حديث نمبر ۷ نه استدلال کړي دی. هم دغه شان حضرت عائشه رضي الله عنها نه هم څه روايات نقل دي. چې د هغې نه معلومېږي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم په حجة الوداع کې متمتع وو. لهذا تمتع غوره دې ځنکه چې شوافعو ويلې دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم مفرد وو. لهذا افراد غوره دی.

ائمه د احنافو لپاره قِران ډير روايات دي. اولني روايت د حضرت انس رضي الله عنه نه دی.

**۱: عن انس رضي الله عنه قال سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم اهل بهما لبيك حجة و عمرة.**

**۲: عن عمران بن حصين رضي الله عنه قال ان رسول الله صلى الله عليه وسلم جمع بين حج و عمرة.**

۳: د حضرت علي رضي الله عنه قصه کې دي چې هغه د حجة الوداع په موقع باندې د يمن نه راغلو نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم ترينه پوښتنه وکړه چې ځنګه احرام تړلي دی. هغوی وفرمايل چې ما دا نيت کړي دي کوم نيت چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وي همغه زما نيت دی. نبي کريم صلى الله عليه وسلم په جواب کې وفرمايل: **قال فاني سقت الهد و قرنت** (رواه ابو داؤد) يعنې ما خپل ځان سره د قربانۍ څاروي راوستلي دي او ما قِران کړي دی.

۴: په بخاري شريف کې حضرت عمر رضي الله عنه نه نقل دي چې په حجة الوداع کې کله نبي کريم صلى الله عليه وسلم وادي عقيق ته راورسيدل نو جبرائيل امين وفرمايل **صل في هذا اوادي المبارك و قل عمرة في حجة.** دا الفاظ ښکاره په قِران دلالت کوي. نو اوس پدې کې شک نشته چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم په حجة الوداع کې جدا جدا تلبيې لوستلې وي. پدې کې د افراد لپاره هم دی. تمتع لپاره هم دي او د قِران لپاره هم دی. چې د هغې افراد، قِران او تمتع د درې واړو (۳) ثبوت ملاوېږي. دلته دا خبره هم يقيني ده چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم په مدنۍ ژوند کې فقط يو ځل حج کړي دی. لهذا اوس پدې جدا جدا رواياتو کې تطبيق ورکول ضروري شوي. دې تطبيق لپاره ډير توجيهات مخې ته راغي. او د هر مسلک والا توجيه داسې کړې ده چې هغې سره د هغې د مسلک ثابت شوي

دی. او د بل مسلک په روایاتو کې یې تاویل کړي دی. نو د احنافو په وړاندې یو څو توجیهات داسې دي: ۱: نبي کریم صلی الله علیه وسلم په حقیقت کې قارن وو خو نبي کریم صلی الله علیه وسلم صحابو وو ته د حج افراد او حج تمتع کولو اجازت ورکړي وو. چې امت ته په درې واړو طریقو سره د حج کولو جواز ملاوو شي. د حضرت عائشه رضي الله عنها د بحث د لاندې حدیث په دې باندې واضح دلیل دی. وس چې هغې چا ته د افراد یا د تمتع اجازت ور کړو نو هغې د هغه قسم حج نسبت نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته کړي دی. نبي کریم صلی الله علیه وسلم یا مفرد وویا متمتع وو. دا خو مجازي نسبت دي او حقیقې نسبت همغه دي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم قارن وو. هم دغه شان جواب د نورو مسلکو والا هم خپلوي. (المرقات ۵/۳۰۷)

۲: نبي کریم صلی الله علیه وسلم په اولنیو کې خپل احرام مبهم ساتلي وو. هو ځکه یې کله افراد تلبیه لوستله، کله د تمتع لوستله. خو چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم کله وادی عقیق ته ورسیدو نو جبریل علیه السلام نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته قِران حکم وکړو یاددې لپاره چې په ابتداء کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم افراد یا د تمتع تلبیه لوستلې هم ده. نو د هغې اعتبار نشته دی. د نورو ائموو او د هغې د مقتداء هم د هغوی اقرار کوي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم په اول کې د افراد احرام تړلي وو خو ورسته نبي کریم صلی الله علیه وسلم قارن شو. علامه نووي رحمه الله، قاضي عیاض رحمه الله، ابن قیم رحمه الله او امام احمد رحمه الله هم دغه وایي. امام احمد رحمه الله خو داسې تصریح فرمایلي ده: **لا شك انه صلی الله علیه وسلم كان قارناً والمتعة احب الی.**

۳: علامه ابن همام او ابن نجیم حنفي رحمه الله وایي چې قارن لره جائز دي. چې په دُرې واړو طریقو سره تالبیه ووایي نو اختلاف په وجه د سماع راغې. چې چا صرف د حجة تکې واوریدلو نو هغې افراد وګرځولو. چا چې د تمتع تکې واوریدلو نو هغې تمتع وګرځولو او چا چې د قِران تکې وراوریدلو نو هغې قِران نقل کړلو.

۴: دا د اولی او غیر اولی اختلاف دی. چا چې په کوم یو باندې عمل وکړلو هغه جائز دی. لهذا په هیڅ یو دیث کې د تکلیف کونکې تاویل نشتهنه د جواب ورکولو ضرورت شته دی. په شریعت کې وسعت شته دی. د هر سړی بېل حالت وي نو هر شړي د خپل حالت مطابق افراد یا تمتع یا قِران اخیاره ولي شي. د نبي کریم صلی الله علیه وسلم ذات مجمع الکمالات دی. ډیر ممکن دي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د هر قسم حج د یو حج په ضمن کې کړي وو او ټول غوره والي یې حاصل کړلو او د امت لپاره هم ګنجائش وکړو ، زه دا راجح ګڼم.

## د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حج

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: تَمَتَّعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حجة الوداع کې عمره د حج سره يو ځاى وکړه او |
| بَدَأَ فَأَهَلَّ بِالْعُمْرَةِ |
| تمتع يې وکړه (يعنې ګټه يې وکړه) په دې توګه نبي عَلَيْهِ السَّلَام د عمرې لپاره د احرام نه ابتداء وکړه او |
| ثُمَّ أَهَلَّ بِالْحَجِّ.(۱) |
| بيا يې د حج احرام وتړلو (همدغه شان نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حج او عمره يو ځاى کړله او قارن شو). |

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د احرام نه مخکې غسل کول مستحب دي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَجَرَّدَ |
| زيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى وايي چې دوى وليدل چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جامې ويستلې وې د |
| لِإِهْلَالِهِ وَ اغْتَسَلَ.(۲) |
| احرام لپاره او غسل يې وکړو. |

**توضيح:تجرد:** د دې مطلب دا دى چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ګنډل شوې جامو نه او د خپل ازاد بند نه جدا شو او غسل يې وکړو او بيا يې احرام وتړلو. (المرقات:۵/۴۱۶)

د اهلال نه مراد احرام دى. د احرام نه مخکې غسل کول مسنون دي. که د هغې موقع نه ملاوېږي نو بيا اودس کول هم کافي دي. حيض او نفاس والا ښځې له پکار دي چې هغه د غسل کولو نيت کولو سره احرام وتړي خو دوه رکعته نفل دې نه کړې او عمره دې نه کوي. کله چې ورځې تېرې شي نو بيا دې په غسل کولو سره پاکه شي او عمره دې وکړي. که د عرفې وخت کې ماهوارې شروع شوه نو دا ښځه دې وقوف مزدلفه وکړي. مزدلفې کې دې قيام هم وکړي او جمرات کې کاڼي هم ولي خو طوافِ زيارت دې په حيض کې نکړي. ځکه تر وسه پورې دا ناپاکه ده. جو مات ته نشي تلي او د

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۳۹/۳ رقم الحديث :۱۶۹۱. ومسلم في صحيحه ۹۰۱/۲ رقم الحديث: ۱۲۲۷/۱۷۴.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۱۹۲/۲ رقم الحديث :۸۳۰.

حیض په حالت د هغې غسل کول غسل طهارت نه بلکه غسل نظافت دی.

## د تلبید ذکر

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لَبَّدَ رَأْسَهُ |
| ابن عمر رَضِيَاللهُعَنهُ وايي چې نبي کريم صَلَّیاللهُعَلَیهِوَسَلَّم د خپل سر مبارک ويختان په هغه شيانو سره راغونډول |
| بِالْغُسْلِ. (۱) |
| چې په کومو سره سر وينځلی کېږي. |

**توضیح:** ويختان په ګوند يا په خطمي سره راغونډولو ته تلبيد وايي . چې د دې تفصيل مخکې تېر شوي دی.

**بالغسل:** غين باندې کسره ده. هر هغه شي ته وايي چې هغې سره سر وينځلي کېږي لکه خطمي وغيره **ما يغسل بن من الخمي وغيره**. (المرقات :۵/۴۱۷)

## تلبيد په زوره آواز لوستل په کار دي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ خَلَّادِ بْنِ السَّائِبِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ :قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| خلاد بن سائب رَضِيَاللهُعَنهُ د خپل پلار مکرم نه نقل کوي چې ده وويل چې نبي کريم صَلَّیاللهُعَلَیهِوَسَلَّم وفرمايل |
| أَتَانِي جِبْرِيلُ فَأَمَرَنِي أَنْ آمُرَ أَصْحَابِي |
| ما ته جبرائيل عَلَیهِالسَّلَام راغلي ؤ او ما ته يې دا حکم وکړو چې زه خپلو صحابو ته د دې خبرې حکم وکړم |
| أَنْ يَرْفَعُوا أَصْوَاتَهُمْ بِالْإِهْلَالِ أَوِ التَّلْبِيَةِ. (۲) |
| چې دوی په اهلال يا تلبيه کې خپل اوازونه وچت کړي. |

## د لبيک اللهم لبيک عظمت او فضيلت

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " مَا مِنْ مُسْلِمٍ يُلَبِّي |
| سهل بن سعد رَضِيَاللهُعَنهُ وايي چې نبي کريم صَلَّیاللهُعَلَیهِوَسَلَّم وفرمايل چې کله هم يو مسلمان لبيک وايي |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۳۶۰ رقم الحديث :۱۷٤۸.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲/٤۰۵ رقم الحديث :۱۷٤۸.

إِلَّا لَبَّى مَنْ عَنْ يَمِينِهِ وَ شِمَالِهِ : مِنْ حَجَرٍ أَوْ شَجَرٍ أَوْ مَدَرٍ حَتَّى
نو دده ښي او د چپ اړخ هر شي اګر که هغه کاڼي وي يا بوټي او غونډۍ وي ټول لبيک وايي تردې چې
تَنْقَطِعَ الأَرْضُ مِنْ هٰهُنَا وَ هٰهُنَا ".(۱)
شامله وی دده اړخ نه (يعني دده ښي اړخ ټولې ځمکې نه) او دده اړخ (يعني دده د چپ اړخ د ټولې ځمکې نه پورې کې).

**توضيح:** لبّي تلبيې لوستلو ته وايي. په دې حديث کې د تلبيې لوستلو عظمت او فضيلت بيان شوي دي چې کائنات يوه يوه ذره د هغه سړي سره تلبيه لوستلو کې شريکه شي. ښکاره خبره ده چې د کائنات د تلبيه لوستلو ثواب به دې سړي ته ملاويږي.

﴿۱۲﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَرْكَعُ بِذِي الْحُلَيْفَةِ
ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به (د احرام تړلو وخت کې) مونځ کولو په ذوالحليفه
رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ إِذَا اسْتَوَتْ بِهِ النَّاقَةُ قَائِمَةً عِنْدَ مَسْجِدِ ذِي الْحُلَيْفَةِ
کې دوه رکعته او بيا به چې کله ذوالحليفه جومات ته نږدې او ښي نبي کريم صلى الله عليه وسلم پورته کړو
أَهَلَّ بِهٰؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ وَ
نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم به دا کلمات لوستل په اوچت آواز سره (يعني د لبيک مشهور کلمات) او
يَقُولُ : لَبَّيْكَ اللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ
او (بيا به يې دا کلمات) حاضريم ستا په خدمت کې اى الله! ستا په خدمت کې حاضريم، حاضريم ستا
وَ سَعْدَيْكَ وَ الْخَيْرُ فِيْ يَدَيْكَ لَبَّيْكَ
په خدمت کې او نيک بختي غواړم ستا په خدمت کې او خير ستا په لاس کې دی. حاضريم ستا په
وَ الرَّغْبَاءُ إِلَيْكَ وَ الْعَمَلُ .(۲)
خدمت کې او ميلان او توجه ستا طرف ته دي او عمل ستا لپاره دی.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۸۹/۳ رقم الحديث :۸۲۸.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح رقم الحديث :۱۵۴۹.

﴿۱۳﴾ وَ عَنْ عِمَارَةَ بْنِ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ
عماره ابن خزیمه ابن ثابت رضی الله عنهما د خپل پلار مکرم (خزیمه) نه او هغه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه

أَنَّهُ كَانَ إِذَا فَرَغَ مِنْ تَلْبِيَتِهِ سَأَلَ اللهَ
نقل کوي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به کله د تلبيې لوستلو نه فارغ شو نو غوښتله به يې د الله تعالى

رِضْوَانَهُ وَ الْجَنَّةَ وَاسْتَعْفَاهُ بِرَحْمَتِهِ مِنَ النَّارِ. رَوَاهُ الشَّافِعِي
نه د الله رضا او جنت او دده د رحمت په ذريعې سره د دوزخ د اور نه معافي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

﴿۱۴﴾ عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لَمَّا أَرَادَ الْحَجَّ أَذَّنَ فِي النَّاسِ
جابر رضی الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به کله د حج کولو اراده وکړه نو خلک يې خبردار کړل

فَاجْتَمَعُوا فَلَمَّا أَتَى الْبَيْدَاءَ أَحْرَمَ.[1]
(يعنې اعلان يې وکړو) نو خلک راغونډ شو او بيا چې کله بيداء ميدان ته ورسيدل نو احرام يې وتړلو

﴿۱۵﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ الْمُشْرِكُونَ يَقُولُونَ: لَبَّيْكَ
ابن عباس رضی الله عنه وايي چې مشرکانو خلکو به کله تلبيه ويله نو دا کلمات به يې ويل حاضر يم ستا په

لَا شَرِيكَ لَكَ فَيَقُولُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: وَيْلَكُمْ
خدمت کې زه، ستا سره بل شريک نشته نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به فرمايل چې افسوس دي تاسو باندې

قَدْ قَدْ
بس بس (يعنې بس هم دغه هومره وايې د دينه ډيرمه وايئ خو مشرکان کله منونکې وو هغوی به ددې

إِلَّا شَرِيكًا هُوَ لَكَ
نه وروسته دا ويل) يعنې ستا سره بل څوک شريک نشته دی) خو هغه (بت) ستا سره شريک دي چې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث: ۱۵٤۱، ومسلم في كتاب الحج.

| تَمْلِكُهُ وَمَا مَلَكَ |
| --- |
| چې هغه ستا په بادشاهۍ کې دی. ته د هغې مالک یې هغه شریک ستا مالک نه دی. مشرکانو به |
| يَقُوْلُوْنَ هٰذَا وَ هُمْ يَطُوفُوْنَ بِالْبَيْتِ. (۱) |
| به (د تلبيې) دا کلمات د خانه کعبې طواف کولو وخت کې به ويل. |

**توضيح**: قدٍ قدٍ: قاف باندې فتحه ده او دال باندې تنوين په صورتْ کې کسره ده.د کافٍ کافٍ په معنی دي يعنې دومره کافي دی. مخکې د شرک کلمات مه استعمالوی. بيا به خفه پښيمانه وی. په تاسو باندې ډير افسوس دې په همدغه انحصار کوې او مخکې مه ځی. (المرْقات: ۵/۴۲۲)

**تملكه وما لك**: په دې جمله کې دا **ما** نافيه هم کيدې شي او موصوله هم کيدې شي يعنې هغه بت مالک نه بلکه ته د هغې مالک يې. او که **ما** موصله وي نو ترجمه به داسې وي: يعنې ته د هغه بت مالک هم يې او د هغه بت په لاس کې چې څه دي د هغې هم مالک يې.

نن سبا د قبر پرست مشرکانو لپاره دا حديث تازينه عبرت دی. وخو گورۍ چې د مکې مشرکين څومره په معمولې خبره بد عقيده شول او کافران او مشرکان وګڼلې شول. او نن سبا ټول قبر را وکني او خاوره به د خوزدې لپاره واچوي. او د قبر مخې ته سجده لګوي او طوافونه کوي او خوشحالېږي چې د خپلې عقيدې اظهار مو وکړو. خپل بزرگان په غائبانه حاجتونو کې د لرې لرې علاقونه د مرکېدو نه مخکې او د مرکېدو نه وروسته هم دغه شان په ازاده رابلې چې خپله مشرک کافر وکتل نو هغه هم حيران شي. دا هر څه کوي او بيا هم د عاشق رسول ﷺ دعوی کوي.

(المرقات: ۵/۴۲۲)

ع

رند کے رند رہے پر ہاتھ سے جنت نہ چھوٹی

زندگی اس کی ہے ملت کے لئے پیغام موت ❀ کر رہا جو بجائے کعبہ قبروں کا طواف

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۸۴۳/۲ رقم الحديث: ۱۱۸۵/۲۲.

# باب قصة حجة الوداع
# د حجة الوداع واقعې بيان
## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَثَ بِالْمَدِينَةِ تِسْعَ سِنِينَ |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د هجرت نه وروسته) مدينه كې (۹) كاله داسې تېر كړل |
| لَمْ يَحُجَّ ثُمَّ |
| چې حج يې ونه كړو (خو عمرې يې وكړې لكه څنګه چې مخكې ذكر شوې) بيا (چې كله د حج فرضيت |
| أَذَّنَ فِي النَّاسِ بِالحَجِّ فِي الْعَاشِرَةِ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَاجٌّ |
| نازل شونو) په لسم كال يې خلكو ته اعلان وكړو چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حج اراده لري (چې څوک |
| فَقَدِمَ الْمَدِينَةَ بَشَرٌ كَثِيرٌ |
| حج ته تلل غواړې نو ملګرتيا ته تيار شي) د دې اعلان په اوريدو سره مدينه كې ډير خلک راجمع شو |
| فَخَرَجْنَا مَعَهُ |
| نو مونږ وو تو د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره (د ذي قعده مياشت ختميدو نه پنځه (۵) ورځې مخكې د |
| حَتَّى إِذَا أَتَيْنَا ذَا الْحُلَيْفَةِ فَوَلَدَتْ أَسْمَاءُ بِنْتُ عُمَيْسٍ |
| غرمې او ماز يګر په مينځ كې) كله چې مونږ ذو الحليفه ته ورسيدو نو هلته پيدا شو د اسماء بنت عميس |
| مُحَمَّدَ بْنَ أَبِي بَكْرٍ فَأَرْسَلَتْ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د خيټې نه محمد بن ابو بكر. اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا (څوک) د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت ته ولېږلو |
| كَيْفَ أَصْنَعُ ؟ |
| (او پوښتنه يې ترې وكړه) چې اوس زه څه وكړم؟ آيا احرام وتړم او كه نه؟ او كه وې تړم نو څنګه يې وتړم؟ |
| قَالَ : اغْتَسِلِي واسْتَثْفِرِي بِثَوْبٍ وَ أَحْرِمِي |
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل چې غسل وكړه او د ټوټې لنګ وتړه او بيا احرام وتړه بهر حال |

فَصَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ ثُمَّ رَكِبَ الْقَصْوَاءَ

نبي كريم ﷺ په مسجد ذو الحليفه كې مونځ وكړو او سپور شو په قصواء باندې (د نبي عليه السلام

حَتَّى إِذَا اسْتَوَتْ بِهِ نَاقَتُهُ عَلَى الْبَيْدَاءِ

د اوښې نوم وُ) تر دې چې د نبي عليه السلام اوښه د بيداء ميدان كې او دريده نو نبي عليه السلام هلته په

أَهَلَّ بِالتَّوْحِيدِ لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ

اوچت آواز سره د تلبيې دا كلمات وفرمايل حاضر يم ستا په خدمت كې زه اى الله! ستا په خدمت كې حاضر

لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ إِنَّ الْحَمْدَ

يم، حاضر يم ستا په خدمت كې ستا سره څوک شريک نشته، ستا په خدمت كې حاضر يم، بېشكه تعريف

وَ النِّعْمَةَ لَكَ وَ الْمُلْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ . قَالَ جَابِرٌ :

او نعمت ستا لپاره دي بادشاهي هم ستا لپاره ده. ستا سره څوک شريک نشته دى. جابر رضي الله عنه وايي

لَسْنَا نَنْوِي إِلَّا الْحَجَّ لَسْنَا نَعْرِفُ الْعُمْرَةَ

چې مونږ (د دينه مخكې) د حج نيت كولو او مونږ (د حج په مياشتو كې) د عمرې سره اشنا نه وو.

حَتَّى إِذَا أَتَيْنَا الْبَيْتَ مَعَهُ اسْتَلَمَ الرُّكْنَ

بهر حال مونږ چې كله د نبي عليه السلام سره بيت الله ته ورسيدو نو نبي عليه الصلاة والسلام حجر اسود ښكل كړو

فَطَافَ سَبْعًا فَرَمَلَ ثَلَاثًا

نو اوه طوافه يې وكړل او درې ځله يې رمل وكړو (يعنې زرزر او په زوره زوره د خانه كعبې طواف وكړو)

وَ مَشَى أَرْبَعًا

او څلور ځله يې په خپل مزل سره (يعنې په ورو ورو تللو سره طواف وكړلو او (د طواف نه وروسته)

ثُمَّ تَقَدَّمَ إِلَى مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ فَقَرَأَ : ﴿ وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى ﴾

مقام ابراهيم ارخ ته وړاندې شو او دا آيت يې ولوستو مقام ابراهيم (اړخونه) د لمونځ كولو ځاى جوړ كړى

فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ فَجَعَلَ الْمَقَامَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الْبَيْتِ

نو دوه ركعته مونځ يې وكړو بيا نبي كريم ﷺ مقام ابراهيم او بيت الله په خپل مينځ كې كړو

وَ فِي رِوَايَةٍ : أَنَّهُ قَرَأَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ : ﴿ قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ ﴾ وَ ﴿ قُلْ يَا أَيُّهَا الكَافِرُونَ ﴾

او د يو بل روايت مطابق په دي دوه رکعتو کې يې د قل هو الله احد او قل يا ايها الکافرون قرأت وکړو

ثُمَّ رَجَعَ إِلَى الرُّكْنِ فَاسْتَلَمَهُ ثُمَّ خَرَجَ مِنَ الْبَابِ إِلَى

بيا د حجر اسود طرف ته لاړو او هغه يې ښکل کړو. ددې نه وروسته وتلود جومات دروازې نه په باب

الصَّفَا فَلَمَّا دَنَا مِنَ الصَّفَا قَرَأَ :

الصفا باندې او د صفا غونډۍ طرف ته لاړو. نو کله چې صفا ته نزدې شولو نو دا آيت يې ولوستو

﴿ إِنَّ الصَّفَا وَ الْمَرْوَةَ مِنْ شعائِرِ اللهِ ﴾ أَبْدَأُ بِمَا

بېشکه صفا او مروه د الله (په دين) کې نښانيو نه دې) او وې فرمايل زه هم د هغه څه سره شروع کوم

بَدَأَ اللهُ بِهِ

سره چې الله شروع کړې ده (يعني څنګه چې الله تعالى په دې آيت کې اول د صفا ذکر کړى دى بيا يې

د مروه ، نو همدغه شان زه اول په صفا ورخېژم او بيا به په مروه ورخېژم ) نو نبي کريم ﷺ د

فَبَدَأَ بِالصَّفَا فَرَقِيَ عَلَيْهِ حَتَّى

(منډه ووهله) ابتداء د صفا نه وکړه او په هغې باندې ور وختلو تر دې چې کله نبي کريم ﷺ د

رَأَى الْبَيْتَ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ فَوَحَّدَ اللهَ وَ كَبَّرَهُ

(صفا نه) بيت الله وليدو نو قبلې ته يې مخ کړل او د الله تعالى وحدانيت او لوى يې بيان کړه او دا کلمات

وَ قَالَ : لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَ لَهُ الْحَمْدُ وَ هُوَ

يې وفرمايل چې: نشته څوک شريک د الله سره، هغه لره بادشاهي ده او هغه لره تعريف دى او هغه په

عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ. لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ

هر څه قادر دى د الله نه سيوا بل څوک لائق د عبادت نشته. هغه اک يو دى. هغه د (اسلام د خورولو)

أَنْجَزَ وَعْدَهُ وَ نَصَرَ عَبْدَهُ

وعده پوره کړه هغه د خپل بنده مدد وکړو او د کفارو لخکرو ته يې تن تنها ماتې ورکړه (په غزوۀ خندق کې)

وَ هَزَمَ الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ . ثُمَّ دَعَا بَيْنَ ذَلِكَ

بيا يې د هغې مېنځ کې دعا وکړه او درې (۳) ځله يې داسې ووېل يعني اول يې دا کلمات ووېل او

قَالَ مِثْلَ هٰذَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ نَزَلَ وَ مَشٰى إِلَى الْمَرْوَةِ

بیایې دعا وکړه او داسې یې درې ځله وویل. د هغې نه وروسته د صفا نه راکوزشو او لاړو د مروه غر

حَتّٰى انْصَبَّتْ قَدَمَاهُ فِي بَطْنِ الْوَادِي

طرف ته تر دې چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قدمونه مبارک لاندې میدان ته ورسیدل (یعنې د بره نه

ثُمَّ سَعٰى حَتّٰى إِذَا صَعِدْنَا مَشٰى حَتّٰى أَتَى الْمَرْوَةَ فَفَعَلَ عَلَى الْمَرْوَةِ كَمَا فَعَلَ عَلَى

خکته راغلو) نو د منډو په ځای ورو ورو لاړو او بیا چې مروه ته ورسیدو نو هغه څه یې وکړل کوم یې

الصَّفَا حَتّٰى إِذَا كَانَ آخِرُ طَوَافٍ عَلَى الْمَرْوَةِ نَادٰى

په صفا کې کړي وو تر دې چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مروه کې منډه (سعي) ختمه کړه. نو آواز یې

وَ هُوَ عَلَى الْمَرْوَةِ وَ النَّاسُ تَحْتَهُ فَقَالَ :

وکړو خلکو ته اګر که نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د پاسه په مروه باندې ؤ او خلک دده نه خکته وو او ووې فرمایل

لَوْ أَنِّي اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِي مَا اسْتَدْبَرْتُ لَمْ أَسُقِ

که خپل باره کې راته اول هغه خبره معلومه وې کومه چې وروسته معلومه شوه نو ما به نه وې راوستی

الْهَدْيَ وَ جَعَلْتُهَا عُمْرَةً فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ لَيْسَ

هدي (د قربانۍ څاروی) د ځان سره او خپل حج او عمره به مې کړې وه لهذا په تاسو کې چې چا نه وی

مَعَهُ هَدْيٌ فَلْيَحِلَّ وَلْيَجْعَلْهَا عُمْرَةً

راوستی د ځان سره هدي هغه حلال شي (یعنې د حج احرام کولاوو کړي) او حج عمره کړي. (د دې

فَقَامَ سُرَاقَةُ بْنُ مَالِكِ بْنِ جُعْشُمٍ فَقَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ

اوریدو سره) سراقه بن مالک بن جعشم اودریدو او وې ویل چې یا رسول الله! آیا دا حکم زمونږ لپاره

أَلِعَامِنَا هٰذَا أَمْ لِأَبَدٍ؟ فَشَبَّكَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصَابِعَهُ وَاحِدَةً فِي الْأُخْرٰى

فقط همدغه کال دې او که د همیشه لپاره دی؟ نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دیو لاس ګوتې په بل لاس کې

وَ قَالَ : دَخَلَتِ الْعُمْرَةُ فِي الْحَجِّ مَرَّتَيْنِ

ور کړې او وې فرمایل عمره په حج کې داخله شوه. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دا خبره دوه (۲) ځله وکړه او بیا یې

لَا بَلْ لِأَبَدٍ أَبَدٍ

وفرمایل (دا حکم خاص د دې کال لپاره نه دی) بلکه د همیشه لپاره دي (چې د حج په میاشتو کې عمره

وَ قَدِمَ عَلِيٌّ مِنَ الْيَمَنِ بِبُدْنِ النَّبِيِّ

جائز ده) د دینه وروسته راوستو حضرت علي رضی الله عنه (چې د یمن حاکم ؤ) د یمن هغه اوبن چې د نبي

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ لَهُ : مَا ذَا

علیه السلام (د قرباني په خاطر) د یمن نه راوستي ؤ نو نبي علیه السلام هغه ته وفرمایل چې کله تا خپل ځان

قُلْتَ حِينَ فَرَضْتَ الْحَجَّ ؟

باندې حج لازم کړي ؤ نو هغه (یعني د احرام تړلو وخت کې) وخت دې څه ویلي ؤ؟ (تا د څه لپاره احرام

قَالَ : قُلْتُ : اللهُمَّ إِنِّي أُهِلُّ

تړلي ؤ او څه نیت دې وو؟) حضرت علي رضی الله عنه ورته د اسې وویل چې ای الله! زه د هغه څه احرام تړم

بِمَا أَهَلَّ بِهِ رسولُكَ قَالَ : فَإِنَّ مَعِي

چې د کوم شي ستا رسول صلی الله علیه وسلم تړلي دی؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل ما سره خو د

الْهَدْيَ

قرباني ځاروي شته دي او ما د عمرې احرام تړلي، نو اوس چې تر څو پورې د حج او د عمرې نه اوزګار

شوي نه یم نو تر هغه وخت پورې د احرام نه نشم وتلي او دا چې تا هغه نیت کړي د کوم چې ما کړي دی)

فَلَا تَحِلَّ . قَالَ : فَكَانَ جَمَاعَةُ الْهَدْيِ الَّذِي

نو ته هم احرام مه پرانیزه. جابر رضی الله عنه وایي چې هغه اوبن کوم چې (نبي علیه السلام لپاره د قرباني لپاره)

قَدِمَ بِهِ عَلِيٌّ مِنَ الْيَمَنِ وَالَّذِي أَتَى بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت علي رضی الله عنه د یمن نه راوستي، او هغه اوبن کوم چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د ځان سره راوستي

مِائَةً قَالَ : فَحَلَّ النَّاسُ كُلُّهُمْ

ؤ دا ټول سل (۱۰۰) وو. جابر رضی الله عنه وایي چې د (نبي علیه السلام د ارشاد مطابق) خلاص کړو ټولو خلکو

وَ قَصَّرُوا إِلَّا

احرام (چا سره د قرباني ځاروي نه وو د عمرې لپاره) او د خپل (سرونو) ویختان یې غوڅ کړل. خو

النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَمَنْ كَانَ مَعَه مِنْ هَدْيٍ

نبي کريم صلی الله علیه وسلم او هغه خلک چې هغوی سره د قرباني ځاروي وو د احرام په حالت کې پاتې شو

فَمَا كَانَ يَوْمُ التَّرْوِيَةِ تَوَجَّهُوا إِلَى مِنًى

بيا چې کله د ترويه ورځ راغله (يعني د ذی الحجه اتم تاريخ) نو ټول خلک منی ته تللو لپاره تيار شو

فَأَهَلُّوا بِالْحَجِّ وَ

نو (هغه) صحابه (چې د عمرې د فراغت نه وروسته د احرام نه وتلي وو) د حج احرام يې وتړلو او

رَكِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَصَلَّى

نبي کريم صلی الله علیه وسلم هم (د لمر راختلو نه وروسته) سپور شو او منی ته ورسيد و نو مونځونه يې وکړل

بِهَا الظُّهْرَ وَ الْعَصْرَ وَ الْمَغْرِبَ وَ الْعِشَاءَ وَ الْفَجْرَ

منی (مسجد خيف) کې د غرمې، مازيگر، ماښام، ماسخوتن او د سحر او په نهم تاريخ د سحر لمونځ نه

ثُمَّ مَكَثَ قَلِيلًا حَتَّى طَلَعَتِ الشَّمْسُ وَ أَمَرَ بِقُبَّةٍ

وروسته يې لږ قيام وکړو تردې چې لمر راوختو او نبي علیه السلام حکم وکړو چې خيمه ولګوي د نبي علیه السلام

مِنْ شَعَرٍ تُضْرَبُ لَهُ بِنَمِرَةَ فَسَارَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

لپاره نمره غونډۍ (عرفات) کې چې هغه د وړيختانو نه جوړه شوې وه بيا روان شو نبي کريم صلی الله علیه وسلم

وَلَا تَشُكُّ قُرَيْشٌ إِلَّا أَنَّهُ وَاقِفٌ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ كَمَا كَانَتْ

(منی عرفات) ته د قريشو دا ګمان وو چې نبي علیه السلام به مشعر حرام کې قيام کوي لکه څنګه به چې

قُرَيْشٌ تَصْنَعُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَأَجَازَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

قريشو د جاهليت زمانه کې (د حج په موقع) کولو. خو نبي کريم صلی الله علیه وسلم د مزدلفې نه مخکې لاړو

حَتَّى أَتَى عَرَفَةَ فَوَجَدَ الْقُبَّةَ قَدْ ضُرِبَتْ لَهُ بِنَمِرَةَ

تردې چې ميدان عرفات ته راغلو او نمره غونډۍ کې خپله خيمه ولاړه وموندله نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم

فَنَزَلَ بِهَا حَتَّى إِذَا زَاغَتِ الشَّمْسُ أَمَرَ بِالْقَصْوَاءِ

هغې ته ننوتلو (او قيام يې وکړو) تردې چې غرمه تېره شوه نو حکم يې وکړو په راوستو د قصواء او بنې

فَرُحِلَتْ لَهُ

کله (چې قصواء راوستلې شوه) نو په هغې باندې یې پالان برابر کړو او (نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ په هغې سور شو

فَأَتَى بَطْنَ الْوَادِي فَخَطَبَ النَّاسَ وَ قَالَ : إِنَّ دِمَاءَكُمْ وَ أَمْوَالَكُمْ

او د نمره غونډۍ ته لاړو او خلکو ته یې خطبه وویله او وې فرمایل (خلکو) ستاسو وینه او ستاسو مال

حَرَامٌ عَلَيْكُمْ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هَذَا فِي شَهْرِكُمْ هَذَا

په تاسو داسې حرام دي لکه څنګه چې نن ورځ (عرفه) کې ستاسو په همدغه میاشت (ذي الحجه) کې

فِي بَلَدِكُمْ هَذَا

او په تاسو دا ښار (مکه) کې حرام ده (یعنې څنګه چې په تاسو د عرفې په ورځ، ذي الحجه په میاشت

کې او مکه مکرمه کې قتل و قتال او لوټنه حرام ګڼې، همدغه شان همیشه هیمشه لپاره او هرځای کې

دیو مسلمان نفس او مال بل مسلمان باندې حرام دی. لهذا تاسو کې هېڅ یو سړی به هېڅ وخت کې او

په هېڅ ځای کې د چا وینه مه تویه وی، د چا مال په غله او دهوکو سره مه خوری او څوک په نفسي یا

أَلَا كُلُّ شَيْءٍ مِنْ أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ تَحْتَ قَدَمَيَّ

په مالي تکلیف کې مه اخته کوی) یاد وساتی: د جاهلیت د زمانې هر یو شی زما د قدمونو لاندې دی

مَوْضُوعٌ

او پامال او بې قدره دي (یعنې موقوف او باطل) دي (لهذا د اسلام نه مخکې چې چا څه و کړل ما

وَ دِمَاءُ الْجَاهِلِيَّةِ

هغه ټول و بخښل او د جاهلیت د زمانې ټول رسم او رواج مې ختم کړل) د جاهلیت د زمانې قتلونه مې

مَوْضُوعَةٌ

و بخښل (نو که د جاهلیت زمانه کې چا د چا مرګ کړي وي نو اوس د هغې قصاص شته، نه دیت او نه

وَ إِنَّ أَوَّلَ دَمٍ أَضَعُ مِنْ دِمَائِنَا

کفاره بلکه د هغې د معافۍ اعلان دی) او د ټولو اول قتل چې هغه زه په قتلونو کې معاف کوم هغه د

دَمُ ابْنِ رَبِيعَةَ بْنِ الْحَارِثِ وَ كَانَ مُسْتَرْضَعًا فِي بَنِي سَعْدٍ

ربیعه ابن حارث د ځوی قتل دي (چې هغه د شودو ماشوم ؤ او) په قبیله بنو سعد کې یې شوده څکل

فَقَتَلَهُ هُذَيْلٌ وَ رِبَا الْجَاهِلِيَّةِ مَوْضُوعٌ وَ أَوَّلُ رِبًا أَضَعُ مِنْ

او هذیل هغه مړ کړي ؤ د زمانهٔ جاهلیت سود معاف کړي شوا و د ټولو نه اولني سود چې زه یې بخښم په

رِبَانَا رِبَا عَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَإِنَّهُ مَوْضُوعٌ كُلُّهُ

سودونو کې هغه د عباس بن عبد المطلب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سود دی نو د جاهلیت د زمانی سود مکمل بخښل شوي

فَاتَّقُوا اللهَ فِي النِّسَاءِ فَإِنَّكُمْ أَخَذْتُمُوهُنَّ بِأَمَانِ اللهِ

(خلکو) د ښځو په معامله کې د الله نه ویرېږئ، تاسو هغه د الله په امان کې اخستي دي (یعنې د هغوی

د حقوقو ورکول او د هغوی په عزت او احترام سره ساتل چې کوم وعده خدای تاسو نه اخستې ده یا هغه

وعدې کومه چې تاسو د الله تعالی سره کړي ده د هغې مطابق ښځې تاسو ته راغلې دي) او د هغوی

وَاسْتَحْلَلْتُمْ فُرُوجَهُنَّ بِكَلِمَةِ اللهِ وَ لَكُمْ

شرمګاهونه د الله په حکم سره (یعنې فَانْكِحُوا سره) د خپل ځان لپاره حلال ګرځولی دي او ستاسو په

عَلَيْهِنَّ أَنْ لَا يُوطِئْنَ فُرُشَكُمْ أَحَدًا تَكْرَهُونَهُ

ښځو دا حق دي چې هغه ستاسو بسترو ته داسې سړی را نه ولي چې د هغه راوستل په تاسو بد لګې

(یعنې هغوی دې ستاسو د اجازت نه بغیر بل هیچ چاته اجازه ور نه کړي اګر که هغه سړی وي او که

فَإِنْ فَعَلْنَ ذَلِكَ

ښځه) پس د دینه که هغه نافرماني وکړي (ستاسو د اجازې نه بغیر کور ته چاته د راننوتلو اجازه ور

فَاضْرِبُوهُنَّ ضَرْبًا غَيْرَ

کړي او د رټلو نه وروسته هم هغوی منع نه شول) نو تاسو هغه ووهئ خو داسې یې مه وهئ چې په هغې

مُبَرِّحٍ وَ لَهُنَّ عَلَيْكُمْ

سره زخم یا تکلیف ښکاره شي) او په تاسو باندې د هغوی دا حق دي چې تاسو هغوی ته د خپل وس

رِزْقُهُنَّ وَ كِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَ قَدْ تَرَكْتُ فِيكُمْ

مطابق د خوراک څښاک سامان، کور او جامه ورکړئ (خلکو) زه ستاسو مینځ کې داسې څه پرېږدم

مَا لَنْ تَضِلُّوا بَعْدَهُ

که مو هغه په کلکوالي سره ونیولو نو زمانه وروسته به تاسو هیڅ کله بې لارې نه شئ پس د عمل کولو

إِنِ اعْتَصَمْتُمْ بِهِ كِتَابَ اللهِ وَ أَنْتُمْ تُسْأَلُونَ عَنِّي

نه که چیر ته مو کلک ونیولو او هغه شي کتاب الله دی او ای خلکو (زما باره کې) به تاسو نه پوښتنه کیږي

(چې ما د رسالت فرائض پوره رسولي وو او که نه؟ او ما د دین احکامات تاسو ته رسولي وو او که نه؟)

فَمَا أَنْتُمْ قَائِلُونَ ؟ قَالُوا :

نو تاسو به څه جواب ورکوی؟ په دغه موقع باندې صحابه کرامو (په یو اواز سره) وویل چې مونږ (د

نَشْهَدُ أَنَّكَ قَدْ بَلَّغْتَ

الله تعالی په مخکې) د دې خبرې گواهي ورکوو چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دین تر مونږ پورې راورسو

وَ أَدَّيْتَ وَ نَصَحْتَ . فَقَالَ

خپل فرض یې پوره کړو او زمونږ خیر خواهي یې کړې وه. د دینه وروسته نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشاره

بِإِصْبَعِهِ السَّبَّابَةِ يَرْفَعُهَا إِلَى السَّمَاءِ وَ يَنْكُتُهَا إِلَى النَّاسِ :

وکړه په خپلې شهادت گوتې سره او یا دا چې د اسمان اړخ ته یې اوچته کړه او د خلکو طرف ته خکته

اللَّهُمَّ اشْهَدْ اللَّهُمَّ اشْهَدْ

کړه او وی فرمایل چې ای الله! (د خپل بنده گانو په دې اقرار او اعتراف) ته گواه وا وسی ای الله! ته گواه

ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ أَذَّنَ بِلَالٌ ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى الظُّهْرَ

وا وسې درې ځل، د دې نه وروسته بیا بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اذان وکړو او اقامت یې وویل او د غرمې لمونځ

ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى الْعَصْرَ وَ لَمْ يُصَلِّ بَيْنَهُمَا شَيْئًا

وکړي شو بیا (دویم ځل) اقامت وشو او د ماز یگر لمونځ وشو او د دې دواړو په مینځ کې هیڅ شی ونه شو

ثُمَّ رَكِبَ حَتَّى أَتَى الْمَوْقِفَ

(دسنتو او نفلو نه) بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سور شو او میدان عرفات کې او دریدلو ځای ته ورسیدو هلته یې

فَجَعَلَ بَطْنَ نَاقَتِهِ الْقَصْوَاءِ إِلَى الصَّخَرَاتِ وَ جَعَلَ حَبْلَ الْمُشَاةِ بَيْنَ يَدَيْهِ

د خپلې اوښې قصواء خیټه د کاڼو اړخ ته کړه او جبل مشاة (دا د یو ځای نوم دی) خپل مخې ته کینبود.

وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ فَلَمْ يَزَلْ وَاقِفًا حَتَّى غَرَبَتِ الشَّمْسُ وَذَهَبَتِ الصُّفْرَةُ قَلِيلًا حَتَّى غَابَ الْقُرْصُ

بیا یې قبلې ته مخ کړو او اودریدو تر دې چې لمر وغورځیدو، زیړوالي هم لږ لږ تللو او لمر ختم شو،

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَ | أَرْدَفَ | أُسَامَةَ | وَ | دَفَعَ | حَتَّى | أَتَى | الْمُزْدَلِفَةَ |

نبي کريم ﷺ اسامه رضي الله عنه خپل ځان سره شاته سور کړو او په تيزۍ سره مزدلفې ته راغلو.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَصَلَّى | بِهَا | الْمَغْرِبَ | وَ | الْعِشَاءَ | بِأَذَانٍ | وَاحِدٍ | وَ إِقَامَتَيْنِ |

دلته يې يو اذان او دوه تکبيرونو سره د ماښام او ماسخوتن لمونځونه وکړل او وې نه ويل د دې دواړو

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَ لَمْ | يُسَبِّحْ | بَيْنَهُمَا | شَيْئًا | ثُمَّ | اضْطَجَعَ | حَتَّى | طَلَعَ | الْفَجْرُ | |

مونځونو مينځ کې يې هيڅ شی، بيا نبي عليه السلام پريوتلو تردې چې سحر راوختلو نو نبي عليه السلام د

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَصَلَّى | الْفَجْرَ | حِينَ | تَبَيَّنَ | لَهُ | الصُّبْحُ | بِأَذَانٍ | وَ | إِقَامَةٍ | ثُمَّ | رَكِبَ الْقَصْوَاءَ |

سحر دڼا په خوريدو سره د اذان او اقامت سره د سحر لمونځ وکړو بيا نبي عليه السلام په قصوا اوښه سور شو

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حَتَّى | أَتَى | الْمَشْعَرَ | الْحَرَامَ | فَاسْتَقْبَلَ | الْقِبْلَةَ | فَدَعَاهُ | وَ كَبَّرَهُ | وَ هَلَّلَهُ |

او مشعر حرام ته راغلو او هلته يې په ژړا د الله دعا وغوښتله، تکبير يې وويل، لا اله الا الله يې وويل

وَ وَحَّدَهُ

او د خداي وحدانيت يې وويل (يعني لا اله الا الله وحده لا شريك له يې تر آخره پورې وويل) او هم

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمْ | يَزَلْ | وَاقِفًا | حَتَّى | أَسْفَرَ | جِدًّا | فَدَفَعَ |

هلته (په تکبير او تحليل کې مصروف شو) او دريدو تردې چې سحر ښه روښانه شو لاړو د دې ځای نه د

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَبْلَ | أَنْ | تَطْلُعَ | الشَّمْسُ | وَ | أَرْدَفَ | الْفَضْلَ | بْنَ | عَبَّاسٍ | حَتَّى | أَتَى | بَطْنَ مُحَسِّرٍ |

لمر راختلو نه مخکې او فضل بن عباس رضي الله عنه يې د ځان سره شاته سور کړو کله چې ورسيدو بطن محسر

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَحَرَّكَ | قَلِيلًا | ثُمَّ | سَلَكَ | الطَّرِيقَ | الْوُسْطَى | الَّتِي |

ته نو خپله سورلۍ يې (په تيزه بو تللو لپاره) لږ حرکت يې ورکړو او په هغه مينځنۍ لاره لاړو کومه چې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تَخْرُجُ | عَلَى | الْجَمْرَةِ | الْكُبْرَى | حَتَّى | أَتَى | الْجَمْرَةَ | الَّتِي | عِنْدَ الشَّجَرَةِ |

په جمرهٔ کبرى د پاسه وتلې ده تردې چې نبي عليه السلام هغه جمرى خواته ورسيدو چې د بوټي سره نزدې وه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَرَمَاهَا | بِسَبْعِ | حَصَيَاتٍ | يُكَبِّرُ | مَعَ | كُلِّ | حَصَاةٍ مِنْهَا |

او هغه يې په اووه کاڼو يې داسې وويشتله چې په هر کاڼي سره به يې تکبير لوستلو او هغه کاڼي د

مِثْلَ حَصَى الْخَذْفِ رَمَى مِنْ بَطْنِ الْوَادِي

جوارو دداني برابر دي او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه کاڼي په نالۍ (يعني د غونډۍ د مينځ نه) وويشتل. ددې نه

ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَى الْمَنْحَرِ فَنَحَرَ ثَلَاثًا وَ سِتِّينَ بَدَنَةً

وروسته د قربانۍ ځای (چې هغه په منی) کې دی راغلو او دلته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ذبح کړل ۶۳ اوښان په

بِيَدِهِ ثُمَّ أَعْطَى عَلِيًّا فَنَحَرَ مَا غَبَرَ

خپل لاس مبارک سره نورې علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وسپارل نو پاتې (۳۷) اوښان علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ذبح کړل. نبي

وَ أَشْرَكَهُ فِي هَدْيِهِ ثُمَّ أَمَرَ مِنْ

عَلَيْهِ السَّلَامُ خپل د قربانۍ څاروکې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم شريک کړي وُبيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ حکم وکړو چې

كُلِّ بَدَنَةٍ بِبَضْعَةٍ فَجُعِلَتْ فِي قِدْرٍ

په هريو اوښ کې د غوښې يوه ټوټه واخيستلي شي (نو هغه ټولې غوښې واخستلي شوي) په يو ديګچې

فَطُبِخَتْ فَأَكَلَا مِنْ لَحْمِهَا

کې واچولي شوه او هغه پښه کړي شوه (چې کله غوښه پښه شوه نو) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ او علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د

وَ شَرِبَا مِنْ مَرَقِهَا ثُمَّ رَكِبَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

قربانۍ د هغه غوښې نه غوښه وخوړه او د هغې خوروا يې وڅکله. بيا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سور شو

فَأَفَاضَ إِلَى الْبَيْتِ فَصَلَّى بِمَكَّةَ الظُّهْرَ

او خانه کعبې طرف ته روان شو هلته رسيد وسره يې طواف وکړو او په مکه کې يې د غرمې لمونځ وکړ

فَأَتَى عَلَى بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ

بيا يې د عبد المطلب اولاد (يعني خپل تره عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دده اولاد) ته تشريف يوړو چې هغوی د

يَسْقُونَ عَلَى زَمْزَمَ فَقَالَ : انْزِعُوا بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ

زم زم اوبه ورکولې، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغوی ته وفرمايل. د عبد المطلب اولاد : (د زم زم اوبه) راوباسئ

فَلَوْلَا

او (په خلکو يې وڅکې داد ثواب کار دی) که ما سره دا دې خبرې ويره نه وي چې خلک ما او بو راويستل

| |
|---|
| أَنْ يَغْلِبَكُمُ النَّاسُ |
| باندې ووينې او بيا زما په اتباع کې خپله هم اوبه راويستل شروع کړي او دلته به ډيرزيات راجمع شي |
| او د هغې په وجه به د زمزم د اوبو راويستل او د هغې د څکولو سعادت ستاسو لاس نه لاړ شي. ما به |
| عَلَى سِقَايَتِكُمْ لَنَزَعْتُ مَعَكُمْ . |
| خپله اوبه راويستلې او په خلکو به مې څکولې نو د عبد المطلب اولاد نبي کريم ﷺ ته (د |
| فَنَاوَلُوهُ دَلْوًا فَشَرِبَ مِنْهُ .[1] |
| اوبو) يو بوقه ورکړه چې نبي کريم ﷺ د هغې نه اوبه وڅکلې. |

**توضيح: قال الله تعالى ﴿لقد كان لكم في رسول الله اسوة حسنة﴾ (الاحزاب الايه:۲۱)**

د حجة الوداع د الفاظو تحقيق د دې نه مخکې حديث نمبر ۶ کې شوې دی.

د حجة الوداع په موقع باندې نبي کريم ﷺ سره د صحابوو څومره شمېره وه. پدې کې ځينو حضراتو قول دی چې څلويښت زره (۴۰۰۰۰) نفوس قدسيه شريک وو. ځينې حضرات وايي چې نوي زره (۹۰۰۰۰) صحابه ورسره وو. د ځينو حضراتو قول دی چې يو لاکه ديرش زره (۱۳۰۰۰۰) صحابه ورسره وو. ځينو د يو نيم لاکه (۱۵۰۰۰۰) قول هم اخستې دی. هريو اندازه لګولې او شمېره يې ويلې ده. يقينې شمار خو چا نه وو کړی.

**لسنا نعرف العمرة: ای لسنا نعرف العمرة في اشهر الحج** د دې مطلب دا دی چې زمونږ خيال وو چې نبي کريم ﷺ به فقط حج کوي عمره به نه کوي. دا خيال ځکه وو چې د په زمانهٔ جاهليت کې په عرب دا رواج ؤ چې هغوی به په اشهر الحج کې عمره کول ته **افجر الفجور** يعنې لويه ګناه ګڼله. نبي کريم ﷺ غوښتل چې دا رسم مات شي نو ځکه نبي کريم ﷺ صحابه کرامو ته د عمرې کولو حکم ورکړو. يا دا جمله د دې نه مخکې جملې لپاره تاکيد دی. (المرقات: ۵/۴۲۶)

**هزم الاحزاب وحده:** دا غزوهٔ احزاب او جنګ خندق ته اشاره کوي. دولس زره (۱۲۰۰۰) کفارو د مدينې محاصره کړې وه. تر يوې مياشت پورې هلته نژدې پراته وو. بيا الله تعالى هوا وچوله او کفار په تيختنه مجبور شول. نبي کريم ﷺ د الله د دې نصرت او مدد شکر وباسولو. دلته هم د دې شکر ذکر شوې دی. (المرقات: ۵/۴۲۹)

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۸۸۶/۲ رقم الحديث: ۱۴۷/۱۲۱۸.

**لواني استقبلت:** يعني که ماته د راتلونکو کارونو علم د مخکې نه کيدلې چې ځينې خلک به د ځان سره څاروي نه راوړي او ځينې به قِران کوي، ځينې به افراد کوي او ځينې به د عمرې نه وي. په دغه شان کولو سره به زما او د هغې په عمل کې فرق راشي. که ماته د خبرې علم د مخکې نه کيدلې نو ما به کله هم د هدي حاروي د ځان سره نه راوستلې ځکه وس تاسو احرام پرانيزئ او د خپل حج نه عمره جوړه کړئ چې په اشهر الحج کې د عمرې نه کولو رواج مات شي.

د حجة الوداع په موقع چې کله نبي کريم ﷺ مکې ته ورسيدلو نو هلته د خلکو عمل داسې بدل شو چې ځينې خلکو د ځان سره د قرباني څاروي راوستلي وو. نبي کريم ﷺ هم راوستلي وو. د خلک د يوم النحر پورې احرام نشو پرانيستلی. ځينو څاروي د ځان سره نه وو راوستلې. هغوی ته نبي کريم ﷺ فسخ الحج الي العمرة حکم کړي وو. نو هغوی ته دا لږه گرانه شوله چې د نبي کريم ﷺ د عمل خلاف به څنګه پاتې کېږو. دويمه دا چې د حج ورځې هم بيخې لږې پاتې شوي وي. او دا چې په زمانهٔ جاهليت کې د دغه شان اشهر حج کې عمره کول هغه خلکو افجر الفجور گڼلو. پدې باندې نبي کريم ﷺ د تلطف انداز کې غصه وکړه او وې فرمايل که چرې ماته د راروان وخت علم مخکې شوي وي چې ځينې خلک به بغير د هدي نه راځي نو نا به هم د ځان سره نه وې راوستی. (المرقات :۵/۴۳۰)

اوس تر مسئلې پورې خبره دا ده چې امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ الله او اهل ظواهر وايي چې څنګه په دې سفر کې شوي دي هميشه لپاره جائز دي چې يو سړی خپل حج فسخ کړي او عمره يې کړي. هغوی د بحث لاندې حديث کې د لا بدلابد الفاظو نه استدلال کړي دی.

جمهور علماء او فقهاء فرمايي چې دا ضابطه نه ده صرف هم په دغه کال دصحابه کرامو دپاره دغه حکم وو دې دپاره چې دجاهليت رسم مات شي دليل پرې دابوداود او نسائي دارِوايت دی :

**عن بلال عن الحارث عن ابيه قال قلت يا رسول الله ارئيت فسخ الحج بالعمرة لنا خاصة ام للناس عامة فقال بل لنا خاصة. (المرقات :۵/٤۲۲).**

**دلابدلابد** جواب دا دي چې د دې تعلق د فسخ سره ندي بلکه عمرې سره دی. د دې جملې نه د بريليانو په خوله باندې يوه ناترسه څپيړه شي چې هغوی وايې نبي کريم ﷺ ماکان وما يکون او د ذرې ذرې علم غيب لرې.

**دخلت العمرة اي دخلت العمرة في اشهر الحج** دا هم همغې ضابطې او قانون ارخ ته اشاره کوي چې وس اشهر حج کې عمره کول گناه نده پاتې او دا حکم د هميشه لپاره دی.

**بنمرة:** د عرفات په میدان کې د یو ځای او مقام نوم نمره دی. په هغه ځای کې د نبي کریم ﷺ خیمه لګولې شوې وه. او نن سبا مسجد نمره په همغه ځای باندې په همغه نوم مشهور دی. دلته د غرمې او ماز یګر لمونځ په یو ځای د یو اذان سره لوستلې کیږي.

**المشعر الحرام:** مزدلفه کې د یو غونډۍ نوم دی. نن سبا دلته یو غټ جومات دی. مزدلفه کې هر وخت وقوف جائز دی خو دا ځای غوره دی. (المرقات: ۵/۴۳۵).

**بطن محسر:** مزدلفې نه منی طرف ته د منی سره نژدې یوه غونډۍ ده چې نوم یې وادي محسر ده. حاجیانو ته حکم دی چې دلته نه زر زر لاړ شي ځکه دلته ابرهه ظالم باندې د آسمان نه عذاب نازل شوی ؤ مزدلفه کې هر ځای کې وقوف جائز دی خو وادي محسر کې جائز نه دی. (المرقات ۵/۴۴۲)

**یغلبکم الناس:** یعنې که زه د دې کوهي نه د زمزم د ابو ډول راوباسم نو ټول خلک به زما په اقتدار کې دا کار شروع کړي. نو بیا به همدغه شان تاسو دغه عهده لاړه شي. نو ځکه سره د غوښتلو نه هم زه په ډول باندې او به نه راوباسم. (المرقات: ۵/۴۴۷)

## د تنعیم نه د عمرې ثبوت

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ: خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ |
| عائشه رضي الله عنها وایي چې (کله) نبي کریم ﷺ مونږ سره د حجة الوداع په موقع روان شونو په |
| فَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ وَ مِنَّا مَنْ |
| مونږ کې ځینې هغه (خلک) وو چې هغوی فقط د عمرې احرام تړلې ؤ او ځینې هغه وو چې هغوی (فقط) |
| أَهَلَّ بِحَجٍّ فَلَمَّا قَدِمْنَا مَكَّةَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ |
| د حج (یا د حج او عمرې دواړو) احرام تړلې وو نو هر کله چې مونږ مکې ته ورسیدو نو وفرمایل رسول الله |
| صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ وَ لَمْ يُهْدِ |
| ﷺ چې کوم سړی چې فقط د عمرې احرام تړلې دي او د ځان سره یې د قربانۍ ځاروي نه دي |
| فَلْيَحْلِلْ |
| راوستی، هغه (د عمرې د کارونو نه وروسته د خپل سر ویختان غوڅ کړي، احرام پرانیزي او چا چې |
| وَ مَنْ أَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ وَ أَهْدَى فَلْيُهِلَّ بِالْحَجِّ مَعَ الْعُمْرَةِ |
| د عمرې احرام تړلې دي او د قربانۍ ځاروي یې ځان سره راوستي دي نو هغه د حج د عمرې احرام هم وتړي |

ثُمَّ لَا يَحِلُّ حَتَّى

(يعنې حج د عمرې سره یو ځای کړي او قارن شي) او احرام مه پرانيزي ترڅو چې د حج او عمرې دواړو

يَحِلُّ مِنْهَا . وَ فِي رِوَايَةٍ : فَلَا يَحِلُّ حَتَّى يَحِلَّ

دواړو نه فارغ شوي نه وي او په يو روايت کې دي چې احرام به نه پرانيزي ترڅو چې ځان حلال نه کړي

بِنَحْرِ هَدْيِهِ وَ مَنْ أَهَلَّ بِحَجٍّ

په ذبح کولو د څاروی سره او چا چې د حج احرام تړلي وي (که د قربانۍ څاروي يې ځان سره راوستي

فَلْيُتِمَّ حَجَّهُ .

وي او يا يې نه او د حج سره يې د عمرې احرام هم تړلي وي يا نه) نو دا دې خپل حج پوره کړي (خو

کوم خلکو ته چې د عمرې سره د حج د فسخ کولو حکم کړي شوي څنګه چې په تېر شوي روايت کې

قَالَتْ : فَحِضْتُ

ذکر شوي دي هغه خپل حج مه پوره کوي). عائشه رضي الله عنها وايي، دا چې زه حائضه وم نو ځکه (مکې

وَ لَمْ أَطُفْ بِالْبَيْتِ وَلَا بَيْنَ الصَّفَا وَ الْمَرْوَةِ

ته رسيدو سره) نه خو ما (عمرې لپاره) طواف وکړو او نه مې د صفا او مروه په مينځ کې منډه ووهله

فَلَمْ أَزَلْ حَائِضًا حَتَّى كَانَ يَوْمُ عَرَفَةَ وَلَمْ أُهْلِلْ إِلَّا بِعُمْرَةٍ

زه د حيض په حالت کې وم چې د عرفې ورځ راغله دا چې ما خو د عمرې احرام تړلي ؤ نو ځکه ماته

فَأَمَرَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنْ أَنْقُضَ رَأْسِي وَ أَمْتَشِطَ وَ أُهِلَّ بِالْحَجِّ

نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې زه خپل سر پرانيزم او ويختان ګومنزوم او بيا د حج احرام ترم. خو

وَ أَتْرُكَ الْعُمْرَةَ فَفَعَلْتُ

دا چې عمره به پرېږدم (يعنې د حج نه د فارغيدو نه پس د عمرې د احرام قضا به وکړم) نو ما هم دغه شان

حَتَّى قَضَيْتُ حَجِّي بَعَثَ مَعِي عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ أَبِي بَكْرٍ

وکړل او کله چې ما حج وکړو نو نبي عليه السلام ماسره عبد الرحمن بن ابوبکر رضي الله عنه (تنعيم) ته ولېږلو

وَ أَمَرَنِي أَنْ أَعْتَمِرَ مَكَانَ عُمْرَتِي مِنَ التَّنْعِيمِ

او ماته يې حکم وکړو چې د مقام تنعيم نه (احرام تړلو سره) د خپل قضا شوي عمره په بدله کې عمره وکړه

| قَالَتْ : | فَطَافَ | الَّذِينَ | كَانُوْا | أَهَلُّوا | بِالْعُمْرَةِ | بِالْبَيْتِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عائشه رضي الله عنها وايي چې طواف دبيت الله وكړو هغه خلكو كومو چې صرف د عمرې احرام تړلي وو | | | | | | |
| وَ | بَيْنَ | الصَّفَا | وَ | الْمَرْوَةِ | ثُمَّ | حَلُّوا | ثُمَّ | طَافُوْا |
| اوبيا يې دصفا او مروه مينځ كې منډه ووهله دهغې نه وروسته هغوى احرام خلاص كړو بيا يې طواف | | | | | | |
| بَعْدَ | أَنْ | رَجَعُوا | مِنْ | مِنًى | وَ | أَمَّا | الَّذِينَ |
| وكړو (طواف اضافه) پس د هغې نه چې خلک د منى نه (مكى) ته واپس راغلل او چې كومو خلكو | | | | | | |
| جَمَعُوا | الْحَجَّ | وَ | الْعُمْرَةَ |
| حج او عمره يو ځاى كړي وو (يعنې د شروع نه يې دحج او د عمرې احرام تړلي وو يا يې وروسته دواړه | | | | | | |
| فَإِنَّمَا | طَافُوا | طَوَافًا | وَاحِدًا. (۱) |
| يو ځاى كړې وو) هغوى فقط يو طواف وكړو. | | | | | | |

**توضيح: فليتم حجه:** د دينه اول روايت كې د فسخ الحج الي العمرة حكم دي او دلته د حج د تكميل او عدم فسخ حكم دى. چې په ښكاره تعارض دى. د دې جواب دا دي چې تكميلِ حج معامله د هغه خلكو ده چې هغوى ته د فسخ حج حكم نه وو شوى. چې د هغې ذكر دلته حديث كې شته دى. د دينه مخكې چې كوم حديث تېر شوي دى. هغه د هغه خلكو متعلق دي چې هغوى ته فسخ الحج الي العمرة حكم كړي شوي وو. نو بېل بېل خلک دي. هېڅ تعارض نشته دى. (المرقات: ۵/۴۴۸)

**من التنعيم:** مكې مكرمې سره نژدې د يو ځاى نوم دي چرته چې غټ جومات دى. چې د مسجد عائشه په نوم مشهور دى. چې د مكې نه د درې (۳) ميل مسافت باندې پروت دى. او دا ځاى د ارض حرم نه بار زمين حل كې دى. د دې حديث يو جواب هغه خلكو ته ملاوو شو چې هغه د تنعيم نه د حج كولو قائل ندې او وايې چې هغه د عمرې احرام د زمن حل نه وتړى. زمين حرم نه يې مه تړى او تنعيم زمين حل كې دى. خو اهل ظواهرو مسلک دا دي كه د اهل حرم د خلكو د عمرې لپاره فقط تنعيم خاص دى. عامه ارض حل نه احرام نشې تړلى. جمهور فقهاء وايي چې اصل حكم د زمين حرم نه د وتلو دى. د تنعيم څه تخصيص نشته دى. ها دا خبره ده چې تنعيم نژدې پريوځې نو څكه نبي

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۱۹/۱، رقم الحديث: ۳۱۹، ومسلم في صحيحه ۸۷۰/۲ رقم الحديث: ۱۲۱۱/۱۱۱.

کریم صلی الله علیه وسلم حضرت عائشه رضی الله عنها هلته لېږلې وه. (المرقات :۵/۴۴۹)

**طافوا زوافا:** دا د قارن مسئله ده. ائمه ثلاثه وايي چې عام حاجي او قارن فرق فقط په نيت کولو او احرام تړلو کيدی. د دينه وروسته د حج کارونو کې قارن او غير قارن ټول برابر دي. خو ائمه احناف وايي چې قارن به دوه طوافه او دوه سعي به کوي. (المرقات :۵/۴۴۹)

جمهورو د زير بحث حديث نه استدلال کړي دي چې په هغې کې **طوافاً واحداً** و اضحه الفاظ شته.

احناف ددې جواب داسې ورکوي چې **طوافاً واحداً** مطلب دا چې **انما طافوا الکل منهما طوافاً واحداً** يعنې حج او عمره دواړو کې د هريو لپاره يو يو طواف دی. شيخ الهند نه منقول دي چې دلته طواف نه مراد طواف قدوم ندي بلکه طواف زيارت مراد دې او هغه د ټولو لپاره يو دی. بهر حال دا دواړه تاويلونه دي او لرې هم دي. خو پوښتنه دا ده چې د قارن په افعالو کې د قِران اثر ښکاره نشي نو بيا د قِران مطلب څه شو. بيا هغې ته افراد يا تمتع نه جدا نوم او مقام ولې ور کړې شوي دی. دلته دارقطني کې د يو حديث نه ثابتيږي چې د قارن لپاره دوه طوافه او دوه منډې دي.

## حج تمتع ثابت دی

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ تَمَتَّعَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ |
| عبدالله ابن عمر رضی الله عنهما وايي چې يو ځای کړه نبي کريم صلی الله علیه وسلم په حجة الوداع کې عمره د حج سره (حج تمتع يې وکړو يعنې فائده يې اوچته کړله خو اول د عمرې احرام تړل او بيا د حج احرام تړل دي) |
| فَسَاقَ مَعَهُ الْهَدْيَ مِنْ ذِي الْحُلَيْفَةِ وَ بَدَأَ فَأَهَلَّ |
| او ذوالحليفه نه د قرباني ځاروي ځان سره راوستې وي نو په اول ځل نبي کريم صلی الله علیه وسلم احرام تړلې |
| بِالْعُمْرَةِ ثُمَّ أَهَلَّ بِالْحَجِّ فَتَمَتَّعَ النَّاسُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ |
| ؤ د عمرې بيا يې د حج احرام وتړلو او ځينو خلکو هم د نبي کريم صلی الله علیه وسلم سره عمره د حج سره يو ځای |
| فَكَانَ مِنَ النَّاسِ مَنْ أَهْدَى |
| کړه او حج تمتع يې وکړو ځينې خلک (چې هغوی د عمرې احرام تړلې ؤ) هغه وو چې د قرباني ځاروي |
| وَ مِنْهُمْ مَنْ لَمْ يُهْدِ فَلَمَّا |
| يې د ځان سره راوستې ؤ او ځينې هغه وو چا چې د ځان سره د قرباني ځاروي نه ؤ راوستي. چې کله |

قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ قَالَ لِلنَّاسِ : مَنْ كَانَ مِنْكُمْ

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مكې ته ورسيدونو (د عمرې) خلكو ته يې وفرمايل چې په تاسو كې چې كوم

أَهْدَى فَإِنَّهُ لَا يَحِلُّ مِنْ شَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ

سړى د قرباني څاروي د ځان سره راوستى وى هغه دې هغه شيز نه حلالوى چې د هغه څخه منع شوې دى

حَتَّى يَقْضِيَ حَجَّهُ وَ مَنْ لَمْ يَكُنْ مِنْكُمْ أَهْدَى

(احرام دې نه خلاصوي) تر دې چې خپل حج ادا كړى او كوم سړى چې د قرباني څاروى نه وي راوستي

فَلْيَطُفْ بِالْبَيْتِ وَ بِالصَّفَا وَ الْمَرْوَةِ وَلْيُقَصِّرْ

نو هغه دې (د عمرې لپاره) د خانه كعبې طواف وكړئ د صفا او مروه په مينځ كې منډه ووهي ويختان غوڅ

وَلْيَحْلِلْ

كړى او بيا هغه (د عمرى) احرام پرانيزى. (يعني كوم شيان چې د احرام په حالت منع وو هغه دې مباح

ثُمَّ لِيُهِلَّ بِالْحَجِّ

كړي) د دې نه وروسته دې د حج لپاره (په دويم ځل) احرام وتړى. (او رمي جمار نه وروسته د سر خرئيلو

وَلْيُهْدِ

نه مخكې د نحر ورځ) قرباني وكړئ (ځكه چې د عمرې او د حج د كولو توفيق او حق تعالى د دې لوى نعمت

فَمَنْ لَمْ يَجِدْ هَدْيًا

د شكر ايستلو په توګه متمتع باندې قرباني واجب ده) او كه چې د قرباني څاروي نه موندلي كېږي نو

فَلْيَصُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ

هغه درې روژې د حج په ورځو كې (يعني د حج په مياشتو كې د احرام نه وروسته او د قرباني د ورځې نه

مخكې) ونيسى. (په دې كې بهتره داده چې د ذي الحجې اوم، اتم او نهم تاريخ باندې روژې ونيسي)

وَ سَبْعَةً إِذَا رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ

او اوه روژې هغه وخت ونيسى چې كله خپل اهل و عيال ته ورسېږى (يعني د حج د كارونو د فراغت

نه وروسته نيول په كار دي. په مكه كې دا ټولې روژې ونيسى اګر كه كور ته ورسېږي) بهر حال نبي

| |
|---|
| فَطَافَ حِينَ قَدِمَ مَكَّةَ |
| کریم ﷺ مکې ته په رسیدو سره (د عمری لپاره) د خانه کعبې طواف وکړو او (د طواف چې |
| وَ اسْتَلَمَ الرُّكْنَ أَوَّلَ شَيْءٍ ثُمَّ |
| کوم افعال وو په هغې کې د ټولو شیانو نه اول (خو د لبیکویلو نه وروسته) حجر اسود ښکل کړو، او |
| خَبَّ ثَلَاثَةَ أَطْوَافٍ وَ مَشَى أَرْبَعًا |
| په طواف کې خو یې درې ځله زر زر لاړو او ځلور ځله په معمولي مزل سره لاړو. بیا د خانه کعبې نه د |
| فَرَكَعَ حِينَ قَضَى طَوَافَهُ بِالْبَيْتِ عِنْدَ الْمَقَامِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ |
| ګیرچاپېره طواف کولو نه وروسته په مقام ابراهیم باندې دوه رکعته مونځ وکړو او سلام یې وګرځولو |
| (یعنې صلوة الطواف یې وکړلو، د حنفیو په نزد دا مونځ واجب دی) د دینه وروسته (خانه کعبې) نه |
| فَانْصَرَفَ فَأَتَى الصَّفَا فَطَافَ بِالصَّفَا وَ الْمَرْوَةِ سَبْعَةَ أَطْوَافٍ ثُمَّ |
| صفا ته راغلو او د صفا او مروه په مینځ کې یې اوه چکرې (یعنې منډې) ووهلې. د دینه وروسته بیا |
| لَمْ يَحِلَّ مِنْ شَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ حَتَّى |
| د څه داسې شي سره حلال نه شو چې د هغې نه منع کیدې شي (یعنې د احرام نه بهر نه راتلو) تر دې چې |
| قَضَى حَجَّهُ وَ نَحَرَ هَدْيَهُ يَوْمَ النَّحْرِ |
| نبي علیه السلام خپل حج پوره کړو او ذبح یې کړه قرباني د نحر په ورځ (په لسم د ذي الحجه باندې) او بیا |
| وَ أَفَاضَ فَطَافَ بِالْبَيْتِ |
| (منی نه) لاړو او (مکې ته رسیدو سره) خانه کعبې نه طواف (طواف اضافه) وکړو او ددې نه وروسته |
| ثُمَّ حَلَّ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ |
| هر هغه شي حلال شو چې هغه ممنوع وو (یعنې اوس د طواف د فراغت نه وروسته د خپلې ښځې سره |
| وَ فَعَلَ مِثْلَ مَا فَعَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَنْ |
| هم بستري کول هم حلال شول) او دوی هغه افعال وکړل کوم چې رسول الله ﷺ کړي وو د چا |

| سَاقَ الْهَدْيَ مِنَ النَّاس.(١) |
|---|
| سره چې د قربانۍ ځاروي وو. |

**توضيح:** د دې حديث نه ثابت شول چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم حج تمتع كړی وو. همدغه د امام احمد بن حنبل مسلک دی. احناف دا حديث په قِران باندې حمل كوي او د تمتع د ټكو معنی لغوي اخلې يعنې ګټه اخستل او د قِران په صورت كې دوه ګټې اخستلې كېږي. بهر حال دا يوه بعيد تاويل دی خو د دې ګنجائش قران كې څه روايات تو پيدا كړي دی.

## په اشهر الحج كې عمره كول جائز ده

| ﴿٤﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذِهٖ عُمْرَةٌ اسْتَمْتَعْنَا بِهَا |
|---|
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل دا عمره ده چې د كوم نه مونږ ګټه اخيستې |
| فَمَنْ لَمْ يَكُنْ عِنْدَهُ الْهَدْيُ فَلْيَحِلَّ الْحِلَّ كُلَّهُ |
| ده چا سره چې د قربانۍ ځاروي نه وي نو هغه دې په هره توګه سره حلال شي (يعني د عمرې نه وروسته |
| فَإِنَّ الْعُمْرَةَ قَدْ دَخَلَتْ فِي الْحَجِّ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ.(٢) |
| دې احرام پرانيزي) ځكه د حج په مياشتو كې عمره كول تر قيامته پورې جائزه شوې ده. |

**توضيح:** ښا ښا ليكلي شوي دي چې د عربو خلكو په جاهليت كې عمره د اشهر الحج نه جدا كوله. او هغې لپاره به يې مسجع كلام لوستلو. نو ځكه بخاري كې داسې حديث دی: **عن ابن عباس رضي الله عنه قال كانوا يرون ان العمرة في اشهر الحج افجر الفجور في الارض و يجعلون المحرم صفر و يقولونه اذا برأ الدبر وعفا الاثر وانسلخ صفر حلت العمرة لمن اعتمر.** يعنې چې كله د اوښ زخمونه ښه شي او د قدمونو نښاني يې وراني شي او د صفر مياشت تېره شي نو ښا به د عمره كولو والاوو لپاره عمره حلاله شي. د دغه رسم او رواج ماتولو لپاره ځكه په دې حديث كې ويلي كېږي چې عمره تر قيامته پورې په حج كې داخله شوه.

### وَهٰذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّانِي

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٥٣٩/٣ رقم الحديث :١٦٩١، ومسلم في صحيحه ٩٠١/٢ رقم الحديث: ١٢٢٧/١٧٤.

(٢) أخرجه مسلم في صحيحه ٩١١/٢ رقم الحديث :١٢٤١/٢٠٣.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## په فسخ الحج باندې د صحابو تردد

| |
|---|
| ﴿٥﴾ عَنْ عَطَاءٍ قَالَ : سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ فِي نَاسٍ مَعِي |
| عطاء رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د ډيرو سړو سره چې هغه ما سره په مجلس کې شريک وو د جابر ابن عبد الله |
| قَالَ : |
| رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه اوريدلي وو هغوى به ويل چې (حجة الوداع په موقع باندې) مونږ صحابه (بغير د عمرې د |
| أَهْلَلْنَا أَصْحَابَ مُحَمَّدٍ بِالْحَجِّ خَالِصًا وَحْدَهُ قَالَ عَطَاءٌ : قَالَ جَابِرٌ : |
| شموليت نه) خالص د حج احرام وتړلو. عطاء رَحِمَهُ اللهُ وايي چې جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې راورسيدو نبي |
| فَقَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صُبْحَ رَابِعَةٍ مَضَتْ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ فَأَمَرَنَا |
| کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ذي الحجه په څلورم تاريخ باندې سحر (مکې) ته نو مونږ ته يې حکم وکړو چې |
| أَنْ نَحِلَّ قَالَ عَطَاءٌ : قَالَ : حِلُّوا |
| چې احرام پرانيزو د عطاء رَحِمَهُ اللهُ بيان دې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې احرام پرانيزئ او لاړشئ د ښځو |
| وَ أَصِيبُوا النِّسَاءَ . قَالَ عَطَاءٌ : |
| خواته (يعنې هغوى سره مقاربت وکړئ) او عطاء رَحِمَهُ اللهُ دا هم وايي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام ښځو سره |
| وَ لَمْ يَعْزِمْ عَلَيْهِمْ وَ لَكِنْ أَحَلَّهُنَّ لَهُمْ |
| مقاربت نه وو واجب کړې بلکه نبي عَلَيْهِ السَّلَام فقط ښځې د هغوى لپاره حلالې کړې وې (يعنې د احرام د |
| پرانيزلو حکم خو په شان د وجوب وو خو د صحبت او مجامعت حکم فقط د جواز په صورت کې وو) |
| فَقُلْنَا |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې مونږ (د نبي عَلَيْهِ السَّلَام دا حکم واوريدلو نو په تعجب سره) مو وويل چې زمونږه |
| لَمَّا لَمْ يَكُنْ بَيْنَنَا وَ بَيْنَ عَرَفَةَ إِلَّا خَمْسٌ أَمَرَنَا أَنْ |
| او د عرفې ورځ په مينځ کې فقط پنځه شپې پاتې دي) نبي عَلَيْهِ السَّلَام مونږ ته دا حکم کړې چې مونږ د |
| نُفْضِيَ إِلَى نِسَائِنَا فَنَأْتِيَ عَرَفَةَ |
| خپلو ښځو سره جماع وکړو (دا به ډېره نا اشنا خبره نه وي چې) ميدان عرفات کې داسې وشي چې زمونږ |

تَقْطُرُ مَذَاكِيرُنَا الْمَنِيَّ.

دمخصوص اندامونو نه مني څاڅي؟ (يعني دشپې جماع وكړو او سحر عرفات ته ورسو دا خبره په زمانهٔ جاهليت كې بده ګڼلې كېده چې دښځو سره مجامعت او حج كې دومره لنډوالي وي بلكه داشي به حج ته دنقصان رسيدو سبب ګڼلې كېدو) عطاء رَحِمَهُ اللهُ وايي چې جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (دا خبره كوله) خپل لاس سره اشاره وكړه او دهغې لاس ته اشاره او خپل لاس ښځول ګويا چې اوس هم زما دسترګو نظر كې تاوېږي.

قَالَ :

جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام (ته كله زمونږ د تردد په اړه علم وشو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام) زمونږ په

قَدْ عَلِمْتُمْ أَنِّي أَتْقَاكُمْ لِلّٰهِ

مينځ كې دخطبې لپاره او دريدو او وي فرمايل چې تاسو پوهېږئ زه ستاسو په نسبت ډير ويرېږم د الله

وَ أَصْدَقُكُمْ وَ أَبَرُّكُمْ وَ لَوْلَا هَدْيِي

نه تاسو نه ډير رښتني او تاسو نه ډير نيک كاركونكې يم. كه زما د قربانۍ څاروي نه وي نو به ستاسو

لَحَلَلْتُ كَمَا تَحِلُّونَ وَ لَوِ اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِي

په شان احرام پرانيزلي وي څنګه چې تاسو پرانيزئ او كه ماته دا خبره مخكې نه معلومه وي كومه

مَا اسْتَدْبَرْتُ لَمْ أَسُقِ الْهَدْيَ

چې وروسته معلومه شوه نو ما به د قربانۍ څاروي د ځان سره نه وي راوستي (يعني كه ماته معلومه وي چې احرام پرانستل به تاسو ته سخته وي نو ما به د قربانۍ څاروي د ځان سره نه وي راوستي او احرام

فَحِلُّوا فَحَلَلْنَا

به هم پرانيزلي وی) تاسو (بغير د څه ناوخته كولو نه) احرام پرانيزئ. نو مونږه احرام پرانيزلو او دنبي

وَ سَمِعْنَا وَ أَطَعْنَا قَالَ عَطَاءٌ : قَالَ جَابِرٌ :

عَلَيْهِ السَّلَام ارشاد مو واوريدو او اطاعت مو وكړو. دعطاء رَحِمَهُ اللهُ بيان دي چې جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې د

فَقَدِمَ عَلِيٌّ مِنْ سِعَايَتِهِ

هغې نه وروسته حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل كارته راغلو (يعني هغه يمن ته قاضي لېږلي شوي ؤ او كله

| فَقَالَ : بِمَ أَهْلَلْتَ ؟ |
|---|
| د هلته نه راغلو) نو نبي عليه السلام ترې پوښتنه وکړه چې تا د څه احرام تړلي دی؟ حضرت علي رضي الله عنه |
| قَالَ بِمَا أَهَلَّ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ لَهُ |
| وویل چې د کوم څه احرام چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم تړلي دی ، بیا وفرمایل حضرت علي رضي الله عنه ته |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : فَأَهْدِ |
| نبي کريم صلى الله عليه وسلم چې (د نحر په ورځ) د قربانۍ څاروي ذبح کړه (دا په قارن باندې واجب دې) او د |
| وَامْكُثْ حَرَامًا قَالَ : وَ أَهْدَى لَهُ عَلِيٌّ هَدْيًا |
| احرام حالت جارې وساتې (یعنې زما پشان اوس تا سو هم احرام تړلي وساتې) نو څاروی راوستی ؤ |
| فَقَالَ |
| نبي عليه السلام ته حضرت علي رضي الله عنه (یا خپله د ځان لپاره) د قربانۍ څاروي راوستلي وو. نو وویل |
| سُرَاقَةُ بْنُ مَالِكِ بْنِ جُعْشُمٍ : يَا رَسُولَ اللهِ |
| سراقه بن مالک ابن جعشم رضي الله عنه چې یا رسول الله! دا (یعنې د حج په میاشتو کې د عمرې جواز) |
| أَلِعَامِنَا هٰذَا أَمْ لِأَبَدٍ ؟ قَالَ : لِأَبَدٍ .[1] |
| فقط هم د غه کال لپاره یا د همیشه لپاره؟ نبي کريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمایل چې د همیشه لپاره. |

**توضیح: بالحج خالصاً:** دا د حضرت جابر رضي الله عنه خپل خیال او د خپل علم مطابق بیان ؤ ګینې د حضرت عائشه په روایت کې افراد او تمتع او قِران او فقط د عمرې ذکر موجود دی. (المرقات ۵/۴۵۴)

**لم یعزم علیهم:** یعنې نبي کريم صلى الله عليه وسلم خو د فسخ الحج حکم تاکیدًا کړي وو خو د احرام پرانیزلو نه وروسته ښځو جماع کول لازم ونه ګرځول فقط جائز او حلال یې وګرځول.

**خمس:** یعنې د عرفې روځ پورې فقط پنځه روځې پاتې دي. (المرقات :۵/۴۵۴)

**مذاکیرنا المنی:** یعنې عرفات ته د تللو وخت به و مجامعت د وجې نه زمونږ د اندام مخصوصه نه مني راتوېږي. (المرقات :۵/۴۵۴)

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۸۸۳ رقم الحديث: ۱۲۱۶/۱۴۱.

**يحركها:** يعنې د اندام خصوصي نه د مني غرځيدلو حالت ته حضرت جابر رضي الله عنه په لاس سره حرکت وکړو او واضح کولو کوښښ يې وکړو چې هغه د عام عربو عادت وو چې هغوی به د څه کار نقشه د اعضاوو په حرکت سره ظاهرولو. (المرقات: ۵/۴۵۴)

**قال لا بد:** يعنې اشهر الحج کې عمره کول هميشه لپاره جائز شو دا مراد نه دي چې د فسخ الحج الى العمرة حکم هميشه لپاره پاتې دی هغه همغه کال لپاره ؤ چې د جاهليت رسم مات شي (المرقات ۵/۴۵۴)

**وسمعنا واطعنا:** يعنې سخت تردد او د ډير تأمل نه وروسته مونږ هغه فيصله وکړه د کومې چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم حکم کړي وو. مونږ اطاعت وکړلو او د نبي کريم صلی الله علیه وسلم بيان مو واوريدلو.

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّهَا قَالَتْ: قَدِمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَرْبَعٍ |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې (د حجة الوداع په موقع په مکه کې) راغلو نبي کريم صلی الله علیه وسلم په څلورم |
| مَضَيْنَ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ أَوْ خَمْسٍ فَدَخَلَ عَلَيَّ وَ هُوَ غَضْبَانُ فَقُلْتُ: مَنْ أَغْضَبَكَ |
| يا پنځم تاريخ د ذي الحجې زما خوا ته د غصې په حالت کې نو ما عرض وکړو چې چا په غصه کړي يې |
| يَا رَسُولَ اللهِ أَدْخَلَهُ اللهُ النَّارَ. قَالَ: أَوَ مَا شَعَرْتِ |
| يارسول الله؟ الله دې هغه دوزخ ته گوزار کړي. نبي عليه السلام وفرمايل آيا تا ته معلومه نه ده چې ما (څنو |
| أَنِّي أَمَرْتُ النَّاسَ بِأَمْرٍ فَإِذَا هُمْ يَتَرَدَّدُونَ وَ لَوْ أَنِّي |
| خلکو ته د عمرې سره د حج د فسخ کولو) حکم کړي دي او هغوی د دې حکم نه په تردد کې دي که ما ته |
| اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِي مَا اسْتَدْبَرْتُ مَا سُقْتُ الْهَدْيَ |
| دا خبره مخکې معلومه شوې وې کومه چې وروسته را معلومه شوه نو ما به د ځان سره د قربانۍ څاروي نه |
| مَعِي حَتَّى أَشْتَرِيَهُ ثُمَّ |
| وې راوستې او همدغه شان به مې احرام پرانستې وی څنګه چې خلکو احرام پرانستې دي او بيا ما (دلته |
| أَحِلُّ كَمَا حَلُّوا.[1] |
| مکه کې يا په لاره کې) د قربانۍ څاروي واخستلو. |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۸۷۹ رقم الحديث: ۱۳۰/۱۲۱۱.

۲۳ جمادی الثاني ۱٤۱۰هـ

# باب دخول مكة والطواف
## مکې ته د ننوتلو او د طواف بیان

قال الله تعالی: ﴿وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ﴾. (سورة الحج آیت:۲۹)

و قال الله تعالی: ﴿وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾(سورة البقره آیت:۱۲۵)

اوس په دې باب کې هغه احادیث راشي چې په کوم کې په مکه کې د ننه ننوتلو آداب او طریقي ذکر شوې. دغه شان دا به بیانیږي چې مقدس ښار ته په کوم طرف ننوتل مسنون دي او د کوم طرف نه وتل مسنون دي او په کوم وخت کې دا اعمال کولو په کار دی او دغه شان طواف او سعي او د هغې متعلقات به بیانیږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ
### مکې ته د ننوتلو او راوتلو مسنونه طریقه

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ نَافِعٍ قَالَ: إِنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ لَا يَقْدَمُ مَكَّةَ إِلَّا بَاتَ بِذِي طُوًى |
| نافع رحمه الله وايي چې ابن عمر رضي الله عنه کله به هم مکې ته راتلو، نو ذي طوي کې به يې شپه تېروله او |
| حَتّٰى يُصْبِحَ وَ يَغْتَسِلَ وَ يُصَلِّيَ فَيَدْخُلَ مَكَّةَ نَهَارًا وَ إِذَا نَفَرَ مِنْهَا |
| کله به چې سحر شو نو غسل او لمونځ به يې کولو بیا به مکې ته سهر ننوتلو او کله به چې بیا راتلو د مکې نه |
| مَرَّ بِذِي طُوًى وَ بَاتَ بِهَا حَتّٰى يُصْبِحَ |
| نو هغه وخت به هم ذي طوي نه تېر شو او تر سحره پورې به يې هلته وخت تېرولو ، دغه شان بیانوي |
| وَ يَذْكُرُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَفْعَلُ ذٰلِكَ.[1] |
| ابن عمر رضي الله عنه چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به هم همدغه شان کول. |

**توضیح**: **بذي طوئ: ذي طوئ** تنعیم سره ارض حرم کې د یو ځای نو دی. همدغه ځای نه به نبي کریم صلی الله علیه وسلم مکې ته داخلیدو او د دې ځای نه به بیا راتللو او دلته به يې یوه شپه تېروله. نن سبا هم مدینه یا جده ته تللو لپاره عموماً همدغه لار استعمالیږي. دغه ځای کې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳۵/۳، رقم الحديث :۱۷۷۳، ومسلم في صحيحه ۹۱۹/۲ رقم الحديث: ۱۲۵۹/۲۲٦.

قيام د حج څه برخه نه ده فقط يو عادي امر دی چې دلته نه تلل راتلل آسان دي که د نبي کريم ﷺ د اتباع قصد او اراده وي نو د مستحب ثواب ورکولی شي. (المرقات ۵/۴۵۷)
ابن مالک رَحِمَهُ اللهُ وايي چې مکې ته ننوتل مستحب دي. نن سبا په اختيار سره ننوتل او راوتل اسان کار ندی. د حج د سستم متابعت ضروري دی.

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا جَاءَ إِلَى مَكَّةَ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي کريم ﷺ (د حجة الوداع په موقع) کله مکې ته تشريف راوړو |
| دَخَلَهَا مِنْ أَعْلَاهَا وَ خَرَجَ مِنْ أَسْفَلِهَا .[1] |
| نو په ښار کې د هغې تر ټولو اوچت طرف نه راننوتلو او (د راتلو وخت کې) د لاندې طرف نه ووتلو. |

**توضيح: اعلاها:** نبي کريم ﷺ چې کله حجة الوداع کې مکې ته راغلو نو نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د مکې د اوچتې برخې نه راننوتلو او اوچته برخه همغه ده چې هغې د دينه مخکې حديث کې د ذي طوي په نوم سره ياد کړې شوي وو. د مکې مشهور قبرستان جنت المعلي هم هغه اړخ ته دی. او د بيت الله دروازه هم هغه طرف ته پرته ده. د دينه بغير د ښار دويمه برخه ده. چې هغه لاندينې برخه کې پرته ده چې هغې ته حديث کې **اسفلها** نوم ورکړې شوي دی. (المرقات ۵/۴۵۸)
**سوال:** اوس دلته يو ه پوښتنه پيدا کېږي چې د دينه مخکې چې کوم حديث تېر شوي دي په هغې ده ذکر شوې دي چې نبي کريم ﷺ د ذي طوی نه راغلو او د ذي طوی نه بيا لاړو او دلته اعلی او اسفل دوه د متضاد لارو ذکر شوې دی. نو آيا دوره حديثونو کې تعارض دی؟ **جواب:** ددې سوال جواب دا چې نبي کريم ﷺ کله د مکې نه ووتلو او د مدينې په لاره ورسيدو نو هغه د ذي طوي لاره ده نو وتلو خو به ښکه د لاندې طرف نه خو د هلته نه بيا ذي طوی ته راغلو ذي طوی باب الحاره او شارع خالد بن الولي نه مخکې د تنعيم سره لګېږي او هغه طرف ته جرول سره جنت المعلي پورې رسي نو دواړو حديثونو کې څه تضاد نشته دی. نقشه د غه شان ده، ذي طوي اوږده علاقه ده.




[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۴۳۷/۳ رقم الحديث :۱۵۷۷، ومسلم في صحيحه ۹۱۸/۲ رقم الحديث: ۱۲۵۸/۲۲۴.

## د طواف لپاره پاکوالي واجب دی

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَن عُروةَ بنِ الزُّبيرِ قَالَ: قَدْ حَجَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَتْنِي عَائِشَةُ |
| عروه ابن زبير رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم حج وکړو او عائشه رضي الله عنها ماته بيان کړو چې |
| أَنَّ أَوَّلَ شَيْءٍ بَدَأَ بِهِ حِينَ قَدِمَ مَكَّةَ أَنَّهُ تَوَضَّأَ |
| نبي کريم صلى الله عليه وسلم مکې ته رسيد وسره اول کار دا وکړو چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم اودس وکړو او |
| ثُمَّ طَافَ بِالْبَيْتِ |
| بيا يې د بيت الله طواف وکړو (د عمرې طواف، ځکه نبي کريم صلى الله عليه وسلم قارن يا متمتع نه وو) او |
| ثُمَّ لَمْ تَكُنْ عُمْرَةً ثُمَّ حَجَّ أَبُوبكرٍ فكانَ أَوَّلَ شَيْءٍ بَدَأَ بِهِ الطَّوَافَ بالبيتِ |
| عمره ونشه وه بيا (د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه وروسته) ابوبکر صديق رضي الله عنه حج وکړو او شروع يې |
| ثُمَّ لَمْ تَكُنْ عُمْرَةً ثُمَّ عُمَرُ ثُمَّ عُثْمَانُ مثلُ ذٰلِكَ.[1] |
| وکړه د حج د بيت الله د طواف نه بيا عمر رضي الله عنه او بيا عثمان رضي الله عنه هم همدغه شان وکړل. |

**توضيح: توضأ:** د دې نه معلومه شوه چې د طواف لپاره پاکوالي واجب دی که واجب پرېښودې شي نو دم به راځي خو د جمهورو په نزد پاکوالي شرط دی او د دې نه بغير طواف صحيح نه دی. (المرقات ۵/۴۵۹)

**ثم لم تك عمرة:** د دې جملې دوه مطلبه دي: اولنی مطلب دا چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم کله حجة الوداع کې مکې ته راغلو نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم د بيت الله طواف خو وکړو خو حج فسخ کړو او عمره ونه کړه. ځکه نبي کريم صلى الله عليه وسلم د ځان سره د هدي څاروي راوستلي وو بلکه د احرام په حالت کې يې قيام وکړو. همدغه عمل حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه وکړو. د دېنه کلام نه راوي به خلکو باندې رد کول غواړي چې کوم دغه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم فسخ الحج الى العمرة کړي وو. د دې جملې دويم مطلب دا چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم او دده ملګرو همغه

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۹۶/۳ رقم الحديث: ۱۶۱۴، ومسلم في صحيحه ۹۰۶/۲ رقم الحديث: ۱۲۳۵/۱۹۰.

یو عمره کړي وه کومه یې چې د حج سره کړي وه د حج نه وروسته یې بله عمره نه وه کړې. (المرقات ۵/۴۵۹)

## په طواف کې د رمل ذکر

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا طَافَ فِي الْحَجِّ أَوِ الْعُمْرَةِ مَا يَقْدَمُ |
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم کله د حج يا د عمرې طواف کولو نو تيز تيز به تللو په اول |
| يَقْدَمُ سَعَى ثَلَاثَةَ أَطْوَافٍ وَ مَشَى أَرْبَعَةً ثُمَّ |
| درې ځل تاويدو کې او په نورو څلورو ځل تاويدو کې به په خپل معمولي رفتار سره تللو بيا يې (طواف |
| سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ يَطُوفُ بَيْنَ الصَّفَا وَ الْمَرْوَةِ.(١) |
| وکړو) دوه رکعته يې وکړل او دهغې نه وروسته به يې په صفا او مروه کې سعې کوله. |

**توضیح**: سعی: سعي په معنی د منډو د وهلو ده. دلته د دینه په طواف کې د رمل او پانواني کول مراد دی. بیت الله نه گیر چاپیره یو چکر ته شوط وایي او اوه شوط نه یو طواف پوره کېږي. کله چې سړی عمره یا حج لپاره احرام وتړي او په هغې باندې وروسته سعي هم وي نو د هغه سړي لپاره د طواف اولنې درې چکرونه کې رمل کول ضروري دي او وروسته څلور چکرو کې رمل نشته دی. هر هغه طواف چې د هغې نه وروسته سعي نه وي په هغې کې رمل کول ضروري نه دي. (المرقات ۵/۴۶۰)

## د صفا او مروه مینځ کې سعي کول واجب دي

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَ عَنْهُ قَالَ: رَمَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مِنَ الْحَجَرِ |
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم رمل وکړو د طواف په وخت کې د حجر اسود نه حجر |
| ثَلَاثًا وَ مَشَى أَرْبَعًا وَ كَانَ يَسْعَى بِبَطْنِ |
| اسود پورې درې چکرو کې او څلورو چکرو کې خپل معمولي رفتار سره تلو او منډه به يې وهله په بطن |
| الْمَسِيلِ إِذَا طَافَ بَيْنَ الصَّفَا وَ الْمَرْوَةِ.(٢) |
| مسيل کې چې کله يې سعي کوله د صفا او مروه په مينځ. |

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٤٧٧/٣ رقم الحديث: ١٦١٦، ومسلم في صحيحه ٩٢٠/٢ رقم الحديث: ١٢٦١/٢٣١.

(٢) أخرجه البخاري في صحيحه ٤٧٧/٣ رقم الحديث: ١٦٤٤، ومسلم في صحيحه ٩٢٠/٢ رقم الحديث: ١٢٦١/٢٣٠.

**توضیح: بطن المسیل:** د صفا او مروه په مینځ کې د یو ځای نوم دی. چې د هغې د پیژندلو لپاره د هغې غاړو باندې شنه بلبونه شبه ورځ بلیږي. دا ځای لاندې پروت دی. ځکه دیته بطن المسیل وایي یعنې د سیلاب او اوبو تویېدلو کوهې. دې ځای ته میلین اخضرین هم وایي . دلته ژر ژر منډې وهل د ټولو فقهاوو په نز سنت دي. د صفا او مروه مینځ کې سعي کول د احنافو په نز واجب دی. خو حضرت امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ په نز سعي رکن او شرط دی. د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ هم همدغه مسلک دی. (المرقات ۵/۴۶۱)

## د حجر اسود ښکولول

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ : إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا قَدِمَ مَكَّةَ أَتَى الْحَجَرَ |
| جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله (حج یا عمری) لپاره مکې ته راغلو نو راتلو به حجر |
| فَاسْتَلَمَهُ ثُمَّ مَشَى عَلَى يَمِينِهِ |
| اسود ته او هغه به یې ښکلولو . بیا (طواف لپاره) د ښي لاس اړخ ته تلو ،نو درې (۳) ځله خو د ځنګل |
| فَرَمَلَ ثَلَاثًا وَ مَشَى أَرْبعاً.[۲] |
| خوزولو سره او تیز تیز لاړو (څنګه چې پهلوان ځي) او څلور ځله خپل عام مزل سره لاړو. |

**توضیح:** مخکې د حجر اسود تاریخ راغې دلته فقط د حجر اسود د ښښه کولو مسئله راغلي ده.

**فاستلمه:** استلام لفظ د لګولو او ښکلولو دواړو لپاره استعمالیږي خو کله چې هم د دې ذکر د حجر اسود لپاره کیږي نو استلام نو ښکولول مراد وي. او د رکن یماني لپاره د استلام ټکې راشي نو هلته د لاس لګولو او ښکولو په معنی وي. د ښکولو په معنی نه راځي. یو با اثره شاعر د حجر اسود باره کې دا شعر ویلي دی:

اسود کے چہرے پہ بوسہ ہے خوب تر      بوسہ نہ مل سکے تو اشارہ قبول کر

**علی یمینه:** د حجر اسود مخې ته یوه توره پټۍ ده. چې هغه د حجر اسود مخې د شا د اړخ نه صفا اړخ ته ځي. همغه باندې ودریدلو سره طواف شروع کیږي او ښي لاس باندې د بیت الله دروازه ده. د هغه طرف نه د طواف چکر لګول کیږي. حدیث کې هم د **علی یمینه** یعنې ښي طرف نه همدغه مطلب دی.

---

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۹۲۰/۲ رقم الحديث ۲۳۲ ۱۲۶۱

(المرقات ۵/۴۶۲)

## نبي کريم ﷺ د حجر اسود استلام کړي دی

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ عَرَبِيٍّ قَالَ : سَأَلَ رَجُلٌ ابنَ عمرَ عَنِ اسْتِلَامِ الْحَجَرِ |
| زبير بن عربی رضي الله عنه وايي چې يو سړی د ابن عمر رضي الله عنه نه د حجر اسود د ښکولولو باره کې تپوس |
| فَقَالَ : رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| وکړونووی ويل چې ما نبي کريم ﷺ ليدلي ؤ چې نبي کريم ﷺ به د حجر اسود سره |
| يَسْتَلِمُهُ وَ يُقَبِّلُهُ .[1] |
| لاس لګولو او ښکولولو به يې هم. |

## د رکن يماني استلام

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : لَمْ أَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَسْتَلِمُ من الْبَيْت إِلَّا |
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې ما ليدلی دی نبي کريم ﷺ چې ښکولو به يې د خانه کعبه فقط |
| الرُّكْنَيْنِ الْيَمَانِيَيْنِ.[2] |
| دوه (۲) رکنونه چې هغه د يمن طرف ته دی. |

توضيح: الرکنين: د کعبې شريفې څلور رکنونه دي چې هغه په څلورو ګودونو باندې پروت دي. يو رکن هغه دي چې په هغې حجر اسود دی. چې هغه د بيت الله د دروازې نه چپ اړخ ته ملتزم سره بلکل يو ځای پروت دی. بل رکن يماني دی. چې هغه د باب عبد العزيز نه په وتلو سره مخې ته راځي. پدې کې يو غټ کاڼي خبن دی. ويل کيږي چې حضرت آدم عليه السلام د تلو راتلو دروازه همغلته وه. اصل کې رکن يمانې همد غه دي خو دا دوړه د تغليب رکنين يمانيين وايي . د دينه علاوه دوه رکنونه نور دي. چې هغه ميزاب رحمت او حطيم اړخ ته پروت دی. چې په هغه يو رکن عراقي دی. او بل رکن شامي دی. خو دا دواړه رکن شامي دی. په دې حديث کې دا دي چې نبي کريم ﷺ د حجر اسود او رکن يمانې نه بغير د بل رکن استلام ندي کړی. د حجر اسود استلام خو د هغې ښه کولول دي او د رکن يمانې استلام نه د هغې لاس ښکولول دی. د دې حديث نه دا اشاره ملاوېږي چې هغه

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۴۷۵ رقم الحديث: ۱۶۱۱.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۴۷۳ رقم الحديث: ۱۶۰۹، ومسلم في صحيحه ۲/۹۲۵ رقم الحديث: ۱۲۶۹/۲۴۷.

دواړه رکنونو نه علاوه بيت الله د کوم حصه نه وه ښکول کړی. خو دا وه چې حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د ټولو ارکان ښکلول کول او فرمايل به يې لا حجر في البيت يعنې بيت الله په ښکولو کې څه پابندي نشته دی. (المرقات ۵/۴۶۲)

## په اوښ باندې په سوريدو سره د طواف کولو مسئله

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: طَافَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ عَلَى بَعِيْرٍ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې طواف وکړو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حجة الوداع په موقع باندې په اوښ |
| يَسْتَلِمُ الرُّكْنَ بِمِحْجَنٍ.(۱) |
| باندې سپور او د محجن په ذريعې سره يې حجر اسود ښکل کړو. |

**توضيح: على بعير:** د شوافعو په نز خو غوره دا ده چې طواف دې پيدل وکړې شي خو په سپريدلو سره کول جائز نه دي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيان د جواز لپاره او د دې مقصد لپاره چې خلک نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وګوري او د حج احکام زده کړي. نو په سورلۍ سپور شو او طواف يې وکړو. د ائمه احنافو په نزد پيدل تلل واجب دي. په سوريدو سره طواف کول جائز نه دې. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بغير د څه عذره سپور شو او طواف يې وکړو. څنګه چې حضرت ام سلمه ته د بيمارۍ وجې نه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم کړې وو. چې په اوښ سپوره شه او طواف وکړه. (المرقات ۵/۴۶۳)

**سوال:** په احاديثو کې په وضاحت سره ذکر شوې دي چې د حجة الوداع په موقع باندې طواف کولو کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اولنی درې اشواط کې رمل کړې وو. نو پوښتنه دا ده چې په سورلۍ باندې رمل کول څنګه امکان لري. **جواب:** نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د طواف قدوم کې رمل کړې وو. نو څکه زه پيدل وم. او زير بحث حديث کې د طواف زيارت ذکر دي کوم چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اوښ باندې کړې ؤ. په هغې کې رمل نه وي په شرط د دې چې په هغې کې سعي نه وي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بغير د څه عذر نه استعمال کړې وو. خو دا د امت د تعليم لپاره داسې کړې وو. چې خلک وګوري او په طواف کولو پوهه شي او مسائل زده کړي. (المرقات ۵/۴۶۳)

**بمحجن:** محجن هغه لرګي ته وايي چې د هغې سرکوږ وي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه لرګې نه حجر اسود ښکل کړې ؤ يا يې اشاره کړې وه او بيا يې لرګې ښکل کړې ؤ. نو معلومه شوه چې داسې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳ ۴۷۲ رقم الحديث ۱۶۰۷، ومسلم في صحيحه ۲ ۹۲۶ رقم الحديث ۲۵۳ ۱۲۷۲

کول جائز دي. (المرقات ۵/۴۶۳)

## د حجر اسود استلام

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ طَافَ بِالْبَيْتِ عَلَى بَعِيرٍ كُلَّمَا |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم طواف كړى ؤ د خانه كعبې په اوښ باندې كله چې |
| أَتَى عَلَى الرُّكْنِ أَشَارَ إِلَيْهِ بِشَيْءٍ |
| نبي كريم صلى الله عليه وسلم د حجر اسود مخې ته راغلو نو اشاره يې وكړه په يو شي سره چې د نبي عليه الصلاة والسلام |
| فِي يَدِهِ وَ كَبَّرَ.[1] |
| سره په لاس كې وو هغه طرف ته يې اشاره وكړه او الله اكبر يې وويل. |

**توضیح:** د حجر اسود د ښكلولو طريقه دا ده چې د حجر اسود نه ګېر چاپېره د سپوګمۍ په خول باندې دواړه لاسونه كيخودلي شي او د دننه د حجر اسود ښكل كړي شي. خو د احرام حال كې احتياط ته ضرورت دى. ځكه حجر اسود باندې ډير عطرونه لګيدلي وي. او كه د څه وجې نه ښكلولو ممكن نه وي نو بيا په دواړه لاسونو سره اشاره كولو سره **بسم الله الله اكبر و لله الحمد** لوستلو سره د لاسونه ښكل كړي. يو عالم دا شعر په همدغه موقعې سره ويلي وو.

اسود حجر کے چہرہ پہ بوسہ ہے خوب تر ❁ بوسہ نہ مل سکے تو اشارہ قبول کر

## حجر اسود طرف ته اشاره كول

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَطُوفُ بِالْبَيْتِ |
| ابو الطفيل وايي چې ما نبي كريم صلى الله عليه وسلم وليدو چې نبي عليه السلام (سپور شو) او طواف يې وكړو د |
| وَ يَسْتَلِمُ الرُّكْنَ بِمِحْجَنٍ مَعَهُ |
| خانه كعبې او د يو كوګ والا سر لرګي باندې چې هغه د نبي عليه السلام سره ؤ حجر اسود ته اشاره وكړه |
| وَ يُقَبِّلُ الْمِحْجَنَ.[2] |
| او هغه لرګى يې ښكل كړو. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۴۹۰ رقم الحديث ۱۶۱۳
(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۹۲۷ رقم الحديث ۲۵۷-۱۲۷۵.

## ښځه دې د حیض په حالت کې طواف او سعي نه کوي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| عائشه رضی الله عنها وايي چې مونږ د نبي کريم صلی الله علیه وسلم سره (د حج لپاره) روان شونو مونږ (د لبیک ویلو |
| لَا نَذْكُرُ إِلَّا الْحَجَّ |
| وخت کې) فقط د حج ذکر کولو (بعضو حضراتو دا معنی لیکلې دا چې مونږ فقط د حج اراده کړې وه یعنې |
| فَلَمَّا كُنَّا بِسَرِفَ طَمِثْتُ |
| زمونږ اصلي مقصد حج کول ؤ نه عمره کول) بيا چې کله مونږ مقام سرف ته راورسیدو نو زما ورځې شروع |
| فَدَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ أَنَا أَبْكِي |
| شوې نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم زما خوا ته راغلو نو ما (پدې خیال کې) ژړل (چې د حیض په وجه به زه حج |
| فَقَالَ : لَعَلَّكِ نَفِسْتِ ؟ |
| ونکړې شم) نو نبي علیه السلام (زما کیفیت په کتلو سره) وفرمایل چې شاید ستا ورزې شروع شولې؟ ما |
| قُلْتُ : نَعَمْ قَالَ : فَإِنَّ ذٰلِكِ شَيْءٌ كَتَبَهُ اللّٰهُ عَلَى بَنَاتِ آدَمَ |
| وویل چې آو. نبي علیه السلام وفرمایل چې دا خو داسې شې دې چې دا الله تعالی د آدم د لوښو لپاره مقرر کړې |
| فَافْعَلِي مَا يَفْعَلُ الْحَاجُّ |
| دې (یعنې د دې وجې نه ژړه ته څه ضرورت نشته دی) ته هم هغه کارونه وکړه کوم چې حاجې کوي. |
| غَيْرَ أَنْ لَا تَطُوفِي بِالْبَيْتِ حَتَّى |
| خو د بیت الله طواف مه کوه (مه سعي کوه ځکه سعي د طواف نه وروسته صحیح ده) تر څو پورې چې |
| تَطْهُرِي.[1] |
| پاکه شوې نه یې (یعنې ورځې ختمې نه شي او د هغې نه وروسته دې غسل نه وي کړی). |

**توضیح**: **بسرف**: مکه مکرمه ته نزدې د فاطمې غونډۍ سره د یو ځای نوم سرف دی. هغه ځای د حضرت میمونه رضی الله عنها قبر پروت دی. د هغې نکاح هم هلته شوې وه. زفاف هم هلته وفات شوې وه.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱/۴۰۰ رقم الحديث :۲۹۳، ومسلم في صحيحه ۲/۸۷۳ رقم الحديث: ۱۲۱۱/۱۲۰.

او قبر يې هم هلته د سرک سره دی.

لالذکر: د دې جملې مطلب دا دې چې مونږ د حج تذکره کووو اګر که هغه حج افراد وي يا تمتع يا قِران وي. په د دغه شان مطلب اخستلو سره به هغه اعتراض ختم شي چې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خپله وايي چې د عمرې نيت کړي وو. څنګه چې قصه د حجة الوداع کې حديث ۲ کې د هغې بيان دی. نو دا خو ښکاره تضاد دی. ځکه لالذکره الا الحج مطلب دا دې چې زمونږ د سفر اصل مقصد حج کول ؤ. بل څه مقصد نهٔ اګر که احرامونه په جدا جدا انداز وو. (المرقات ۵/۴۶۵)

## د طواف نه د مشرکينو ممانعت

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: بَعَثَنِي أَبُو بَكْرٍ فِي الْحَجَّةِ الَّتِي أَمَّرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې وليږلو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حج امير د خلکو لپاره |
| عَلَيْهَا قَبْلَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ يَوْمَ النَّحْرِ فِي رَهْطٍ |
| دحجة الوداع نه مخکې د نحر (قربانۍ) په ورځ ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زه هم د هغه جومات سره وليږلم کوم ته |
| أَمَّرَهُ أَنْ يُؤَذِّنَ فِي النَّاسِ: أَلَا لَا يَحُجُّ بَعْدَ الْعَامِ مشرِكٌ |
| چې حکم کړي شوي ؤ چې هغه اعلان وکړئ چې خبردار! حج به نه کوي پس د دې کال نه هيڅ يو مشرک |
| وَلَا يَطُوفَنَّ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ.[1] |
| او نه به څوک لوڅ د بيت الله طواف کوي. |

**توضيح: مشرك:** يعنې د هغه کال نه وروسته دې هيڅ مشرک حج نه کوې. کله چې حج ۹هجری کې فرض شو نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ امير الحج مقرر کړو او حج ته يې وليږلو او بيا خپله راروان کال حجة الوداع کې راغلو. په هغه سفر د صديق اکبر د روانيدلو نه وروسته حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يو څو اعلاناتو په غرض وليګلو. ده اعلانات د عربي دستور مطابق يا خو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او يا د هغې خاندان يو سړی کولې شي. حضرت ابو بکرصديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نشو کولی. نو د دغه اعلاناتو لپاره صديق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره يوه ډله وليګله. په هغه ډله کې حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم وو. چې هغې دغه

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱/۴۷۷ رقم الحديث: ۳۶۹، ومسلم في صحيحه ۲/۹۸۲ رقم الحديث: ۱۳۴۷/۴۳۵.

واقعه بيان كړي وه. مشرک خو نجس وي نو ځکه په دغه پاکه زمکه باندې هغې له راتلل ندې پکار. او که هغه راتلل غواړي نو ايمان دې راوړي او پاک دې شي او بيا دې راشي ﴿إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَذَا﴾. (المرقات ۵/۴۶۷)

**عريان:** په جاهليت کې به خلک ډير په شوق سره بيت الله شريف طواف په لوڅ حالت کې کولو. د هغوی خيال وو چې کومو جامو کې مونږه گناهونه کړې دي هغې اغستلو حالت کې مونږ ځنګه طواف وکړو. دويم خيال يې دا وو چې کوم سړی چې څومره لوڅ وي همغه هومره به هغه د دوزخ د اور نه لرې وي نو ځکه هغه خلکو په لوڅه د طواف کولو دوران کې دا شعر هم ويل:

**اليوم تبدو بعضه او كله فما بدا منه فلا احله**

يعني نن زمونږه د خپل بدن لږ څه يا ټوله برښه ښكاره كوو. كومې حصې چې د بدن پرانيزل شوي هغه زه په اور باندې حرام گڼم. اسلام انسان ته د شرافت لوې مقام ورکوي خو شيطان هغې له د ذلت مقام ورکوي.. (المرقات ۵/۴۶۷)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### د خانه کعبې ليدو سره د دعاء د پاره دلاس اوچتولو مسئله

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ عَنِ الْمُهَاجِرِ الْمَكِيِّ قَالَ: سُئِلَ جَابِرٌ عَنِ الرَّجُلِ |
| مهاجر مكی (تابعی رَحِمَهُ اللهُ) وايي چې جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د هغه سړي باره کې پوښتنه وشوه چې د خانه |
| يَرَى الْبَيْتَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فَقَالَ قَدْ حَجَجْنَا |
| كعبه ليدو سره لاس اوچت کړي (آيا دا جائز دي او كه نه؟) نو جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل چې مونږ حج کړی |
| مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَلَمْ نَكُنْ نَفْعَلُهُ.[1] |
| دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره او داسې به مونه کولو (يعني خانه کعبه ليدو سره به مو لاسونه نه اوچتول) |

**توضيح: يرفع يديه:** د بيت الله زيارت کونکې چې کله مکه کې مسجد حرام ته داخل شي او په بيت الله يې نظر ولگي نو هغه وخت د نبې دعاگانې وغواړي ځکه هغه وخت کې دعا ضرور قبليږي پدې دعا غوښتلو کې د چا اختلاف نشته دی. وس مسئله ده پاتې شوه چې پدې دعا کې لاسونه وچت

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۴۳۷ رقم الحديث ۱۸۷۰.

کړي شي او که نه نو په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف**: امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نزد دې مقام کې دعا کې لاسونه اوچتول سنت دي. امام مالک رَحِمَهُ اللهُ وایي چې پدې موقع باندې لاسونه اوچتول نه دي په کار. بعضو شارحینو د مذاهبو ترتیب څه بل شان لیکلي دی، **رحمة الامة في اختلاف الائمه** کې داسې لیکلي دي چې کوم ما لیکلي دي.

**دلائل**: امام مالک رَحِمَهُ اللهُ زیربحث حدیث نه استدلال کړي چې په هغې کې حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د لاس اوچتولو نه انکار کوي. جمهورو د مسند شافعي نه استدلال کړي چې د هغې الفاظ دا دي:

**عن ابن جریح قال کان النبي صلی الله علیه وسلم اذا راي البیت رفع یدیه و قال اللهم زد هذا البیت تشریفاً و تعظیماً و تکریماً و مهابة.** (المرقات ٤٦٧)

همدغه شان په مسند شافعي دا حدیث هم دی: **عن ابن عباس عن النبي ترفع الایدي في الصلوة واذا راي البیت وعلظ الصفا والمروة.**

**جواب**: د جمهورو د طرف نه د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د دلیل اولني جواب دا دی. چې اصولي **قاعده** ده چې کله نفې او اثبات مقابله راشي نو اثبات مقدم وي. لهذا نفې ته اعتبار نشته.

دویم جواب دا دي چې د نفې تعلق د وجوب سره دی. چې لاس اوچتول واجب نه دي. او د اثبات تعلق د استحباب سره دي چې لاس اوچتول مستحب دي.

دریم جواب ملا علي قاری رَحِمَهُ اللهُ کړي دي چې په اول ځل نظر لګیدو سره لاس اوچتول او دعا غوښتل په کار دي. د اثبات تعلق همدغه لیدلو سره دي او د نفې تعلق بیابیا کتلو باندې لاس اوچتولو سره دي چې داسې کول په کار نه دي. (المرقات ۴۶۸)

## په صفا او مروه کې د دعاء سره لاس اوچتول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : أَقْبَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ مَكَّةَ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله (حج او عمرې لپاره) راغلو او مکې ته داخل شو |
| فَأَقْبَلَ إِلَى الْحَجَرِ فَاسْتَلَمَهُ ثُمَّ طَافَ بِالْبَيْتِ ثُمَّ |
| نو حجر اسود خواته لاړو او هغه یې ښکل کړو بیایې د خانه کعبې طواف وکړو دهغې نه وروسته (د طواف |

| أَتَى | الصَّفَا | فَعَلَاهُ | حَتَّى | يَنْظُرَ | إِلَى | الْبَيْتِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لمونځ وکړو)صفا طرف ته لاړو او په صفا وختلو تردې چې د خانه کعبې طرف ته یې نظر او چت کړو نو | | | | | | |
| فَرَفَعَ | يَدَيْهِ | فَجَعَلَ | يَذْكُرُ | اللهَ | مَا | شَاءَ |
| (دعا لپاره) یې خپل دواړه لاسونه او چت کړل او چې څومره یې وغوښتل نو د الله نه یې وغوښتل (یعنې | | | | | | |
| وَ يَدْعُو.[1] | | | | | | |
| تکبیر او تهلیل) او دعا یې غوښتله. | | | | | | |

## په مونځ او طواف کې مماثلت

| ﴿١٦﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: الطَّوَافُ حَوْلَ الْبَيْتِ مِثْلُ الصَّلَاةِ | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمایل د خانه کعبې نه طواف کول په شان د لمونځ | | | | | | |
| إِلَّا | أَنَّكُمْ | تَتَكَلَّمُونَ | فِيهِ | فَمَنْ | تَكَلَّمَ | فِيهِ |
| کول دی اګر که تاسو په هغې کلام کوی، لهذا کوم سړی چې په طواف کې خبرې وکړي نو هغه (لغوه | | | | | | |
| فَلَا يَتَكَلَّمَنَّ إِلَّا بِخَيْرٍ. وَذَكَرَ التِّرْمِذِيُّ جَمَاعَةً وَقَفُوهُ عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ[2] | | | | | | |
| شوي يعنې غير مناسب کلام نه وي) بلکه نيک کلامي کوي. | | | | | | |

**توضیح: مثل الصلوة:** پدې حدیث کې د طواف تشبیه د لمونځ سره ورکړي شوي ده. خو په دواړو کې د فرق ښکارکولو لپاره استثناء هم شته دي چې په طواف کې کلام جائز ده او په لمونځ کې هیڅ قسمه کلام جائزه نه ده. علماو د لمونځ او طواف کولو څه فرقونه بیان کړي دي. ۱: طواف کې کلام مفسد نه دي او په لمونځ کې کلام مفسد دی. ۲: طواف کې خوراک او څکاک جائز دي خو لمونځ کې جائز نه دي. ۳:طواف کې قبلې شرط نه ده خو لمونځ په کې ضروري دی. ۴: طواف لپاره متعین وخت نشته دي نه یې څه خاص تعداد شته دي خو د لمونځ لپاره وخت هم متعین دي او تعداد هم محدود دي. په دې ټولو خبرو باندې اتفاق دی. اوس اختلاف په دې کې دي چې آیا طواف لپاره لمونځ په شان طهارت هم شرط دي او که نه؟

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۱۳۸ رقم الحديث :۱۸۷۲.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۲۹۳ رقم الحديث :۹۶۰.

**د فقهاو اختلاف** : امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د طواف لپاره طهارت او دغه شان د بدن پټ والي شرط دی. که دي دينه بغير چا طواف وکړلو نو طواف يې ونشو. امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې پټ والي د بدن او پاکوالي د بدن شرط ندي خو دا شيان واجب دي. نو طواف خو به وشي خو دم (قرباني) ورکول لازم دي. (المرقات ۴۶۹)

**دلائل** :امام شافعي د بحث د لاندي حديث نه استدلال کړي دي چې دلته د طواف تشبيه د لمونځ سره ورکړي شوي ده او د لمونځ لپاره طهارت او ستر د بدن شرط دي لهذا طواف لپاره هم شرط دی. امام ابو حنيفه د قرآن د دې آيت نه استدلال کړي دی. ارشاد رباني ﴿ وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ ﴾ دلته د طواف حکم کړي شوي دي خو دا مطلق حکم دی. واجب خو ثابتېږي خو فرض نشي ثابتيدلی. لهذا پدې سره د قرآن مطلق آيت مقيد کيدلي نشي. (المرقات ۴۶۹)

**جواب**: حديث کې چې کومه تشبيه د طواف د لمونځ سره کړي شوي ده. دا په ثواب کې ده لکه څنګه چې په لمونځ کې لويې ثواب ملاوېږي. همدغه شان په طواف کې هم لوی ثواب ملاوېږي. د تشبيهاتو په قواعدو کې قطعاً دا خبره نشته دي چې د مشبه او مشبه به تول اجزاوو کې تشبيه وي. که شوافع په ټولو شيانو کې د تشبيه قول کوي نو بيا په هغوی باند طواف کې قبلي طرف ته مخ کول لازمېږي. په طواف کې د خوراک او څکاک شيانو سره طواف فاسد کيدل هم لازمېږي. د لمونځ په شان طواف لپاره هم د وخت ټاکل لازمېږي او طواف به محدود کول په کار وي. حال دا چې شوافع د شيانو قائل نه دي. معلومه شوه چې په تشبيه کې ثواب شته دي او بس. (المرقات ۴۶۹)

## حجر اسود تک سپين کاڼړي ؤ

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : نَزَلَ الْحَجَرُ الْأَسْوَدُ مِنَ الْجَنَّةِ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل حجر اسو د جنت نه راکوز کړي شوې دی |
| وَهُوَ أَشَدُّ بَيَاضًا مِنَ اللَّبَنِ فَسَوَّدَتْهُ خَطَايَا بَنِي آدَمَ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ [1] |
| دا کاڼړي (مخکې) د شودو نه هم ډير سپين وو خو د بنی آدم ګناهونو دا تور کړي دی. |

**توضيح**:نزل الحجر الاسود: دا کلام په مجاز او تخيل باندې محمول نه دی. بل شو که حقيقت او تعين باندې محمول دي چې حجر اسود د جنت نه راوړي شوي دی. بيا دنيا کې د دنيا شيانو موافق کينبودلي شو او د قتل او فساد پدې عالم کې مصيبتونو ښکار شو. دا د شودو نه ډير سپين ؤ او

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/ ۲۲۶ رقم الحديث :۸۷۷.

غټې هم ؤ. الله تعالی د جنت والا سپین والي ددې نه واخستلو. بیا د انسانانو ګناهګارو لاسونو دا بنه تور کړو او د دنیا د مصیبتونو هم ښکار شو. نادرشاه ایراني تر شلو کالو پورې دا غصب کړي وو او ایران ته یې وړي ؤ. بیا دهغه ځای نه راوړو. بیا یو یو سړي په دې باندې د چاقو ګوزار وکړو نو دا مات شو. وس تر دې وخته پورې د دې وړې وړې اووه (۷) ټوټې پاتې دی. چې یو تور قلف سره پیوسته دی. کله چې زیارت کونکې دا ښکولوي نو د هغې په خله کې تین کاڼي راشي. پدې اووه ټوټو کې چې کومه یوه غټه ټوټه ده هغه د انسان و متي ګوتي د سر برابره ده.

بهر حال چې کله داسې یو مقدس کاڼي توربږي نو د ګناه کولو والا زړه به څومره تور وي. ځینې علماء وایې چې حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ کله د جنت نه راګوځیدلو نو دا کاڼي یې د ځان سره راوړي وو.

## د قیامت په ورځ د حجر اسود ګواهي

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْحَجَرِ : وَ اللهِ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حجر اسود باره کې وفرمایل چې په الله قسم! د |
| لَيَبْعَثَنَّهُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَهُ عَيْنَانِ يُبْصِرُ بِهِمَا |
| قیامت په ورځ به الله دا راپاسوي، بیا به دیته دوه سترګې ورکړې شي چې په هغې سره هغه کتل کوي |
| وَ لِسَانٌ يَنْطِقُ بِهِ يَشْهَدُ عَلَى |
| او ده ته به ژبه ورکړې شي چې په هغې سره به دا خبرې کوي نو دا به دهغه سړي په حق کې ګواهي ورکوي |
| مَنِ اسْتَلَمَهُ بِحَقٍّ.[1] |
| چا چې په حق سره دا ښکل کړي وي. |

**توضیح: له عینان**: په دې کې څه تشبیه یا کنایه او مجاز اخستلو ته څه ضرورت نشته دی. بلکه دا حدیث خپل ظاهرې معنی باندې محمول دي او الله تعالی پدې باندې قادر دي چې هغه په یو جماد کې د لوستلو او د کتلو طاقت کېږدي. هغې چې کله د انسان په جسم کې د غوږنې یوه ټوره کې د لوستلو قوت کېښودو او د قیامت په ورځ به د هم دغه انسان په خپو کې لوستلو طاقت کېږدي او داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ سره د تسبیحاتو لوستلو صلاحیت په غرونو کې پیدا کړي نو هغه لره د حجر اسود په خبرو کول او بینائي ورکول څه مشکل دي. حدیث کې دا نشته چې فقط به کاڼي خبرې کوي بلکه کاڼي ته

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲ ۲۹۴ رقم الحدیث :۹۶۱

به ژبه هم ور کړي شي نو سترګي به هم ور کړي شي. نو اوس په دې کې څه تردد دی؟ (المرقات ۴۷۰)

**بحق:** حق سره د ښکولو مطلب دا دي چې دا سړی د ایمان او توحید والا وي، د الله تعالی په وعدو باندې یقین کولو وال وي، پوره ادب او احترام ساتلو والا وي او د الله تعالی رضا او د ثواب په ارادې سره د عقیدې او د محبت د جذبې سره دا ښکولوي. حضرت شیخ الهند رَحِمَهُ اللهُ لیکلي دي چې د حجر اسود مثال د مقناطیس او ګنډي دی. دا د مسلمان ایمان پوره ساتي. که چا په عقیدې او محبت سره دا ښکل کړو نو دا د هغې په ایمان ګواهي ورکوي او د هغې شفاعت به کوي او که هغې په زړه کې د هغې نفرت پیدا شو نو فوراً به د هغې ایمان ختم شي. (المرقات ۴۷۰)

## حجر اسود او مقام ابراهیم د جنت یاقوت دي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِنَّ الرُّكْنَ وَالْمَقَامَ |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما اوریدلي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به فرمایل چې حجر اسود او مقام ابراهیم |
| يَاقُوتَتَانِ مِنْ يَاقُوتِ الْجَنَّةِ طَمَسَ اللهُ نُورَهُمَا وَ لَوْ لَمْ يَطْمِسْ نُورَهُمَا |
| د جنت په یاقوتو کې دوه یاقوت دي الله تعالی د دوي رڼا او چته کړې ده (د دې لپاره ایمان بالغیب پاتې |
| لَأَضَاءَ مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَ الْمَغْرِبِ. [1] |
| شي) که د دوي رڼا پاتې شوې وی نو د مشرق او مغرب په مینځ کې به یې ټول شیان رڼا کړي وي. |

**توضیح: طمس الله:** یعنې الله تعالی حجر اسود او مقام ابراهیم د کاڼو نه جنت والا رڼا او پرقاري اخستي دي او بیا د انسانانو ګناهونو دا تور کړو. که چرې داسې نه وي نو د دنیا هره یوه رڼا به ختمه شوي وي او دغه دوه ملغلره به ځلیدلي او دنیا به یې رڼا کړي وی. **طمس یطمس:** د رڼا تللو او ختمیدلو ته وایي. د **ضرب یضرب** نه دی. (المرقات ۴۷۱)

**د حجر اسود عجیبه قصه:** ملا علي قاري په مرقات کې لیکلي دي چې د حجر اسود د جنت کاڼي کیدل یو خو د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په فرمان سره ثابت دي. دویمه هغه قصه هم د دې تائید کوي چې یو ځله د قرامطه ملحدینو (یعنې نادرشاه ایرانی) مکه مکرمه باندې غالب شوي وو نو هغوی د زم زم داوبو کوهې د مسلمانانو د مړو نه ډک کړلو او حجر اسود یې په خپلو ښځکو سره په ویلو د دې خبرې

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲۲۶/۳ رقم الحديث ۸۷۸.

سره ووهلو چې تر څو پورې به د الله تعالی نه بغیر ستا عبادت کېږي؟ بیا هغه خلکو حجر اسود ځان سره خپلو علاقو ته ویوړو او تر شلو کالو پورې حجر اسود د هغوی سره وو. بیا مسلمانانو دروند تاوان ورکړو او د حجر اسود د را واپس کولو معاهده وشوه. خو ایراني اغاخانیانو وویل چې حجر اسود نورو کانړو سره ګډ وډ شوي دي. وس یې مونږ نه پیژنو. که د مسلمانانو سره د حجر اسود د پیژندلو څه نښان وي نو هغه دي راشي او ودي پیژني او واپس دې مکې ته ویسي. مسلمانانو د علماوو سره مشوره وکړه. د وخت علماوو وویل چې حجر اسود خو د جنت کاڼي دي ځکه پدې باندې څه اثر نشي کولی. تاسو هغوی ته ووایې چې ټول کاڼي په اور کې واچوی. نو کله چې دا امتحان شروع شو نو کوم یو کاڼي به چې هغه خلکو اور ته غوزارولو هغه کاڼي به وسوځیدلو او ټوټه به شو او مات به شو. خو کله یې چې حجر اسود اور ته غوزار کړلو نو اور په هغې اثر ونکړلو. نو بیا مکې ته راوړلي شو. ویل کېږي چې دا هم د قدرت د عجائباتو نه وو چې حجر اسود یې د قرامطه نه واپس راوړلي شو. او هغه یې په اوښانو راوړلو. چې په کوم اوښ به یې راوړلو نو هغه به د حجر اسود د بوجه لاندې مړ شو. څو څو اوښان داسې مړه شول. خو کله چې حجر اسود مکې ته راوړلي کېدلو نو یو مریض او کمزوري اوښ هغه په خوشحالۍ سره راوړلو او هغې ته هیڅ تکلیف جوړ نشو. (المرقات ۴۷۱).

## حجر اسود باندې ازدحام څنګه دی؟

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ : أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يُزَاحِمُ عَلَى الرُّكْنَيْنِ زِحَامًا |
| عبید ابن عمیر رحمه الله (تابعي) وایي چې ابن عمر رضي الله عنه سبقت حاصلولو په خلکو باندې په دواړه |
| مَا رَأَيْتُ أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِ |
| ارکانو کې یعنې حجر اسود او رکن یماني ته لاس لګولو کې او همدا رنګې مانه دی لیدلی هیڅ یو صحابي |
| رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُزَاحِمُ عَلَيْهِ |
| د نبي کریم صلی الله علیه وسلم (پدې دواړه ارکانو کې) څوک د چا نه سبقت وړلو کې همدغه شان ابن عمر رضي الله عنه |
| قَالَ : إِنْ أَفْعَلْ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| به فرمایل که زه د سبقت کولو کوښښ وکړم نو مامه منع کوی ځکه ما اوریدلی د نبي کریم صلی الله علیه وسلم |
| يَقُولُ : إِنَّ مَسْحَهُمَا كَفَّارَةٌ لِلْخَطَايَا وَ سَمِعْتُهُ يَقُولُ : |
| نه چې فرمایل به یې دې دواړو ارکانو سره لاس لګول د ګناهونو کفاره ده. او دامې ترې هم اوریدلی |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَنْ | طَافَ | بِهٰذَا | الْبَيْتِ | أُسْبُوعًا | فَأَحْصَاهُ |

چې فرمایل به یې کوم سړی د خانه کعبې طواف او ه ځل وکړي او د هغې محافظت وکړي (یعني د

| | | |
|---|---|---|
| كَانَ | كَعِتْقِ | رَقَبَةٍ. |

طواف واجبات او سنت او آداب و خیال وساتي) نو د هغې ثواب د غلام د آزادولو د ثواب برابر دی همدغه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَ | سَمِعْتُهُ | يَقُولُ : | لَا | يَضَعُ | قَدَمًا |

شان ما واوریدل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به فرمایل (د طواف کولو وخت کې) چې کله هم څوک قدم اخلي او

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا | يَرْفَعُ | أُخْرَى | إِلَّا | حَطَّ | اللهُ | عَنْهُ | بِهَا | خَطِيئَةً |

بیا هغه او چتوي نو الله تعالى د قدم په بدله کې د هغې ګناه ختمه کړي او قدم او چتولو په بدله کې هغه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَ | كَتَبَ | لَهُ | بِهَا | حَسَنَةً. [1] |

ته نیکي لیکي (یعني طواف کولو والا قدم چې کله کیښودلي کېږي نو د هغې ګناه لرې کېږي او چې قدم اخلي نو د ده نیکۍ ډیرېږي همدغه شان په ټول طواف کې د ده ګناهونه ختمېږي او نیکۍ یې ډیرېږي).

**توضیح: يزاحم على الركنين:** د دې ازدحام مطلب دانه دی چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلکو ته ضرر رسوو. استلام خو سنت دی او په دغه موقع باندې ضرر سول حرام دي. مطلب دا دی چې هغې به ازدحام کولو، زور به یې لګولو خو د جواز حده پورې چې په هغې کې به چا ته ضرر نه وو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو ځل حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمایل: **انك رجل قوي لا تزاحم على الحجر فتؤذي الضعيف ان وجدت خلوة فاستلمه والا فاستقبله وهلل وكبر رواه أحمد والشافعي.** (مرقات ۵/۴۷۲) ځینو روایاتو کې دي چې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په هغه مزاحمت او زور وهنه کې به ځینې وخت ډیر زخمي شو او وینه به ترینه روانه شوه. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ وایي چې عام صحابوو ازدحام ندي کړی. د هغوی اقتداء ډېره غوره ده. بلخصوص پدې زمانه کې اهجری. واقعي ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ ریښتیا فرمایلي دي چې نن سبا د مزاحمت دا حالت دی چې ښځې بې پرده شي او په مینځ کې حصاري شي آخر د مستحب کار لپاره د حرام کار ارتکاب کول کوم عقل دی؟ (مرقات ۵/۴۷۲)

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۲۹۲ رقم الحديث: ۹۵۹.

**ان افعل:** دا شرط دی. د دې جزا محذوف دي چې فلا الامر دی. يعنې كه زه د حجر اسود په تقبيل كې مزاحمت وكړم نو زه ملامته نه شم كيدي ځكه ما د نبي كريم ﷺ د دې ډير غوره والي اوريدلي دی. (مرقات ۵/۴۷۲)

**اسبوعاً:** اى سبعة اشواط يعنې د اووه (۷) چكرو يو طواف. (مرقات ۵/۴۷۲)

**فاحصاه:** يعنې د دې د آدابو خيال وساتې او په پوره توګه طواف وكړئ. ملاعلي قاري رحمه الله وايي چې د دې كلام همدغه مطلب دي او د حديث مفهوم هم همدغه دی. ځېنو تر اووه (۷) ورځو پورې هره ورځ بغير د څه رخصت نه طواف مراد اخستي دی. ملاعلي قاري رحمه الله وايي چې دا مطلب د دې حديث په مفهوم كې ندی. (مرقات ۵/۴۷۲) ځېنو اووه (۷) طوافونو هره ورځ كولو مطلب بيان كړي دی دا ډېره لري نه ده.

## د طواف يوه دعاء

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ السَّائِبِ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| عبد الله ابن سائب رضي الله عنه وايي چې ما اوريدلي چې نبي كريم ﷺ به د دواړو اركانو (حجر اسود |
| يَقُولُ مَا بَيْنَ الرُّكْنَيْنِ : ( رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَ |
| او د ركن يماني ) په مينځ كې دا (دعا) لوستله: اۍ زمونږه ربه! مونږ ته په دنيا كې هم خير راكړه او |
| فِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَ قِنَا عَذَابَ النَّارِ ) (۱) |
| آخرت كې هم خير راكړه او مونږ د اور د عذاب نه وساته. |

## د نبي كريم ﷺ د سعي منظر

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ صفيةَ بنتِ شيبةَ قَالَتْ: أَخْبَرَتْنِي بِنْتُ أَبِي تُجْرَاةَ قَالَتْ: دَخَلْتُ مَعَ نِسْوَةٍ مِنْ قُرَيْشٍ دَارَ آلِ |
| صفيه بنت شيبه وايي چې: د ابو تجراة لور ماته بيان وكړو چې زه لاړم د قريشو د ښځو سره كور د آل |
| أَبِي حُسَيْنٍ لِنَنْظُرَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَسْعَى بَيْنَ الصَّفَا وَ الْمَرْوَةِ |
| ابى حسين ته چې مونږ د نبي كريم ﷺ د صفا او د مروه په مينځ كې د سعي حالت وګورو (او همدغه |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۴۴۸/۲ رقم الحديث: ۱۸۹۲

| شان مونږ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د جمال باكمال نه مشرف شو او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د عمل او بركت نه ګټه واخلو ) |
|---|
| فَرَأَيْتُهُ يَسْعَى وَ إِنَّ |
| نو ما نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صفا او د مروه په مينځ كې د اسې سعي كولو باندې وليدو چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| مِئْزَرَهُ لَيَدُورُ مِنْ شِدَّةِ السَّعْيِ وَ سَمِعْتُهُ |
| ملا بند (ملاتړلوپټه) منډه كې د تيزۍ په وجه (د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د ښپو نه ګرد چاپيره) تاويده. د غه شان |
| يَقُولُ : اسْعَوْا فَإِنَّ اللّٰهَ كَتَبَ عَلَيْكُمُ السَّعْيَ. رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ وَرَوَاهُ أَحْمد مَعَ اخْتِلَاف |
| ما اوريدلې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايل چې تول خلک سعي كوئ ځكه الله تعالى تاسو لپاره سعي ليكلې ده |

**توضيح:** د **صفا** او **مروه** په مينځ كې اووه ځله چكرې لګولو ته سعي وايي چې د حج يو مهم ركن دې. د **صفا** او **مروه** غنډۍ اوس نه دي پاتې شوې. د صفا څه كاڼي پاتې شوي دي. او د مروه كاڼي د وخت حكومت مات كړل او ختم يې كړل. د دواړو په مينځ كې مسافه تقريباً يو نيم فرلانګ دې. سعي اصل كې د حضرت هاجرې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا د هغه منډو يادګار دې چې كومه هغې د خپل د شودو ځكونكې بچي د ژوند د بچ كولو لپاره د اوبو پلټنه كې وهلې وې. د صفا لاندې بربنه كې د ډېرې پريشانۍ په وجه تيزې منډې وهلې وې. ځكه هلته ميلين اخضرين په مينځ كې منډې وهلې كيږي. خو عجبه دا چې دا ديوې ښځې يادګار دى خو د ښځو لپاره دا منډې منع دي د دې وجه دا ده چې امت محمدى صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل رسول محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په وجه دا منډې وهي او نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا منډې د ښځو لپاره نه دې جائز كړي فقط د سړو لپاره دې. د اسلام نه مخكې د صفا غونډۍ باندې يو بت وو چې د هغې نو اصاف وو. د هغې وجې نه د دې نوم صفا كيښودل شو. او مروه باندې به يو بل بت وو چې د هغې نوم نائله وو. اصف سړى وو او نائله ښځه وه. دواړو په حرم كې زنا كړې وه. نو دواړه مسخ شول او كاڼي ترينه جوړ شو. جاهليت د دور خلكو دا يوه كرشمه ګڼلو باندې هر يو خپل معبود جوړ كړو. ابو طالب خپلې قصيده لاميه كې د دې بتانو تذكره كړې ده. **فان الله كتب عليكم السعي** امام مالک او امام شافعي په نز سعي فرض ده. هغوى د دې حديث د لفظ د كُتِبَ نه استدلال كړې دې چې حج كې سعي فرض ده. كه چا پرېښودله نو حج به يې باطل شي خو امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ لفظ كتب د وجوب په معنى اخستلې دى. ځكه حج كې سعي

واجب ده که چا پرېښوده نو حج خو يې وشو خو دم (قرباني) ورکول به لازمېږي. احنافو د **فلا جناح عليه ان يطوف بهما** نه استدلال کړي دي او د حديث ظني نه فرض نه ثابتېږي.

**يزره ليدلور**: يعني په تيزه منډه وهلو سره د احرام د لاندېنۍ څادر د نبي کريم ﷺ د پونډيو مبارکو باندې مخکې او وروسته او اخوا ديخوا تاويدله. دا نن سبا هم په خلکو کې وي. ماته دېر خوند راکوي. (مرقات ۵/۴۷۴)

## نبي کريم ﷺ په سوريدو سره سعي کړي ده

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾وَعَنْ قُدَامَةَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمَّارٍ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْعَى بَيْنَ |
| قدامة رضي الله عنه ابن عبد الله ابن عمّار وايي چې ما وليدو نبي کريم ﷺ په سعي کولو په مينځ د |
| الصَّفَا وَ الْمَرْوَةِ عَلَى بَعِيرٍ لَا ضَرْبَ وَلَا طَرْدَ |
| صفا او مروه کې په اوښ باندې (سپور)، (او هغه وخت) به نه وهل ؤ، نه به شړل ؤ او نه به د لرې شه |
| وَلَا إِلَيْكَ إِلَيْكَ. [1] |
| او نه به د بچ شه اواز نه وو. |

**توضيح: على بعير**: ددې حديث نه معلومه شوه چې نبي کريم ﷺ په اوښ باندې سپور وو او سعي يې کړې وه او د دينه مخکې حديث ۲۲ او دغه شان د نورو احاديثو نه معلومېږي چې نبي کريم ﷺ سعي پيدل کړې ده. دا خو په ظاهره تعارض دی. د دې جواب علماوو کړي دي چې نبي کريم ﷺ په يوه موقع باندې پيدل سعي فرمايلي وه. او په بله موقع کې سپور وو او سعي يې کړي ده. نو د بېلا بېلو وختونو په وجه تعارض ختم شو. پاتې شوه دا مسئله چې په سپره سعي کول جائز دي او که نا؟ نو امام ابو حنيفه رحمه الله په نز سعي پيدل کول واجب دي. که چا په سپره سعي وکړه نو په هغې به دم لازمېږي. نبي کريم ﷺ به د څه جسماني مجبوري بېماري او يا داسې د نورو په وجه به داسې کړي وي يا د امت ته تعليم ورکولو په وجه به يې داسې کړې وي او د امت تعليم لپاره د ممنوع کار ارتکاب کله کله کيدلي شي. په هغې کې ثواب هم ورکول کېږي.

**لا ضرب**: يعني لارې خالي کولو لپاره به خلک نه وهلي کيدل لکه څنګه چې مغرور او متکبره خلک

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲۴۷/۳ رقم الحديث :۹۰۳.

خپل ظاهري شان ښکاره کولو لپاره غريبو خلکو ته ديکي ورکوي. (مرقات ۵/۴۷۶)

ولاطرد: يعني به ژبه سره په او ازونو سره د اخوا کولو لپاره به يې چغې سورې نه وهلي لکه څنګه چې مغروره او ظالمانو خلکو د شان ډېره ولو لپاره د هغوی چمچې چغې وهي او وايي لرې لرې، بچ بچ شه خاص ميلمانه راروان دي. لکه څنګه چې نن سبا کېږي. (مرقات ۵/۴۷۶)

## په طواف کې د اضطباع حکم

| ﴿٢٤﴾ وَ عَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ قَالَ : إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَافَ بِالْبَيْتِ |
|---|
| يعلي بن امية رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په داسې حالت کې د بيت الله طواف وکړ چې نبي |
| مُضْطَبِعًا بِبُرْدٍ أَخْضَرَ. [1] |
| کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شين (شوکو وال) څادر په ذريعې سره اضطباع کړې وه. |

**توضيح: مضطبعاً**: د اضطباع اصطلاحي مفهوم دا دي چې د احرام د څادر د ښې تخرګ د لاندې نه په راوتلو سره چپې ورې باندې واچولې شي. **اضطباع** د طواف د سنتو نه ده د احرام د سنتو نه نه ده. لهذا د احرام په عام احوالو کې اضطباع کول ثابت ندې. او د اضطباع په حالت کې لمونځ کول مکروه دي چې هر هغه طواف چې په هغې کې سعي وي. د هغې په اولنې درې (۳) چکرو کې رمل او اضطباع مسنون ده او چې د کوم نه وروسته سعي نه وي. په هغې اضطباع نشته دي او نه رمل شته. راتلونکي حديث ۳۵ کې د اضطباع طريقه ښودلې شوې ده. د مصر خلک هميشه په اضطباع کې وي. د داسې اضطباع نه د احرام شان ظاهرېږي.

**په طواف کې د اضطباع طريقه**: د ملا علي قاري رَحِمَهُ اللَّهُ د کلام نه معلومېږي چې د لمونځ حالت کې اضطباع مکروه ده او عام حالاتو کې خلک چې اضطباع کوې د هغې هيڅ اصل نشته دی. دا مستحب نه دي. د دې کلام نه اشاره کېږي چې کوم سړی اضطباع په عام حالاتو کې مستحب نه ګڼي. بغير د استحباب نه دا اختياري نو کيدي شي چې جائز وي. احرام د جامو پشان يوه جامه ده. که د سهولت په خاطر وړه خلاصه وي نو منع نه ده. د ګرمۍ وخت کې په اضطباع کولو سره ډير ارام موندلي کېږي. خو د لمونځ په وخت کې اضطباع مکروه ده. (مرقات ۵/۴۷۶)

**ببردا خضر**: ملا علي قاري رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې په دې څادر کې شنې کرښې وې، ټول څادر شين نه

[1] أخرجه أبوداود في السنن ٢/٤٤٣ رقم الحديث ١٨٨٣.

ؤ. (مرقات ۵/۴۷۶)

## په طواف کې د اضطباع طریقه

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابَهُ اعْتَمَرُوا مِنَ الْجِعِرَّانَةِ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او صحابو يې عمره وکړه د جعرانه نه (چې د مکې |
| فَرَمَلُوا بِالْبَيْتِ ثَلَاثًا |
| او مدينې په مينځ کې د يو ځای نوم دی) نو تيز لور مل وکړو د خانه کعبې د طواف نه (مخکې) درې چکرو |
| وَ جَعَلُوا أَرْدِيَتَهُمْ تَحْتَ آبَاطِهِمْ ثُمَّ |
| کې خو دا چې هغوی (طواف کې) خپل څادرونه (بنی) ترېن (بغل) لاندې نه راايستلي وو او بيا يې |
| قَذَفُوهَا عَلَى عَوَاتِقِهِمُ الْيُسْرَى. (۱) |
| اچولي وو په چپه اوږه باندې. |

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : مَا تَرَكْنَا اسْتِلَامَ هَذَيْنِ الرُّكْنَيْنِ : الْيَمَانِي وَ الْحَجَرِ |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې مانه دی پرېښی ښکلول د دې دواړو رکنونو يعني رکن يماني او د حجر اسود |
| فِي شِدَّةٍ وَلَا رخاء مُنْذُ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَسْتَلِمُهُمَا. (۲) |
| نه په رش کې او نه په غير د رش کې د کله نه چې ما نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ليدلی چې دا دواړه يې ښکلول |
| (يعني مونږ په هيڅ حالت کې دا سعادت ندې پرېښودلی). |
| وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا: قَالَ نَافِعٌ: رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ يَسْتَلِمُ الْحَجَرَ بِيَدِهِ ثُمَّ قَبَّلَ يَدَهُ وَقَالَ: مَا تَرَكْتُهُ مُنْذُ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَله |

## د عذر په وجه په سوريدو سره طواف کول جائز دي

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ : شَكَوْتُ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنِّي أَشْتَكِي. |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۴٤٤ رقم الحديث ۱۸۸٤.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۴۷۱ رقم الحديث :۱۶۰۶، ومسلم في صحيحه ۲/۹۲٤ رقم الحديث. ۱۲۶۸/۲٤۵.

ام سلمه رضي الله عنها وايي چې ما (د حج په ورځو کې) نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته شکايت وکړو (چې زه بيماره

فَقَالَ : طُوفِي مِنْ وَرَاءِ النَّاسِ

يم چې د هغې په وجه پيدل طواف نه شم کولی) نبي عليه السلام وفرمايل چې ته د خلکو نه وړاندې شه

وَ أَنْتِ رَاكِبَةٌ فَطُفْتُ وَ رَسُولُ

او په سپرېدو سره طواف وکړه. نو بس ما همدغه شان طواف وکړل او (ما هغه وخت وکتل) چې رسول

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُصَلِّي إِلَى جَنْبِ الْبَيْتِ

الله صلى الله عليه وسلم د بيت الله په څنګ کې (يعنې د خانه کعبې ديوال سره متصل) لمونځ کولو او په لمونځ

يَقْرَأُ بِالطُّورِ وَ كِتَابٍ مَسْطُورٍ.[1]

کې يې والطور وکتاب مسطور قرأت کولو.

## حجر اسود ته د حضرت عمر رضي الله عنه خطاب

﴿۲۸﴾ وَ عَنْ عَابِسِ بْنِ رَبِيعَةَ قَالَ : رَأَيْتُ عُمَرَ يُقَبِّلُ الْحَجَرَ

عابس ابن ربيعه رحمه الله (تابعي) وايي چې ما وليد چې عمر فاروق رضي الله عنه حجر اسود ښکلولو او (دهغې

وَ يَقُولُ : وَ إِنِّي لَأَعْلَمُ أَنَّكَ حَجَرٌ مَا تَنْفَعُ

مخې ته) يې داوويل چې په دې کې هيڅ شک نشته، زه پوهېږم چې ته يو کاڼي يې نه ته ګټه رسولي شي

وَلَا تَضُرُّ وَلَوْلَا أَنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُقَبِّلُكَ مَا قَبَّلْتُكَ.[2]

اونه تاوان که ما نبي کريم صلى الله عليه وسلم ستا په ښکلولو نه وې ليدې نو ما به چرې هم ته نه وې ښکل کړې

**توضيح: ما تنفع ولا تضر**: يعنې ته يو کاڼي يې ګټه او تاوان ستا په لاس کې نشته دی. خو د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د تعليماتو په کتلو سره ستا ښکولو د ثواب کار دی. په حضرت عمر رضي الله عنه دې الله کروړونه رحمتونه نازل کړي. هغوی اهل باطل مشرکين او په هندوانو باندې واضحه کړله چې مسلمان چې کاڼي ښکلی. دا کاڼي پوجا پاټ (عبادت) نه کوي بلکه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم سنت او اطاعت په وجه مسلمانان دا ښکولوي. نن سبا اکثر کفار او مشرکين او هندوان او داسې نو دا

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۹۰/۳ رقم الحديث :۱۶۳۳، ومسلم في صحيحه ۹۲۷/۲ رقم الحديث: ۱۲۷۶/۲۵۸

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۶۲/۳ رقم الحديث :۱۵۹۷، ومسلم في صحيحه ۹۲۵/۲ رقم الحديث: ۱۲۷۰/۲۵۱.

کښې چې مسلمانان هم د کاڼي عبادت کوي. حال دا دي چې کفارو ته معلومه نه ده چې هيڅ يو مسلمان بيت الله ته سجده نه کوي. بيت الله خو يو چت دی. اصل سجده او عبادت خو الله لره دی. همدغه شان حجر اسود څه واجب الاطاعت کاڼي نه دی، نه کوم مسلمان د دې عبادت کوي. د دې ښکلول د نبي کريم صلی الله علیه وسلم په سنت باندې عمل کولو لپاره دی. چې په هغې باندې ثواب ورکړي کيږي. يو روايت کې دي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل. اې حجر اسود ته کاڼي يې. د ګټه او تاوان مالک نه يې. که ماته زما رب حکم نه وي کړي نو ما به ته نه وې ښکل کړی. د مستدرک حاکم په روايت کې دي. چې د حضرت عمر رضي الله عنه د دې کلام په جواب کې حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل چې آو آو دا کاڼي ګټه او تاوان رسولي شي. د دې مطلب دا دي چې د دې په ښکولولو باندې ثواب ورکړي کيږي چې هغه ګټه ده. او د دې په توهين باندې ايمان ځي چې تاوان دی. څېنو رواياتو کې دي چې حجر اسود په زمکه کې د الله تعالی ښی لاس دی. (مرقات ۵/۴۷۸)

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: وُكِّلَ بِهِ سَبْعُونَ مَلَكًا يَعْنِي الرُّكْنَ الْيَمَانِيَ |
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل مقرري دي اويا فرښتې په رکن يماني |
| " فَمَنْ قَالَ : اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ |
| باندې نو کوم سړی چې (هلته) دا دعاء ووايي فرښتې پرې آمين وايي، دعاء: اې الله! زه غواړم ستا نه د |
| الْعَفْوَ وَ الْعَافِيَةَ فِي الدُّنْيَا وَ الْآخِرَةِ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَ فِي الْآخِرَةِ |
| ګناهونو معافي او د دنيا او آخرت عافيت، اې زمونږه ربه! مونږه په دنيا کې خير راکړه او په آخرت کې |
| حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ قَالُوا : آمِينَ ".[1] |
| هم خير راکړې او مونږه د اور د عذاب نه وساته. |

## د طواف په دوران کې د تسبيحاتو ډير ثواب دی

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : " مَنْ طَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعًا |
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل څوک چې طواف وکړي د خانه کعبې |

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في سننه ۲/۹۸۵ رقم الحديث ۲۹۵۷

| |
|---|
| وَلَا يَتَكَلَّمُ إِلَّا بِ سُبْحَانَ اللهِ وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلَٰهَ |
| او (٧) ځلې او (د طواف په مينځ کې) خبرې ونه کړي صرف دا وايي سبحان الله والحمدلله ولا اله |
| إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ مُحِيَتْ عَنْهُ عَشْرُ سَيِّئَاتٍ وَكُتِبَ لَهُ عَشْرُ حَسَنَاتٍ |
| الاالله والله اكبرولا حول ولاقوة الابالله نو دده لس ګناهونه معاف کېږي او لس نيکۍ ليکلې کېږي او |
| وَ رُفِعَ لَهُ عَشْرُ دَرَجَاتٍ . وَ مَنْ طَافَ فَتَكَلَّمَ وَ هُوَ فِي تِلْكَ الْحَالِ |
| ددې لس مرتبې اوچتېږي او کوم سړی چې طواف وکړي او د (طواف کولو) حالت کې خبرې وکړي نو |
| خَاضَ فِي الرَّحْمَةِ بِرِجْلَيْهِ كَخَائِضِ |
| دا په خپل دواړه خپو سره د رحمت په درياب کې داسې داخل شي لکه څنګه چې يو کس داخليږي |
| الْمَاءِ بِرِجْلَيْهِ ".(١) |
| درياب ته په خپلو خپو سره. |

**توضيح: كخائض الماء:** يعنې کوم سړی چې د طواف دوران کې څه دنيوي کلام ونه کړي بلکه فقط تسبيحات لولې او طواف وکړي. هغې ته به غټې درجې ورکړې کېږي خو کوم سړی چې د طواف دوران کې تسبيحات هم ولولي او څه نورې نيکې خبرې هم ورکړي نو ګويا کې هغه خپل ځان د رحمت درياب ته داخل کړو. د دې توجيه نه معلومېږي چې دا دويمه مرتبه د اولې مرتبې نه غټه ده.

ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ او داسې نور همدغې طرف ته تلې دي. ځينو علماوو ويلي دي چې **ومن طاف فتكلم** نه تر آخر پورې چې کوم کلام نقل کړې شوي دي. دا همغه اولني کلام مکرر راوړې شوي دي او د تکلم نه همغه تسبيحات مراد دي. خو په دې تکرار کې دا ګټه ده چې د دينه يو معقول شي محسوس او مشاهد خودلې شوي دی. ما د ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ په مرقات کې چې څه وليدل نو ما ته اندازه وشوه چې عموماً ملا علي قاری رَحِمَهُ اللهُ د علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ هيڅ توجيه ته صحيح منلو ته تيار نه دی. هغوی په خپله شرح کې د ټولو نه ډېره نيوکه د ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ په کلام باندې کړې ده. (مرقات ۵/۴۸۳)

---

(١) أخرجه ابن ماجه في سننه ٩٨٦/٢ رقم الحديث : ٢٩٥٧.

# باب الوقوف بعرفة
## دوقوف عرفات بیان

د مکې مکرمې نه تقریباً ۱۵ میله یعنې ۲۵ کلومېتره مسافه باندې د یو ډېر غټ میدان نوم عرفات دی. د هغې په مینځ کې یوه اوچته غونډۍ ده چې هغې ته جبلِ رحمت وایي. لفظِ عرفه ځای او ورځ دواړو لپاره ویلې کېږي. خو لفظِ عرفات صرف ځای لپاره استعمالېږي.

**د تسمیه وجه**: ویل کېږي چې حضرت آدم عَلَیْهِ السَّلَامُ او حضرت حوا د جنت نه راویستلې شو. نو دواړه تر ډېرې مودې پورې جدا جدا وو. حضرت آدم عَلَیْهِ السَّلَامُ د هندوستان سراندیب علاقه کې راکوز کړې شوې وو او حضرت حوا حجاز مقدس کې راکوزه کړې شوې وه. بیا ډېره موده وروسته د دواړو پېژندګلو په همدغه غونډۍ باندې وشوه. نو د دې نوم عرفه پاتې شو. بله وجه تسمیه دا ده. ویل کېږي چې حضرت جبرائیل عَلَیْهِ السَّلَامُ په دغه مقام باندې حضرت ابراهیم عَلَیْهِ السَّلَامُ ته احکامات ښودل او بیا به یې ترې نه پوښتل هم عرفت نو حضرت ابراهیم عَلَیْهِ السَّلَامُ به فرمایل عرفت نو د دې وجې نه د دې نوم عرفه کېښودلې شو. بهرحال وقوف عرفه د حج په بنیادي ارکانو کې د احرام نه وروسته دویم رکن دی. که فوت (پاتې) شو. نو د حاجي حج ختم شو. ده وقوف ۹ ذوالحجه په ورځ او د راتلونکې شپې په څه برخه کې وشي نو حج صحیح کېږي. (مرقات ۵/۴۸۴)

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### د عرفې په ورځ تلبیه ویل بهتر دي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِيْ بَكْرٍ الثَّقَفِيِّ أَنَّهُ سَأَلَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ |
| محمد بن ابوبکر ثقفي رَحِمَهُ اللّٰهُ (تابعي) باره کې منقول دي چې ده د انس بن مالک رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه تپوس وکړو |
| وَ هُمَا غَادِيَانِ مِنْ مِنًى إِلَى عَرَفَةَ : كَيْفَ كُنْتُمْ تَصْنَعُوْنَ فِيْ هٰذَا الْيَوْمِ |
| حال دا چې هغه دواړه د سحر وخت کې منی نه عرفات ته تلل چې تاسو څه کول په دې (عرفې) په ورځ |
| مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ؟ فَقَالَ : كَانَ يُهِلُّ مِنَّا الْمُهِلُّ |
| د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره نو ده وویل چې مونږ کې به دلبیک لوستونکو لبیک لوستل او هغه به یې |

فَلَا يُنْكِرُ عَلَيْهِ وَ يُكَبِّرُ الْمُكَبِّرُ مِنَّا فَلَا يُنْكِرُ عَلَيْهِ.(۱)

ددې نه، نه منع کولو او د تکبير والا به تکبير لوستلو او هغه به يې ددې نه، نه منع کول.

## په منی کې د قربانۍ او عرفات او مزدلفه کې د وقوف ځای

﴿۲﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ: نَحَرْتُ هٰهُنَا وَ مِنًى

جابر رضي الله عنه روايت کوي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل ما خو دغه ځای قرباني کړيده هغسې خو منی

كُلُّهَا مَنْحَرٌ فَانْحَرُوا فِي رِحَالِكُمْ. وَ وَقَفْتُ هٰهُنَا

کې هر ځای قربانګاه ده خو تاسو په خپلو ډيرو کې قربانۍ وکړئ ما خو دې ځای کې وقوف کړي دی هسې

وَ عَرَفَةُ كُلُّهَا مَوْقِفٌ. وَ وَقَفْتُ هٰهُنَا وَ جَمْعٌ كُلُّهَا مَوْقِفٌ.(۲)

خو په عرفات کې هر ځای موقف دي خو ما دې ځای کې وقوف کړي هسې د مزدلفې هر ځای موقف دی

**توضيح**: دا چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم په مزدلفه او عرفات کې په يو يو ځای کې عرفات کړي ؤ نو ګمان کيدي شې چې همدغلته وقوف وکړي شي کوم ځای چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم کړي وو. د دينه امت ته بل کوم ډير غټ مشکل کيدلی شي. ځکه نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې ما چرته هم وقوف وکړلو نو ومې کړلو خو عرفات ټوله په ټوله وقوف دی. خو دا ده چې بطن عرنه کې نبي کريم صلی الله علیه وسلم د عرفات نه منع کړې ده. همدغه شان مزدلفه ټول په ټوله د وقوف ځای دی خو د محسر په غونډۍ کې وقوف کول منع دې. همدغه شان منۍ هم ټوله د قربانۍ ځای دی اګر که نبي کريم صلی الله علیه وسلم په خاص ځای کې قرباني کړې وه.

## د عرفې د ورځې فضيلت

﴿۳﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ: " مَا مِنْ يَوْمٍ أَكْثَرَ

عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل دا سې يوه ورځ نه ده چې په هغې کې زيات

مِنْ أَنْ يُعْتِقَ اللهُ فِيهِ عَبْدًا مِنَ النَّارِ مِنْ يَوْمِ عَرَفَةَ

انسانان په کې الله تعالی آزاد کړي نه وي دا ورنه په ورځ د عرفې (يعنې ددې عرفې په ورځ په عرفات

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۱۰/۳ رقم الحديث: ۱۶۵۹، ومسلم في صحيحه ۹۳۳/۲ رقم الحديث: ۱۲۸۵/۲۷٤

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۸۹۳/۲ رقم الحديث ۱۲۱۸/۱٤۹.

| وَ إِنَّهُ |
|---|
| کې الله تعالی دټولو ورځونه ډیر انسانان د اور نه خلاصیږي) او بېشکه (هغه ورځ) الله تعالی (خپل |
| لَيَدْنُو ثُمَّ يُبَاهِي بِهِمُ الْمَلَائِكَةَ |
| رحمت او مغفرت سره) بنده ګان رانژدې کوي ، بیا د فرښتو مخې ته په حج کونکو باندې فخر کوي او |
| فَيَقُولُ : مَا أَرَادَ هَؤُلَاءِ ". [1] |
| فرمايي چې دا خلک څه غواړي؟ (يعني دا چې څه هم غواړي زه به یې ورکوم). |

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د امام د موقف نه وراندې موقف کې مضائقه نشته دی

| ﴿٤﴾ عَنْ عَمْرِو بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ صَفْوَانَ عَنْ خَالٍ لَهُ يُقَالُ لَهُ يَزِيدُ بْنُ شَيْبَانَ |
|---|
| عمرو بن عبد الله بن صفوان رَحِمَهُ اللهُ (تابعي) د خپل ماما نه چې د هغه نوم يزيد ابن شيبان وو نقل کوي |
| قَالَ : كُنَّا فِي مَوْقِفٍ لَنَا بِعَرَفَةَ |
| چې هغوی وي ویل مونږ به میدان عرفات کې په هغه ځای کې او درید و کوم چې زمونږ اپاره متعین شوي |
| يُبَاعِدُهُ عَمْرٌو مِنْ مَوْقِفِ الْإِمَامِ جِدًّا فَأَتَانَا ابْنُ مِرْبَعٍ |
| وو . او عمرو هغه ځای د امام د موقف (د او درید و ځای) ډیر لرې بیان کړي وو . نو څکه راغلو ابن مربع |
| الْأَنْصَارِيُّ فَقَالَ : إِنِّي رَسُولُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِلَيْكُمْ |
| الانصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زمونږ خواته او وي ویل چې زه د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ استازي په حیث تاسو ته راغلی |
| يَقُولُ لَكُمْ : قِفُوا عَلَى مَشَاعِرِكُمْ فَإِنَّكُمْ |
| یم او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ تاسو ته دا پیغام دي چې تاسو په خپل عبادت ځایونو کې او درېږئ څکه چې تاسو |
| عَلَى إِرْثٍ من إِرْثِ أَبِيكُمْ إِبْرَاهِيمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ . [2] |
| د خپل پلار ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ په میراث (اتباع) باندې ولاړ يې. |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/ ۹۸۲ رقم الحديث ۱۳۴۸/۴۳۶.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲/ ۴۶۹ رقم الحديث :۱۹۱۹

**توضیح:** د عربو دود وو چې هره قبیله به په عرفات کې د خپل ځان لپاره خپل خاندانونو سره یو ځای د قوف ځای متعین کولو. یزید بن شیبان رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې زمونږ د خاندان یو سړی عمر هغه ځای د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د موقف ډیر لرې ګڼلو او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته نژدې کیدل یې غوښتل. نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خبر شو نو هغې ابن مربع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نوم یو صحابي راواستولو او د هغه خاندان خلکو له یې دا پیغام ورکړلو چې کوم ځای کې به تاسو د نن مخکې قیام کولو وس هم هلته وقوف کوی. عرفات ټول وقوف دی. تاسو خو د خپل نیکه ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ په میراث باندې وی. دا کلک کړی او ماته نژدې مه راځی. (مرقات ۵/۴۸۷)

## په حدود حرم کې هر ځای کې قرباني کیږي

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : كُلُّ عَرَفَةَ مَوْقِفٌ |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل ټول میدانِ عرفات د حصارید و ځای دی، |
| وَ كُلُّ مِنًى مَنْحَرٌ وَ كُلُّ الْمُزْدَلِفَةِ مَوْقِفٌ وَ كُلُّ فِجَاجِ مَكَّةَ |
| ټوله منی د قربانی ځای دی، ټوله مزدلفه د حصارید و ځای دي او د مکې مکرمې هره لاره (او د هغې هر |
| طَرِيقٌ وَ مَنْحَرٌ. (۱) |
| کوڅه) لاره او د قربانی ځای دی. |

## د عرفې په ورځ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څنګه خطبه ورکړه د لاؤډ سپیکر ثبوت

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَ عَنْ خَالِدِ بْنِ هَوْذَةَ قَالَ : رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| خالد بن هوذه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې ما ولیدل نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عرفې په ورځ (میدان عرفات کې) |
| يَخْطُبُ النَّاسَ يَوْمَ عَرَفَةَ عَلَى بَعِيرٍ قَائِمٌ فِي الرِّكَابَيْنِ. (۲) |
| چې د اوښ په دواړه رکابونو اودرید و او خلکو ته یې خطبه فرمایله. |

**توضیح: على بعير قائماً:** یعنې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ولاړ اوښ باندې اودریدو او خطبه یې وفرمایله د دې لپاره چې لرې لرې خلکو ته اوراز ورسي. غونده لویه خو لویه وه او هغه وخت کې د لاوډ سپیکر انتظام نه وو. ځکه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل طبعي اواز د اوچتولو لپاره د هغه وخت

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۴۷۸ رقم الحديث :۱۹۳۷.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۱۳۳ ، رقم الحديث ۱۹۱۹

ټول رائج کړي شوي طريقې اختيار کړيلې نو اول نبي کريم ﷺ په اوښ باندې ودريدلو. باې يې په هغې پالان کيښودلو او خپله په هغې ودريدلو. دا د وچت اواز طريقې وې. په ځينو رواياتو کې دي چې د نبي کريم ﷺ اواز به کو ځاى کې ختميدلو نو هلته نه به حضرت علي رضي الله عنه د نبي کريم رضي الله عنه فرمان مخکې وړلو. دا په هغه زمانه کې د مکبر الصوت آله جواز اړخ ته اشاره وه چې انسان په کومې طريقې سره خپل اواز په کومې طريقې سره رسولې شي هغه نو ودې رسوي. نن سبا خو اليکټرانک نظام قائم دى. لهٰذا د مکبر الصوت په ذريعې سره اواز تر لرې پورې رسولې کيدلې شي. دا جائز ده. خو د ضرورت په بناء، چې د خداى مخلوق ته تکليف و نه رسوې. (المرقات ۵/۴۸۸)

د نبي کريم ﷺ په زمانه کې مسجد نبوي کې مکبرين مقرره ول هم د لاوډ سپيکر جائز کېدلو دليل دي ځکه د مکبرينو په ذريعې سره د امام اواز خلکو ته تر آخر پورې د رسولو انتظام خپله نبي کريم ﷺ کړي وو. نو لاوډ سپيکر په ذريعې سره هم کېږي چې اواز وچت شي او مخکې ورسېږي. تبليغي حضرات دلاوډ سپيکر استعمال دسنتو خلاف ګڼي نو ځکه يې نه استعمالوي دا خلک اصل کې د علماؤ د فتوې تذليل او توهين کوي او په علماوو اعتماد نه کوي. که لاوډ سپيکر ناجائز وي نو بيا دا اوږده اوږده بيانونه پدې کې ولې کوي. هم دغه شان د لمونځ لپاره تکبير ولې په هغې وايي. په هغې کې اذان ولې کوي؟ (المرقات ۵/۴۸۸)

## د عرفې دورځې دعاء

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ |
| عمرو بن شعيب د خپل پلار (شعيب رضي الله عنه) او دا د خپل نيکه (عبد الله بن عمرو رضي الله عنه) نه روايت کوي |
| أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : " خَيْرُ الدُّعَاءِ دُعَاءُ يَوْمِ عَرَفَةَ |
| چې نبي کريم ﷺ و فرمايل: د ټولو نه غوره دعاء د عرفې په ورځ ده (اګر که په ميدان عرفات |
| وَ خَيْرُ مَا قُلْتُ أَنَا وَ النَّبِيُّونَ مِنْ قَبْلِي : |
| کې وغوښتلې شي يا په هر ځاى کې) او د ټولو نه غوره کلمات هغه چې ما يا د مانه مخکې انبياؤ ويلي |
| لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ |
| دادي د الله نه بغير بل څوک لائق د عبادت نشته ،اک يو ذات دى ،د ده سره بل څوک شريک نشته دى |

لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ. وروى مالكٌ عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ إِلَى قَوْلِهِ: لَا شريك لَهُ[1]

ده لره بادشاهي ده او ده لره تعریف دي او دا په هر څه قادر دی.

## د عرفې ورځ د شيطان د ذلالت ورځ ده

﴿۸﴾ وَعَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ كَرِيزٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَا رُئِيَ الشَّيْطَانُ

طلحه بن عبيد الله بن كريز وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل نه دي ليدلې شوي شيطان په

يَوْمًا هُوَ فِيهِ أَصْغَرُ وَلَا أَدْحَرُ وَلَا أَحْقَرُ وَلَا أَغْيَظُ مِنْهُ فِي يَوْمِ عَرَفَةَ

داسې يوه ورځ چې په دې كې دا ډير ذليل او ډير كمزورې او د غصې نه ډك وي څومره چې د عرفې په ورځ

وي (يعني يا خو شيطان هميشه چې كله مسلمان په نيكيو ووينې نو هغه د غصې نه ډك او حقير شي.

وَمَا ذَاكَ

خو د عرفې په ورځ د تيو لو نه ډير غصه هم وي او ذليل او خوار هم وي) او ددې وجه داده چې (په دې ورځ

إِلَّا لِمَا يَرَى مِنْ تَنَزُّلِ الرَّحْمَةِ وَ تَجَاوُزِ اللهِ عَنِ الذُّنُوبِ الْعِظَامِ

په هر خاص او عام) د الله تعالى رحمت نازلېږي او د هغه د طرفه لوي لوي ګناهونه معاف كېږي. او دا

إِلَّا مَا رُئِيَ

چې د بدر په ورځ هم شيطان همدغه شان ليدلې شوى وو (يعني د غزوه بدر په ورځ چې كله مسلمانانو

يَوْمَ بَدْرٍ.

ته عزت او اسلام ته شوكت حاصل شو نو هغه ورځ هم شيطان د عرفې ورځې په شان يا د هغې نه هم

فَقِيلَ: مَا رُئِيَ يَوْمَ بَدْرٍ؟ قَالَ: فَإِنَّهُ قَدْ رَأَى جِبْرِيلَ

ډير ذليل او خوار او د غصې نه ډك وي) نو (د بدر په ورځ) شيطان ليدلې ؤ چې جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام (د

يَزَعُ الْمَلَائِكَةَ. رَوَاهُ مَالِكٌ مُرْسَلًا وَفِي شَرْحِ السُّنَّةِ بِلَفْظِ الْمَصَابِيحِ[2]

(مشركانو سره د جنګيدل لپاره) د فرښتو صفونو ته ترتيب وركوي.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۳۴ رقم الحديث: ۳۵۸۵.

(۲) أخرجه مالک في الموطأ ۱/۴۲۲ رقم الحديث ۲۳۶

**توضیح**: **اصغر**: د لفظ د صغار نه دي چې په معنی د ذلیل او خوار دی. (المرقات ۵/۴۹۱)

ادحر: دا د دحور نه دي لري تلو او د تختیدلو په معنی دی. علامه طیبي رحمه الله فرمائي : **الحر الدفع یغضب واهانة احقر** ، دحقارت نه دی دبدحالئ په معنی کې دی (المرقات ۵/۴۹۱، والکاشف : ۵/۳۱۸).

**اغیظ**: ای اکثر غیظاً سخت غصه کیدل. (المرقات ۵/۴۹۱)

**فقیل مارئي**: یعني څنګه لیدلي شوي دی؟(المرقات ۵/۴۹۱)

**یزع الملائکة**: یعني د فرښتو مشري کوي او هغه منع کوي. د بدر په ورځ شیطان د سمندر اړخ ته هغه وخت وتختیدو چې کله هغې فرښتې ولیدلې. تر دې چې سمندر کې خپل ځای ته ورسیدو خو هلته هم حصار نشو بلکه هلته ته یې هم په سمندر کې غوپه ووهله او لاسونه یې آسمان ته اوچت کړل او وي ویل ای الله! زما د مرګ وعده چې تا کړې وه هغه هیره نه کړې.

## د عرفې دورځې فضیلت

| |
|---|
| ﴿۱﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " إِذَا كَانَ يَوْمُ عَرَفَةَ إِنَّ اللهَ يَنْزِلُ |
| جابر رضي الله عنه راوي دي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې د عرفې په ورځ الله تعالی نزول فرمایي |
| إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا فَيُبَاهِي بِهِمُ الْمَلَائِكَةَ |
| دآسمان نه دنیا ته (یعني د رحمت او کرم سره نژدې راځي) او بیا د فرښتو مخ کې په حاجیانو فخر کوي |
| فَيَقُولُ : انْظُرُوا إِلَى عِبَادِي أَتَوْنِي شُعْثًا غُبْرًا |
| او فرمایي چې لږ زما د بنده ګانو طرف ته وګوری، چې راغلي دي ماته په ګډوډو ویختانو، ګردو هلې او |
| ضَاجِّينَ مِنْ كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ أُشْهِدُكُمْ أَنِّي قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ |
| لبیک او اوازونو کولو سره. زه تاسو په دې خبره ګواه کوم چې ما دوي وبخښل . (دې او ریدو سره) |
| فَيَقُولُ الْمَلَائِكَةُ : يَا رَبِّ فُلَانٌ كَانَ يُرَهَّقُ وَ فُلَانٌ |
| فرښتې وایي چې ای پروردګاره (پدې کې) هغه فلاني سړی هم دي چې د هغه طرف ته د ګناه نسبت کیږي |

| |
|---|
| قَدْ : جَلَّ وَ عَزَّ اللهُ يَقُولُ : قَالَ فُلَانَةٌ وَ |
| او فلانی ښځه هم ده چې هغه ګناهګاره ده. نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل چې الله تعالى فرمايي چې ما هغه هم |
| غَفَرْتُ لَهُمْ ". قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : فَمَا مِنْ يَوْمٍ أَكْثَرَ عَتِيقًا |
| وبخښل. بيا نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل داسې هيڅ ورځ نشته چې په هغې کې زيات خلک آزاد |
| مِنَ النَّارِ مِنْ يَوْمِ عَرَفَةَ. (۱) |
| شي د عذاب د اور نه د عرفې د ورځې په شان. |

**توضيح: ينزل:** يعنې الله تعالى د عرفې په ورځ د اسمان نه دنيا ته راځي. دا نزول او دا الفاظ متشابهات سره قبيل دي چې په هغې کې سلف صالحينو داسې توجيه کړې ده **اى ما يليق بشانه.** متأخرينو په دې کې تاويل کوې چې نزول نه د رحمت نزول مراد دی. (المرقات ۵/۴۹۲)

**يتباهى:** د صيغه د مباهاتو ده د فخر کولو په معنى دي يعنې الله تعالى فرښتو مخې حاجيانو باندې فخر کولو سره فرماي چې تاسو ويلې وو چې انسان مه پيدا کوه وس وګوره زما بنده ګان څنګه زما مخې ته عاجزې کوي. (المرقات ۵/۴۹۲)

**شعثا:** د اشعث جمع ده ګډ وډ ويختانو ته وايي. (المرقات ۵/۴۹۲)

**غبرا:** د اغبرة جمع ده. په ګرد ګيډلو ته وايي (المرقات ۵/۴۹۲)

**ضاجين:** ضج يج نه ضاج د اسم فاعل صيغه ده. او **ضاجين** د هغې جمعه ده. تلبيه او ذکر د الله په اوچت آواز لوستلو ته وايې. (المرقات ۵/۴۹۲)

**فج عميق:** لرې لرې لارو ته وايې. (المرقات ۵/۴۹۲)

**يرهق:** رهق نه د پټيدلو په معنى دی. دلته معصيت مراد دی. مطلب دا چې فلاني سړی او فلانی ښځه او فلاني سړی خو د ګناه ارتکاب کولو. خلک هغوی طرف ته د ګناه نسبت کوي چې دا خلک په ګناه کې شريک وو. نو الله تعالى به وفرمايي چې ما هغه هم وبخښل. (المرقات ۵/۴۹۲)

---

(۱) أخرجه شرح السنة للبغوي ۳۸۲/۳، باب فضل يوم عرفة

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## وقوف په عرفات کې کول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : كَانَ قُرَيْشٌ وَ مَنْ دَانَ دِينَهَا |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې قريش او هغه خلک د قريشو د طريقو پابندي کونکې وو قيام به يې کولو |
| يَقِفُوْنَ بِالْمُزْدَلِفَةِ وَ كَانُوا يُسَمَّوْنَ الْحُمْسَ فَكَانَ سَائِرَ الْعَرَبِ يَقِفُونَ |
| په مزدلفه کې او قريشو ته به حمس يعنې زړه ور خلک ويل کيدل (د قريشو نه بغير) نو ټولو عربو وقوف |
| بِعَرَفَةَ فَلَمَّا جَاءَ الْإِسْلَامُ أَمَرَ اللهُ تَعَالَى نَبِيَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| وکړو ميدانِ عرفات کې خو کله چې اسلام راغلو نو الله تعالى خپل نبي صلى الله عليه وسلم ته حکم وکړو چې |
| أَنْ يَأْتِيَ عَرَفَاتٍ فَيَقِفُ بِهَا ثُمَّ يَفِيضُ مِنْهَا فَذَلِكَ قَوْلُهُ عَزَّ وَ جَلَّ : |
| ميدانِ عرفات ته راشه، هلته وقوف وکړه او بېرته لاړ شه. نو دغه معنى ده د الله تعالى د دې ارشاد : |
| ﴿ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ﴾.[1] |
| ته بيا راشه د هغه ځای نه د کوم ځای نه چې خلک بېرته راځي . |

**توضيح: كان قريش:** قريش د حرم شريف متوليان وو. د هغوی په عام عربو کې په زړورتيا او سخاوت کې نو وو. خو دغه خلکو به هم خپل څه امتيازي عادتونه کول. په هغې کې يو امتيازي عادت دا وو چې هغه خلک به د وقوف لپاره عرفات ته ختل. بلکه د مزدلفې نه لاندې به قيام کولو او ويل به يې چې زړور خلک و. زمونږ شان نور دی. مونږ ته امتيازي مقام حاصل دی. مونږ د حرم شريف کمتران يو چې هغه کله هم د ارض حرم نه بار نه وځي. دا چې مزدلفه په حرم کې ده او عرفات د حرم نه بار دي نو دا خلک به څنګه په مزدلفه کې هيساريدلی. او عام عرب به عرفات باندې پاس ختل. قريش به نورو عربو کې د حمس په نوم يادېدل يعنې زړه ور بهادران. کله چې اسلام راغلو نو هغې انساني مساوات قائم کړل او قريشو ته يې حکم وکړو چې پاس وقوف وکړئ او بيا د عام خلکو سره مزدلفې ته راځئ. د قرآن آيت هم دغه مطلب دی. (المرقات ۵/۴۹۳)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۸۶/۸ رقم الحديث : ۴۵۲۰، ومسلم في صحيحه ۸۹۳/۲ رقم الحديث: ۱۲۱۹/۱۵۱.

## مزدلفه کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دعاء په قبوليت باندې د شيطان خفګان

﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَبَّاسِ بنِ مِرْدَاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعَا لِأُمَّتِهِ عَشِيَّةَ عَرَفَةَ

عباس بن مرداس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعاء وکړه د خپل امت دپاره د عرفې په ماښام

بِالْمَغْفِرَةِ فَأُجِيبَ : إِنِّي قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ مَا خَلَا الْمَظَالِمَ

د بخښنې لپاره چې هغه قبوله شوه. او (الله تعالى وفرمايل) ما ستا امت وبخښلو. بغير د بنده ګانو

فَإِنِّي آخُذُ لِلْمَظْلُومِ مِنْهُ . قَالَ : أَيْ رَبِّ

د حقوقونه چې د ظالمانو نه به د مظلومانو حق اخلم. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عرض وکړو چې اى زما ربه!

إِنْ شِئْتَ أَعْطَيْتَ الْمَظْلُومَ مِنَ الْجَنَّةِ وَ غَفَرْتَ لِلظَّالِمِ

که چيرته ته وغواړې نو مظلوم ته (د هغه حق په بدله کې چې ظالم کړې دې) د جنت نعمتونه ورکړې او

فَلَمْ يُجَبْ عَشِيَّتَهُ فَلَمَّا أَصْبَحَ بِالْمُزْدَلِفَةِ

ظالم هم وبخښې. خو د عرفې په ماښام دا دعا قبوله نه شوه. کله چې مزدلفه کې سحر شو نو نبي کريم

أَعَادَ الدُّعَاءَ فَأُجِيبَ إِلَى مَا سَأَلَ . قَالَ :

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيا دغه دعا وکړه او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ چې کوم شي غوښتې ؤ هغه ورکړې شو. راوي وايي چې

فَضَحِكَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَوْ قَالَ تَبَسَّمَ

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وخندل يا راوي وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مسکې شو. (دې ليدو سره)

فَقَالَ لَهُ أَبُو بَكْرٍ وَ عُمَرُ : بِأَبِي أَنْتَ وَ أُمِّي إِنَّ هٰذِهِ لَسَاعَةٌ

حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: زما مور او پلار په تا قربان شه. دا خو داسې وخت

مَا كُنْتَ تَضْحَكُ فِيهَا فَمَا الَّذِي أَضْحَكَكَ ؟ أَضْحَكَ

دې چې په دې کې به تا نه خندل (يعنې دا وخت خو د خندلو نه دی) نو بيا څه شي وخندلوې؟ ودې خندوي

اللهُ سِنَّكَ ؟ قَالَ : إِنَّ عَدُوَّ اللهِ

تا الله تعالى هميشه (يعنې الله دې تا هميشه خوشحاله وساتي) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل د خداى دښمن

إِبْلِيسَ لَمَّا عَلِمَ أَنَّ اللهَ عَزَّ وَ جَلَّ قَدِ اسْتَجَابَ دُعَائِي وَ غَفَرَ لِأُمَّتِي

ابليس ته چې کله معلومه شوه چې الله تعالى زما دعا قبوله کړه او زما امت يې وبخښلو نو شيطان

| |
|---|
| أَخَذَ التراب فَجعل يحشوه عَلَى رَأْسِهِ وَ يَدْعُو بِالْوَيْلِ وَ الثُّبُورِ فَأَضْحَكَنِي |
| خاوره را واخیسته او په خپل سر یې واچوله او غوبل یې جوړ کړو او په چیغو شو . نو زه وخندولم د |
| مَا رَأَيْتُ مِنْ جَزَعِهِ . وَرَوَى البيهقيُّ فِي كتابِ البَعْثِ والنشور نحوَه[1] |
| شیطان بد حالی او اضطراب. |

**توضیح:** **دعا لامته:** د امت نه مراد د نبي کريم صَلَّى‌اللّٰهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ په حج کې شريک شوې صحابه وو. مطلق امت مراد نه دی. لهذا دا فضيلت فقط هغه صحابوو پورې محدود دې کوم چې په حجة الوداع کې وو.

دویمه توجیه دا ده چې دا غوره والي حاجیانو ته حاصل ده. چې د چا حج قبول شوي وي.

دریمه توجیه دا ده چې د حدیث مفهوم د هغه ظالم باره کې دي چا چې د ظلم نه توبه کړې وي او په ربښتنې الله تع عاجزي کوي. خو د بل د حق ورکولو طاقت نه لري یا خو مجبور دي نو حُکه معذور دی. ملا علي قاری رَحِمَهُ‌اللّٰهُ هم دغه شان کلام کړي دی. (المرقات ۵/۴۹۴)

الله اکبر ما افاض المشعر ۞ و به تزاحمت تستغف



[1] أخرجه ابن ماجه في سننه ۱۰۰۲/۲ رقم الحديث : ۳۰۱۳.

# باب الدفع من عرفة والمزدلفة
## عرفات او د مزدلفې نه بېرته د راتګ بیان
## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ
### د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منی طرف ته بیا راتلل

﴿۱﴾ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ : سُئِلَ أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ

هشام بن عروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل پلار عروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کوي وايي چې تپوس وشو اسامه بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَسِيرُ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ حِينَ دَفَعَ ؟

چې د حجة الوداع په موقع باندې عرفات نه بېرته راتللو کې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مزل څنګه وو؟

قَالَ : كَانَ يَسِيرُ الْعَنَقَ فَإِذَا وَجَدَ فَجْوَةً نَصَّ .[1]

هغه وویل چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام رفتار تېز وُ او چرته به چې کولاؤ لار پیدا شوه نو منډه به یې وهله.

**توضیح:** **العنق:** په تیزه تیزه منډو او تللو ته عنق وايي. (المرقات ۵/۴۹۸)

**فجوة:** تشې او کولاو لارې ته **فجوة** وايي. اصل کې دوه شیانو په مینځ کې خلا ته **فجوه** وايي.

**نص:** په تیزه منډو وهلو ته وايي. (المرقات ۵/۴۹۸)

﴿۲﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ دَفَعَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې نقل دي چې په واپسۍ کې (عرفات نه منی ته) د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره

يَوْمَ عَرَفَةَ فَسَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَرَاءَهُ

وم د عرفې په ورځ (دده بیان دي چې په لاره) کې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ واورېدو د ځان نه وروسته

زَجْرًا شَدِيدًا وَ ضَرْبًا فَأَشَارَ بِسَوْطِهِ إِلَيْهِمْ وَ قَالَ : يَا أَيُّهَا النَّاسُ عَلَيْكُمْ

(په اوچت اواز سره د ځارو د اوازونو او د اوښانو د وهلو) شور او شغب نو وي فرمایل ای خلکو! په

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۵۱۸/۳ رقم الحديث: ۱۶۶۶، ومسلم في صحيحه ۹۳۶/۲ رقم الحديث: ۱۲۸۶/۲۸۳.

بِالسَّكِينَةِ فَإِنَّ الْبِرَّ لَيْسَ بِالْإِيضَاعِ. [1]

قلار او په اطمينان سره تلل ستاسو لپاره ضروري دي. ځکه منډه وهل څه نيکي نه ده.

**توضيح**: **الايضاع**: سرعت، سير او د اوښانو اوازونو ته ايضاع وايي يعنې نيکي د اوښانو په منډه کولو باندې نه ورکړي کېږي بلکه نيکې کرولو او د بدو نه ځان ساتلو باندې نيکي ورکړې کېږي. دلته د دې نفي ده؟ د دې جواب دا دي چې که په منډه کې د خداى مخلوق ته تکليف مشکل وي نو د مکروهاتو نه دي ګڼني **فاستبقوا الخيرات** کې د نيکۍ کولو طرف ته ژر ژر د تللو تلقين کړي شوي دى. نو په دواړو رواياتو کې تضاد نشته دى. (المرقات ۵/۴۹۸)

﴿۳﴾ وَ عَنْهُ أَنَّ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ كَانَ رِدْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مِنْ

ابن عباس رضي الله عنه وايي چې: نبي کريم صلى الله عليه وسلم پسې وروسته سپور ؤ ، اسامه بن زيد رضي الله عنه د

عَرَفَةَ إِلَى الْمُزْدَلِفَةِ ثُمَّ أَرْدَفَ الْفَضْلَ مِنَ الْمُزْدَلِفَةِ إِلَى مِنًى. فَكِلَاهُمَا قَالَ:

عرفات نه مزدلفې پورې بيا نبي عليه السلام د مزدلفې نه منى پورې فضل رضي الله عنه خپل شاته کينولي ؤ.

لَمْ يَزَلِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُلَبِّي حَتَّى رَمَى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ. [2]

ددې دواړو بيان دي چې نبي عليه السلام مسلسل لبيک لوستلو تر دې چې ويشتلو نبي عليه السلام جمره عقبه باندې کاڼې (يعنې د قربانۍ په ورځ جمره عقبه باندې به اول کاڼي ويشتل نو تلبيه يې موقوف کړه).

## په مزدلفه کې جمع بين الصلوتين

﴿۴﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: جَمَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ الْمَغْرِبَ وَ الْعِشَاءَ

ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم په مزدلفه کې د ماښام او د ماسخوتن لمونځونه يو

بِجَمْعٍ كُلَّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا بِإِقَامَةٍ وَ لَمْ يُسَبِّحْ بَيْنَهُمَا

ځاى وکړل (د ماسخوتن سره يې دواړه لمونځونه يو ځاى وکړل) او په هغې کې يې د هريو لپاره تکبير وويل (يعنې د ماښام لپاره جدا تکبير وو او ماسخوتن لپاره جدا وو) او نبي کريم صلى الله عليه وسلم خو نه ددې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳ ۵۲۳ رقم الحديث: ۱۶۷۱.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳ ۵۲۲ رقم الحديث: ۱۶۸۶، ومسلم في صحيحه ۲/ ۹۳۱ رقم الحديث: ۲۶۶/ ۱۲۸۰.

| وَلَا عَلَى إِثْرِ كُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا .[1] |
|---|
| دواړو په مینځ کې نفل کړي وو او نه دي دواړو کې د هر یو وروسته. |

**توضیح:** مزدلفه کې جمع بین الصلوتین د ماښام وخت کې کېږي د ماښام اذان په وروسته کېدلو سره د ماسخوتن په وخت کې لوستلي کېږي چې دې ته جمع تاخیري وایي عرفات کې جمع بین الصلوتین د غرمې وخت کې کېږي. د مازیګر لمونځ نه مخکې لوستل په کار دي. هغې ته جمع تقدیم وایي . (المرقات ۵/۴۹۹)

**بجمع:** دا د مزدلفې نوم دی. **باقامة:** په دې باندې د ټولو اتفاق دي چې مزدلفه کې د ماښام او د ماسخوتن په وخت جمع کولو جائز اومامور هم دي.اختلاف په دې خبره کې دي چې د دواړو لمونځونو لپاره یو به یو اقامت وي یا دوه اقامتونه به وي.دامام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ مذهب خو دادی چې دوه اذانه اودوه اقامته پکار دي د امام بخاري هم همدغه رائي ده امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ،امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ په نز دا دي چې یو اذان او دوه اقامتون سره به لوستلي کېږي. د احنافو نه یو قول داسې منقول دي چې که د دواړو فرضو په مینځ کې د سلام نه بغیر څه مسافه نه وي نو د دویم لمونځ لپاره نه د اذان ضرورت شته او د اقامت ضرورت شته دی. (البنایة ۴/۱۱۵)

**لم یسبح بینهما:** د دې نه نوافل نه کول مراد دي(المرقات ۵/۴۹۹)

## د جمع بین الصلوتین نه جمع صوري مراد ده

| ﴿۵﴾ وَعَنْ عَبْدُ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ : مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى صَلَاةً |
|---|
| عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایي چې ما کله هم نه دي لیدلي چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوم یو لمونځ د |
| إِلَّا لِمِيقَاتِهَا إِلَّا صَلَاتَيْنِ : صَلَاةَ الْمَغْرِبِ وَ الْعِشَاءِ بِجَمْعٍ |
| خپل وخت نه بل کوم یو وخت کې کړي وي بغیر د دوه لمونځونو نه چې هغه د ماښام او ماسخوتن وو. |
| چې هغه په مزدلفه کې شوي وو (یعنې مزدلفه کې یې د ماښام او ماسخوتن لمونځونه وکړل) او په هغه |
| وَ صَلَّى الْفَجْرَ يَوْمَئِذٍ قَبْلَ مِيقَاتِهَا .[2] |
| ورځ (یعنې مزدلفه کې د قربانۍ په ورځ) د سحر لمونځ نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وخت نه مخکې وکړل. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحیحه ۳/۵۲۳ رقم الحدیث :۱۶۷۳.

(۲) أخرجه البخاري في صحیحه ۳/۵۳۰ رقم الحدیث :۱۶۸۲، ومسلم في صحیحه ۲/۹۳۸ رقم الحدیث:۲۹۲/۱۲۸۹.

**توضيح: الاليمقاتها:** حضرت ابن مسعود ﷺ وايي چې نبي کريم ﷺ کله هم هيڅ يو لمونځ د هغې د وخت نه بل يو وخت کې نه وو کړي فقط مزدلفه کې يې د ماسخوتن او مابنام لمونځ د ماسخوتن وخت کې کړې وو. د دينه معلومه شوه چې نبي کريم ﷺ جمع بين الصلوتين باره کې چې کوم حديثونه منقول دي هغه جمع صوري باندې محمول دي. جمع حقيقي فقط مزدلفه او عرفات کې شوې دي او همدغه د ائمه احنافو مسلک هم دی. (المرقات ۵/۵۰۰)

**وصلی الفجر الخ:** يعني د سحر لمونځ هم نبي کريم ﷺ په خپل وخت کې کړي وو خو د اسفار نه مخکې يې وکړل. د دينه معلومه شوه چې نبي کريم ﷺ د سحر لمونځ د وخت نه مخکې کول. فقط مزدلفه کې يې د سحر لمونځ د اسفار په ځای غلس کې وکړل. د دې جملې نه هم د ائمه احنافو تائيد کيږي چې د اسفار في الفجر قائل دي. (المرقات ۵/۵۰۰)

## مزدلفی نه د ښځو او ماشومانو د سحر نه مخکې بوتلل جائز دي

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : أَنَا مِمَّنْ قَدَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې زه وم د هغه خلکو سره چې نبي کريم ﷺ ليږلي وو د مزدلفې په |
| لَيْلَةَ الْمُزْدَلِفَةِ فِي ضعفة أهله.(۱) |
| شپه د اهل وعيال کمزوري خلک |

**توضيح: ضعفة اهله:** يعني نبي کريم ﷺ کمزوري ښځې او ماشومان مزدلفې ته د شپې په وخت کې منی طرف ته روان کړل ځکه د سحر نه وروسته به لارو کې دومره رش جوړ شي چې خلک زخمي شي. په دې حديث باندې نن سبا هم عمل کيږي او عمل کول پرې هم به کار دي خو دا آسانتيا فقط د لارې حد پورې ده. جمره عقبه باندې کاڼي ويشتلو سهولت نشته دې ځکه د لمر د راښتلو نه مخکې رمي جمره جائز نه ده. د احنافو همدغه مسلک دي او په ذکر شوي حديث کې څښنو طريقو کې د جمره عقبه ويشتلو منع شته دی. شوافع او حنابله حضرات وايي چې د نيمي شپه نه وروسته د جمره عقبه ويشتل جائز دي. (المرقات ۵/۵۰۰).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۲۶/۳ رقم الحديث: ۱۶۷۸، ومسلم في صحيحه ۹۴۱/۲ رقم الحديث: ۱۲۹۳/۳۰۱.

## د جمرات ویشتلو لپاره کانړي د کوم ځای نه راواخستل شي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنِ الْفَضْلِ بْنِ عبَّاسٍ وَ كَانَ رَدِيفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| فضل بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي او دا (مزدلفې نه د منی نه د راتللو) وروسته سپور ؤ نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| أَنَّهُ قَالَ فِي عَشِيَّةِ عَرَفَةَ وَ غَدَاةِ |
| پسې دا وايي چې کله د عرفې په ماښام کې (مزدلفې نه د منی نه د راتللو وخت کې) او د مزدلفې په سحر کې |
| جَمْعٍ لِلنَّاسِ حِينَ دَفَعُوا : |
| (مزدلفې نه د منی نه د تللو) خلکو چې خپلې سورلۍ په تیزۍ سره شړل او وهل شروع کړل نو نبي |
| عَلَيْكُمْ بِالسَّكِينَةِ |
| نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوی ته و فرمایل چې په ارام او اطمینان سره تلل ستاسو لپاره غوره دي او |
| وَ هُوَ كَافٌّ نَاقَتَهُ حَتَّى دَخَلَ |
| هغه وخت نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله اوښه ودروله او مخکې تللو تر دې چې کله ورسید و نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| مُحَسِّرًا وَ هُوَ مِنْ مِنًى قَالَ : |
| د محسّر غونډۍ ته چې د منی (سره نزدې د مزدلفې په آخره برښه) کې ده او وي فرمایل چې ستاسو |
| عَلَيْكُمْ بِحَصَى الْخَذْفِ الَّذِي يُرْمَى بِهِ الْجَمْرَةَ |
| (د دې میدان نه) خذف پشان کاڼي او چتول په کار دي چې په جمره (منارو) باندې به ویشتل کېږي. |
| وَ قَالَ : لَمْ يَزَلْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُلَبِّي حَتَّى رَمَى الْجَمْرَةَ.[1] |
| او فضل ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د رمي جمره پورې لبیک لوستلو (یعنې |
| کله چې جمره عقبه باندې یې اولني کاڼي ویشتلو نو لبیک لوستل یې موقوف کړو). |

**توضیح: كاف:** یعنې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله اوښه ودرولې وه. (المرقات ۵/۵۰۱) **محسرا:** محسرا غونډۍ د مزدلفې او منی په مینځ کې داسې پرته ده چې نه ټوله منی ده او ټوله مزدلفه ده. ډیره برښه یې منی سره لګیدلې ده. په همدغه ځای کې په ابرهه باندې عذاب نازل شوي وو. لهذا

---

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۹۳۱/۲ رقم الحديث: ۱۲۸۲/۲۶۸.

دلته او دریدل جائز نه دي. نن سبا ظالمانو او خائنانو معلمینو حاجیانو لپاره په همدغه ځای کې خیمې لګوي.

**حصی:** د حصاة جمع ده کاڼو ته وایي. (المرقات ۵/۵۰۱)

**الخذف:** یعني د مره غټې کاڼي چې په د دوو (۲) ګوتو مینځ کې راشي چې د چڼې د داني نه لږه غټه وي. دا کاڼي د مزدلفې نه خلک راوچتوي. نبي کریم ﷺ او صحابه کرامو رضي الله عنهم هم د همغه ځای نه اوچتول. د لارې نه اوچتول هم جائز دي. خو د جمره عقبه د خوا اوچتول جائز نه دي ځکه چې هغه مردود کاڼي دي. د منی په کراماتو کې دا هم دي چې په هغې غونبه نه خرابیږي. خو دا ده چې هلته تپوس او کارغان نه راځي. او هلته ځای هم کمیږي. هر یو ځای پیدا کیږي. یو کرامت یې دا دي چې په کرورونو کاڼي ویشتلي کیږي خو هلته ډیرې نه جوړیږي. اوس لږ ترکونه اوچتوي خو هغه په ډیر لږ شمیر کې وي. اصل کې چې کوم کاڼي قبول شي نو هغه فرښتې اوچتوي. (المرقات ۵/۵۰۱)

بهر حال دا ضروري نه ده چې کاڼي د مزدلفې نه وچت کړي شي خو دا مزدلفه په لاره کې راځي نو خلک یې د هملته نه وچتوي. پدې کې اسانتیا ده.

| ﴿۸﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : أَفَاضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مِنْ جَمْعٍ |
|---|
| جابر رضي الله عنه وایي چې نبي کریم ﷺ (د منی لپاره) د مزدلفې نه لاړونو د نبي کریم ﷺ |
| وَ عَلَيْهِ السَّكِينَةُ وَ أَمَرَهُمْ بِالسَّكِينَةِ |
| مزل کې سکون او وقار وُ او نبي علیه السلام نورو خلکو ته هم په سکون او وقار سره د تللو حکم کړي وُ خو د |
| وَ أَوْضَعَ فِي وَادِي مُحَسِّرٍ وَ أَمَرَهُمْ أَنْ يَرْمُوا |
| محسر په میدان کې نبي کریم ﷺ د خپلې اوښې مزل تېز کړو او نبي علیه السلام خلکو ته هم حکم |
| بِمِثْلِ حَصَى الْخَذْفِ |
| وکړو چې د خذف کاڼو پشان (یعني د چڼو برابر) اوه (۷) کاڼو سره رَمي وکړئ، همدغه شان نبي علیه السلام |
| وَ قَالَ : لَعَلِّي لَا أَرَاكُمْ بَعْدَ عَامِي هٰذَا. |
| صحابو ته) دا هم وویل چې کیدې شي چې د دې کال نه وروسته مو نږ تاسو ونه وینم (صاحب مشکوة |

| لَمْ أَجِدْ هَذَا الْحَدِيثَ فِي الصَّحِيحَيْنِ إِلَّا فِي جَامِعِ التِّرْمِذِيِّ مَعَ تقديمٍ وَ تَأْخِير.[1] |
|---|
| وايي چې) ماخو دا حديث په بخاري او مسلم کې ونه ليدو خو ما دا حديث د څه تقديم او تاخير سره ذکر کړي |

**توضيح: لم اجد هذا الحديث:** صاحب مشکوة په مصابيح باندې رد کول غواړي چې هغوی دا حديث په اول فصل کې ذکر کړي دی. خو ماته دا حديث په صحيحين کې نه دی موندلی. خو دومره ده چې په ترمذي کې څه مخکې وروسته شته دی.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د عرفات او مزدلفې نه د راتلو په وخت

| ﴿۹﴾ وَعَن محمدِ بنِ قيسِ بن مَخْرمةَ قَالَ: خَطَبَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: إِنَّ |
|---|
| محمد بن قيس بن مخرمه رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم په خطبه کې ارشاد وفرمايل چې د |
| أَهْلَ الْجَاهِلِيَّةِ كَانُوا يَدْفَعُونَ مِنْ عَرَفَةَ حِينَ تَكُونُ الشَّمْسُ |
| جاهليت ورځو کې (يعنې د اسلام نه مخکې) خلک به د عرفات نه هغه وخت راتلل کله به چې لمر د |
| كَأَنَّهَا عَمَائِمُ الرِّجَالِ فِي وُجُوهِهِمْ قَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ |
| ډوبېدو نه مخکې په رڼتلي شوي مخنو باندې د پټکو پشان وو يعنې عرفات نه د لمر ډوبېدو نه مخکې |
| وَ مِنَ الْمُزْدَلِفَةِ بَعْدَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ حِينَ تَكُونُ كَأَنَّهَا عَمَائِمُ الرِّجَالِ فِي وُجُوهِهِمْ. |
| تلل) او مزدلفې نه به د لمر د ابنتلو نه وروسته هغه وخت تلل چې کله به په رڼتلي شوي مخونو باندې پټکي |
| وَ إِنَّا لَا نَدْفَعُ مِنْ عَرَفَةَ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ وَ نَدْفَعُ مِنَ الْمُزْدَلِفَةِ |
| ښکاره کيدل خو مونږ به د عرفات نه تر هغه وخت نه ځو تر څو چې لمر ډوب نشي او نه به روانيدو د مزدلفې |
| قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ هَدْيُنَا مُخَالِفٌ لِهَدْيِ عَبَدَةِ الْأَوْثَانِ وَ الشِّرْكِ.[2] |
| نه مونږ د لمر د راختلو نه مخکې ځکه زمونږ طريقه د بت پرستو او د مشرکينو نه بدله ده. |
| رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شعب الْإِيمَان وَقَالَ فِيهِ: خَطَبَنَا وَسَاقَه بِنَحْوِهِ |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۴۸۲ رقم الحديث: ۱۹۴۴.

(۲) أخرجه الحاكم في المستدرک ۲/۲۷۷.

**توضيح: كانها عمائم الرجال:** د لمر د ډوبېدلو ارخ ته اشاره ده. د پټکي سره يې تشبيه ورکړې ده. ځکه لمر چې کله ډوبېدلو وخت کې مخې ته راځي نو د انسان په مخ لګي او د هغې رڼا ګاني د انسان مخ پرقې. پټکې چې هم کله مخې ته راځې نو هغه هم د لم رڼا ګانو پشان لګې. د دينه معلومه شوه چې د عرب خلکو به د اسلام نه مخکې هم پټکې استعمالول. **والعمائمة التيجان العرب مشهور قول** دی. دلته دا ويلي شوي دي چې په جهالت کې به هم خلکو د لمر د ښکته کېدلو نه مخکې د عرفات نه راکوځيدل او وې ويل چې کله لمر ډوب شي نو هله لاړشي. همدغه شان د مزدلفې نه د وتلو وخت کې د لمر د راختلو نه مخکې او د سحر د راختلو نه وروسته دی. کله چې لږه رڼا خوره شي نو د مزدلفې نه روان شي. خو د جاهليت خلکو به د لمر د راختلو انتظار کولو او د ثبير غر به يې مخاطب کړو او ويل به يې **اطلع ثبير اطلع.** (المرقات ۵/۵۰۳) **ثبير:** ثبير رڼا شا. **هدينا** يعني زمونږ اسلامي طريقه د حج د جاهليت د طريقې نه مخالف ده. (المرقات ۵/۵۰۴)

**رواه:** دلته د مشکوة په نسخه کې بياض دي نورو نسخو کې رواه البيهقي في شعب الايمان دی.

## جمره عقبه به لمر د راختلو نه وروسته ويشتلې کيږي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَدَّمَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لَيْلَةَ الْمُزْدَلِفَةِ |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم مونږ ته د مزدلفې په شپه (يعني د عيد الاضحى) کې |
| أُغَيْلِمَةَ بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ • |
| (منى لپاره) روان کړو او د عبد المطلب خاندان مونږ خو ماشومان وو (چې هغه نبي عليه السلام په شپه کې |
| عَلَى حُمُرَاتٍ |
| روان کړل) او په خر سپاره وو نبي عليه السلام (زمونږ د روانيدو وخت کې د محبت په خاطر) زمونږ په |
| فَجَعَلَ يَلْطَحُ أَفْخَاذَنَا وَ يَقُولُ : أُبَيْنِيَّ لَا تَرْمُوا الْجَمْرَةَ |
| ورانونو لاسونه وهل او فرمايل به يې زما وړو ماشومانو! تاسو مه ولئ جمره (يعني جمره عقبه) |
| حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ .[1] |
| په کانړو باندې تر څو پورې چې لمر راښکاره نه شي. |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۴۷۰ رقم الحديث : ۱۹۴۰

**توضيح**: اغليمة: دا د اغلمة تصغير دى. اغلمه د غلام جمع ده. (المرقات ۵/۵۰۵)

**يلطح**: د فتح يفتح نه ده. د لاس تلي باندې د محبت لپاره وهلو ته لطح وايي. (المرقات ۵/۵۰۵)

**أُبَيْنِيَّ**: د ابن تصغير دي چې ياء متكلم اړخ ته منسوب دي يعنې اى زما ګرانو ماشومانو! (المرقات ۵/۵۰۵)

**حتى تطلع الشمس**: دا حديث د جمهور فقهاوو واضحه دليل دي چې د لمر د راختلو نه مخکې د جمره عقبه ويشتل جائز نه دي. خو د شوافعو په نزد د نيمې شپه نه وروسته رمي کول جائز دي. وقوف مزدلفه د ائمه اربعه په نزد واجب دي. بيا احنافو په نز وقوف دلسم (۱۰) ذوالحجه د سحر د راختلو نه تر د لمر د ډوبېدو پورې دى. د ائمه ثلاثو په نزد د نيمې شپې نه د سحر د راختلو پورې د مزدلفې وقوف وخت دى. د وقوف وخت تر يو (۱) ساعت پورې هم کيدې شي. کله کم هم کيدې شي. د کمزورو د منى طرف ته د مزدلفې شپه کې تلل جائز دي خو دا ده چې د جمهورو په نزد د سحر د راختلو نه مخکې رَمي کول جائز نه دي. د لمر د راختلو نه وروسته کول په کار دي.

د شوافعو په نز د نيمې شپې نه وروسته جائز دي. دا اختلاف فقط جمره عقبه کې دي چې لسم د ذوالحجه کې ويشتل کېږي. (المرقات ۵/۵۰۵)

## د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ مستدل

﴿۱۱﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: أَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِأُمِّ سَلَمَةَ لَيلةَ النَّحْرِ

عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې ليږلي وه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته د غټ اختر په شپه کې،

فَرَمَتِ الْجَمرَةَ قبلَ الْفَجْرِ

(مزدلفې نه منى) ته نو هغې (هلته په رسيدو سره) د سحر نه مخکې جمره عقبه باندې کاڼي وويشتل

ثُمَّ مَضَتْ فَأَفَاضَتْ وَ كَانَ ذَلِكَ الْيَوْمُ الْيَوْمَ الَّذِي

او بيا د هغه ځاى نه (مکې) ته راغله او طواف اضافه (چې فرض دى) وکړو او دا هغه ورځ وه چې په

يَكُونَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عِنْدَهَا.[1]

هغې کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره زه وم يعنې د حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ورځ وه.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۴۸۱ رقم الحديث: ۱۹۴۲

**توضيح**: **ام سلمة**: دا د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ دليل دي چې د سحر د راختلو نه مخکې جمره عقبه ويشتل ناجائز دي اگر که د سپوګمۍ نه وروسته غوره دي. جمهورو دا حديث بغير د عذر او د څه وجې نه حمل کړي دي چې دلته څه خصوصيت وو ګيني حکم عام همغه دي کوم چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ په روايت کې د دې نه مخکې بيان شوي دي چې د لمر د راختلو نه وروسته جمره عقبه رَمي ده. (المرقات ۵/۵۰۶)

## په عمره کې تلبيه کله موقوف کړي شي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَ عَن ابنِ عبَّاسٍ ، قَالَ : يُلَبِّي المقيمُ أَوِ المعتَمِرُ حَتَّى يستلمَ الْحَجَرَ.[1] |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي چې مقيم او عمره کونکي دې د حجر اسود ښکلولو پورې لبيک وايي. |
| رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَقَالَ: وَرُوِيَ مَوْقُوفًا عَلى ابنِ عبَّاس |

**توضيح**: **يلبي المقيم**: د مقيم نه د مکې مکرمې وسيدونکې مراد دې (المرقات ۵/۵۰۷)

او **المعتمر** نه مراد غير مکې سړى دى. اوس پوښتنه دا ده حديث د عرفې او د مزدلفې نه د ېره راتللو څه تعلق دى. په ښکاره خو دا حديث غير متعلق معلوميږي؟

د دې جواب دا دي چې اول د حاجي تلبيه د منقطع کولو مسئله راغلي وه. نو صاحب مشکوة د حاجي نه وروسته د معتمر د تلبيه انقطاع ذکر استطرادًا کړو، **الكلام يجر الكلام**.

د جمهورو په نزد حجر اسود د ښکلولو په وخت يا د هغې چاپېريال ته رسيدلو سره معتمر له تلبيه بس کول پکار دي خو امام مالک رَحِمَهُ اللهُ وايي چې په دخول سره تلبيه بس کول پکار دي. همدغه شان د جمهورو په نز حاجي ته په کار دي چې جمرات ته په رسيدلو سره تلبيه بس کړي خو امام مالک رَحِمَهُ اللهُ وايي چې وقوف عرفه نه وروسته بس کړي. جمهورو سره واضح دلائل شته دي. (المرقات ۵/۵۰۷)

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۵۱۳/۳ رقم الحديث ۱۶۶۲.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ عَنْ يَعْقُوبَ بْنِ عَاصِمِ بْنِ عُرْوَةَ أَنَّهُ سَمِعَ الشَّرِيدَ |
| د يعقوب بن عاصم بن عروه رَحِمَهُ اللهُ (تابعي) نه روايت دي چې هغه شريد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (صحابي) نه اوريدلي |
| يَقُولُ : أَفَضْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَمَا مَسَّتْ قَدَمَاهُ الْأَرْضَ |
| چې زه (د عرفات نه) بېرته راتلو کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره وم نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام قدم مبارک زمکې ته تلل |
| حَتَّى أَتَى جَمْعاً.(۱) |
| تر دې چې مزدلفې ته ورسيدو. |

### د حجاج حج

| |
|---|
| ﴿۱٤﴾ وَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ : أَخْبَرَنِي سَالِمٌ أَنَّ الْحَجَّاجَ بْنَ |
| ابن شهاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځوي سالم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ته وويل چې حجاج بن |
| يُوسُفَ عَامَ نَزَلَ بِابْنِ الزُّبَيْرِ |
| يوسف چې په کوم کال عبد الله ابن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شهيد کړو نو هغه کال ده (مکې ته دراتلو نه وروسته) |
| سَأَلَ عَبْدَ اللهِ : كَيْفَ نَصْنَعُ فِي الْمَوْقِفِ يَوْمَ عَرَفَةَ ؟ |
| عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې مونږه د عرفې په ورځ د وقوف په دوران کې څه وکړو؟ |
| (يعنې په عرفات کې په دغه ورځ د غرمې او مازيګر لمونځ د وقوف نه مخکې وکړو يا د وقوف دوران |
| فَقَالَ سَالِمٌ إِنْ كُنْتَ تُرِيدُ السُّنَّةَ |
| کې او که د وقوف نه وروسته؟) د دې جواب سالم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورکړو چې که ته په سنت باندې عمل کول |
| فَهَجِّرْ بِالصَّلَاةِ يَوْمَ عَرَفَةَ فَقَالَ عَبْدُ اللهِ |
| غواړې نو د عرفې په ورځ (د غرمې او مازيګر لمونځ) وختي وکړه (دې جواب اوريدو سره) وويل عبد الله |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۴۰٦ رقم الحديث ۱۸۱۷.

| |
|---|
| بْنُ عُمَرَ : صَدَقَ إِنَّهُمْ كَانُوا يَجْمَعُونَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَ الْعَصْرِ |
| ابن عمر رضي الله عنه وفرمايل چې سالم صحيح وايي ځکه صحابو يوځاى كولو د غرمي او مازيگر لمونځ |
| فِي السُّنَّةِ فَقُلْتُ لِسَالِمٍ : أَفَعَلَ ذٰلِكَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ؟ |
| د سنت طريقه څرګندولو لپاره. نو سالم ته وويل چې آيا د نبي كريم صلى الله عليه وسلم هم همدغه عمل ؤ؟نو په |
| فَقَالَ سَالِمٌ وَ هَلْ يَتَّبِعُونَ فِي ذٰلِكَ إِلا سنّته ؟ .[1] |
| جواب كې سالم وويل چې صحابو به اتباع نه كوله خو نبي كريم صلى الله عليه وسلم به همدغه كول. |

**توضيح:** **عام نزل بابن الزبير:** ابن زبير نه مراد حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه دى. د حجاج بن يوسف د ظلم داستان څه پټ نه دي. دا سړى ظلم او ناروا يوه نښه وه. يو لاكه څليريش زره (۱۲۴۰۰۰) سړي وتړل او مړه يې كړل. ده ته به خوراك تر هغه وخت پورې خوند نه وركولو چې تر كومې به يې مرګ نه وو كړى. دې ظالم د حضرت عبد الله بن زبير رضي الله عنه خلاف مكه باندې حمله وكړه او حضرت عبد الله بن زبير رضي الله عنه يې شهيد كړو. د هغې نه وروسته عبد الملک بن مروان هغه د حج امير كړو او مكې ته يې روان كړو او حكم يې وركړو چې د حج تولو مسائلو كې د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه نه رهنمائي واخله. نو په هغه سلسله كې حجاج بن يوسف د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه د دې مسئلې پوښتنه كوله. (المرقات ۵/۳۰۴).



---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۱۳/۳ رقم الحديث : ۱۶۶۲.

## باب رمي الجمار

# په جمراتو د کاڼو ويشتلو بيان

قال الله تعالى: ﴿فَمَن تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلَآ إِثْمَ عَلَيْهِ وَمَن تَأَخَّرَ فَلَآ إِثْمَ عَلَيْهِ لِمَنِ اتَّقَىٰ﴾ (سورة بقره آیت: ۲۰۳)

الجمار د جمرة جمع ده په لغت کې جمرة وړو کې کاڼي ته وايي. او که دا لفظ د تَفَعُّل نه شي نو تجمر د راغونډولو په معنی دی. عرب وايي: تجمر بنو فلان. د فلاني قبيلې خلک راغونډ شول. وفي الحديث ان آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ رمي ابليس بشئ فاجمر بين يديه اي اسرع فسمي الجمارية. (طيبي)

استجمار: د دې اطلاق په دريو (۳) شيانو باندې کېږي: ۱: د استنجاء لپاره چې کله سړی د طاق شمار کاڼي يا لوټې استعماله وي. په هغې باندې د استجمار اطلاق کېږي. ۲: په نغري کې چې کله عود اچول کېږي او د هغې نه سړی دهوني اخلي نو هغې ته هم استجمار وايي. ۳: منی کې چې کله سړی هغه ستنو باندې کاڼي ولي چې هغه هلته جوړ شوي وي. نو هغې ته هم استجمار وايي. خو دا حاجيان هم هلته را جمع کېږي او کاڼي هم ولي نو په هغه مناسبت سره دې ته استجمار ويل شوي دي. تاريخ ليکونکي ليکي حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ چې کله حضرت اسماعيل عَلَيْهِ السَّلَامُ د ذبح کولو لپاره منی طرف ته د قربانۍ لپاره راوړو نو ابليس د حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ په زړه کې يوه وسوسه واچوله نو حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ اووه (۷) ځله هغې باندې کاڼي ويشتل. نو هغې نه وروسته ابليس پټ شو او په دويم او دريم مقام باندې حاضر شو نو هلته هم حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه اووه ځله ويشتلو. الله تعالى د حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ دا عمل حاجيانو لپاره يادګار پاتې کړو او س د حاجيانو د شيطان نه د کرکې او د الله سره عقيدت په بنياد کاڼي ويشتلي کېږي. (المرقات ۵/۳۰۶)

مخکې زمانه کې لاندې زمکه باندې دا ستني جوړې شوي وي. وس هم دا په زمکه باندې دي. خو د دې د پاسه اوس غټ پل جوړ شوي دي او په پل کې وس د تنور پشان غټ سوري دي. د هغې د لاندې دا ستنې دي. اوس لاندې په زمکه هم رَمي کېږي خو د پاس نه هم خلک رَمي کوي. کاڼي لاندې په ستنو لګېږي. په دې کې اسانتيا ده. اوس د سعودي حکومت دا خيال دي چې د دې پل د پاسه اوس داسې څو پلونه جوړ کړي چې په رمي کې آساني وي. اکثر خلک په رمي کې مړه شي.

رمي جمرات د جمهورو په نزد واجب دی. په پرېښودلو سره دم لازمېږي. امام مالک ديته سنت موکده وايي. خو به پرېښودلو سره جبر نقصان لازم ګرځوي. نو دا اختلاف لفظي پاتې شو.

جمرات کې یو جمرة العقبه په نوم مشهوره ده. دا حرم اړخ ته پرته ده. چې د مسجد خیف سره ده. د دینه وروسته جمرة الوسطی ده. چې د مزدلفې په مینځ کې پرته ده. دریمه جمرة الاولی ده. دا ده جمرات نه راتللو وخت کې اول په لاره کې راځي. مزدلفې نه راتلونکو حاجیانو مخې ته اول جمرة الاولی راځي. بیا جمره وسطي ده. بیا عقبه او آخیره ده. دیته عقبه ځکه [illegible] دلته تولو نه وروسته ده. په لسم (۱۰) د ذوالحجه فقط دغه جمره عقبه ویشتلي کېږي [illegible] حضرت ابراهیم علیه السلام [illegible] تولو نه اول شیطان دلته ویشتلي وو. ددې نه وروسته یولسم (۱۱)، دولسم (۱۲) او تر دیارلسم (۱۳) پورې درې واړو جمرات کې په همدغه ترتیب سره ویشتل کېږي. چې په کوم ترتیب سره ولاړ دي یعنې د مزدلفې د اړخ نه اول جمره اولی ویشتل کېږي. بیا وسطيٰ او آخر کې عقبه ویشتل کېږي. په دویمه او دریمه ورځ کې لازم دي چې د زوال نه وروسته جمرات ویشتل کېږي. د دینه مخکې معتبر نه دي. خو نن سبا د سعودي عرب علماوو د مجبورۍ په بناء په اجتهادي صورت کې دا فتوی ورکړې ده چې جمرات کې رمي هر وخت جائز ده. دا فتوی ډېره ښه ده. د څلورمې ورځ رَمي اختیاري ده. یعني که کوم سړی په دیارلسم د ذوالحجه د سحر نه مخکې منی نه وځي نو په دیارلسم د ذوالحجه رمي په هغې باندې نشته دی. دا د احنافو مسلک دی. او که د سحر د راتلو نه وروسته مخکې منهي کې پاتې شو نو وس په څلورمه ورځ یعنې دیارلسم د ذوالحجه کې رمي هغې باندې لازم ده. خو دا رمي د لمر راختلو نه وروسته جائز ده. د لمر د زوال پورې انتظار ضروري نه دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### رمي پیاده کول بهتر دی او که په سورلۍ باندې؟

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَرْمِي عَلَى رَاحِلَتِهِ يَوْمَ النَّحْرِ |
| جابر رضی الله عنه وايي چې ما وليدل د نحر (قربانۍ) په ورځ نبي کريم صلی الله علیه وسلم په خپله سپرلۍ ناست ؤ |
| وَ يَقُولُ: لِتَأْخُذُوا مَنَاسِكَكُمْ فَإِنِّي لَا أَدْرِي لَعَلِّي |
| او کاڼي يې ويشتل او فرمايل يې چې زما نه د حج کارونه زده کړئ، ځکه زه نه پوهېږم چې کيدي شي |
| لَا أَحُجُّ بَعْدَ حَجَّتِي هٰذِهِ.[1] |
| چې زه د دې حج نه وروسته بل حج ونه کړي شم. |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۹۴۳/۲ رقم الحديث: ۱۲۹۷/۳۱۰

**توضيح**:على راحلته يوم النحر: د دې حديث نه معلومه شوه چې نبي کريم ﷺ د حمره عقبه رمي لسم د ذوالحجه په ورځ په سپريدلو سره کړې ده. رمي تر څلورو (۴) ورځو پورې وي. په دې د ټولو ائمه اتفاق دې چې څلور ورځې رمي پيدل هم جائز ده او که چاته ضرر نه وي او احتمال وي نو په سپريدلو سره کول هم جائز دي. رمي راکباً او ماشياً په جواز کې د چا اختلاف نشته دې.. خو دومره ده چې د دې په غوره والي کې اختلاف دى. چې غوره کومه يوه طريقه ده. (المرقات ۵/۵۱۰)
**د فقهاؤ اختلاف**: اسحاق بن راهويه او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد رمي مطلقًا ماشياً غوره ده.
دامام مالک په نزد يوم النحر نه وروسته درې واړو ورځو کې رمي ماشياً غوره ده او يوم النحر کې جمرة عقبه پورې که راکباً تللې وي نو راکباً غوره دي او که ماشياً تللې وي نو ماشياً غوره دى.
د شوافعو په نزد تفصيل دا دى چې جمره عقبه پورې که يو النحر کې راکباً رسيدلې وي نو راکباً غوره دى. که ماشياً رسيدلي وي نو مايشاً غوره دى. د دينه وروسته د دوراڼ رمي مشياً غوره دي او د آخري ورځ رمي راکباً غوره دى. د احنافو صاحب هدايه په هدايه کې دا ليکلي دي چې د کومې رمي نه وروسته بله رمي ده نو اوله رمي پيدل کول غوره دي. ځکه په هغې کې وقوف وي او دعا کېږي. او دا پيدل ډېره غوره ده. چې په کوم کې تواضع وي او چې کومې نه وروسته رمي نشته دي لکه جمره عقبه نو هغې کې راکباً غوره دى. په احنافو کې دا د امام ابو يوسف مسلک دي او اکثرو احنافو په دې باندې فتوى ورکړې ده. دا ډيره ښه ده. (المرقات ۵/۵۱۰)
**حکايت** : ابراهيم بن جراح وايي چې زه به مرض الوفات کې امام ابو يوسف پوښتني لاړم نو هغې سترګې پرانيزلېې او مانه يې پوښتنه وکړه چې رمي ماشياً غوره دي او راکباً. نو ما وويل ماشياً غوره دى. (المرقات ۵/۵۱۰)
(فتاوى خانيه کې داسې ليکلي دي) :امام ابو يوسف وفرمايل چې دا يې غلط وويل. ما وويل چې راکباً غوره دى. (المرقات ۵/۵۱۱)
(فتاوى ظهيريه کې داسې ليکلي دي) امام ابو يوسف وفرمايل دا يې هم غلط دى. بيا هغې خپله وفرمايل چې د کومې رمي نه وروسته بله رمي وي. هغه ماشياً غوره دى. او د کومې نه وروسته چې رمي نشته دي نو راکباً غوره دى. ابراهيم وايي چې. زه د هغې د خوانه لاړم نو لا د کور دروازې ته رسيدلي وم چې د هغې د مرګ اواز راغلو. ماته په دغه حالت کې د هغې حرص على العلم باندې دير تعجب وو. (التعليق الصبيح :۳/۲۳۱۲)
بهرحال نن سبا خو رمي جمرات راکباً نا ممکنه ده. نه يې څوک کوي او نه يې کولي شي او نه يې څوک کولو ته پرېږدي. ټوله دنيا څلور ورځې پيدل وي. زيربحث حديث کې نبي کريم ﷺ

جمرهٔ عقبه کې راکباً ويشتلي دي. هغه وخت اسانتيا وه.

## د کاڼو غټوالي او د ويشتلو طريقه

﴿۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَمَى الْجَمْرَةَ بِمِثْلِ حَصَى الْخَذْفِ

جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رمي د جمار کوله په شان د خذف کاڼو (يعني واړه واړه کاڼو سره رمي جمار وکړه).

**توضيح: حصی**: د حصاة جمع ده. کاڼو ته وايي. (المرقات ۵/۵۱۱).

**الخذف**: دا هغه وړوکي کاڼي ته وايي چې د دوه (۲) ګوتو په مينځ کې يې سړ ولي. دا د چنې کاڼي نه لږ غټ وي. ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د لوبيا د داني برابر وي يا د زړي هومره يا وي يا د ګوتې د بند هومره برابر وي. د دينه غټ وي او نه وړوکی. (المرقات ۵/۵۱۱)

د دې حديث نه معلومه شوه چې په وړو کڼي سره استعمالول سنت دي. نن سبا خلک په بوټانو او د غسې نورو ګيانو باندې ويشتل کوي دا غلط دي. يا په غټو کاڼو باندې وي نو دا هم غلط دي په دې سره د چا د سر ماتيدو خطره وي. د کاڼو د ويشتلو آسانه او راجحه طريقه دا ده چې د موټې او د شهادت په ګوته کې کاڼي ونيول شي او دا دعا ووايئ: بسم الله الله اکبر رضي للرحمان وترغيما للشيطان

## د رمي جمار وخت

﴿۳﴾ وَعَنْهُ قَالَ: رَمَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجَمْرَةَ يَوْمَ النَّحْرِ ضُحًى وَأَمَّا بَعْدَ ذٰلِكَ فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ.[۲]

جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رمي د جمره وکړه د قربانۍ په ورځ د څاښت وخت کې (يعني د زوال نه مخکې) او وروسته ورځو کې د غرمې د ختميدو نه وروسته کاڼي ويشتلي.

**توضيح: ضحی**: د څاښت وخت د لمر د راختلو نه تر د لمر د زوال نه لږ مخکې پورې وي. د زوال نه مخکې کاڼي ويشتل فقط د لسم (۱۰) ذوالحجه په ورځ جائز دي. او په نورو ورځو کې جائز نه دي.

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۹۴۴/۲ رقم الحديث ۳۱۲/۱۲۹۹

(۲) اخرجه البخاري في صحيحه ۵۷۹/۳ تعليقا، ومسلم في صحيحه ...

خو که یو سړی دیارلسم (۱۳) د ذوالحجه کې د شپې وخت کې د مکې نه بهرته راغلي نه وو او د سحرراختل په منې کې وشو نو وس په هغې باندې د دیارلسم تاریخ رمي واجب کېږي. خو په دې کې رعایت دا دي چې د زوال نه مخکې رمي کول جائز ده. (المرقات ۵/۵۱۳) تېر کال ۲۰۰۵ کې دسعودي عرب حکومت علماوو د رمي جمرات وختونو باره کې یو اجتهادي حکم د مجبورۍ په وجه وکړو چې کوم سړی هم رمي جمرات کولي شي هغه یې وکړئ اګر که مخکې د زوال نه وي یا وروسته د زوال نه وي او که ورځ یا شپه کې وي. زه وایم چې دا ډېره ښه فیصله ده. کاڼو په ستنو باندې لګیدل ضروري نه دي بلکه پاس په پل باندې چې کوم تندور جوړ شوي دي هغې ته رسیدل ضروري دي. که کوم سړی یو موټې کاڼي ستني سره کېږدي نو د هغې اعتبار نشته دی.

## د رمي جمار په وخت کې تکبیر

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ : أَنَّهُ انْتَهَى إِلَى الْجَمْرَةِ الْكُبْرَى |
| عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې نقل دي چې ده د (رمي لپاره) جمره کبری (یعنې جمره عقبه) ته ورسي |
| فَجَعَلَ الْبَيْتَ عَنْ يَسَارِهِ وَ مِنًى عَنْ يَمِيْنِهِ |
| نو (داسې دې ودرېږي چې) چې هغې خانه کعبه خپل چپ طرف ته کړه او منې یې ښي طرف ته او بیا |
| وَ رَمَى بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ يُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ ثُمَّ قَالَ : هٰكَذَا |
| یې اوه (۷) کاڼي (داسې) ویشتل چې د هر کاڼي ویشتلو سره یې تکبیر وویل. بیا هغه وویل چې دغه |
| رَمَى الَّذِي أُنْزِلَتْ عَلَيْهِ سُوْرَةُ الْبَقَرَةِ .[1] |
| شان هغه شخصیت (نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ) کاڼي ویشتلي دي. چې په چا باندې سورهٔ بقره نازل شوي ده |

**توضیح:** **یکبر:** رمي جمرات په وخت که هر ذکر الله یا الله اکبر وي هغه جائز دی. علماوو جدا جدا الفاظ لیکلي دي. عموماً هغه الفاظ لیکلي شوي دي کوم چې پاس ذکر شول یعنې **بسم الله الله اکبر رضاً للرحمان وترغیماً للشیطان.** د دې حدیث نه اووه کاڼي په یو ستن ویشتل ثابت شول. او نن سبا په همدغه عمل کېږي. په دې حدیث د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ودریدلو د ځای نقشه ښودلي شوي ده یعنې کله چې بیت الله چپ اړخ ته وي او د منې اکثر برښه او مزدلفه ښي اړخ ته وي او جمره

---

[1] ... رقم الحدیث :۱۷۴۹، ومسلم فی صحیحه ۲/۹۴۲ رقم الحدیث: ۳۰۵ ۱۲۹۶

ارخ ته خوله وي هملته نبي کریم ﷺ اودریدلي وو او کاڼي ويشتلي. دا چې د حج مسائل او فضائل تر ډیر حده په سورة بقره کې ذکر شوي نو ځکه حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د سورة بقرې نوم واخستلو ګینې ټول قرآن په نبي کریم ﷺ باندې نازل شوي دی. (المرقات ۵/۵۱۴)

## هره ستن باندې اوه، اوه کاڼي ویشتل واجب دي

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : الإِسْتِجْمَارُ تَوٌّ |
| جابر رضي الله عنه وايي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل استنجاء طاق ده (یعنې د استنجاء لپاره درې لوټي |
| وَ رَمْيُ الْجِمَارِ تَوٌّ وَ السَّعْيُ بَيْنَ الصَّفَا وَ الْمَرْوَةِ تَوٌّ |
| پکار دي) کاڼي ویشتل طاق دي (یعنې اوه کاڼي ویشتل پکار دي) د صفا او مروه مینځ کې سعي طاق |
| وَ الطَّوَافُ تَوٌّ |
| ده (یعنې د دې دواړو مینځ کې اوه ځله ګرځیدل پکار دي) د خانه کعبې نه ګرد طواف طاق دي (یعنې |
| وَ إِذَا اسْتَجْمَرَ أَحَدُكُمْ |
| اوه چکري یو طواف وي) او که په تاسو کوم سړی د اګربتۍ اخستل غواړي نو هغه ته په کار ده چې |
| فَلْيَسْتَجْمِرْ بِتَوٍّ. [1] |
| طاق (یعنې درې یا پنځه یا اووه ځله) واخلي. |

**توضیح: الاستجمار**: اول لیکلي شوي دي چې د استجمار لفظ بېلابېل شیانو له ویل کېږي. نو دغه حدیث کې د هغه شیانو ذکر دي مثلاً د استنجاء لوټو لپاره دغه لفظ دلته راغلي دي او د کاڼو ویشتلو له هم دلته دا لفظ راغلي دی. اګر که دي کې استجمار فقط الحجمار دي خو شي یو دی. همدغه د لوړي اخستلو لپاره د استجمار لفظ راغلي دی. نغري کې چې کله عود واچولي شي او د خوشبو سره لوړي شي او کوم یو سړی دا لوړي د خوشبو لپاره اخلي نو هغې ته هم استجمار وایې.

**تَوٌّ**: تا باندې فتحه ده. او واو باندې شد دی. دا لفظ د طاق او وتر په معنی دی. نو په دي حدیث کې وویلي شو چې داستنجاء لوټي درې استعمالول پکار دي چې طاق دي. رمي جمار طاق دي چې اووه کاڼي دي. د صفا او مروه مینځ کې چکري اووه دي چې طاق دي او د طواف چکري اووه دي

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۹۴۵/۲ رقم الحديث: ۳۱۵ - ۱۳۰۰

چې طاق دي. همدغه شان لوړي اخستل هم طاق دي چې درې ځل وي يا پنځه ځل وي يا اووه ځل وي. د خلكو په مزاج باندې انحصار كوي. (المرقات ۵/۵۱۴)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## په سورلۍ باندې رمي جمار

| |
|---|
| ﴿۶﴾ عَنْ قُدَامَةَ بْنِ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمَّارٍ قَالَ : رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْمِي |
| قدامه بن عبدالله بن عمار رضي الله عنه وايي چې مانبي كريم صلى الله عليه وسلم وليدو چې ويشتل يې په كاڼړو |
| الْجَمْرَةَ يَوْمَ النَّحْرِ عَلَى نَاقَةٍ صَهْبَاءَ لَيْسَ ضَرْبٌ وَلَا طَرْدٌ |
| جمره عقبه د قربانۍ په ورځ خپلې اوښې صهباء باندې سپور ؤ. نه خو هلته وهل ؤ، نه شړل ؤ او نه د |
| وَ لَيْسَ قِيلُ : إِلَيْكَ إِلَيكَ.[1] |
| اخوا شه ديخوا شه اوازونه وو. |

**توضيح: صهبا:** سور او سپين رنګه اوښې ته صهباء وايي.

**ضرب و طرد:** امراء او سلاطينو سورلو نه مخكې مخكې سردار او بنه لاره پاكولو لپاره روان وي او خلک د لارې نه د اخوا كولو لپاره وهي او هغوى شړي. همدغې ته شرب وطرد وايي. دا خلک په ژبو باندې چغې وهي چې ليرې شئ ليرې شئ خاص ميلمانه راځي. لاره پرېږدئ. نبي كريم صلى الله عليه وسلم سره به داسې معامله نه وه. عاجزي به وه او د تواضع يو خائسته نقشه وه. (المرقات ۵/۵۱۵)

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : إِنَّمَا جُعِلَ رَمْيُ الْجِمَارِ |
| عائشه رضي الله عنها د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه نقل كوي چې نبي عليه السلام وفرمايل منارو باندې كاڼي ويشتل |
| وَالسَّعْيُ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ لِإِقَامَةِ ذِكْرِ اللهِ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ[2] |
| او د صفا او مروه په مينځ كې ذكر د الله د قيام لپاره دي. |

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۲۴۷/۳ رقم الحديث ۹۰۳

(۲) اخرجه ابوداود في السنن ۴۴۷/۲ رقم الحديث ۱۸۸۸

## په منی کې د چا لپاره ځای متعین کول جائز نه دي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْهَا قَالَتْ : قُلْنَا : يَا رَسُولَ اللهِ ! أَلَا نَبْنِي لَكَ بِنَاءً |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې مونږ وويل چې يارسول الله! آيا مونږ تاته په مني يو داسې عمارت جوړنه کړو |
| يُظِلُّكَ بِمِنًى ؟ قَالَ : لَا مِنًى مُنَاخُ مَنْ |
| چې هغه ستا لپاره د سيوري ځای شي؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل نا! منی د هغه سړي د اوښ د |
| سَبَقَ . [1] |
| کيناستلو ځای دي څوک چې مخکې (اول) راشي. |

**توضيح:** **منی مناخ:** د اوښ کيناستلو ځای ته وايي. دلته فقط سکونت او قيام مراد دې يعنې منې د کوم سړي لپاره څه خاص مسکن نشته دی. ځکه مني باندې د هغه سړي حق دي څوک چې اول راغلو صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وغوښتل چې د خيمې په ځای يو عمارت جوړ کړي او کور وي چې هلته نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آرام وکړي. نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځکه منع کړل چې بيا لپاره خلک دا دليل جوړ نه کړي او ټوله منی د عمارتونو نه ډکه کړي.

نن سبا منی د حکومت مقرر شوو معلمينو نيولي ده. د کوم غريب لپاره هلته ځای نشته دی. په چاپيريال کې هم ورته د پاتې کېدو اجازت نه ور کوي. حالانکه د مني به کراماتو کې دا کرامت دي چې هلته ځای نه کمېږي.

د معلمينو دا نظام چې حکومت جوړ کړي دی. په دې ازدحام زمانه کې به د څو وجو نه ګټوره وي خو دا د تجارت او د پيسو ګټلو ذريعه جوړه شوي دا. دا جائز نه ده او د دې واضحه حديث خلاف ورزي ده. او د الله تعالی د نبي د سنت يا د څه حکم خلاف کول ډير خطرناک وي.

ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ فتوی داسې نقل کوي وعندابي حنيفه رَحِمَهُ اللهُ ارض الحرم موقوفة فلا يجوز ان يتملكها احد يعنې د حرم زمکه وقف کړي شوي زمکه ده. نو هيڅ يو سړي له جائز نه ده چې دا په خپله قبضه يا ملکيت کې راولي. (المرقات ۵/۵۱۷)

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵۲۱/۲ رقم الحديث ۲۰۱۹

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## په جمراتو باندې وقوف

| |
|---|
| ﴿۹﴾ عَنْ نَافِعٍ قَالَ : إِنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يَقِفُ عِنْدَ الْجَمْرَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ وُقُوفًا طَوِيلًا |
| نافع رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ به اول د دواړو ميناړو سره نزدې ډير وخته پورې حصار وو او |
| يُكَبِّرُ اللّٰهَ وَ يُسَبِّحُهُ وَ يَحْمَدُهُ |
| (هلته) د الله اكبر تسبيح او د الله تحميد كې به مشغول وو. خو دا وه (لاس به يې اوچتولو) چې د |
| وَ يَدْعُو اللّٰهَ وَلَا يَقِفُ عِنْدَ جَمْرَةِ الْعَقَبَةِ .(۱) |
| الله تعالى نه به يې دعا غوښتله او جمره عقبه سره نه حصاريدلو . |

**توضيح**: په دې روايت كې يولسم، دولسم او ديارلسم تاريخ رمي جمرات ترتيب ويلي شوي دى. ګيني لسم د ذوالحجه په ورځ فقط جمره عقبه كې رمي شته دى.

بهر حال جمره اولى نه وروسته دعا لپاره څه وخت اودريدل مسنون دي. بيا وسطى نه وروسته هم مسنون دي خو دومره ده چې د جمره عقبه نه وروسته قيام نشته دى. اګر كه دعا هر مقام باندې وي. تفصيل مخكې تېر شوي دى.



(۱) أخرجه مالک في الموطأ ۱/۴۰۷ رقم الحديث: ۲۱۲ من كتاب الحج.

# باب الهدي

## د هدي بيان

قال الله تعالى ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تُحِلُّواْ شَعَآئِرَ اللهِ وَلاَ الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَلاَ الْهَدْيَ وَلاَ الْقَلآئِدَ﴾ (سورة مائدة آيت:۲)

هدي ياء باندې فتحه ده دال ساکن دی. دا هغه څاروي ته وايي چې د ثواب ګټلو په خاطر حرم شريف کې ذبح کړې کيږي. په دې کې ګډه، ګډه غوا، ميښه او اوښ ټول جائز دي خو په دې څارو کې د صحت لپاره هغه شرائط دي کوم چې قرباني کې شرط دي. د هدي دوه قسمونه دي ۱: واجب.۲: نفل. هدي واجب کې څو قسمونه دي ۱: هديه قِران ۲: هده تمتع ۳: هديه جنايات ۴: هديه احصار بيا د هدي تسميې وجه دا ده چې بنده د خپل رب په در کې د قرباني هديه ليږي. لغت کې هديه د ليږلو په معنی کې هم راځي او د هديه په معنی کې هم راځي. ځينو جناياتو باندې د بدنه کې قربانۍ ضرور وشي. بدنه اوښ او غوا ته ويل کيږي. د دينه بغير عام جناياتو کې د هدي قربانۍ کيږي. هدي ګډه، بيزه او ګډي ته ويل کيږي. تفصيل مخکې راځي. هدي د مکان سره مخصوص دی. د زمان سره قيد نه دي او اضحيه زمان سره مخصوص ده. د مکان څه قيد نشته دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### د اشعار کولو او قلادې اچولو حکم

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د غرمې مونځ وکړو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د حج سفر کې) په ذوالحليفه کې |
| ثُمَّ دَعَا بِنَاقَتِهِ فَأَشْعَرَهَا فِي صَفْحَةِ سَنَامِهَا الْأَيْمَنِ |
| او بيا يې اوښه (چې د قربانۍ لپاره وه) راوغوښته او د هغې د کوب ښۍ طرف يې زخمي کړو او د هغې |
| وَسَلَتَ الدَّمَ عَنْهَا وَ قَلَّدَهَا نَعْلَيْنِ ثُمَّ |
| وينه يې وچه کړه او په غاړه کې يې ورته د دوو بوټانو امېل جوړ کړو او د هغې نه وروسته (د سورلۍ) |
| رَكِبَ رَاحِلَتَهُ فَلَمَّا اسْتَوَتْ بِهِ عَلَى الْبَيْدَاءِ |
| اوښې باندې (چې د هغې نوم قصواء ؤ) سپور شو او په مقام بيداء کې چې کله اوښې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و درولو |

| أهل | بِالْحَجِّ.[1] |
| --- | --- |
| نو نبي كريم ﷺ د حج لپاره لبيك وويل. | |

**توضيح: فأشعرها:** حرم شريف ته د بوتللو والا څاروى د كوف په يو (۱) اړخ كې په نيزه او يا داسې نور څه باندې وهلو سره په وينې سره رنګولو ته نوم اشعار دى. او نن سبا د څاوري په غړې كې د سرمنې ټوټه ترل يا بوټانو او هډوكو امېل (هار) اچولو ته قلاده وايي . د عربو په جاهليت كې دا رواج ؤ په دې سره به څارو كې يو علامت جوړيدلو چې دا د هدې څاروى دى. د عرب ټولو قبيلو به د هغې احترام كولو او د هغې خيال به يې ساتلو او هيڅ قسمه تعارض به يې ورسره نه كولو. اسلام دا طريقه دوامداره وساتله او دالله دطرف نه نذر كړى شوى هدايا حفاظت كول يې دوامداره وساتلو تر دې ځاى پورې خو د چا اختلاف نشته دى. قلاده اچولو كې هم د چا اختلاف نشته دى. خو دومره ده چې په اشعار كې د فقهاو اختلاف شته دى. (المرقات ۵/۵۱۹)

**په اشعار كې د فقهاؤ اختلاف** :د جمهورو صاحبينو په نزد اختلاف سنت دى. خو د ګډو او بېزو سره داسې منع كول په كار دي. ځكه دا څاورى كمزورى دى. اشعار سره د دوى د هلاک كېدلو خطره ده. لهذا دې څاورو باندې فقط قلاده اچول هم كافي ده. د امام ابو حنيفه اړخ ته منسوب ده چې اشعار كول مكروه دي. ځكه دا حيوان ته عذاب دى او مثله هم ده. لهذا تقليد بهتر دى. د دې قول په وجه خلكو امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ باندې طعن او تشنيع شروع كړلو. چې هغې يو مسنونو عمل ته مكروه وويل. امام ترمذى رَحِمَهُ اللهُ د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ د ورو شاګردانو نو خپل كتاب ترمذي كې ذكر كوي خو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ نوم كله هم نه ذكر كوي. فقط د اشعارو په مسئله كې يې د هغې نوم ترمذي كې اخستل د او دير سخت تنقيد يې كړى دى.

**جواب:** امام صاحب باندې چې د اشعار په وجه كوم طعن شوى دى. د هغې جواب يو حنفي كړى دى چې امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ مطلق اشعار ته مكروه نه وايي بلكه د خپلى زمانى خلكو ته يې اشعار ته مكروه ويل دى. ځكه هغه زمانه كې خلک په اشعار كې دومره جذباتى كيدل چې كله كله به د څاروي د هلال كېدلو خطره پيدا شوه. د امام ابو حنيفه د مسلک رازدان امام طحاوى رَحِمَهُ اللهُ وايي چې امام ابو حنيفه مطلق د اشعار نه انكار نه دى كړى بلكه د خپلى زمانى مهلک اشعار يې منع كولو. (المرقات ۵/۵۱۹)

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۹۱۲/۲ رقم الحديث: ۱۲۴۳/۲۰۵.

امام محمد رَحِمَهُ اللّٰهُ خپل کتاب کې د اشعار متعلق د حديثونو او د اشعار منع کولو نه وروسته وايي.

**وبهذا نأخذ التقليد افضل من الاشعار والاشعار حسن.**

په دې عبارت کې امام ابو محمد رَحِمَهُ اللّٰهُ د احنافو اتفاقي مسلک نقل کړی دی. که امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ د اشعارو نه منکر وی نو امام محمد رَحِمَهُ اللّٰهُ به ضرور د هغې ذکر کړی وی ځکه د هغې د عادت او د کتاب طرز همدغه دی چې هغه د مابينو اختلاف ضرور بيان کوي. معلومه شوه چې مطلق اشعار د امام ابو حنيفه جائز لا خو ځه چې بهتره دی. هلته چې کوم خلک طعن کول غواړي نو انکار علاج نه بلکه:

**فعين الرضا عن كل عيب كليلة ۞ ولكن عين السخط تبدى المساويا**

دويم جواب دا چې امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ د تقليد په مقابله کې اشعار ته ترجيح ورکول او هغه بهتر ګڼلو ته مکروه وييل دي ځکه تقليد د ټولو ائموو په نزد اشعار نه غوره دی.

## په بيزو کې قلاده کيږي

| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: أَهْدَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مرةً إِلَى الْبَيْتِ غَنَمًا |
|---|
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو ځل بيزې خانه کعبې ته هدی کړې او د هغې په |
| فَقَلَّدَهَا.[1] |
| غاړه کې يې امېل واچولو. |

**توضيح:** اهدى: د ليږلو او بيت الله طرف ته د هديه او قرباني په معنى دی.

## د بل کس د طرف نه د قرباني مسئله

| ﴿۳﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: ذَبَحَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَائِشَةَ بَقَرَةً يَوْمَ النَّحْرِ.[2] |
|---|
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قرباني په ورځ د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د اړخ نه يوه غوا ذبح کړه |
| ﴿٤﴾ وَ عنهُ قَالَ: نَحَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَنْ نِسَائِهِ |
| د جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذبح کړه د خپلو بي بيانو د طرف نه يوه |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۹۵۸ رقم الحديث: ۱۳۲۱/۳۶۷.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۹۵۶، رقم الحديث ۱۳۱۹.

| بَقَرَةً فِي حَجَّتِهِ.[1] |
|---|
| غوا د حجة الوداع په موقع. |

**توضيح:** عن نسائه: ظاهره دا ده چې نبي کريم ﷺ د ازواج مطهرات د اجازت نه وروسته د هغې له اړخه قرباني کړې ځکه د ښځو سرې قربانۍ لپاره قربامې جائز ده. د ائمه ثلاثه په نز د يوې غوا يا اوښ يا ميښې کې فقط اوه (۷) کسان شريک کېدو سره قرباني کولې شي. ډير يې نه شي کولی. خو امام مالک رحمه الله وايي چې يو کور نه وي نو د ټول کور لپاره يوه قرباني بس دی. په ښکاره خو دا د هغوی دليل دی خو علماء وايي چې دا دليل يقيني نه دی ځکه ممکنه ده چې اووه ازواج مطهرات دا قرباني شوې ده. (المرقات ۵/۵۲۰)

## صرف د هدايا په څاروي ليږلو سره نه محرم کيږي

| ﴿۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: فَتَلْتُ قَلَائِدَ بُدْنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدَيَّ |
|---|
| عائشه رضي الله عنها وايي چې ما د نبي کريم ﷺ د اوښانو لپاره خپلو لاسونو سره يوه پټه جوړه کړه |
| ثُمَّ قَلَّدَهَا وَ أَشْعَرَهَا وَ أَهْدَاهَا |
| او بيا مې هغه دا وښانو په غاړه کې واچولوا و دهغې (کوف) سې زخمې کړوا وهغه د هديې بحيث خانه |
| کعبې ته روان کړو (يعنې کله چې په ۹ هجری کې حج فرض شوا وابوبکر رضي الله عنه يې د حاجيانو امير مقرر |
| کړوا ومکې ته يې روان کړو. نو د هغه د طرفه نبي عليه السلام د هديې په حيث اوښ وليږلو. او دهغې په |
| فَمَا حَرُمَ عَلَيْهِ شَيْءٌ كَانَ أُحِلَّ لَهُ.[2] |
| وجه نبي کريم ﷺ باندی څه داسې شی حرام نه شو کوم چې د هغې لپاره حلال شو. |

**توضيح: فما حرم:** يعنې نبي کريم ﷺ خپله په مدينه منوره کې وو خو هغې د هدايا څاروي بيت الله طرف ته روان کړل. هغې سره هغه محرم نشو ځکه فقط قلاده يا اشعار کولو سره سړی په احرام کې نه داخلېږي تر څو چې د احرام تړلو سره د نيت کولو نه وروسته تلبيه نه وايي. حضرت عائشه رضي الله عنها د دې بيان وروسته حضرت ابن عباس رضي الله عنه باندې رد کول غواړي چې هغه وايي چې که کوم سړی قلاده واچوله او يا يې اشعار وکړو او څاروي يې مکې ته روان کړل خو خپله کور

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۹۵٦ رقم الحديث: ۱۳۱۹/۳۵٦

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۵۴۲ رقم الحديث: ۱٦۹۲، ومسلم في صحيحه ۲/۹۵۹ رقم الحديث: ۱۳۲۱/۳٦۹.

کې وي. نو په هغه باندې هول هغه شيان حرام شي چې کوم په محرم باندې حرام دي. (المرقات ۵/۵۲۰)

**فتلت:** لاس سره رسی. ودلو ته فتل وايي.

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَ عَنْهَا قَالَتْ : فَتَلْتُ قَلَائِدَهَا مِنْ عِهْنٍ كَانَ عِنْدِي ثُمَّ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې ما هغه وړی چې ما سره وه، پتې مې ترينه جوړې کړې او بيا (مې دا پټه د |
| بَعَثَ بِهَا مَعَ أَبِي[1] |
| اوبن په غاړه کې واچوله) اوروان مې کړود اهديې په حيث خپل پلار (ابو بکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) سره |
| (خانه کعبې ته). |

**توضيح:** من عهن: وړی او وجغښې ته عهن وايي. (المرقات ۵/۵۲۱)

## د مجبورۍ او ضرورت په وخت کې د هديې څاروي باندې سورلي کول جائز دي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يَسُوقُ بَدَنَةً |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو سړی وليدو چې اوبن يې شړلو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| فَقَالَ : ارْكَبْهَا . فَقَالَ : إِنَّهَا بَدَنَةٌ. |
| ورته وفرمايل چې په دې اوبن باندې سپور شه هغه وويل چې دا خو هديه ده (يعنې زه په دې څنګه سپور |
| قَالَ : |
| شم؟ هغه دا ګڼل چې په هديې باندې سوريدل په هېڅ حال کې جائز نه دي) نبي عَلَيْهِ السَّلَام ورته بيا وفرمايل |
| ارْكَبْهَا . فَقَالَ : إِنَّهَا بَدَنَةٌ . قَالَ : ارْكَبْهَا |
| چې سپور شه. هغه بيا وويل چې دا هديې ده. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل: چې سپور شه. |
| وَيْلَكَ |
| افسوس په تا باندې (چې زه تا ته د سوريدلو لپاره وايم او ته د خپل طرف نه عذر بهانوي) نبي کريم |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲/۱۷۰، رقم الحديث : ۱۷۰۵.

| فِي الثَّانِيَةِ أَوِ الثَّالِثَةِ.[1] |
|---|
| ﷺ دا خبره دوه يا درې ځل وفرمايله. |

**توضيح:** د هديې سورلۍ سپوريدلو مسئله باندې د علماوو لړشان اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف:** ټول ائمه او فقهاء په دې باندې متفق دي چې د هديې څاروي باندې بغير د ضرورت نه سپوريدل جائز نه دي. خو امام احمد بن حنبل رحمه الله او حضرت اسحاق بن راهويه رحمه الله يو قول دا هم دی، چې بغير له ضرورت نه سپوريدل هم جائز دي او د ضرورت وخت کې بطريق اولی سپوريدل جائز دی. (المرقات ۵/۵۵۲)

**دلائل:** امام احمد بن حنبل رحمه الله او اسحاق راهويه د بحث لاندې حديث نمبر ۷ نه استدلال کړی دی چې نبي کريم ﷺ هغه سړی ته وفرمايل چې غرق نشي سپور شه. جمهور ائمو په دې حديث پسې حديث نمبر ۸ نه استدلال کړی چې په هغې باندې ده هديې څاروی باندې سپوريدلو لپاره يو قيد او شرط شته دی. چې سړی کله په سخته مجبوری کې وي نو د دستور مطابق د هديې څاروي باندې سپوريدل جائز دي. د دينه معلومه شوه چې د ضرورت نه بغير سپوريدل ناجائز دي. (المرقات ۵/۵۲۲)

بهرحال په هدي باندې د سوريدلو په جواز کې چې کوم مطلق روايات دي هغه د مجبورۍ قيد سره مقيد دي.

## د ضرورت او مجبوري په صورت کې په هدي سوريدل جائز دي

| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ |
|---|
| ابوزبير رحمه الله (تابعی) وايي چې ما اوريدلي د جابر بن عبد الله رضي الله عنه چې تپوس يې وکړو په باره |
| سُئِلَ عَنْ رُكُوبِ الْهَدْيِ فَقَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| د سوريدو د هديې څاروي کې، نو ده وويل چې ما د نبي کريم ﷺ نه اوريدلی دي چې فرمايل |
| ارْكَبْهَا بِالْمَعْرُوفِ إِذَا أُلْجِئْتَ إِلَيْهَا |
| يې ترڅو چې تا ته بله سورلۍ پيدا نشي نو ته سپريدلو باندې مجبوريې نو ته هديې باندې (په داسې |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۳۶/۳ رقم الحديث: ۱۲۸۹، ومسلم في صحيحه ۹۶۰/۲ رقم الحديث: ۱۳۲۲/۳۷۱.

| |
|---|
| حَتّٰی تَجِدَ ظَهْرًا .[1] |
| احتیاط سره سپور شه) چې هغې ته څه ضرر ونه رسوي. |

## که د هديې څاروی لاره کې مرګ ته نژدې شي نو سړی څه وکړي؟

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ : بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم ولیږلو یو سړی (چې نوم یې ناجیه اسلمي رضي الله عنه) |
| سِتَّةَ عَشَرَ بَدَنَةً مَعَ رَجُلٍ وَ أَمَّرَهُ فِيهَا . |
| د شپاړس (۱۶) اوښانو سره او هغه سړی یې د اوښانو محافظ جوړ کړو (چې نه صرف اوښان د حفاظت |
| فَقَالَ : يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ |
| ته سره یو سه بلکه مکې ته رسید و سره یې ذبح کړه) هغه سړي وویل چې یا رسول الله! چې په دې کې |
| كَيْفَ أَصْنَعُ بِمَا أُبْدِعَ عَلَيَّ مِنْهَا ؟ |
| کوم (د ستړیا په وجه) نشي تللی (یا د کمزورۍ په وجه مرګ ته نژدې شي) نو څه وکړم؟ نبي عليه السلام |
| قَالَ : انْحَرْهَا ثُمَّ اصْبُغْ نَعْلَيْهَا فِي دَمِهَا |
| ورته وفرمایل چې ته هغه ذبح کړه او بیا دواړه بوټان (چې د امیل پشان په غاړه کې پراته وي) په وینه |
| ثُمَّ اجْعَلْهَا عَلٰى صَفْحَتِهَا وَلَا تَأْكُلْ مِنْهَا أَنْتَ وَلَا أَحَدٌ |
| ککړ کړه او د هغې د کوف په غاړه یې ورته ولګوه او د هغې غوښه ته مه خوره او نه دې یو کس ستا |
| مِنْ أَهْلِ رُفْقَتِكَ .[2] |
| په ملګرو کې د دې نه خوراک کوي. |

**توضیح:** **ابدع علی:** ابداع نه مجهول صیغه ده. چې کومه سورلۍ په ستړي شي او د مزل کولو نه ستومان شي او د کمزورۍ په وجه د مزل نه ستومانه شي. هغه د **ابدع** او **ابداع** په الفاظو سره یادېږي. خو دلته **ابدع** حبس معنی ته متضمن دی. ځکه په صله کې **علی** راوړی شوی دی. خو دا خو

(۱) أخرجه مسلم في صحیحه ۲/۹۶۱ رقم الحدیث: ۱۳۲٤/۳۷۵.

(۲) أخرجه مسلم في صحیحه ۲/۹۶۲ رقم الحدیث: ۱۳۲۵/۳۷۷.

د هدايا اوښان وو نو ځکه دې باندې سپرېدل جائز نه ؤ. لهذا د علی صله راوړل ضروري دی. واضحه دې وې چې په هغې باندې ځوک سپور شوی نه وي ځکه کله چې صله ب کې راځې نو هغه د سپرېدونکی لپاره راځي لکه څنګه چې ابدع بې کې سپرلی باند سپور وو. چې زما د وړلو نه عاجزه ده. (المرقات ۵/۵۲۳)

**اصبغ:** دا د **اصباغ** نه دی. د رنګ کولو په معنی دی. مطلب دا دی چې د دې څاروی په وینه باندې د هغې د غاړې دواړه بوټان رنګ کړه. (المرقات ۵/۵۲۳)

**نعلیها:** د دینه مطلب بوټان دي. چې د هدیې څاروي په غاړه کې مخکې د امبېل لپاره اچولی کېږي. مطلب دا دی چې هغه مرګ ته نږدې څاوری ذبح کړه او د هغې په غاړه کې پراته دواړه بوټان رنګ کړه چې کوم مالداره سړی هغه استعما نه کړي.

**اجعلها:** کې ضمیر مفر د راوړی شوی دی. دا **کل واحدة منها** کې د تاویل په بنیاد دی. (المرقات ۵/۵۲۳)

**علی صفحتها:** مطلب دا دی چې هغه قلاده په وینو سره رنګول او بیا د هغې کوف اړه د هغې نښانه لګول دي چې معلومه شي چې دا د هدیې څاروی دی. چې حرم شریف ته د رسیدلو نه مخکې به ذبح کېږي. د دې غوښه مالدارانو ته خوړل جائز نه ده. (المرقات ۵/۵۲۳)

**لا تاکل منها:** یعنې د هغه هدیې نه یې تاسو مه خوری او نه دې د قافلې کوم یو ملګری خوري اګر که هغه فقیر یا مسکین ولې نه وې. د هدیې غوښه و غوړلو د ممانعت وجه ده دا که چری محافظ او قافلې والا ته د غوښې خوړلو اجازه ور کړی شي نو ممکنه دا چې د هغه غوښه خوړلو او جوړولو لپاره بانه جوړه شي او هغه تندرسته څاروې ذبح کړې. نو ځکه د قافلې والا خلکو له د خوړلو ممانعت دی. وس دلته سوال دا پیدا کېږي چې همدغه شان کولو سره به د څاروو غوښه په صحرا کې ضائع شي. د جواب شارحینو دا ورکړی دی. د خوا او شا فقیرانو خوراک لپاره خوړل شته. که آبادي نه وي نو د لادې مسافرو قافلې به راځې. په هغې کې به غریبانان او فقیران وي نو هغوی به د هدیې خوري خو مالدار به نه خوري. (المرقات ۵/۵۲۳)

**فقهي تفصیل:** د دې حدیث متعلق فقهی تفصیل داسې دی. چې هدیه په دوه قسمه ده :۱: یو هغه هدیه ده چې د حرم زمکې ته رسیدلی ده. د دې حکم دا دی چې هغه هدیه تطوع وي یا هدیه قِران وي یا هدیه تمتع وي نو د هدیې والا هغه خوړلی شي او د هغې ملګرې یې هم خوړلی شي. اګر که هغه

غریب یا مالدار وي. او دا ده که چرې دغه هدیه نذر شوې وي یا جنایت وي نو صاحب هدیه هم هغه نشي خوړلی. او نو مالداره یې هم نشي خوړلی. دا فقط د فقیرانو حق دی.

۲: دویم قسم هدیه هغه دي چې هغه د حرم د زمکې ته د رسیدلو نه مخکې عاجز شي یا کمزوریدلو په وجه ذبح کړی شوی وي. نو د هغې حکم او تفصیل د ائمهوو احنافو په نزد دا ده. که چرې دا واجب وي. نو مالک ته اختیار دی چې په هغې کې کوم تصرف د خپله خوړلو او یا په نورو باندی د خوړلو یا د خرڅولو وي. او که هدیه تطوع او نفلي وي او مالک د دې په بدل د کومې قرباني کولو اراده هم نه وي نو په صورت کې یې هم مالک نه شي خوړلی، نه یې مالداره خوړلی شي او نه په دي قافله شریک غریبانان خوړلی شي. دي سره به هغه معامله کړی شي کومه چې د بحث د لاندې حدیث کې ذکر دا. چې ذبح کولو نه وروسته بوټان په وینه کې ککړولو نه وروسته د هغې د کوف اړخ سره ولګوه چې راتلونکې فقیران یې هم وخوري. د احنافو د ائمهوو د بحث د لاندې د هدیه تطوع په حکم حمل کړی دی. دا حدیث اګر که په دي حکم سره بالکل ساکت دی خو بیهقي په سنن کبرى کې مرفوع حدیث نقل کړی دی. په هغې هغه هدیې سره تطوع او د نفل الفاظ موجود دې. د دې وجې نه احنافو دا فیصله کړی ده. (المرقات ۵/۵۲۴)

**د فرق وجه** :وس په دې کې څه فرق دی چې د واجب هدیه نه یې مالک هم خوړلی شي، مالداره او فقیران یې هم خوړلی شي خو هدیه تطوع نه مالک خوړلی شي، نه مالداره او نه یې فقیران خوړلی شي؟ د دې فرق وجه دا ده چې کله هدیه واجب وي نو د هغې په بدله کې بله هدیه ورکول واجب کېږي. نو ځکه اولنی هدیه د مالک په قبضه کې پاتی شوه. هغې ته اختیار دی چې څه کوي کولی شي خو هدیه تطوع کې د هغې بدل نشته دی. نو ځکه هغه د مالک په ذمه داسې لازمه شوه. ګویا که هغې نذر کړی دی. خو دا ده چې مالک د بدل ورکول لپاره باکل تیار نه وي. لهذا وس دا هدیه په پوره توګه د مالک د اختیار نه بار شوه. ځکه هغه په دې کې څه تصرف نشي کولی. که مالک د دغې نفلي هدیه بدل ورکولو وعده کړي وي نو بیا د دغې هدیه تطوع خوړل هم جائز دي. ګینې فقط د فقیرانو حق دی. په شرط د دې چې د قافلې والا نه وي.

## په اوښ او غوا کې اوه (۷) کسان شریک کیدې شي

| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ : نَحَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ الْبَدَنَةَ عَنْ سَبْعَةٍ |
|---|
| جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایي چې مونږ ذبح کړو د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د حدیبې په کال اوښ داوه کسانو |

| وَ الْبَقَرَةَ عَنْ سَبْعَةٍ.[1] |
|---|
| د طرف نه او د اوه کسانو د طرف نه مو غواګانې ذبح کړې. |

**توضیح**: د ګډو او بېزو په قربانۍ کې سره اتفاقه هم شراکت ناجائز دی. خو د اوښ او غوا کې د اوه کسانو شراکت جائز دی په شرط د دې چې د قربانۍ کولو نیت یې کړی وي. او د قربانۍ او د هدي سره قرابت مقصود وي اګر که قرابت قسم جدا ولې نه وي. مثلاً د یو نیت د قربانۍ دی. د بل نیت د هدی دی. د دریم نیت د عقیقې او د داسې نور څه دی. د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نز د هیڅ څاروي شراکت جائز نه دی. اګر که قرباني وي، که هدیه وي، که اوښ وي او که غوا یا بېزه وي. (المرقات ۵/۵۲۵).

## د اوښ د نحر طریقه

| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّهُ أَتَى عَلَى رَجُلٍ قَدْ أَنَاخَ بِدَنَتَهُ |
|---|
| د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې منقول دي چې هغه یو داسې سړي ته ورسیدو چې خپل اوښ یې کینوله او |
| يَنْحَرُهَا قَالَ: ابْعَثْهَا قِيَامًا مُقَيَّدَةً |
| قرباني یې کوله. ده هغه سړي ته وویل چې اوښ ودروه او د هغې (چپه) ښپه وتړه او (هم دغه شان د |
| سُنَّةَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ.[2] |
| اوښ قرباني وکړه) د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طریقه اختیار کړه. |

**توضیح**: د اوښ سینه کې نیزه یا برچه وهلو ته نحر وایي. د غوا یا بېزې او د داسې نورو څاروو مرۍ غوڅولو ته ذبح کول وایي. د نحر طریقه دا ده چې د هغې چپه ښپه په پړي باندې وتړه او بیا د هغې سینه کې برچه ووهلې شي چې خو وینه راوتلو سره په زمکه راپرځي.

## د هدیې باره کې څه پوښتنې

| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: أَمَرَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَقُومَ عَلَى بُدْنِهِ |
|---|
| حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته حکم وکړو چې زه خبروا خلم د اوښانو د نبي |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۹۵۵/۲ رقم الحديث. ۱۳۱۸،۳۵۰

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۴۶/۳ رقم الحديث :۱۷۱۳، ومسلم في صحيحه ۹۵۶/۲ رقم الحديث: ۱۳۲۰/۳۵۸.

| وَ أَنْ أَتَصَدَّقَ بِلَحْمِهَا وَ جُلُودِهَا وَ أَجِلَّتِهَا وَأَنْ لَا أُعْطِيَ الْجَزَّارَ |
|---|
| عَلَيْهِ السَّلَامُ، د هغې غوښې خيرات کړم او د هغې څرمني او د غاړې پړې هم صدقه کړم او ورنه کړو قصاب ته |
| مِنْهَا قَالَ : نَحْنُ نُعْطِيهِ مِنْ عِنْدِنَا.[1] |
| (د مزدورۍ په بدل) کې هيڅ، همدرانګه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل چې (مزدوري) مونږ د خپل طرفه ورکړو. |

**توضيح: علی بدنه:** د حجة الوداع موقع باندې نبي کريم ﷺ سل اوښان قرباني کړي وو. د دې شپيته (۶۳) نبي کريم ﷺ خپله ذبح کړي وو. نور حضرت علي رضی الله عنه ذبح کړي وو. د دينه د نبي کريم ﷺ لوې سخاوت اندازه کېږي. بيا هر اوښ به اوښ ته ديکه ورکړه او نحر لپاره به نبي کريم ﷺ ته وروړاندې شو. د دينه د نبي کريم ﷺ د محبوبيت اندازه کېږي. بهر حال زير بحث حديث کې د اوښانو نه مراد هغه اوښان دي چې په حجة الوداع کې نبي کريم ﷺ د هديې لپاره مکې مکرمې ته راوستلي وو.

**اجلتها:** دا د جلال جمع ده. جول ترينه مراد دی. (المرقات ۵/۵۲۴).

**الجزار:** د دې نه قصاب مراد دی. مطلب دا چې د هديې متعلق هر شی وي که غوښه وي، که څرمن وي، که پړی وي او که د غاړې پړی وي خو قصاب ته مزدورۍ ورکولو کې جائز نه دي. بلکه د خپل جيب نه هغې مزدوري ورکول پکار دي. دې ته په کتنې سره فقهاؤ ليکلې دي چې د قربانۍ د څاروي شوده راويستل هم جائز نه دي. بلکه د هغې په تئينو باندې دې يخې اوبه واچولی شي او شوده دې ورله اوچت کړی شي يا د راويستلو نه وروسته دې هغه صدقه کړی شي. (المرقات ۵/۵۲۴)

## د دريو (۳) ورځو نه ډيره د قربانۍ غوښه ساتل جائز دي

| ﴿۱۳﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : كُنَّا لَا نَأْكُلُ مِنْ لُحُومِ بُدْنِنَا فَوْقَ ثَلَاثٍ |
|---|
| جابر رضی الله عنه وايي چې (اول) به مونږ د خپلې قربانۍ غوښه د درې ورځو نه ډيره نه خوړه بيا اجازت راکړو |
| فَرَخَّصَ لَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : كُلُوا وَ تَزَوَّدُوا. |
| مونږ ته نبي کريم ﷺ او وې فرمايل چې وې خورئ او د ځان د پاره يې توښه کړئ (د درې ورځو |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۵۶/۳ رقم الحديث: ۱۷۱۶، ومسلم في صحيحه ۹۵۴/۲ رقم الحديث: ۱۳۱۷/۳۴۸.

| فَأَكَلْنَا وَ تَزَوَّدْنَا. (۱) |
| --- |
| نه وروسته هم) نو مونږه ېيا وخوړه او ځان ته مو ترې توښه هم جوړه کړه. |

**توضيح: فرخص:** په ابتداء د اسلام کې د خوراک او څښاک ډېر کموت ؤ ځکه نبي کريم ﷺ حکم کړی ؤ چې د درې ورځو نه ډېر د قرباني غوښې په کور کې مه ساتئ. بلکه پاتې صدقه کوی وروسته د دې اجازت وشو چې کيخودلی يې شي. (المرقات ۵/۵۲۴، الکاشف: ۵/۳۴۴)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د اسلام د ښمنانو ته ضرر رسول مستحب دي

| ﴿۱٤﴾عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْدَى عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فِيْ هَدَايَا رَسُولِ اللهِ |
| --- |
| ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې نبي کريم ﷺ بوتلي وو د حديبې په کال باندې د ښارو د رسول الله |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ جَمَلًا كَانَ لِأَبِيْ جَهْلٍ فِيْ رَأْسِهِ بُرَةٌ مِنْ فِضَّةٍ وَ فِيْ رِوَايَةٍ |
| ﷺ د ښارو سره د ابو جهل اوښ هم چې د هغې په پوزه کې سپينو زرو ميخکی وو. يو روايت کې |
| مِنْ ذَهَبٍ يَغِيظُ بِذَلِكَ الْمُشْرِكِيْنَ. (۲) |
| دې چې هغه ميخکی د سرو زرو ؤ، او په دې سره مقصد مشرکانو ته غصه وروستل وو. |

**توضيح: كان لابي جهل:** يعنې د حديبيه په موقع باندې چې کله نبي کريم ﷺ او صحابه کرام عمرې لپاره تشريف راوړی وو. تر هغه وخت پورې نبي کريم ﷺ په هدايه کې هغه اوښ هم وو کوم چې ۲هجري کې د جنګ بدر په موقع باندې ابو جهل نه مالِ غنيمت اخستلی شوی وو او نبي کريم ﷺ په خپله برښه کې اېښودلی وو. بيا يې د حلالولو لپاره عمرې ته راوستلی وو. چې هغې ته په کتلو سره کفار وسوځې او هغوی ته تکليف ورسي او په هغوي رعب کيني. چې دا د هغوی د سردار اوښ وو. نو معلومه شوه چې کفارو ته ضرر رسول او هغوی سوځول مستحب دي. د تبليغيانو په شان نه چې د کفارو قصيدې وايي او مسلمانانو ته ضرر رسوي. الاماشاء الله. (المرقات ۵/۵۲۸)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۵۷/۳ رقم الحديث: ۱۷۱۹، ومسلم في صحيحه ۵۶۲/۳ رقم الحديث: ۱۹۷۲/۳۰.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۳۶۰/۲ رقم الحديث: ۱۷۴۹.

**في رأسه**: د سر نه مراد پوزه ده. برة: د دې جمع برات دا دی دیته حلقه وایي چې د اوبن پوزه کې وي د چې هغه پرې قابو کړې. هغې ته میخکی وایي. (المرقات ۵/۵۲۸)

**يغيظ**: یعنې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ابو جهل هغه اوبن سره کفار سوزول. ځان سره د راوړلو مقصد همدغه وو. (المرقات ۵/۵۲۹)

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَ عَنْ نَاجِيَةَ الْخُزَاعِيِّ قَالَ : قُلْتُ : يَا رَسُولَ اللهِ ! كَيْفَ أَصْنَعُ بِمَا |
| ناجیه خزاعي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې ما وویل چې یا رسول الله! چې زه څه وکړم د هدیې د هغه څارو سره چې |
| عَطِبَ مِنَ الْبُدْنِ ؟ قَالَ : انْحَرْهَا ثُمَّ اغْمِسْ نَعْلَهَا |
| کوم (د څه وجې) مرګ ته نزدې وي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې ته هغه ذبح کړه او بیا رنګ کړه د دې بوټان |
| فِيْ دَمِهَا |
| (چې د هغې په غاړه کې دامیل لپاره اچولی شوی دی) د هغې په وینه رنګ کړه (او د هغې په ذریعې سره |
| ثُمَّ خَلِّ بَيْنَ النَّاسِ وَ بَيْنَهَا فَيَأْكُلُوْنَهَا . [۱] |
| د هغې په څټ نښان ولګوه) د هغې نه وروسته هغه څاروی د خلکو په مینځ کې پرېږده (یعنې د هغې |
| غوښه د فقراؤ نه مه منع کوه چې هغوی هغه وخوري). |

**توضیح**: ناجیه اسلمی ځینو ځایونو کې ناجیه اسلمی ده، ځینو روایتونو کې ناجیه خزاعی ده دا څه تضاد نه دی نه دوه کسان دي بلکه یو کس دی خزاعی هم دی او اسلمی هم دی. غټ او واړې قبیلو فرق دی. خضراعه غټه قبیله ده. (المرقات ۵/۵۲۹)

## د قربانۍ د ورځې فضیلت او د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ محبوبیت

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ قُرْطٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : إِنَّ أَعْظَمَ الْأَيَّامِ عِنْدَ اللهِ |
| عبد الله بن قرط رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې د الله تعالی په نزد په ټولو ورځو کې |
| يَوْمُ النَّحْرِ ثُمَّ يَوْمُ الْقَرِّ . |
| ډېره غټه ورځ (په غوره والي کې) د قربانۍ ورځ ده (یعنې د ذوالحجه ۱۰ تاریخ). او بیا د قَرّ ورځ. د |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲۵۳/۳ رقم الحديث ۹۱۰

| |
|---|
| قَالَ ثَوْرٌ : وَ هُوَ الْيَوْمُ الثَّانِي . |
| حديث راوي ثور رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې داد (قر ورځ) دويمه ورځ (يعني د ذوالحجم ۱۱ تاريخ) دی عبد الله |
| قَالَ : وَ قُرِّبَ لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بَدَنَاتٌ |
| رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (كله د قرباني په ورځ) نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته نزدي هغه اوښان راوستی شو چې |
| خَمْسٌ أَوْ سِتٌّ فَطَفِقْنَ يَزْدَلِفْنَ إِلَيْهِ |
| پنځه يا شپږ وو نو اوښانو (په يو بل د مخكې والي سره) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خوا ته راتږدې كيدل شروع شو |
| بِأَيَّتِهِنَّ يَبْدَأُ قَالَ : فَلَمَّا وَجَبَتْ جُنُوبُهَا. |
| د دې لپاره چې كوم وغواړي هغه ذبح كړي راوي وايي چې دا څاروي به يو اړخ ته پرې وتل نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| قَالَ فَتَكَلَّمَ بِكَلِمَةٍ خَفِيَّةٍ لَمْ أَفْهَمْهَا فَقُلْتُ : |
| په قلاره څه وفرمايل چې زه پرې پوه نه شوم نو ما (هغه سړي چې ما سره ؤ) پوښتنه وكړه چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| مَا قَالَ ؟ قَالَ : مَنْ شَاءَ اِقْتَطَعَ . [1] |
| څه وفرمايل؟ هغه وويل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل كه كوم سړی غواړي د دی څارونه دي غوښه واخلي |

**توضيح: اعظم الايام**: كتاب الصوم او ابواب عيدين كې دا بحث تيرشوی دی چې آيا عشره ذوالحجه ډيره غوره ده او كه عشره اخيره رمضان ډيره غوره ده. دلته يوه بله وجه ليكم. هغه دا چې عشره ذوالحجه اشهر الحرام په نسبت غوره ده. يعنې د غوره والي تقابل عشره رمضان او عشره ذوالحجه نه ده. بلكه دا تقابل د اشهر الحرام په مينځ كې دی. نو د احترام په دې څلورو (۴) مياشتو كې دا لس (۱۰) ورځې غوره دي. پاتې شو رمضان او د هغې آخرې عشره نو مطلقًا په ټولو مياشتو كې غوره ده. پاتې توجيهات توضيحات جلد دوم ص۹۲۵ باندې عيدين په ابواب كې وګوری. (المرقات :۵/۵۳۰)

**القر**: يولسمې ذوالحجې ورځ ته د قر ورځ ځكه ويل كيږي د مناسكو په ادا كولو كې مشقت چې كله حاجيان برداشت كوي. د هغې نه وروسته هغوی دمه كيږي. قر : د دمې په معنی دی. ملا علی

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۳۶۹ رقم الحديث :۱۷۶۵.

قاري رَحِمَهُ اللهُ قر د دمی نه اخستلی دی. د دې مطلب هم دمه ده. (المرقات: ۵/۵۳۰)

**قال ثور:** ثور د حديث د نقل کونکې راوي نوم دی. (المرقات: ۵/۵۳۰)

**فطفقن:** دا شروع کولو په معنی دی. يعنې اوښان شروع شول چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اړخ د قربانيدو لپاره مخکې راځي. (المرقات: ۵/۵۳۰)

**يزدلفن:** ازدلاف د ازدحام سره مخکې راتللو ته وايي چې د محبوب لاس او ما ښکل کړې او ما ذبح کړې. چا په پښتو کې ويلې دي:

په مرګ به کوم دَله خفه وي ❁ چې زنکدن يې د جانان په غيږ کې وينه

يعنې کوم نالائقه به وي چې په هغه مرګ خفه وي چې مرګ يې د محبوب په غيږ کې راشي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د قربانۍ غوښه جمع کول څنګه دي؟

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَنْ ضَحّٰى مِنْكُمْ |
| سلمه بن اکوع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې تاسو کې کوم يو سړی قرباني وکړي |
| فَلَا يُصْبِحَنَّ بَعْدَ ثَالِثَةٍ وَ فِي بَيْتِهٖ مِنْهُ شَيْءٌ . |
| نو په دريمه ورځ دې داسې حال نه وي چې د هغوی په کور کې د قربانۍ غوښه وي (يعنې د قربانۍ غوښه |
| فَلَمَّا كَانَ الْعَامُ الْمُقْبِلُ قَالُوا : يَا رَسُولَ اللهِ |
| د دريو ورځو نه ډيره مه ساتۍ) بيا چې کله دويم کال راغلو نو څينو صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وويل چې يا رسول الله |
| نَفْعَلُ كَمَا فَعَلْنَا الْعَامَ الْمَاضِيَ ؟ |
| آيا مونږ دې کال هم هم دغه شان وکړو څنګه مو چې تېر کال کړی وُ (يعنې د تير کال پشان دا کال هم د قربانۍ |
| قَالَ : كُلُوا وَ |
| غوښه د درې ورځونه وروسته پاتې نه شي) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل خپله يې هم وخورۍ او په بل يې هم |
| أَطْعِمُوا وَ ادَّخِرُوا فَإِنَّ ذٰلِكَ الْعَامَ كَانَ بِالنَّاسِ جَهْدٌ |
| وخورۍ او جمع يې هم کړۍ اصل کې تېر کال خلک په محنت او مشقت او محتاجۍ کې ګير وو. نو څکه |

| فَأَرَدْتُ | أَنْ | تُعِينُوا | فِيهِمْ.[1] |
|---|---|---|---|

ما (د جمع كولو نه منع كړې) دا غوښتل چې تاسو دهغه ضرورت مندو مدد وكړئ (خو اوس دا هغه شان ضرورت او حاجت نشته دى نو ځكه كه تاسو جمع كول غواړئ تو تاسو ته اجازت شته دى).

**توضيح:** **وادخروا:** مدينه منوره كې يو كال ډير قحط راغلو. هسې هم په ابتداء د اسلام كې ډيره غريبي وه نو نبي كريم ﷺ حكم وكړو چې د درې ورځو نه ډير د قرباني غوښه جمع نه كړې بلكه نورو فقيرانو كې يې تقسيم كړې. صحابوو همدغه شان وكړل.

كله چې دويم كال راغلو او وچ كالي ختمه شوه نو نبي كريم ﷺ د غوښې د جمع كولو اجازت وكړو. فقهاؤ مستحب طريقه همدغه شان وويله چې د قرباني يوه برخه په غريبانانو كې تقسيم كړې، دويمه برخه په خپلو خپلوانو او دوستانو كې تقسيم كړې اگر كه هغه مالداره وي او دريمه حصه په خپل كور جمع كړې. او كه يو سړى د ډير اولاد والا وي نو د تقسيم نه بغير يې هم كور كې جمع كولى شي. خو كله چې سړى په دومره لويې مصرف باندې قرباني كوي نو يقيناً د هغې نيت د ثواب وى. د دې تقاضا دا ده چې هر مالداره سړى په قرباني كولو كې يوه حصه د فقيرانو لپاره خاص كړې او قرباني د زړه د جذبې نه وكړي. داسې نه وي چې د قربانى په ښه ډيره برښه په يخچال كې كېږدي او ټول كال يې خورى. نو بس دا خو د ښاروي قرباني شوه. سړى خو هيڅ ونه كړل.

| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ نُبَيْشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّا كُنَّا |
|---|
| نبيشه رضي الله عنه وايي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل مونږ تاسو دهدې ياد قرباني ښاروباره كې |
| نَهَيْنَا عَنْ لُحُومِهَا أَنْ تَأْكُلُوهَا فَوْقَ ثَلَاثٍ لِكَيْ تَسَعَكُمْ. |
| د دې خبرى نه منع كولى چې تاسو هغه د درې ورځونه ډيرو خورى. او دهغې وجه دا وه چې فراخې وي |
| جَاءَ اللهُ بِالسَّعَةِ |
| (يعني دغه شان به فقيران هم د دغه غوښى نه فائده واخلي). اوس الله تعالى فراخى وبخښله. نو |
| فَكُلُوا وَ ادَّخِرُوا وَ اتَّجِرُوا. |
| ځكه تاسو (چې ترڅو پورې مو زړه غواړي) خورى او جمع كوى خو داده (د دې غوښې د صدقې او |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲٤/۱۰ رقم الحديث: ۵۵۶۹، ومسلم في صحيحه ۱۵۶۳/۳ رقم الحديث: ۱۹۷٤/۳٤.

| أَلَا وَ إِنَّ هٰذِهِ الْأَيَّامَ أَيَّامُ أَكْلٍ |
|---|
| خیرات په ذریعه) ثواب وګټی او یاد وساتی! دا (څلور) ورځې (چې په منی کې تېرېږي) د خوړلو |
| وَ شُرْبٍ وَ ذِكْرِ اللهِ. [1] |
| او څکلو ورځې دي (په دې ورځو کې روژه نیول حرام دي) او د الله تعالی د یادولو ورځې دي. |

**توضیح:** د دې حدیث توضیح او تشریح هم هغه ده کومه چې د دینه مخکې حدیث والا وه. خو دې حدیث کې **وأتجروا** لفظ راغلی دی. دا لفظ د **ائتجار** نه دی چې په معنی د اجر او ثواب دی. علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ وایي چې دا د باب **افتعال** نه دی. مراد ترې نه د حاصلولو د اجر لپاره دی. دا لفظ د تجارت نه ، نه دی ځکه تجارت لپاره **وتجروا** مشدد راځي. دلته شد نشته دی. دویمه خبره دا هم ده چې د قربانی په غوښه کې تجارت کول یا خرڅول ناجائز دي ځکه دا لفظ د **اجر** نه دی د تجارت نه ، نه دی.



(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۲۴۳ رقم الحديث :۲۸۱۳.

# بَابُ الْحَلقِ
## د سر خرئيلو بيان

قال الله تعالیٰ: ﴿وَلَا تَحْلِقُوا رُؤُوسَكُمْ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ﴾ (سورة بقره آيت: ۱۹۷)

وقال الله تعالیٰ: ﴿لَتَدْخُلُنَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ إِن شَاءَ اللَّهُ آمِنِينَ مُحَلِّقِينَ رُؤُوسَكُمْ وَمُقَصِّرِينَ﴾ (سورة فتح آيت: ۲۷).

د نبي کريم صلی الله عليه وسلم نه چرې هم ثابت ندي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم د حج او عمرې نه علاوه سر خريلی وي بلکه نبي کريم صلی الله عليه وسلم هميشه ويختان ساتلي دي. مشهوره همدغه ده. حاجي چې کله د مزدلفې نه په لسم د ذوالحجه منی ته راځي نو هغه ورځ د هغې په ذمه دير احکامات وي. د ټولو نه اول حاجی جمره عقبه باندې کاڼي ولي. د هغې نه وروسته قرباني کوي. که هغه استطاعت متمتع او يا قارن وي، د هغې نه ورسته سر خراوي او د احرام پرانستلو نه وروسته ګنډلی شوی جامې واغوندي. حاجي لپاره دا اول تحليل دی. يعنې ښځې سره د جماع بغير هر څه حلال شي. بيا لاړ شي او طواف زيارت وکړي. دا هغې لپاره دويم تحليل دی. اوس د حاجي لپاره د احرام په ممنوعاتو کې هيڅ يو شی ممنوع نه دی. د سر ويختان خرئيل او واړه کولو ذکر پاس آيت کې راغلی دی دواړه جائز دي. خو صاحب مشکوة فقط د حلق (خرئيل) ذکر کوي او دې طرف ته اشاره کوي چې قصر غوره دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ
### سر خرئيل بهتر دی

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَلَقَ رَأْسَهُ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ وَأُنَاسٌ مِنْ أَصْحَابِهِ |
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم حجة الوداع کې خپل سر و خريلو او صحابو کې ځينو |
| وَ قَصَّرَ بَعْضُهُمْ.(۱) |
| سر و خريلو او ځينو خپل ويختان واړه کړل. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰۹/۸ رقم الحديث: ۴۴۱۱، ومسلم في صحيحه ۹۴۵/۲ رقم الحديث: ۱۳۰۱/۳۱۶.

## د نبي کريم صلی الله علیه وسلم سر خرئيل

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ لِي مُعَاوِيَةُ: إِنِّي قَصَّرْتُ مِنْ رَأْسِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې معاويه رضي الله عنه ماته بيان کړل چې ما واړه کړل ويختان د سر د نبي صلی الله علیه وسلم |
| عِنْدَ الْمَرْوَةِ بِمِشْقَصٍ.[1] |
| د مروة سره نزدې د غشي په څوکه (يعني د غشي په تېرو). |

**توضيح: بمشقص:** اکثر شارحينو مشقص د تېر څوکه او تېره والی ګرځولې دي خو دا خبره به زړه نه لګي. ځېنو حضراتو ويلي دي چې مشقص غټې قينچي ته وايي. دغه خبره صحيح ده. د **مشقص** جمع **مشاقص** ده. پښتو کې ورته کاتې وايي. (المرقات ۵/۵۳۴)

**سوال: قال لی معاويه** رضي الله عنه: دلته يو ګران سوال دی چې حضرت معاويه رضي الله عنه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم ويختان چرته او په کومه موقع باندې واړه کړي دي؟ ځکه که دا صلح حديبېه باندې حمل کړو نو هغه وخت حضرت معاويه رضي الله عنه مسلمان شوی نه وو او که دا قصر په حج باندې حمل کړو نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم په حج کې حلق کړی وو. همدغه شان په دې حديث کې مروه سره ذکر ده. حال دا چې حاجي خلق يا قصر په منی کې کوي. مروه کې نه کوي. نو صلح حديبېه کې قصر مراد نشي اخستلې کېدلی او په حج کې مراد اخستل کېدلی شي. نو د حديث څه مطلب دی؟

**جواب:** د دې جواب ځېنو شارحينو دا ورکړی دی چې دا واقعه د عمره جعرانه ده. چې د مکې د فتح نه وروسته شوی وه. دا د حضرت معاويه رضي الله عنه نه سهوه شوې ده. او څه لرې نده چې د زمانو په تېريدلو په وجه حضرت معاويه رضي الله عنه نه هېر شوي وي او د جعرانه په ځای د حديبېه نو اخستلی وي.

**دويم جواب:** دا چې ممکنه ده چې دا د حديبېه واقعه وي او حضرت معاويه رضي الله عنه مسلمان شوی وو خو د خپل اسلام د راوړلو اعلان يې پټ ساتلی وو او د هغې اظهار يې د مکې د فتحې په موقع کړی وي. بهرحال که کوم حاجي قصر کول غواړي نو هغې له پکار ده چې د ګوتې د بند برابر د ټول سر ويختان واړه کړي. فقط په يو دوه ځاينو کې واړه کول بس نه دي. همدغه شان که حلق کول وي نو د ټول سر حلق به ضروري دی. فقط د يو څلورمې برخې حلق کول او نور د بلې موقع لپاره پرېښودل

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۶۱/۳ رقم الحديث: ۱۷۳۰، ومسلم في صحيحه ۹۱۳/۲ رقم الحديث: ۱۲۴۶/۲۰۹.

جائز نه دي ځکه دا د قزع په حکم کې دی او قزع منع ده. (المرقات ۵/۵۰۶)

## د سر خرئیلو والو لپاره د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعاء

﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ: اللّٰهُمَّ ارْحَمِ

ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حجة الوداع په موقع وفرمايل چې ای الله! رحم وکړي

الْمُحَلِّقِينَ . قَالُوْا : وَ الْمُقَصِّرِينَ يَا رَسُولَ اللهِ ؟

په سر خرونکو باندې. صحابو وويل چې يا رسول الله! د ويختانو واړه کونکو لپاره د رحمت دعاء وکړه.

قَالَ : اللّٰهُمَّ ارْحَمِ الْمُحَلِّقِينَ . قَالُوْا :

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: ای الله! سر خرونکو باندې رحم وکړې. صحابو (چې بيا) وويل چې

وَ الْمُقَصِّرِينَ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ قَالَ :

يا رسول الله! د ويختانو واړه کونکو ته د رحمت دعا وکړه. نو نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمايل چې يا الله!

وَ الْمُقَصِّرِينَ.[1]

د ويختانو واړه کولو والا باندې هم رحم وکړې.

**توضيح:** د دينه معلومه شوه چې د سر خرئېل غوره دي. قصر غوره نه دی. قرآن کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې هم حلق اول ذکر شوی دی

﴿٤﴾ وَ عَنْ يَحْيَى بْنِ الْحُصَيْنِ عَنْ جَدَّتِهِ أَنَّهَا

يحيى ابن حصين رَحِمَهُ اللهُ (تابعي) د خپلې نيا نه (چې د هغې کنيت امّ الحصين دی) نقل کوي چې دوي

سَمِعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ دَعَا لِلْمُحَلِّقِينَ ثَلَاثًا

اوريدلي دي د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه په حجة الوداع کې د سر خرئېلو والا لپاره درې ځله دعاء کول

وَ لِلْمُقَصِّرِينَ مَرَّةً وَاحِدَةً.[2]

او د ويختانو واړه کولو لپاره (آخر کې) يو ځل دعا کول.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۶۱/۳ رقم الحديث: ۱۷۲۷، ومسلم في صحيحه ۹۴۵/۲ رقم الحديث: ۱۳۰۱/۳۱۷.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۹۴۶/۲ رقم الحديث: ۱۳۰۳/۳۲۱.

**توضیح**: ځینو روایتو کې د حلق والو لپاره نبي کریم ﷺ له طرف نه دوه ځل د رحمت دعا ذکر شوی دی. لکه په اول روایت کې چې دي. ځینو روایاتو کې درې ځله ذکر شوی دی. څنګه چې زیر بحث روایت کې دی. ځینو روایاتو کې څلور ځله ذکر شته دی. په دې روایاتو کې څه نشته دی. په بېلا بېلو موقعو او بېلا بېلو مجلسونو کې نبي کریم ﷺ بېلا بېل محلقینو لپاره د رحمت دعا کړی ده. ځینو مجلسونو کې دوه ځله، ځینو کې درې او ځینو کې څلور ځله دعا کړی ده. (المرقات ۵/۵۳۶)

## نبي کریم ﷺ د ښي طرف نه حلق وکړو او په صحابو یې تقسیم کړل

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مِنًى فَأَتَى الْجَمْرَةَ |
| انس رضي الله عنه وایي چې نبي کریم ﷺ منی ته د راتلو نه وروسته جمره عقبه ته تشریف راوړلو |
| فَرَمَاهَا ثُمَّ أَتَى مَنْزِلَهُ بِمِنًى وَ نَحَرَ نُسُكَهُ |
| او هلته یې کاڼي ویشتل. بیا منی کې خپلې قیام ګاه ته راغلو او خپل د هدیې ځاروي یې ذبح کړل. |
| ثُمَّ دَعَا بِالْحَلَّاقِ وَ نَاوَلَ الْحَالِقَ شِقَّهُ الْأَيْمَنَ |
| د هغې نه وروسته یې سر خروونکی (معمر ابن عبدالله) راوغوښتو او د خپل سر ښۍ برخه یې د هغې |
| ثُمَّ دَعَا |
| مخې ته کړه. نو ده د نبي کریم ﷺ د سر (هغه ښۍ برښه) وخرېیله. بیا راوغوښتو نبي علیه السلام |
| أَبَا طَلْحَةَ الْأَنْصَارِيَّ فَأَعْطَاهُ إِيَّاهُ |
| ابو طلحه انصاري رضي الله عنه راوغوښتلو او هغې ته یې هغه د خرېیل شوي سر ویښتان ورکړل. د هغې نه |
| ثُمَّ نَاوَلَ الشِّقَّ الْأَيْسَرَ فَقَالَ احْلِقْ |
| وروسته نبي علیه السلام د خپل سر چپه برخه سرخروونکي طرف ته کړه او وې فرمایل چې دا هم وخروه. نو |
| فَحَلَقَهُ فَأَعْطَاهُ طَلْحَةَ فَقَالَ : |
| هغې وخرېیلو. دا ویښتان هم نبي علیه الصلاة والسلام ابو طلحه انصاري رضي الله عنه ته ورکړل او وې فرمایل |

| اقْسِمْهُ بَيْنَ النَّاسِ[1] |
|---|
| چې دا ويختان خلکو کې تقسيم کړه. |

**توضيح: شقه الايمن:** د دينه معلومه شوه چې حاجې د خپل سر هغه ويختان واړه کړي چې هغه ښۍ اړخ ته دي. او د دې حديث نه دا هم معلومه شوه چې د تبرک لپاره نبي کريم ﷺ د خپل سر مبارک ويختان صحابه کرامو رضي الله عنهم کې تقسيم کړل. نبي کريم ﷺ د هغې پوره اهتمام وکړو او حکم يې وکړو چې اقسمه بين الناس. په خلکو کې دا تقسيم کړه. د دينه تبرک باثار الصالحين ثابتيږي. چې د دې اړخ ته ملاعلي قاري رحمه الله بار بار اشاره وايي چې کاش نن سبا څه نجدي حضرات دي حديث ته اهميت ورکړي او نجدي سره څه وجدي هم شي. (المرقات ۵/۵۳۸)

## د احرام نه مخکې او د حلق نه وروسته د خوشبو استعمال جائز دي

| ﴿۶﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كُنْتُ أُطَيِّبُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَبْلَ أَنْ يُحْرِمَ |
|---|
| عائشه رضي الله عنها وايي چې ما به نبي کريم ﷺ ته د احرام تړلو نه مخکې خوشبو لګوله (احرام که |
| وَ يَوْمَ النَّحْرِ قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ بِالْبَيْتِ |
| به د حج ؤ او که د عمرې او که د دواړو وو) او د نحر (قرباني) په ورځ هم مخکې د طواف د بيت الله نه |
| بِطِيبٍ فِيهِ مِسْكٌ.[2] |
| مخکې نبي کريم ﷺ ته خوشبو لګوله او هغه خوشبو به هم د مشک وه. |

**توضيح:** د احرام نه مخکې د خوشبو استعمالول د سر ويختانو او کپړو کې جائز دي خو په بدن به داسې عطر لګول ندي پکار چې هغه د احرام نه وروسته په بدن باندې پاتې شي. او د حلق نه وروسته هر قسم خوشبو استعمال جائز دی. لکه څنګه چې د دې حديث نه ثابت دی.

## د نحر په ورځ نبي کريم ﷺ د غرمې لمونځ چرته وکړو؟

| ﴿۷﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَفَاضَ يَوْمَ النَّحْرِ ثُمَّ رَجَعَ |
|---|
| ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې نبي کريم ﷺ د نحر په ورځ (د رمي او قرباني نه وروسته) مکې ته راغلو |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۹۴۸ رقم الحديث: ۳۲۶/۱۳۰۵.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۳۹۶ رقم الحديث: ۱۵۳۹، ومسلم في صحيحه ۲/۸۴۹ رقم الحديث: ۴۶/۱۱۹۱.

| فَصَلَّى الظُّهْرَ |
|---|
| او ځابنت وخت کې يې طواف فرض وکړو بيا همدغه ورځ باندې ددغه ځای نه راغلو او دغرمې لمونځ |
| بِمِنًى. (۱) |
| يې منی کې وکړو. |

**توضيح: بمنى:** يعنې نبي کريم ﷺ د نحر په ورځ د غرمې لمونځ منی کې وکړو. پوښتنه دا ده چې حضرت جابر رضي الله عنه په روايت کې چې کومه د حجة الوداع قصه ذکر ده. په هغې تصريح شته دی. چې نبي کريم ﷺ د نحر په ورځ مکی کې لمونځ وکړو او حضرت ابن عمر رضي الله عنه په دې حديث کې ذکر دې چې په منی کې وکړو. دا تضاد دی. د دې جواب دا دی چې **في الحقيقه** نبي کريم ﷺ **يوم النحر** کې د غرمې لمونځ په مکه کې کړی وو. لکه څنګه چې د حضرت جابر رضي الله عنه په روايت کې دي. او په منی کې نبي کريم ﷺ فقط نفل کړي وو. حضرت ابن عمر ﷺ د نفل فرض ګڼلې دي او د غرمې لمونځ يې ذکر کړی دی. (۵/۵۳۹)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د ښځې لپاره سر خرئيل منع دي

| ﴿۸﴾ عَنْ عَلِيٍّ وَعَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَا : نَهَى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ |
|---|
| حضرت علي رضي الله عنه او عائشه رضي الله عنها دواړه وايي چې : منع کړې ده رسول الله ﷺ ددې نه |
| تَحْلِقَ الْمَرْأَةُ رَأْسَهَا. (۲) |
| چې ښځې وخرئي خپل سرونه. |

**توضيح:** حج او عمره کې هم د ښځو لپاره سر خرئيل حرام دي او د دينه بغير هم حرام دي. ښځو لپاره د سر ويختان ساتل واجب دي څنګه چې د سرو لپاره ږيره ساتل واجب دي.

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۹۵۰ رقم الحديث: ۱۳۰۸/۳۳۵.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۲۷۵ رقم الحديث : ۹۱۴

## ښځې دې صرف قصر وکړئ

﴿۹﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَيْسَ عَلَى النِّسَاءِ

ابن عباس رضي الله عنه راوي دی وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل نه دي ضروري د ښځو لپاره د

الْحَلْقُ إِنَّمَا عَلَى النِّسَاءِ التَّقْصِيرُ .[1]



سر خرئیل. فقط هغوی خپل ویختان واړه کول په کار دي.

**توضیح:** د ښځو د قصر طریقه دا ده چې هغه خپله یا د محرم په ذریعې سره ټول ویختان په متې کې ونیسي او بند په اندازه یې غوڅ کړي. دا خبره یاد ساتل په کار دي چې مروه سره ځینې ماشومان قینچې سره ولاړ وي او د خلکو په سرونو کې یو ټک لګوي او وایي چې دا قصر دی دا غلطه ده. دا قصر کافي نه دی د دې نه ځان وساتی. که د شوافعو په نزد جائز وي نو هغوی لره جائز ده. خو د احنافو فتوی دا نه ده.(المرقات ۵/۵۴۰).

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

(۱) أخرجه أبوداود ۱۵۰/۲، رقم الحدیث : ۱۹۸۶، الدارمي ۵٤/۲، رقم الحدیث : ۱۹۵۷.

# باب متعلقات الحج

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

### د حج په افعالو کې د تقدیم او تاخیر مسئله

﴿۱﴾ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ: أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَفَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ

عبد الله ابن عمرو بن العاص رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم او دريدو د حجة الوداع په موقع

بِمِنًى لِلنَّاسِ يَسْأَلُونَهُ فَجَاءَهُ رَجُلٌ

په منی کې چې خلک د نبي عليه السلام نه مسائل معلوم کړي نو يو سړی نبي عليه السلام ته راغلو او وې ويل

فَقَالَ: لَمْ أَشْعُرْ فَحَلَقْتُ قَبْلَ أَنْ أَذْبَحَ. فَقَالَ:

چې د ناخبرۍ په وجه ما ذبح کولو نه مخکې خپل سر خرئيلی دی؟ نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل اوس

اذْبَحْ وَلَا حَرَجَ فَجَاءَ آخَرُ فَقَالَ: لَمْ أَشْعُرْ فَنَحَرْتُ قَبْلَ

ذبح وکړه، په دې کې څه باک نشته دی بيا يو بل سړی وويل چې ما د ناخبرۍ په وجه ذبح وکړه مخکې

أَنْ أَرْمِيَ. فَقَالَ: ارْمِ وَلَا حَرَجَ.

د کانو ويشتلو نه نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې اوس ذبح وکړه، په دې کې څه باک نشته دی.

فَمَا سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ شَيْءٍ قُدِّمَ وَلَا أُخِّرَ

همدغه شان د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه چې د کوم يو کار باره کې د تقديم او تاخير پوښتنه وکړی شوه.

إِلَّا قَالَ: افْعَلْ وَلَا حَرَجَ.

نبي کريم صلى الله عليه وسلم همدغه وفرمايل چې اوس يې وکړه په دې کې څه باک نشته دی.

وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: أَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ: حَلَقْتُ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ. قَالَ: ارْمِ وَلَا حَرَجَ وَأَتَاهُ آخَرُ فَقَالَ: أَفَضْتُ إِلَى الْبَيْتِ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ. قَالَ: ارْمِ وَلَا حَرَجَ[1]

**توضيح:** **اذبح ولا حرج:** په يوم النحر کې څلور غټ کارونه پوره کول وي: ۱: اول کار دا چې جمره

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۶۹/۲ رقم الحديث: ۱۷۳۶، ومسلم في صحيحه ۹۴۸/۲ رقم الحديث: ۱۳۰۶/۳۲۷.

عقبه باندې کاڼي ويشتل. ۲: دويم کار دا چې قرباني وکړی شي. ۳: دريم کار دا چې حاجې حلق وکړي. ۴: څلورم کار دا چې حاجې طوافِ زيارت وکړي.اوس دا کارونه په ترتيب سره کول ضروري دي. او يا که د تقديم او تاخير څه ګنجائش شته دی. په دې کې فقهاو و اختلاف دی.

**د فقهاو اختلاف**: امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او اکثر علماء وايي چې په دې کارونو کې ترتيب ساتل سنت دي. د دې مطلب دا شو چې که چا د دې لحاظ ونه ساتلو نو په هغې به دم نه راځي. د دې په خلاف امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او د علماؤ د يوی طبقې رائې دا ده. چې په دې کارونو کې ترتيب ساتل واجب دي. لهٰذا که چا تقديم او يا تاخير وکړو نو په هغې دم راځي.(المرقات ۵/۵۴۲)

**دلائل**:د شوافعو او د حنابلو دليل د بحث لاندې حديث دی. چې افعل ولا حرج. مالکيه او حنابله د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د فتوی نه استدلال کړی دی. چې هغه مصنف ابن ابي شيبه نقل کړی دی. قال ابن عباس من تقدم شيئا من حجة او اخر فليرق لذالك دما يعنې چا چې د خپل حج به کارونو کې تقديم او تاخير وکړو. نو هغه دې دم وکړي. د قرآن آيت کې د وجوب ترتيب ته اشاره کوي. د الله تعالى ارشاد دی: ولا تحلقوا رووسکم حتى يبلغ الهدى محله. (سورة البقرة آيات:۱۹۶)

**جواب**: د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حديث په دې روايت کې چې څه فرمايلي دي چې افعل ولاحرج: نو د دې حرج نه مراد د اخرت د ګناه حرج دی. چې کله د نزول احکام په وخت کې يو سړی په ناخبرۍ کې په يو حکم کې غلطي وکړي نو د هغې ګناه نشته دی. ځکه چې هغه پوهه نه دی: هو! د احکامو د نزول او استحکام نه وروسته ناپوهتيا عذر نه دی. نو د ګناه حرج نشته، مطلب دا نه دی چې د دنيا جرم هم معاف شو. د دنيا سزا خو به خوري. چې د دم په صورت کې ده. او د حضرت عبد الله ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فتوی هم د غه شان معلومه شوه. لاحرج سره د دم نفي نده، د اخرت د سزا نفي ده. نن سبا د سعودي خلک او عام عرب افعل ولا حرج باندې عمل کولو سره نااشنا کارونه کوي او حال دا ده چې د احکامو ترتيب د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عمل دی. او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله فرمايلي دي چې ماته وګورۍ او زما نه احکام واخلئ. په کتلو سره عمل وکړئ نو د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هيڅ عمل بغير د ترتيب نه نه وو. خلفاء راشدين او فقهاء صحابوو عمل په ترتيب وو. د بې ترتيبۍ سوال حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه وو کړی بلکې يو راتلونکی، يو نوی مسلمان او د مسئلو نه نا اشنا سړی کړی وو. هغه مسافر هم وو، فقير به هم وو. د اسلام اولنی حج وو. پدې کې په دې سړی د دم جرمانه لګول يو قسم حرج وو. نو ځکه نبي کريم

ﷺ د دې بې ترتيبې د وخت په مجبورۍ سره معاف کړو. دا بې ترتيبي د امت لپاره ضابطه نه ده. بلکې د امت لپاره ضابطه خو مرتب حج دی. چې قرآن د هغې ترغيب په سختۍ سره کوي. که په حج کې ترغيب ختم شي نو عجيبه منظر به وي. شپيته لاکه (۶۰۰۰۰۰۰) حاجيانو کې به څوک طواف زيارت عمل عرفات ته د تللو نه مخکې کوي، څوک به عرفات ته تللو وخت کې رمی جمار کوي، څوک به د مزدلفې عمل کوي، نو څوک به د تللو وخت کې مکه کې سر خراوي. همدغه شان د حج يو اجتماعی عمل چې په هغې قول او فعل او حرکات او سکنات بلکې د جامو هئيت کې شريعت يو شان والي او د موافقت درس ورکړی دی. هغه د انتشار ښکار شي. بهر حال حضرت اقدس حضرت مولانا بنوری رحمه الله بخار خودلو وخت کې وفرمايل که د مشکلاتو او حالاتو په نظر که علماء احناف د جمهورو په قول باندې فتوی ور کړی نو د خلکو لپاره به ډير سهولت شي او تکليف به ختم شي. زه د حضرت اقدس د دې قول احترام کوم خو پاس ما اصلي حقيقت واضحه کړی دی. (المرقات ۵/۵۴۲)

## - کانړي دور ځې ويشتل په کار دي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُسْأَلُ يَوْمَ النَّحْرِ بِمِنًى |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې د قربانۍ په ورځ خلکو تپوسونه کول منی کې د نبي کريم ﷺ نه |
| فَيَقُوْلُ : لَا حَرَجَ |
| (د تقديم او تاخير باره کې) او نبي کريم ﷺ به همدغه جواب ورکولو چې څه باک نشته دی. |
| فَسَأَلَهُ رَجُلٌ فَقَالَ : رَمَيْتُ بَعْدَ مَا أَمْسَيْتُ . فَقَالَ : |
| يو سړي د نبي عليه السلام نه پوښتنه وکړه چې ما د ماښام کېدو نه وروسته کاڼي ويشتي دي؟ نبي عليه السلام |
| لَا حَرَجَ. [1] |
| وفرمايل چې څه باک نشته دی. |

**توضيح:** **بعد ما امسيت:** د ذوالحجې په لسم تاريخ کې رمی جمره عقبه کې که کوم سړی دومره تاخير وکړو چې شپه راشي نو د جمهورو په نز په دغه سړي به دم واجب شي. د امام ابو حنيفه رحمه الله په نز داسې ترتيب دی چې د لمر د راختلو نه تر لمر پروتلو پورې د جمره عقبه کاڼي ويشتل مسنون

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۵۵۹ رقم الحديث :۱۷۳۵

او غوره وخت دی. د لمر د زوال نه تر سپوږمۍ د ډوبېدو وخت جواز شته دی. د سپوږمۍ د ډوبېدو نه وروسته د شپې وخت کې جمره عقبه کې کاڼي ویشتل مکروه دي. داسې کول نه دي پکار. خو که چا داسې وکړل نو په هغې به دم نه رازي. دا اختلاف فقط جمره عقبه کې د کاڼو ویشتلو کې دی. پاتې ورځو کې رمی نشته دی. زیر بحث حدیث کې لاحرج ته د هغه سړي به عذر باندې حمل کوي. چې د هغې څه مجبوري نه وي. نن سبا ۲۰۰۵ کې د سعودي علماء باک او مجبوري په وجه اجتهاد کړی او دا فیصله یې اوروله دا چې جمرات کې رمی کې د ورځ او شپې څه قید نشته دی. او د زوال نه مخکې هم ټول جمرات کې د رمی اجازت دی. د حضراتو خپل اعلان کې د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ د اقوالو بېلا بېلې حوالې هم ورکړې دي. زما په خیال دا فیصله ډېره ښه ده. چې په ښه وختونو کې رمی وشي. (المرقات ۵/۵۴۳)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

| |
|---|
| ﴿۳﴾ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ : أَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ : يَا رَسُوْلَ اللهِ |
| حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې یو سړی نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلو او وې ویل چې یا رسول الله |
| إِنِّي أَفَضْتُ قَبْلَ أَنْ أَحْلِقَ |
| ما طواف اضافه یعنې فرض طواف د سر خرېلو نه مخکې کړی دی؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل: اوس |
| فَقَالَ : احْلِقْ أَوْ قَصِّرْ وَلَا حَرَجَ . وَ جَاءَ آخَرُ فَقَالَ : |
| سرو خروه او یا ویختان واړه کړه په دې کې څه ګناه نشته دی. همدغه شان یو بل سړی راغلو او وې ویل: |
| ذَبَحْتُ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ قَالَ : ارْمِ |
| ما د کاڼو ویشتلو نه مخکې څاروي ذبح کړي دي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل: اوس کاڼي وولـه په دې |
| وَلَا حَرَجَ .[1] |
| کې څه باک نشته دی؟ |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۲۵۸ رقم الحديث :۹۱٦

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| ﴿٤﴾عَنْ أُسامةَ بْنِ شرِيكٍ قَالَ : خَرَجْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ حَاجًّا |
| اسامه بن شریک رضي الله عنه وايي چې ما ته د نبي کريم صلى الله عليه وسلم سره يو ځای د حج کولو سعادت حاصل |
| فَكَانَ النَّاسُ يَأْتُونَهُ فَمِنْ |
| شونو (د حج دوران کې) چې کوم خلک (مسائل پو ښتنو لپاره) د نبي عليه السلام په خدمت کې راتلل هغوی |
| قَائِلٍ : يَا رَسُولَ اللهِ سَعَيْتُ قَبْلَ أَنْ أَطُوفَ أَوْ أَخَّرْتُ شَيْئًا أَوْ قَدَّمْتُ شَيْئًا |
| کې به چا ويل چې يا رسول الله! ما د طواف کعبه مخکې سعی کړې ده؟ يا (افعال منی نه) مې دا کار مخکې |
| فَكَانَ يَقُولُ : لَا حَرَجَ إِلَّا عَلَى رَجُلٍ |
| کړی يا مو دا کار وروسته کړی؟ نبي عليه السلام به فرمايل چې پدې ګناه نشته دی بلکې ګناه په هغه سړی |
| اقْتَرَضَ عِرْضَ مُسْلِمٍ وَ هُوَ ظَالِمٌ فَذَلِكَ الَّذِي حَرِجَ وَ هَلَكَ.[1] |
| ده چې هغه د ظالم کېد په وجه د مسلمان بې عزتي وکړي پس دغه سړی دی چې ګناهګار او هلاک شو. |

**توضيح: اقترض**: د غوڅولو په معنی دی يعنې کوم سړی چې د مسلمان بې عزتې وکړه او د هغه تحقير او توهين يې وکړو او په هغې يې ظلم وکړو. په هغې کې باک او ګناه ده. (المرقات ۵/۵۴۴)

**نوټ**: الحمد لله تر دې ځای پورې د بحثونو تحرير په مکه مکرمه کې په ۱۴۲۵ رمضان کې وشو.

فضل محمد غفرله

نزيل مكة المكرمه



(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۲/۵۱۷ رقم الحديث :۲۰۱۵

# باب خطبة یوم النحر ورمی ایام التشریق والتودیع

## د غټ اختر خطبه، رمی جمرات، طواف او داع بیان

قال الله تعالی: ﴿فَمَن تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ وَمَن تَأَخَّرَ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ لِمَنِ اتَّقَىٰ﴾ (سورة البقره آیت: ۲۰۳)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### د قربانۍ په ورځ خطبه

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي بَكْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : خَطَبَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ النَّحْرِ |
| ابي بکرة رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم د قربانۍ په ورځ مونږ ته خطبه راکړه او وي فرمايل |
| قَالَ : إِنَّ الزَّمَانَ قَدِ اسْتَدَارَ كَهَيْئَتِهِ يَوْمَ خَلَقَ اللهُ السَّمَاوَاتِ وَ الْأَرْضَ |
| خلکو! د خپل هغه وضع موافق چې په هغه ورځ وو کومه ورځ چې الله تعالی زمکه او آسمان پيدا کړې |
| السَّنَةُ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا مِنْهَا أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ |
| وو (يعني کال د خپل وضع مطابق دولس مياشتې پوره شوي) چې په هغې کې څلور مياشتې د حرمت دي |
| ثَلَاثٌ مُتَوَالِيَاتٌ ذُو الْقَعْدَةِ وَ ذُو الْحِجَّةِ وَ الْمُحَرَّمُ وَ رَجَبُ مُضَرَ الَّذِي بَيْنَ جُمَادَى |
| درې مسلسل دي يعني ذی قعده، ذی الحجه، محرم او (څلورمه) مُضر رجب چې په مينځ د جمادی الثاني |
| وَ شَعْبَانَ وَ قَالَ اَیُّ شَهْرٍ هٰذَا ؟ قُلْنَا اللهُ وَ رَسُولُهُ أَعْلَمُ |
| او شعبان کې دے بيا نبي علیه السلام وفرمايل دا کومه مياشت ده؟ مونږ وويل: الله او رسول يې ښه پوهيږي |
| فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ بِغَيْرِ اسْمِهِ |
| نبي علیه السلام چپ شو مونږ ګمان وکړو چې نبي علیه السلام به دې مياشتې ته څه بل نوم اردي خو نبي علیه السلام |
| فَقَالَ أَلَيْسَ ذَا الْحِجَّةِ ؟ قُلْنَا بَلٰى قَالَ أَيُّ بَلَدٍ هٰذَا ؟ |
| وفرمايل: آيا دا ذالحجه نه ده مونږ وويل بېشکه ده. بيا نبي علیه السلام وفرمايل. دا کوم ښار دی؟ مونږ |
| قُلْنَا : اللهُ وَ رَسُولُهُ أَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا أَنَّهُ |
| وويل، الله او د هغه رسول ښه پوهيږی؟ بيا نبي علیه السلام غلی شو تر دې چې مونږ ګمان وکړو چې نبي |

سَيُسَمِّيهِ بِغَيْرِ اسْمِهِ قَالَ : أَلَيْسَ الْبَلْدَةَ ؟

عَلَيْهِ السَّلَام به دې ښار ته څه بل نوم ږدي خو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې آيا دا بلده (دمكې يونوم دى) نه ده؟

قُلْنَا بَلَى قَالَ فَأَيُّ يَوْمٍ هَذَا ؟ قُلْنَا اللهُ وَ رَسُولُهُ

مونږ وويل بېشكه بلده ده بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل دا كومه ورځ ده؟ مونږ وويل چې الله اورسول يې

أَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ بِغَيْرِ اسْمِهِ.

ښه پوهېږي. نبي عَلَيْهِ السَّلَام بيا چپ شو تر دې چې مونږ وويل نبي عَلَيْهِ السَّلَام به دې ورځې بل نوم ږدي.

قَالَ : أَلَيْسَ يَوْمَ النَّحْرِ ؟ قُلْنَا : بَلَى.

خو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې آيا دا يوم نحر (د قربانۍ ورځ) نه ده؟ مونږ وويل چې بېشكه يوم نحر ده.

قَالَ : فَإِنَّ دِمَاءَكُمْ وَ أَمْوَالَكُمْ وَ أَعْرَاضَكُمْ

ددې نه وروسته نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل (ياد وساتئ!) ستاسو وينه، ستاسو مال او ستاسو عزتونه

عَلَيْكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هٰذَا فِي بَلَدِكُمْ هٰذَا

تاسو باندې (هميشه لپاره) داسې حرام دي لكه څنګه چې ستاسو په دې ورځ، ستاسو په دې ښار او

فِي شَهْرِكُمْ هٰذَا وَ سَتَلْقَوْنَ رَبَّكُمْ

ستاسو په دې مياشت كې. او (اى خلكو!) تاسو به ډېر ژر د خپل رب سره مخامخ شئ هغه ستاسو نه

فَيَسْأَلُكُمْ عَنْ أَعْمَالِكُمْ أَلَا فَلَا تَرْجِعُوا بَعْدِي ضُلَّالًا

ستاسو د اعمالو باره كې پوښتنه كوي. خبردار! زما نه وروسته تاسو د ګمراهۍ اړخ ته مه ځئ چې

يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ أَلَا هَلْ بَلَّغْتُ ؟ قَالُوا :

تاسو ديو بل څټونه ووهئ. خبردار! آيا ما (د الله احكامات د ررسول) خپل فرض پوره كړو؟ مونږ وويل

نَعَمْ . قَالَ : اللّٰهُمَّ اشْهَدْ فَلْيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ

بېشكه! نبي عَلَيْهِ السَّلَام خپل فرض پوره كړو. بيا (نبي عَلَيْهِ السَّلَام مونږ ته وفرمايل) چې كوم خلك دلته دي،

الْغَائِبَ فَرُبَّ مُبَلَّغٍ

دا هغوى ته ورسوى، كوم چې دلته نشته دي. ځكه ځينې هغه خلك چې هغوى ته خبره ورسول شي

| أَوْعَى | مِنْ | سَامِعٍ.[1] |
|---|---|---|
| هغه خبره د اوريدلو والا ډېره ياده ساتي. | | |

**توضيح: يوم النحر:** يعني په لسم د ذوالحجه د اختر په ورځ نبي كريم صلى الله عليه وسلم منى كې صحابه كرامو رضي الله عنهم ته خطبه فرمايلې وه، اوس په هغې بحث وشو. چې د حج په ورځو كې څومره خطبې دي او په كومو كومو ورځو كې دي. نو د احنافو په كتابونو كې ليكلي شوي دي چې د حج په ورځو كې يوه خطبه په اووم (۷) د ذوالحجه ده. چې منى ت د تللو مسائل بيان شي. بله خطبه د ذوالحجه په نهم تاريخ ده. چې د وقوف عرفه او مزدلفه احكامات بيان شي. او دريمه خطبه د ذوالحجه په يو لسم تاريخ ده. چې په هغې كې د رمى جمرات مسائل بيانېږي. د شوافعو حضراتو په نز لسم د ذوالحجه كې د يوم النحر خطبه هم مسنون او مستحب ده. او د زير بحث حديث نه استدلال كوي. احناف د دې رواياتو نه استدلال كوي. چې په هغې كې په يولسم د ذوالحجه د خطبې ذكر دى. د بحث د لاندې حديث كې چې د لسم د ذوالحجه كومې خطبې ذكر دى. احناف هغه خطبې ته خطبة الحج په ځاى خطبه وعظ او نصيحت ويل دى. (المرقات ۵/۵۴۵)

**قد استدار:** يعني زمانه به تاويدلو راتاويدل سره نهج باندې را ورسيدله چې په كومه ورځ الله تعالى د دې نظام پيدا كولو وخت كې مقرر كړى وو. لهٰذا كال دولس (۱۲) مياشتې وي او په هغې كې څلو مياشتې د احترام والا دي. درې (۳) پرله پسې دي چې هغه ذقعده، ذوالحجه او محرم دي او څلورمه بله ده چې رجب المرجب ده. نبي كريم صلى الله عليه وسلم دا بيان ځكه وكړو چې په جاهليت كې عربو د كال او مياشتو كې ډير ردو بدل كړى وو. هغوى به چې كله هم غوښتل، نو كال به يې د دولسو مياشتو په ځاى ديارس (۱۳) يا څوارلس (۱۴) مياشتې كړل او د ذوالحجه مياشت به يې مخكې وروسته كوله. كله به يې په محرم كې تغير كولو او كله به يې په صفر كې تغير كولو. او په دې به يې فخر كولو. نو ځكه د جاهليت يو شاعر به وايي: (المرقات ۵/۵۴۶)

و نحن الناسئون على معد ❁ شهور الحل نجعلها حراما

قرآن كريم كې الله تعالى دا طبقه د نسى نوم سره ياده كړې ده او ګمراه يې ورته ويل دي. په دغه طبقه كې يو شاعر د خپل سردار لويې بيانوي او وايي:

لهم ناسى يمشون تحت لوائه ❁ يحل اذا شاء الشهور و يحرم

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۵۷۳/۳ رقم الحديث: ۱۷۴۱، ومسلم في صحيحه ۱۳۰۷/۳ رقم الحديث. ۱۶۷۹/۳۱.

نبي کريم ﷺ چې په کوم کال حج کړی وو. هغه وخت زمانه خپل اصلي وخت ته راغلي وه. او د عربو نه پاکېدلو شو او ذوالحجه پ همغه وخت راغلي وه چې په کوم وخت هغې له راتلل پکار وو. ځکه نبي کريم ﷺ وفرمايل چې زمانه خپل زوړ حالت ته راغلي ده. دا ياد وساتئ او حج په همدغه مياشت کې کوئ. د جاهليت د خلکو پشان دي کې بدلون مه کوئ.

**اربعة حرم:** د احترام په څلورو مياشتو کې په ابتداء د اسلام کې کفارو سره جهاد کول منع وو. بيا دا حکم منسوخ شو او په دې مياشتو کې کفارو سره جهاد کول جائز شو. خو دومره دا چې په دې مياشتو کې ګناهونه او ظلم کول وس هم حرام دی. څنګه چې په نورو ورځو کې حرام دی. د قبيله مضر خلکو به د رجب دير احترام کولو. ځکه دا مياشت هغوی ارخ ته ډېره منسوب ده. حديث کې د همدغې نسبت ذکر دی. (المرقات ۵/۵۴۶)

**ای شهر:** هذا نبي کريم ﷺ بيا بيا د صحابو نه داسې پوښتنه کړی ده. چې د هغې د پوښتنې ضرورت نه وو. خو دا د تعليم ورکولو ښه طريقه ده. چې هر سړی يې په غور سره واوري او معلومه کړي چې حقيقت څه دی. بيا د صحابو ادب وګورئ چې د يو خبرې جواب به يې هم نه ورکولو. د دې لپاره چې نبي کريم ﷺ خپل تعين او تشريح ووايي. نبي کريم ﷺ باندې د احکاماتو تبليغ واجب وو. ځکه چې نبي کريم ﷺ د هغې حق پوره کړو نو اللهم اشهد اعلان يې وکړو چې ذمه واري ساقط شو. (المرقات ۵/۵۴۶)

## په يولسم (۱۱) او دولسم (۱۲) تاريخ د رمي وخت

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ وَبَرَةَ قَالَ : سَأَلْتُ ابْنَ عُمَرَ : |
| وَبرة رَحِمَهُ اللهُ (تابعي) وايي چې ما د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې زه (يولسم او دولسم د ذی |
| مَتَى أَرْمِي الْجِمَارَ ؟ قَالَ : إِذَا رَمَى إِمَامُكَ |
| الحجې باندې) رمي جمار څه وخت وکړم؟ نو دوي ووېل چې کوم وخت ستاسو امام يې وکړي نو هغه |
| فَارْمِهِ |
| وخت تاسو هم رمي وکړئ (يعني په رمی کې د هغه سړی پيروي وکړئ چې هغه د رمی د وخت باره کې |
| فَأَعَدْتُ عَلَيْهِ الْمَسْأَلَةَ . |
| ډېر پوهېږي) ما د هغه مخې ته دا مسئله بيا کېخوده (ما د رمی د وخت د دوي نه نور معلومات غوښتل) |

| فَقَالَ : كُنَّا نَتَحَيَّنُ فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ رَمَيْنَا.[1] |
|---|
| نو دوي وويل چې مونږ به د رمي د وخت انتظار كولو چې غرمه په ډوبېدو شوه نو مونږ به كاڼي ويشتل. |

**توضيح: امامك:** د دينه امير الموسم يعني امير الحج مراد دى. او بيا د هر سړي رهبر هغه دى چې هغه د رمي صحيح وختونه پيژني. (المرقات ۵/۵۴۷)

**نتحين:** يعني مونږ د رمي د وخت انتظار كولو. بهر حال رمي جمرات كې دا ترتيب دى چې لسم د ذوالحجه كې فقط د يو جمره عقبه ده. مسجد خيف سره نزدې چې كومه جمره ده. دا جمره عقبه ده. مزدلفه نه راتلو وخت كې دا جمره د ټولو نه آخر كې راځي. لسم تاريخ باندې فقط هغه په كاڼو ويشتل واجب دي. او د سحر تر ماښام پورې د هغې رمي جائز ده. او بيا په يولسم او دولسم د ذوالحجه كې د درې واړو جمراتو رمي واجب ده. خو مخكې د زوال نه جائز نه ده. بلكې د زوال نه وروسته د دې وخت شروع كېږي. د شپې هم د مجبورۍ په وجه جائز دى. د ديارلسم (۱۳) ذوالحجه رمي كه څوك كول نه غواړي نو هغه له پكار ده چې د دولسم (۱۲) ذوالحجه سپوږمۍ د ډوبېدو او د سحر د راختلو نه مخكې مخكې منى نه وځي. كه هغې وخت هلته تېر كړو نو وس د ديارلسم د ذوالحجه رمي هم لازم شوه. خو دومره دا چې رمي د زوال نه مخكې مخكې هم جائز ده. (المرقات ۵/۵۴۷)

## د رمي جمرات ټول ترتيب

| ﴿۳﴾ وَ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ : أَنَّهُ كَانَ يَرْمِي جَمْرَةَ الدُّنْيَا |
|---|
| سالم رَحِمَهُ اللهُ د عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت كوي چې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به ويشته ده ته نزدې جمره |
| بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ يُكَبِّرُ عَلَى إِثْرِ كُلِّ حَصَاةٍ ثُمَّ يَتَقَدَّمُ حَتَّى |
| (يعني جمره اولى) په اوو كاڼو سره ، او هر كاڼي نه وروسته يې الله اكبر ويل بيا به مخكې لاړو تردې |
| يُسْهِلَ فَيَقُومُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ طَوِيلًا |
| چې نرمې زمكې ته ورسيدو نو تر ډير وخت پورې (يعني بقدر تلاوت سورة بقره) به قبلې ته مخ كړې |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۵۷۹ رقم الحديث : ۱۷۴۶.

| |
|---|
| وَ يَدْعُو وَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ ثُمَّ يَرْمِي الْوُسْطٰى بِسَبْعِ |
| ولاړ ؤ او دعا به يې غوښته او خپل دواړه لاسونه به يې اوچتول. بيا به يې په جمره وسطى باندې اوه |
| حَصَيَاتٍ يُكَبِّرُ كُلَّمَا رَمٰى بِحَصَاةٍ ثُمَّ يَأْخُذُ بِذَاتِ الشِّمَالِ فَيُسْهِلُ وَيَقُومُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ |
| كاڼي ويشتل هر كاڼي سره به يې الله اكبر ويل دواړه لاسونه به يې اوچتول او اودريد و قبلې ته مخامخ |
| ثُمَّ يَدْعُو وَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ وَ يَقُومُ طَوِيلًا ثُمَّ يَرْمِي جَمْرَةَ |
| بيا به يې دعاء وغوښته او خپل دواړه لاسونه به يې اوچتول، او اودريدو لږ ډير بيا يې وويشتل جمره |
| ذَاتِ الْعَقَبَةِ مِنْ بَطْنِ الْوَادِي بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ يُكَبِّرُ عِنْدَ كُلِّ حَصَاةٍ وَلَا يَقِفُ عِنْدَهَا |
| عقبه باندې د بطن وادي نه اوه كاڼړي او هر كاڼي سره به يې الله اكبر ويل او نه به او دريدو دې جمرې سره |
| ثُمَّ يَنْصَرِفُ فَيَقُولُ : هٰكَذَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَفْعَله .[1] |
| نزدې، بيا به دا راغلو او ويل به يې چې ما نبي كريم ﷺ په داسې كولو باندې ليدلى ؤ. |

**توضيح: جمرة الدنيا:** د مزدلفى نه راتللو وخت كې چې كومه جمره مخې ته راځي، همغه جمره دنيا او جمره اولى ده. د هغې نه وروسته جمره وسطى راځي. او آخر كې جمره عقبې راځي. د اولې او دويمې جمرې نه وروسته دعا غوښتل هم مستحب دي. او پيدل ويشتل هم سنت دي. جمره عقبې نه وروسته بيا د دعا ضرورت نشته دى او دا چې حاجې د جمرات د فراغت نه وروسته تللې وي نو ځكه په سورلۍ سوريدو سره ويشتل بهتر دي نن سبا خو د سوريدو هيڅ امكان نشته دى. (المرقات ۵/۵۴۹)

**بطن الوادي:** نن سبا خو د غونډۍ اندازه نشته دى نو دومره معلوميږي چې نبي كريم ﷺ په كوم مقام ودريدلى وو او رمى يې كړې وه. د دې طريقه دا ده چې د رمى كولو والا سړى چپه وړه چې كله قبلې طرف ته وي او ښى اوږه مزدلفى طرف ته وي او مخ يې جمرې طرف ته وي نو په دې پوهيدل په كار دي. چې د همغه ځاى نه نبي كريم ﷺ رمى كړې وه. (المرقات ۵/۵۵۰)

**يكبر:** د رمى وخت كې داسې دعاء لوستل په كار دي: **بسم الله الله اكبر رضًا للرحمان وترغيمًا للشيطان.** (المرقات ۵/۵۵۰)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۸۲/۳ رقم الحديث :۱۷۵۲.

يعني د رحمان د راضي کولو په غرض او د شيطان د ذليل کولو په غرض کاڼي وولم.

## د شپې منی کې ايسار يدل واجب دي که سنت؟

| |
|---|
| ﴿٤﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: اسْتَأْذَنَ الْعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې عباس بن عبد المطلب د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه د دې خبرې خواست وکړو |
| أَنْ يَبِيتَ بِمَكَّةَ لَيَالِيَ مِنًى مِنْ |
| چې د پاتې کيدو اجازت ورکړي په مکه کې په هغه شپو کې چې په منی کې قيام کې کيږي په هغې کې |
| أَجْلِ سِقَايَتِهِ فَأَذِنَ لَهُ.[1] |
| د وی ته د زم زم اوبو لپاره نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم دوی ته اجازت ورکړو. |

**توضيح: استأذن العباس:** د نبي کريم صلى الله عليه وسلم تر ه حضرت عباس رضي الله عنه بيت الله سره د زم زم د کوهي نگران وو. نو د هغې په نگرانۍ کې به حاجيانو باندې اوبه څکولې کيدلې. د دغه خدمت لپاره حضرت ابن عباس رضي الله عنه د نبي کريم رضي الله عنه نه اجازت وغوښتلو چې زه د منی شپه په مکه مکره کې تېره کړمه چې د حاجيانو خدمت وکړم. نبي کريم صلى الله عليه وسلم هغې ته اجازت ورکړو. د رمي جمرات په ورځو کې په منی کې درې شپې تېره ولو اجازت يې واخستلو. منی او مبېت منی وايي وس شرعي مسئله دا ده چې په د ې باندې د فقهاوو اتفاق دی چې د منی درې شپې په هم په منی کې تېرول پکار دي. بل ځای کې مبېت اختيارول ندي پکار. خو په دې کې بحث دی. چې د مبېت حيثيت واجب دی. يا ده چې مبېت سنت دی. نو امام شافع رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نز دا درې واړه شپې تېرول واجب دي. د دې په پرېښودلو سره زم لازمېږي. د امام ابو حنيفه رحمه الله مذهب او يو قول د امام شافعي رحمه الله او د امام احمد بن حنبل په نز مبېت منی سنت دي. د دې په پرېښودلو سره دم نه لازمېږي. خو دومره ده چې بي له څه عذره پرېښودل يې ډير بد دي. د بحث لاندې حديث نه امام ابو حنيفه رحمه الله استدلال کړی دی. چې مبېت منی سنت دی ځکه که دا مبېت واجب وی نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم به حضرت ابن عباس رضي الله عنه ته اجازت نه وی ور کړی. (المرقات ۵/۵۵۱)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۹۰/۳ رقم الحديث: ۱۷۴۵، ومسلم في صحيحه ۹۵۳/۲ رقم الحديث: ۳۳۶

## نبي کریم ﷺ د زمزم په کوهي باندې

﴿۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَ إِلَى السِّقَايَةِ فَاسْتَسْقَى

ابن عباس رضی الله عنه وايي چې نبي کریم ﷺ سبیل ته تشریف راوړو او د زمزم اوبه یې وڅکلې.

فَقَالَ الْعَبَّاسُ: يَا فَضْلُ! اذْهَبْ إِلَى أُمِّكَ فَأْتِ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

عباس رضی الله عنه خپل ځوی ته وویل: چې فضل! خپلې مور ته لاړ شه او راوړه رسول الله ﷺ لپاره

بِشَرَابٍ مِنْ عِنْدِهَا

د هغې نه (د زمزم) اوبه (چې کومې مې د هغې سره ایخې دي او له تراوسه استعمال شوې نه دي).

فَقَالَ: اسْقِنِي

نبي کریم ﷺ (ددې اورید وسره) وفرمایل: چې ته په ما باندې (ددې سبیل نه) اوبه وڅکه.

فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّهُمْ يَجْعَلُونَ أَيْدِيَهُمْ فِيهِ قَالَ:

عباس رضی الله عنه وویل چې یا رسول الله! خلک په دې کې لاس وهي. نبي کریم ﷺ وفرمایل:

اسْقِنِي. فَشَرِبَ مِنْهُ ثُمَّ أَتَى زَمْزَمَ وَهُمْ

څه باک نه کوي. (د همدې) نه را باندې اوبه وڅکه نو نبي علیه السلام د همغې نه وڅکلې او بیا لاړو د

يَسْقُونَ.

زمزم کوهي خوا ته چرته چې خلک (یعني عبد المطلب د خاندان خلک) خلکو باندې اوبه څکوي.

وَيَعْمَلُونَ فِيهَا. فَقَالَ: اعْمَلُوا فَإِنَّكُمْ

او په هغه خدمت بنه مشغول وو. نبي کریم ﷺ هغوی ته وفرمایل. خپل کار کوي ځکه تاسو

عَلَى عَمَلٍ صَالِحٍ. ثُمَّ قَالَ: لَوْلَا أَنْ تُغْلَبُوا

نیک کار کوی. بیا یې وفرمایل که ما ته ویره نه وی چې خلک به په تاسو غالب شي نو زه به د (خپلې

لَنَزَلْتُ

اوبنې نه) را کوز شوی وم (چې په کومه نبي کریم ﷺ سپور وو چې هغه د تولو مخې ته وه او

حَتَّى أَضَعَ الْحَبْلَ عَلَى هٰذِهِ. وَ

خلک د نبي کریم ﷺ نه د حج احکامات زده کړي) تر دې چې پړی به مې په دې کینبودلی او

| أَشَارَ إِلَى عَاتِقِهِ.[1] |
|---|
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل څټ اړخ ته اشاره وکړه. |

**توضیح**: السقاية: د زم زم كوهي سره د زم زم سبيل لګيدلی وو. عامو خلكو به د دينه اوبه څكلې. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ همغلته كوز شو او د څكلو لپاره يې اوبه راوغوښتې. حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل ځوې حضرت فضل ته وفرمايل چې كور ته لاړ شه او د زم زم اوبه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لپاره راوړه، ځكه د سبيل په دې اوبو كې عام خلك لاسونه وهي. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اعلى تواضع خيال وساتو او حكم يې وكړو چې د همدغه عامو اوبو نه په ما اوبه وڅكوى. (المرقات ۵/۵۵۲)

د هغې وروسته نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د زم زم كويې ته راغلو چرته نه چې اوبه د ډول په ذريعې سره ويستلې كيدلې. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خواهش وكړو چې زه غواړم چې خپلې اوبني نه كوشم او خپله د زم زم د كوهي په دريعه سره د ډول نه اوبه راوباسم خو كه چرې ما داسې وكړل نو بيا به ټول خلك تاسو باندې راغونډ شي او دا خدمت به تاسو نه واخلي. تاسو همدغه روان دوان ساتئ. په دې روايت كې همدغه شان قيصه ده. په يو بل روايت بل شان قصه ده. چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اوبنې نه كوشو او د ډول په ذريعه سره يې اوبه راويستلې او پاتې اوبه يې بيا په كوهې كې واچولې. معلومېږي چې دا دوه بېلا بېل واقعې دى. (المرقات ۵۵۲-۵/۵۵۳)

## د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د طواف اوداع لپاره راتګ

| ﴿٦﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
|---|
| او انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د (ذوالحجې په ديارلسم تاريخ منى نه را روان شو) |
| صَلَّى الظُّهْرَ وَ الْعَصْرَ وَ الْمَغْرِبَ وَ الْعِشَاءَ ثُمَّ رَقَدَ رَقْدَةً بِالْمُحَصَّبِ |
| د غرمې، مازيګر، ماښام او ماسخوتن لمونځ يې محصّب كې وكړل او هلته د لږ ساعت لپاره اوده شو. |
| ثُمَّ رَكِبَ إِلَى الْبَيْتِ فَطَافَ بِهِ.[2] |
| بيا د خانه كعبې لپاره سپور شو او (هلته رسيدل سره) طواف وكړو. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۹۱/۳ رقم الحديث: ۱۶۳۵.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۸۵/۳ رقم الحديث: ۱۷۵۶.

**توضيح: الوداع:** طواف وداع آفاقي لپاره واجب دی. کله چې د حج کارونه ختم شي او حاجې خپل وطن ته راتلل غواړي نو هغه د بيت الله طواف وکړي او را رخصت شي. دغه رخصتی ته طواف وداع وايي. آفاقي باندې طواف وداع واجب دي. د نبي کريم ﷺ آفاقي وو. نو ځکه په دیارلسم د ذی الحجه د رمی نه فارغ شو او بيت الله ته راغلو او طواف و داع يې وکړه او مدينې اړخ ته روان شو او بيت الله په مينځ کې د يو ځای نوم دی. هغې ته ابطح هم وايي. او بطحاء هم وايي. او هغې ته خيف بني کنانه هم وايي. همغه ځای کې د قريش کفارو نبو هاشم سره شوشل بائيکاټ حلف نامه ليکلی وه. وس مسئله دا ده چې د يو حاجې لپاره دلته قيام کول څنګه دي. ځينې علماء وايي چې تحصيب کول يعني محصب کې هيساريدل مسنون او کارونه د حج تمته دي. د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه هم همدغه رائی وه. خو نو علماء وايي او په راتلونکو حديثونو کې حضرت عائشه رضي الله عنه هم ده چې محصب کې د نبي کريم ﷺ ودريدل يوه اتفاقي معامله وه. څه شرعي مسئله نه وه. نو نبي کريم ﷺ هتله ځکه ودريدلو چې دلته نه مدينې اړخ ته وتل اسان وو يا ځکه هيسار وو چې د الله تعالى شکر ويستل وو. چې په دغه ځای کې کفارونه ظالمانه فيصله کړې وه. او نن دلته د کفر هيڅ نوم او نښان نشته دی. بلکې د اسلام غلبه ده. بهر حال د احنافو کتابونو کې هم ليکلی شوي دي چې محصب کې حصاريدل يوه اتفاقي معامله وه. نن سبا خو څوک محصب پيژني هم نه. په ديارلسم د ذوالحجه د رمی نه فارغيدلو نه وروسته د منی نه د وتلو ورځ ته يوم النفر وايي. (المرقات ۵/۵۵۳)



| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ قَالَ: سأَلْتُ أَنَسَ بنَ مالِكٍ. قُلْتُ: أَخْبِرْنِي بِشَيْءٍ |
| عبدالعزيز بن رفيع (تابعی) وايي چې ما انس ابن مالک رضي الله عنه ته وويل چې مونږ خبره کړه په هغه څه |
| عَقَلْتَهُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيْنَ صَلَّى الظُّهْرَ |
| باندې چې هغه متعلق وي د نبي کريم ﷺ سره، چيرته کړې وُ د غرمې مونځ نبي عليه الصلاة والسلام |
| يَوْمَ التَّرْوِيَةِ؟ قَالَ: بِمِنًى. |
| د ترويه په ورځ (يعني ذی الحجه په اتم (۸) تاريخ)؟ انس رضي الله عنه وويل چې په منی کې. عبد العزيز |
| قُلْتُ: فَأَيْنَ صَلَّى الْعَصْرَ يَوْمَ النَّفْرِ؟ |
| (وايي چې ما) بيا د انس رضي الله عنه نه پوښتنه وکړه چې د ماز يګر مونځ نبي عليه السلام چيرته کړې وه په ورځ |

| |
|---|
| قَالَ : بِالْأَبْطَحِ . ثُمَّ قَالَ |
| دنفرباندې (يعنې د ذى الحجه په دیارلسم تاريخ) نو انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې په ابطح کې. بیا وويل |
| افْعَلْ كَمَا يَفْعَلُ أُمَرَاؤُكَ. (۱) |
| انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې ته هم همدغه شان کوه څنګه چې ستا سردار کوي. |

## په ابطح کې قيام سنت نه دی

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : نُزُولُ الْأَبْطَحِ لَيْسَ بِسُنَّةٍ إِنَّمَا نَزَلَهُ رَسُولُ |
| عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وايي چې په ابطح کې کوزيدل (يعنې ايساريدل) سنت نه دي. او کوز شوې ؤ رسول |
| اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لِأَنَّهُ كَانَ أَسمح لِخُرُوجِهِ |
| الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هلته فقط ددې لپاره چې (د مکې نه) تلو کې آسانې وي او حال دا چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د |
| إِذَا خَرَجَ. (۲) |
| هغه ځای نه بېرته راغلې ؤ. |
| ﴿۹﴾ وَ عَنْهَا قَالَتْ : أَحْرَمْتُ مِنَ التَّنْعِيمِ بِعُمْرَةٍ فَدَخَلْتُ فَقَضَيْتُ |
| عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وايي چې ما د عمرې لپاره د تنعيم نه احرام وتړلو او مکې نه ننوتلم او بيا ما وکړه خپله |
| عُمْرَتِي |
| (هغه) عمره (چې هغه د ورځو د شروع کېدو د وجې رانه پاتې شوې وه او په ما د هغې قضاء کول ؤ، |
| وَ انْتَظَرَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِالْأَبْطَحِ حَتّٰى |
| ددې تفصيل باب حجة الوداع کې تېر شوی) او نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابطح کې ما ته انتظار کولو تر دې |
| فَرَغْتُ فَأَمَرَ النَّاسَ بِالرَّحِيلِ |
| چې زه د (د عمرې نه) فارغه شوم. نو نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خلکو ته د تللو حکم وکړو. نو نبي کريم |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۵۰۷ رقم الحديث :۱۷۶۳، ومسلم في صحيحه ۲/۹۵۰ رقم الحديث: ۱۳۰۹/۳۳۶.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۵۹۱ رقم الحديث :۱۷۶۵، ومسلم في صحيحه ۲/۹۵۱ رقم الحديث: ۱۳۱۱/۳۳۹.

| فَخَرَجَ فَمَرَّ بِالْبَيْتِ فَطَافَ بِهِ قَبْلَ صَلَاةِ الصُّبْحِ |
|---|
| ﷺ (د ابطح نه) خانه کعبې ته روان راغلو او د سحر مونځ نه مخکې یې طواف (وداع) وکړو. |
| ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الْمَدِينَةِ. (۱) |
| بیا یې (د سحر د لمونځ نه مخکې یا د سحر د لمونځ نه وروسته) مدینې طرف ته روان شو. |
| هٰذَا الْحَدِيثُ مَا وَجَدْتُهُ بِرِوَايَةِ الشَّيْخَيْنِ بَلْ بِرِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ مَعَ اخْتِلَافٍ يَسِيرٍ فِي آخِرِهِ. |

## طواف وداع واجب دی

| ﴿۱۰﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : كَانَ النَّاسُ يَنْصَرِفُونَ فِي كُلِّ |
|---|
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې خلک (د حج د کارونو نه وروسته) د طواف وداع کولو نه بغیر روانیدل هر |
| وَجْهٍ |
| طرف ته (یعنې خپل خپل وطن ته، یعنې خلکو د دې خبرې پابندي نه کوله چې د حج د کارونو نه پس |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَا يَنْفِرَنَّ أَحَدُكُمْ |
| طواف وداع وکړي) نو رسول الله ﷺ وفرمایل: په تاسو کې دې څوک هم روان نه شي (یعنې |
| حَتَّى يَكُونَ آخِرُ عَهْدِهِ بِالْبَيْتِ |
| آفاقي) ترڅو چې (د سفر حج) آخري مرحله بیت الله ونه ټاکي (یعنې هیڅ یو آفاقي هم د طواف وداع |
| إِلَّا أَنَّهُ خُفِّفَ عَنِ الْحَائِضِ. (۲) |
| نه بغیر خپل وطن ته روان نه شي). خو دا طواف د حیض (او نفاس) والا ښځو لپاره موقوف دی. |

**توضیح: في كل وجه:** یعنې خلکو به چې د حج کارونو نه وروسته چرته غوښتل او د کوم ځای نه به یې غوښتل، خپل خپل وطن ته به تلل، د طواف وداع او طواف رخصت پرواه به یې نه کوله. نو نبي کریم ﷺ وفرمایل چې هیڅ یو سړی د طواف دواع نه بغیر لاړ نشي، د حج د کارونو نه وروسته او مکې مکرمې نه خپل وطن ته د تللو په وخت کې چې کوم طواف کیږي هغې ته طواف وداع وایي. همدغه شان دیته طواف صدر هم وایي. د وداع معنی د تللو ده. دا سړی هم د بیت الله نه روانیږي.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۵۱۲ رقم الحديث: ۲۰۰۵.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۵۸۵ رقم الحديث: ۱۷۵۵، ومسلم في صحيحه ۲/۹۶۳ رقم الحديث: ۱۳۲۷/۳۷۹.

طواف دواع د جمهورو په نز واجب دی. د دې په پرېښودلو باندی دم لازمېږي. او د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نز سنت دی. دا حديث د جمهورو دليل دی. د طواف دواع نه وروسته حاجی مکه کې پاتی شو نو په دويم ځل د طواف دواع ضرورت نشته دی. خو دومره ده چې غوره به وي چې طواف وداع بيت الله سره د حاجي آخري عمل وي، دا طواف آفاقی باندې واجب دی. کوم خلک چې مکه کې اوسيږي يا د ميقات دننه وي نو هغې باندی طواف وداع نشته دی. عمرخ کونکو باندی هم طوافِ وداع واجب ته ده. اګر که خلک يې کوي. که د ښځې د حيض عذر وي نو د عذر لرونکې وي نو د هغوی نه دا طواف ساقط شي. (المرقات ۵/۵۵۶)

## د عذر په وخت کې طواف وداع واجب نه پاتې کيږي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: حَاضَتْ صَفِيَّةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا لَيْلَةَ النَّفْرِ فَقَالَتْ: |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې د يوم نفر په شپه کې د صفيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ورځې شروع شوی نو هغې وويل چې |
| مَا أُرَانِي إِلَّا حَابِسَتَكُمْ. |
| زما خيال دی چې زه به تاسو (مدينی نه دتللو) حصاروم (ځکه زما ورځې شروع شوی او ما طواف وداع |
| قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عَقْرَى حَلْقَى |
| نه دې کړی) نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام (چې دا واوريدل نو) وي فرمايل چې زخمي زخمي (تپي تپي) دې شي |
| أَطَافَتْ يَوْمَ النَّحْرِ؟ قِيلَ: نَعَمْ. قَالَ: |
| آيا هغې د نحر په ورځ (طواف زيارت) کړی دی؟ وويل شو چې آو، نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| فَانْفِرِي.[1] |
| چې (بيا د حصاريدو ضرورت نشته دی) ځی. |

**توضيح:ليلة النفر**: محصب کې چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کومه شپه تېره کړی وه او بيا هلته نه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مدينی ته روان شوی وو دې ته ليلة النفر يعنې د تګ شپه يې فرمايلي دی. د دې تګ نه تګ مراد دی چې په هغې د ديارلسم (۱۳) د ذوالحجه نه روان شوي وو خو دا خبره دي ياده وي چې د حج په ورځو کې راتلونکې شپه تېره شوي شپه شمارل کېږي بهر حال حضرت صفيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته د محصب په شپه ماهواري شروع شوی وه. هغې خيال وکړو چې وس طواف وداع لپاره به

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۹۵/۳ رقم الحديث: ۱۷۷۱، ومسلم في صحيحه ۹۶۵/۲ رقم الحديث: ۱۲۱۱/۳۸۷.

حصاريدل وي. ځکه په حاجيانو ټوله قافله هيساريږي. نو د دغه يرى اظهار هغې انى حابستكم نه وكړو. نبي كريم صلى الله عليه وسلم پوښتنه وكړه چې طواف زيارت يې كړى دى او كه نه؟ جواب وركړى شو چې كړى يې دى. نو نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې طواف وداع پرېږده او مونږ سره لاړه شه. د دينه دا قانون حاصل شو چې حيض او د داسې نورو سختو مجبوريو او د شرعى عذر د نظر لاندې طواف وداع پرېښودلى كيدى شي. د حديث د الفاظو نه معلوميږي چې د حضرت صفيه رضي الله عنها او د نبي كريم صلى الله عليه وسلم دا خبرې د بل چا په واسطه (بالواسطه) شوي دي. مخامخ نه دي شوي، فقط د **فانفري** لفظ نه معلوميږي چې مخامخ شوي دي. ملا على قارى رحمه الله وايي چې اول نبي كريم صلى الله عليه وسلم د حضرت صفيه رضي الله عنها سره خبرې نه دي شوي. آخري جمله كې يې هغه مخاطبه كړې ده چې وس لاړه شه. (المرقات ۵/۵۵۷)

**عقرى:** د زخمي كېدو او د هلاک كېدلو خبره ده. **حلقى:** په مرۍ د درد يا د زخم يا د سر د ويښتان ختلو لپاره بددعا ده. يعنې اى الله! دا زخمي او هلاک كړي، د هغې په مرۍ كې درد او زخم ولږي. د دې الفاظو نورى معناګانې هم راځي. اصل **عقرها الله عقراً** او **حلقها الله حلقاً** دي. علامه طيبي وايي چې دا كلمات اگر ده بددعاء لپاره وي خو ددې نه مراد بد دعاء نه ده بلكه د عربو د عادت مطابق دې ته فقط تلطف او د زړه لګونى لپاره استعماليږي ځنګه چې ترتيب **يداك** او **ثكلتك امك** الفاظ د زړه لګيدو او د مينې لپاره استعماليږي حال دا چې دا الفاظ د بد دعا لپاره دي(المرقات ۵/۵۵۷)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### حج اكبر د كوم حج نوم دى؟

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾عَنْ عَمْرِو بْنِ الْأَحْوَصِ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ: |
| عمرو بن احوص رضي الله عنه وايي چې ما واوريدل چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل حجة الوداع كې |
| أَيُّ يَوْمٍ هٰذَا ؟ |
| دقربانى په ورځ (يعنې دلسم ذى الحجة باندى صحابه مخاطب كړل) پوهيږئ چې دا كومه ورځ ده؟ |
| قَالُوْا : يَوْمُ النَّحْرِ الْأَكْبَرِ . قَالَ : فَإِنَّ دِمَاءَكُمْ |
| صحابو وويل چې (آو) د حج اكبر ورځ ده. بيا نبي عليه السلام وفرمايل (يادساتئ) ستاسو وينه، ستاسو |

| وَ | أَمْوَالَكُمْ | وَ | أَعْرَاضَكُمْ | بَيْنَكُمْ | حَرَامٌ | كَحُرْمَةِ | يَوْمِكُمْ | هٰذَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

مال او ستاسو عزتونه ستاسو په مینځ کې داسې حرام دي لکه څنګه چې حرامه ده په تاسو دا ورځ

| فِي | بَلَدِكُمْ | هٰذَا | أَلَا | لَا | يَجْنِي | جَانٍ | عَلَى | نَفْسِهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

ستاسو په دې ښار کې. خبردار! ظلم کونکی فقط په خپل ځان ظلم کوي (یعنې کوم سړی چې په چا

ظلم کوي نو د هغې ګناه هم په هغې باندې ده. چې هغه به نیولی کېږي دا نه چې ظلم به یو څوک کوي

| وَلَا | يَجْنِي | جَانٍ | عَلَى | وَلَدِهِ | وَلَا | مَوْلُودٌ | عَلَى | وَالِدِهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

او نیولی کېږي به بل) یاد ساتئ! هیڅ ظالم به په خپل ځوي ظلم نه کوي او نه به کوم ځوي پخپل پلار ظلم

| أَلَا | وَ | إِنَّ | الشَّيْطَانَ | قَدْ | أَيِسَ | أَنْ | يُعْبَدَ | فِي | بَلَدِكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

کوي پوهه شئ! شیطان د همیشه لپاره د دې خبرې نه نا امیده شوی چې عبادت وشي ستاسو په دې ښار

| هٰذَا | أَبَدًا | وَ | لٰكِنْ | سَتَكُوْنُ | لَهُ | طَاعَةٌ | فِيمَا | تَحْتَقِرُوْنَ | مِنْ | أَعْمَالِكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

(مکه) کې خو دا ده چې ستاسو په عملونو کې به د شیطان اطاعت کېږي. چې هغه تاسو کم ګنئ. نو

فَسَيَرْضَى بِهٖ.[1]

هغه به په هغه (ګناهونو) خوشحالېږي کوم به چې تاسو کم ګنئ.

**توضیح: في حجة الوداع:** عام شارحین دا ورځ لسم د ذوالحجه یعنې د غټ اختر ورځ ټاکي. اګر که په دې کې څه تصریح نشته دی. خو د دې باب په اول حدیث کې یوم النحر لفظ راغلی دی. کیدیشي دا خطبه او هغه خطبه یوه وي. (المرقات ۵/۵۵۸)

**یوم الحج الاکبر:** په دې کې ډیر بحث دی چې د حج اکبر د کوم حج نوم دی. ۱: علامه بیضاوي رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د حج اکبر نه لسم د ذوالحجة غټ اختر ورځ مراد ده. ځکه په دغه ورځ د حج ټول غټ کارونه پوره کېږي. خو دا ده چې د ﴿ وَأَذَانٌ مِّنَ اللهِ وَرَسُولِهِ إِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الأَكْبَرِ ﴾ اعلان په لسم د ذوالحجه شوی وو او همدغه ورځی ته حج اکبر ویلی شوی وو. او په یو بل روایت کې دي چې جمرات سره د اختر په ورځ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل هذا یوم الحج الاکبر، دا د

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۰۱ رقم الحدیث: ۲۱۵۹

حج اکبر ورځ ده. ۲: دويم قول دا دی چې حج اکبر د عرفی ورځ ته ويلی شوی ده. ځکه نبي کريم ﷺ د عرفی ورځ حج ته کلي وو. الحج العرفة، نو د دې مقابله کې عمره حج اصغر دی. ۳: دريم قول دا دی چې حجة الوداع ته حج اکبر ويلی شوي دي. ځکه په دغه ورځ د مسلمانانو په شان د ټولو دينونو معتقدينو اخترونه وي. ۴: څلورم قول دا دی چې حجة الوداع ته ځکه حج اکبر ويلی شوی دی چې په دغه ورځ اسلام ته پوره شان ورکړی شوی وو او کافران ذليل شوي وو. ۵: يا ځکه حج اکبر وو چې خپله د نبي کريم ﷺ حج ؤ. ۶: يا ځکه حج اکبر وو چې دا حج د جمعي په ورځ وو او په عوامو کې مشهوره ده چې کله د عرفی ورځ او د جمعي ورځ يو ځای راشي نو همدغه حج اکبر وي. (المرقات ۵/۵۵۸)

**لا يجني جان:** د دې جملی دوه مفهومه دي. يو مطلب دا دی چې چې کوم سړی په چاباندی ظلم کوي نو د هغې سزا او ګناه به په همغه وي. چا چې جرم او ظلم کړی وي. د هغې په بدله کې به بل بې ګناه ته سزا نه ور کړی کېږي. لکه څنګه چې يهود وايي چې زمونږ د ګناهونو سزا به مسلمانانو ته ورکړی کېږي. او شياګان وايي چې زمونږ د ګناهونو سزا به سنيانو ته ورکړی کېږي. د دې حديث دويم مفهوم دا چې چا قتل وکړو نو د هغه بدله د همغه نه اخستلی کېږي داسې نه چې قتل يو چا کړی وي او په بدل کې بل څوک به قتلېږي لکه څنګه چې د قبائلو خلک داسې کوي او د عربو په جاهليت کې به هم داسې وو. د حديث دا مطلب ډير واضح دی ځکه د حديث به بله جمله کې همدغه تفصيل را روان دی چې د پلار جرم په ځوي مه اچوی، او نه د ځوي جرم په پلار اچوی. په يو بل روايت کې دا الفاظ دي: **لايؤخذ الرجل بجريمة ابيه**، دا جمله د لاندې تشريح تائيد ده. (المرقات ۵/۵۵۹)

**آيِسَ:** يعني شيطان مايوسه شوی دی چې په ښکاره به مکې مکرمی ښا د هغې عبادت نه کېږي اګر په پټه به خلک د هغې عبادت کوي خو په ښکاره بت پرستی ختمه شوی ده. (المرقات ۵/۵۵۹)

**من اعمالکم:** يعني قتل او زنا او چو چپاوو عملونه به کېږي چې هغه تاسو کفر او شرک په نسبت کمه ګناه ګنی، شيطان به تاسو نه په هغې راضي کېږي او په هغې کې به مو اخته کړي. په کفر کې د اچولو کوښښ به نه کوي. ملا علی قاری رَحِمَهُ اللهُ ليکلي چې په دغه وجه باندې دروغ او خيانت او داسې نور ګناهونه د کافرو په نسبت مسلمانانو کې ډير دي. ځکه شيطان د کافرانو نه په کفر راضي کېږي. نو ځکه هغه د کافرانو په زړه کې د نورو ګناهونو وسوسي نه اچوي. او د مسلمانانو په زړونو کې د ګناهو وسوسي اچوي. د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه همدغه شان روايت منقول دی **وعن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال انهلوة التي ليس لها وسوسة انما هي صلوة اليهود و النصارى**. علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ وايي

د ورو وسوسو نه مراد د زړه وسوسي او واړه ګناهونه دي کوم چې تاسو واړه ګڼئ. حال دا چې همدغه واړه ګناهونه د غټو فتنو سبب جوړيږي. (المرقات ۵/۵۵۹)

## د لاوډ سپيکر په جواز باندې دليل

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَن رافعِ بنِ عمروٍ والمُزَني قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ النَّاسَ |
| او رافع ابن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مزنی وايي چې ما وليدل چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې خطبه يې ورکوله |
| بِمِنًى حِينَ ارْتَفَعَ الضُّحَى عَلَى بَغْلَةٍ |
| خلکو ته په منی کې د قربانۍ په ورځ د څاښت وخت کې په قچر سپور ؤ چې د هغې ويختان پاس اړه |
| شَهْبَاءَ وَ عَلِيٌّ يُعَبِّرُ عَنْهُ |
| ته سره او د ننه اړخ سپين وو. او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له اړخه بيان کولو (يعنې |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې څه فرمايل نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به هغه تکرارول چې د لرې خلک هم |
| وَ النَّاسُ بَيْنَ قَائِمٍ وَ قَاعِدٍ.[1] |
| د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خبره واوري) او څينې خلک ولاړ وو او څينې خلک ناست وو. |

**توضيح: يخطب الناس:** يعنې په لسم د ذوالحجه باندې منی کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته خطبه ورکړه. (المرقات ۵/۵۶۰)

**بغلة:** قچر ته وايي. **صهباء:** سور او سپين رنګ والا قچر او داسې نور څه ته اصهب او **صهباء** وايي.

**وعلي يعبر:** دا د تعبير نه دی چې تر کوم ځای د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اواز رسيدلو، تر هغه ځای خلکو پورې کافي وو. خو دا وه چې دير جمع شوي وو. ټولو خلکو ته د اواز رسيدلو لپاره چې کوم ساده انتظام شوی وو هغه د حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تعبير وو چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اواز به چرته ختميدلو. د هغه ځای نه به حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه کلام خپل اواز کې رسولو. دا يو ساده انتظام وو. د دې مقصد دا وو چې اواز تر مخکې پورې لاړ شي، همدغه د مکبر الصوت صورت دی او د همدغې نه لاوډ سپيکر جواز ملاويږي. ځکه دا هم اواز مخکې وړي. ملا علی قاري وايي چې هغه وخت غونډه کې يو لاکه ديرش زره (۱۳۰۰۰۰)صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وو. (المرقات ۵/۵۶۰)

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۴۸۹/۲ رقم الحديث ۱۹۵۶.

**بين قائم وقاعد:** د اجتماع د ډيروالي په وجه څه خلک ولاړ وو او څه ناست وو. د دواړو ګنجائش شته دی. انتظام بېل شی دی خو يو بل سره جوخت جوخت کيناستل لامي تاکل او د هغې په فضائلو او دلائلو کې زور لګول او همسا راخستل او خلک اوچتول او د غونډې اړخ ته شړل تر دې چې تلاوت نه پاسول هم ناجائز دي. تبليغي حضراتو له دې ته توجه په کار ده. (المرقات ۵/۵۶۰)

## د طواف زيارت وخت

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾وَعَنْ عَائِشَةَ وَابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَّرَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ يَوْمَ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايان دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تأخيرو کړو طواف زيارت |
| النَّحْرِ إِلَى اللَّيْلِ.[1] |
| کې د قرباني په ورځ تر شپې پورې. |

**توضيح:اخر طواف:** يعني نعني نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طواف زيارت کې د غمې اختر ورځ تېريدلو نه وروسته تر شپې پورې مووخر کولو ته جائز وټاکل. يا دا مطلب نه دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله تاخير کړی وو. ځکه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غرمي نه مخکې په لسم د ذوالحجه باندې طواف کړی وو. علامه طيبي وايي چې د طواف زيارت وخت دغمې اختر د نيمي شپي نه شروع کېږي. خو څه ائمه فرماي چې د طواف زيارت وخت د غمې اختر په ورځ د لمر د راختلو نه وروسته شروع کېږي. پاتې شوه دا مسئله چې طواف زيارت کله جائز دی. نو ائمه ثلاثه وايي چې د طواف زيارت آخرې وخت متعين ندی. کله هم وکړی شي نو جائز به وي. خو امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې طواف زيارت په دولسم د ذوالحجه يعنې د قرباني ورځو پورې حصاريدلی شي. د قرباني د ورځو نه وروسته پورې که حصار کړی شو نو دم به لازمېږي. (المرقات ۵/۵۶۰)

## په طواف زيارت کې د رمل مسئله

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَرْمُلْ فِي السَّبْعِ الَّذِي أَفَاضَ فِيهِ.[2] |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رمل نه وکړې په اوه شوطه طواف زيارت کې. |

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۵۰۹/۲ رقم الحديث :۲۰۰۰

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۵۰۹/۲ رقم الحديث :۲۰۰۱، وابن ماجه في السنن ۱۰۱۷/۲ رقم الحديث :۳۰۶۰.

**توضيح: لم يرمل:** اوړي خوځول او په ځان خودلی سره تللو ته رمل او پهلواني وايي. د دينه مخکې دا مسئله ليکلی شوی ده. دلته د طواف زيارت د خاص صورت بيان دی. عموماً طواف په ګنډلی شووو جامو کې کېږي. آيا پدې کې رمل شته او که نه؟ نو د دې لپاره دا قانون دی چې حاجې باندې تر وسه د حج منډه (سعی) پاتې ده نو هغه په طواف کې په ګنډلی شووو جامو کې رمل کوي. او که حاجې د احرام تړلو وخت کې د طواف قدوم سره منډه هم وهلي وي او په هغې باندې فقط طواف زيارت پاتې دی نو په دغه صورت کې به رمل نه وي. ځکه د رمل لپاره قانون دا دی چې هر هغه طواف چې د هغې نه وروسته منډه وي نو په هغه طواف کې رمل وي ګينې نه به وي.

**افاض فيه:** ظواف زيارت ته طواف افاضه هم وايي ځکه چې دحج نه پس دواپسئ په ټول عمل باندې ﴿ثُمَّ أَفِيضُواْ مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ﴾ اطلاق کيږي. (المرقات ۵/۵۶۱)

## داحرام نه تحليل اول او دويم

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : إِذَا رَمَى أَحَدُكُمْ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمايل چې کله اوزګار شي يو کس په تاسو کې د رمي د |
| جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ فَقَدْ حَلَّ لَهُ كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا النِّسَاءَ.[1] |
| جمره عقبه نه نو ده ته حلال شو هر څيز (او سر وخرا وي يا ويښتان واره کړي) په غير د ښځې نه. |

**توضيح: حل له:** يعنې د عرفات نه بېرته مزدلفی ته او د مزدلفی نه بېرته منی ته چې کله حاجې کله جمره عقبه کې رمی وکړي نو د هغې لپاره د احرام د ممنوعاتو نه هر شی حلال شي. فقط د ښځې سره جماع حرامه وي. دغې ته تحليل اول وايي. او کله حاجې طواف زيارت وکړی نو وس د هغې لپاره د خپلې ښځې سره جماع کول هم جائز شوه. دغې ته تحليل ثانی (دويم) وايي. پدې حديث کې د تحليل اول بيان دی. (المرقات ۵/۵۶۱)

## نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جمرات سره

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْهَا قَالَتْ : أَفَاضَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ آخِرِ يَوْمِهِ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د قرباني په ورځ اخري برخه کې هغه وخت فرض طواف |

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۲/۱۹۹ رقم الحديث: ۱۹۷۸

| حِينَ صَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ رَجَعَ إِلَى مِنًى فَمَكَثَ بِهَا لَيَالِيَ |
|---|
| وكړو كله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دغرمې لمونځ وكړو دې نه پس منى ته بېرته راغلو او تيرې يې كړې شپې |
| أَيَّامِ التَّشْرِيقِ |
| په منى كې د ايام تشريق (يعني يولسم، دولسم او ديارلسم) په دغه شپو كې به نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ تر هغه وخت |
| يَرْمِي الْجَمْرَةَ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ كُلَّ جَمْرَةٍ بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ يُكَبِّرُ |
| پورى كاڼي ويشتل چې غرمه به تېره شوه. په هره جمره به يې اووه كاڼي ويشتل، الله اكبر به يې ويل |
| مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ وَ يَقِفُ عِنْدَ الْأُولَى وَ الثَّانِيَةِ |
| د هر كاڼي ويشتلو وخت كې او اول په دويمه جمره (يعني جمره اولى او جمره وسطى) باندې (دعا او |
| فَيُطِيلُ الْقِيَامَ |
| اذكارو لپاره) ډېر ساعت اودريدو او (هغه وخت د ډېرو دعاګانو او د حاجاتو عرض كولو لپاره) به يې |
| وَ يَتَضَرَّعُ وَ يَرْمِي الثَّالِثَةَ |
| عاجزي اختيار كړه او بيا (چې كله) به د دريمې جمرې (يعنې جمره عقبه) باندې كاڼي ويشتل نو د |
| فَلَا يَقِفُ عِنْدَهَا.[1] |
| هغې سره نژدې نه اودريدو. |

**توضيح:** **ايام التشريق:** دا د شروق اللحم نه ماخوذ دى. چې د غوښې لمر ته وچيدلو ته وايي. د عرب خلكو به دغه ورځ كې د قربانۍ غوښې وچولي. دا د يولسمې، دولسمې او ديارلسمې ذوالحجه ورځې دي. په همدغه ورځو كې تكبيرات تشريق كېږي. او په هغې كې روژه نيول جائز ندي. په همدغه ورځو كې به د جمرات رمى كيدله. تر دولسمې پورې رمى جائز ده. او تر ديارلسمې پورې اختياري ده. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ديارلسم د ذوالحجه باندې رمى كړې وه.

قرآن كريم كې ﴿فَمَن تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ﴾ كې اختيار وركړى شوى دى چې په دولسمه دې حاجئ لاړ شي يا دې د ديارلسمې نه وروسته لاړ شي ګناه نشته دى. د جمره عقبه وخت د سحر د راختلو نه ورسته تر مابنام پورې وي. د هغې نه وروسته ټولو جمراتو وخت وروسته د زوال نه دى. خو كه چرى

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۲/۱۹۷، رقم الحديث ۱۹۷۳.

حاجي تر ديارلسم د ذوالحجه پورې پاتې شو، نو د ديارلسمې رمی مخکې د زوال نه جائز ده. تفصيل بيا بيا تېر شوی دی. (البناية : ۴/۱۴۷).

## په رمی جمرات کې د تقديم او تاخير مسئله

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَ عَنْ أَبِي الْبَدَّاحِ بْنِ عَاصِمِ بْنِ عَدِيٍّ عَنْ أَبِيهِ قَالَ : رَخَّصَ |
| ابي البداح بن عاصم بن عدی (تابعی) د خپل پلار نه روايت کوي چې هغه وويل چې اجازت ورکړې ؤ |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لِرِعَاءِ الْإِبِلِ فِي الْبَيْتُوتَةِ : |
| رسول الله صلی الله علیه وسلم دا وښ څرونکو ته چې هغه په منی کې شپې مه تېروی او دا چې کاڼړي ويشتل |
| أَن يَرْمُوْا يَوْمَ النَّحْرِ ثُمَّ يَجْمَعُوا رَمْيَ يَوْمَيْنِ |
| د قربانی په ورځ (يعنې لسم د ذی الحجه کې جمره عقبه باندی) او بيا يو ځل رمي کول د دواړه ورځو کې |
| بَعْدَ يَوْمِ النَّحْرِ فَيَرْمُوهُ فِي أَحَدِهِمَا. [1] |
| د جمرات د قربانۍ د ورځې نه پس همدغه شان د دواړه ورځو رمي جمرات دې په دې کې يوه ورځ کې وکړي |

**توضيح:** رخص: علامه طيبي رحمه الله وايي چې شپونکو ته نبي کريم صلی الله علیه وسلم دا اجازت ورکړی وو. چې د تشريق په ورځو کې منی مه پاتې کېږي. بلکې د خپلو څاروو د حفاظت لپاره بهرون وسی. همدغه شان شپونکو ته اجازت هم ورکړی شوی وو چې هغوی به فقط د غټ اختر په ورځ رمی جمرات کوي او ځې به. او د يولسمې ورځې رمی بيا د دولسمې ورځې سره وکړئ. يوه قضا شوې رمې وکړئ او يوه د هغه ورځې رمی وکړئ. فقهاء کرام وايي چې په رمی کر تقديم جائز نه دی چې کوم يو سړی د ټولو ورځو رمی مثلاً په لسم ذوالحجه وکړي، خو دا ده چې تاخير د عذر په وجه جائز دی. ذکر شوې حديث د دې بيان دی. (المرقات ۵/۵۶۳، والکاشف : ۵/۳۷۲)



(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۲/۴۹۷ رقم الحديث :۱۹۷۵

# باب ما تجتنب المحرم

## د احـرام د ممنوعـاتو بیان

**قال الله تعالی: ﴿فلا رفث ولا فسوق ولا جدال في الحج﴾** (سورة البقره آیت: ۱۹۷)

د احرام تړلو نه وروسته د محرم لپاره څه شیان منع شي. بیا په دې کې ځینې داسې ممنوعات دي چې هغه کولو سره په سړي دم لازمیږي. د ځینو په کولو سره صدقه لازمیږي. په دې باب کې د همغه ممنوعاتو بیان دی او د ځینو مباحثو بیان دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### هغه شیان چې محرم ته یې اغوستل منع دي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ : أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَا يَلْبِسُ |
| عبد الله ابن عمر رضي الله عنهما وایي چې یو کس د نبي علیه الصلاة والسلام نه پوښتنه وکړه چې کوم یو شي اغوستې |
| مِنَ الثِّيَابِ ؟ فَقَالَ : لَا تَلْبَسُوا الْقُمُصَ وَلَا الْعَمَائِمَ |
| شي محرم په جامو کې (او څه نه شي اغوستی) نو نبي علیه السلام وفرمایل مه اغوندي قمیص او نه پټکی |
| وَلَا السَّرَاوِيلَاتِ وَلَا الْبَرَانِسَ وَلَا الْخِفَافَ إِلَّا أَحَدٌ لَا يَجِدُ نَعْلَيْنِ فَيَلْبَسْ خُفَّيْنِ |
| نه پاجامه، نه بُرنس او نه موزې اغوندي، او که چا سره بوټان نه وي نو هغه موزې اغوستې شي خو داده |
| وَلْيَقْطَعْهُمَا أَسْفَلَ الْكَعْبَيْنِ وَلَا تَلْبَسُوا مِنَ الثِّيَابِ شَيْئًا مَسَّهُ |
| چې موزې به دواړو ګیټو نه غوڅې کړي. همدغه شان هیڅ جامه داسې نه وي چې پرې لګیدلي وي |
| زَعْفَرَانٌ وَلَا وَرْسٌ. وَزَادَ الْبُخَارِيُّ فِي رِوَايَةٍ: وَلَا تَنْتَقِبُ الْمَرْأَةُ الْمُحْرِمَةُ وَلَا تلبس القفازين[1] |
| زعفران یا ورس. |

**توضیح: برانس:** دا برنس جمع ده دا د هغه اوږدې خولۍ نوم دی چې د عربو ډیر عبادت کونکو خلکو به اغوستلو. همدغه شان بُرنس هغه جامې ته هم وایي چې د واده د زلمي په طرز پرتوګ، قمیص او خولۍ یو شان جوړه کړی شي او واغوستلی شي. د دینه مراد فقط دغه خولۍ نه ده بلکی

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۰۱/۳ رقم الحديث: ۱۵۴۲، ومسلم في صحيحه ۸۳۴/۲ رقم الحديث: ۱۱۷۷/۱.

مراد دا هم ده چې محرم دي خپل سر پټ کړي اګر که هغه په خولۍ وي یا په بل څه شي سره وي. خو شرط دا دی چې عرف کې هغه اغوستلی کېږي. که اغوستلی شوی نه وي مثلاً منګی چې په سر وچت کړي نو هغې ته په عرف کې اغوستلی نه وایي. (المرقات :۵/۵۶۵)

**الخفاف**: د خف جمع ده، موزې ته وایي. د دې اغوستل منع دي. خو که بوټان نه وي نو بیا هغه د ګنټیو نه لاندې غوڅه کړي او وا دي غوستلی شي. زیر بحث حدیث کې همدغه دي. دا خبره د یاد ساتلو ده چې د حج ګیټۍ د خپو شاته د پړسیدلې هډوکې نوم دی د دې پټول منع دي.

**ورس**: دا یو زیړ رنګی بوټی دی. پدې کې هم د زعفرانو پشان رنګ وي. زعفران او ورس کې شان خوشبو وي. ځکه منع دی. (المرقات :۵/۵۶۵)

**ولا تنتقب**: یعني محرم ښځه دي نقاب نه چاپیره وي. د دې مطلب دا دی چې محرمه ښځه دې خپله خوله او مخ نه پټوي. د سړو لپاره هم دغه حکم دی. خو که چرې ښځه دا سې پرده وکړي، چې د مخ نه بغیر پرده وي، نو جائز ده.

**قفازین**: د دینه مراد دستاني دي. د دې اغوستل هم د سړو او ښځو دواړو لپاره حرام دي. (المرقات ۵/۵۶۵)

## که ازار بند نه وي نو محرم دې شلیدلی پرتوګ واغوندي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَخْطُبُ |
| ابن عباس رضي الله عنه وایي چې ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه په خطبه کې اوریدلي دي چې نبي علیه السلام |
| وَ هُوَ يَقُولُ : إِذَا لَمْ يَجِدِ الْمُحْرِمُ نَعْلَيْنِ لَبِسَ خُفَّيْنِ وَ إِذَا لَمْ يَجِدْ إِزَارًا |
| فرمایل د محرم سره که بوټان نه وي، نو موزې اغوستی شي او د کوم محرم سره چې ته بند نه وي نو |
| لَبِسَ سَرَاوِيلَ.[1] |
| هغه پاجامه اغوستلی شي. |

**توضیح لبس سراویل**: یعنې که محرم سرا ازاربند نه وي او پرتوګ وي. نو همغه پرتوګ د مجبورۍ په وجه استعمال کړي. د حدیث همدغه ظاهري مطلب امام شافعي رحمه الله اختیار کړی دی. خو امام

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۷/۴ رقم الحديث :۱۸۴۱، ومسلم في صحيحه ۲۶۷۹/۲ رقم الحديث: ۱۱۷۸/۴.

ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي كه چېرې پرتوګ وي نو هغه دې وشلي. او د پرتوګ په ځاى دې استعمال كړي. خو كه پرتوګ استعمال كړى شو او ډير وخت پورې استعمال كړى شو نو په هغه محرم به دم راځي او كه د لږ وخت لپاره استعمال كړى شو نو د دم په ځاى به فديه لازميږي. (المرقات ۵/۵۶۷).

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ قَالَ : كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِالْجِعْرَانَة |
| يعلى بن اميه وايي چې مونږ د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره وو په جعرانه كې (چې د مكې نه شو ميله مسـ فه |
| إِذْ جَاءَ رَجُلٌ أَعْرَابِيٌّ |
| باندې يو مقام دى چرته چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د عمرى لپاره احرام تړلى ؤ) چې ناڅاپه يو كليوال سړى راغلو او |
| عَلَيْهِ جُبَّةٌ وَ هُوَ مُتَضَمِّخٌ بِالْخَلُوقِ |
| كرتى يې اغوستى وه همدغه شان هغه سړى خلوق هم لګولى ؤ (خلوق ديو قسم خوشبو نوم دى چې د |
| فَقَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي أَحْرَمْتُ بِالْعُمْرَةِ |
| زعفران او داسې نور څه تيار يدو) هغه سړي وويل چې يا رسول الله! ما د عمرى احرام په داسې حالت كې |
| وَ هٰذِهِ عَلَيَّ . فَقَالَ : أَمَّا الطِّيبُ الَّذِي بِكَ |
| وتړلو چې زما په بدن باندې چينۀ نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل چې ستا په بدن باندې خوشبو لګيدلې ده نو هغه |
| فَاغْسِلْهُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ وَأَمَّا الْجُبَّةُ فَانْزِعْهَا ثُمَّ اصْنَعْ فِي عُمْرَتِكَ كَمَا تَصْنَعُ فِي حَجِّكَ[1] |
| درې ځل وينځه او كرتى وباسه او بيا خپله عمره (په احرام) كې هغه وكړه كوم چې تا د حج په احرام كې كول |

**توضيح: متضمخ:** د باب تفعل نه دى. په خوشبو كې ككړشوي سړى لپاره استعماليږي. (المرقات ۵/۵۶۸)

**الخلوق:** د زعفران جوړ شوي د خاص عطرو نوم دى. (المرقات :۵/۵۶۸)

## د احرام په حالت كې ځان ته يا بل ته د نكاح كولو مسئله

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَ عَنْ عُثْمَانَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَا يَنْكِحُ الْمُحْرِمُ |
| عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دى چې نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دا مناسب نه ده چې محرم نكاح وكړي |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۹۲/۳ رقم الحديث :۱۵۳۶، ومسلم في صحيحه ۸۳۶/۲ رقم الحديث: ۱۱۸۰/۶.

وَلَا يُنكِحُ وَلَا يَخْطُبُ . (۲)

دغه شان (ولايةً يا وكالةً) نكاح كول او كوژدن كول مناسب نه دي.

**توضیح: لا ينكح المحرم:** نكح ينكح د ضرب يضرب نه د نكاح په معنى دى. او انكح ينكح د باب **افعال** نه بل ته د نكاح كولو په معنى دى. مطلب دا چې د احرام په حالت نه محرم خپله نكاح كولى شي او نه د بل چا لپاره وكيل يا ولي په توګه نكاح كولى شي. (المرقات: ۵/۵۶۹)

**ولا يخطب:** يعنې د نكاح پيغام هم نشي وركولى. دا درې واړه صيغې د نا په معنى كې دي. پدې باندې د ټولو فقهاو اتفاق دى چې د نكاح په حالت كې احرام كې جماع كول حرام دي، يا په دې باندې هم د ټولو فقهاو اتفاق دى چې د احرام په حالت كې د نكاح پيغام وركول مكروه تنزيهي يعنې خلاف اولى دى نكاح ځان ته يا بل د كولو باره كې فقهاء كرامو خپل مينځ كې اختلاف دى.

**د فقهاؤ اختلاف:** د ائمه ثلاثوو په نزد ځان له او بل له نكاح كول جائز دي. كه چا وكړه نو نكاح به نه كېږي. د احنافو امامانو په نز نكاح ځان له بل له كول مناست نه، مكروه تنزيهي دي. خو كه چا وكړه نو د ايجاب قبليدو نه وروسته نكاح كېږي. خو دومره ده چې د احرام په حالت كې جماع كول حرام دي. خلاصه دا چې د جمهورو په نزد احرام حالت كې نكاح ناجائز ده. د احنافو په نز جائز ده. خو خلاف اولى ده. (المرقات: ۵/۵۶۹)

**داختلاف منشأ:** د فقهاؤ د خوښې اختلاف خو يو اړخ ته د رواياتو تعارض دى. ټول څلور روايات دي. پدې د حضرت عثمان رضي الله عنه روايت كې نكاح ځان له يا بل له كول منع دي او حضرت يزيد بن اصم او خپله حضرت ميمونه رضي الله عنها د روايت نه معلومېږي چې د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د حضرت ميمونه رضي الله عنها نكاح په داسې حالت كې شوى ده چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم په احرام كې نه وو. بل اړخ ته د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د روايت نه په ښكاره معلومېږي چې د حضرت ميمونه رضي الله عنها نكاح د نبي كريم صلى الله عليه وسلم سره د احرام په حالت كې شوې وه. (المرقات: ۵/۵۷۰)

**دلائل:** ائمه ثلاثو د زير بحث حضرت عثمان رضي الله عنه روايت نمبر ۴ نه استدلال كړى دى چې په هغې كې محرم د نكاح نه منع كړى شوى دى. جمهورو د حضرت يزيد بن اصم حديث نمبر ۶ هم استدلال كړى دى چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم كومه نكاح د حضرت ميمونه رضي الله عنه سره كړې وه. هغه وخت كې نبي كريم صلى الله عليه وسلم د احرام په حالت كې نه وو. بلكې حلال وو. جمهورو د حضرت ابو رافع

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۰۳۰/۲ رقم الحديث: ۱۴۰۹/۴۱.

رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت نمبر ۱۸ هم استدلال کړی دی چې په هغې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت میمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په داسې حالت کې نکاح کړې وه چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په احرام کې نه وو. همدغه شان یو یل روایت په مسلم شریف کې خپله حضرت میمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه هم ثابت شوي دي. امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ، سفیان ثوری رَحِمَهُ اللهُ او ابراهیم نخعی رَحِمَهُ اللهُ دحضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث نمبر ۵ نه استدلال کړی دی. چې په هغې په وضاحت سره ذکر دې چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د احرام په حالت کې د حضرت میمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره نکاح کړي وه. همدغه شان دې حضراتو قیاس او عقلي استدلال سره هم ثابته کړي ده چې د محرم لپاره نو ټول عقود او فسوخ جائز دي. نو نکاح تړل هم جائز دي. محرم لپاره عطر لګول منع دي. خو اخستل ورله ناجائز دي. ګندلی شوي جامه اغوستل ورله منع دي. خو اخستل ورله ناجائز دي. همدغه شان جماع کول ورله منع دي. خو نکاح ورله جائز ده. خو دا چې محرم د عبادت لپاره راغلی دی نو دهغه لپاره په دونو کې شغل مناسب ندی خلاف اولی دی.

**خلاف منشاء اختلاف:** دفقهاوو په مینځ کې دخوښې نه خلاف اختلاف یو خود روایاتو اختلاف او تعارض دی دویم د دې ټولې واقعې پس منظر او تفصیل دی. هغه دا چې د حضرت میمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د نکاح واقعه داسې وشه چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله په ۷ هجري کې د عمرة القضاء لپاره مکې مکرمې ته روان شو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل ازاد شوي غلام په واسطه حضرت میمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته د نکاح پیغام واستولو. حضرت میمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په مکه مکرمه کې وسیدله. د هغې خور ام الفضل د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ښځه وه. حضرت میمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ترور وه. ابو رافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې کله د نکاح پیغام ورکړلو نو حضرت میمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هغه سعادت وګڼلو او پیغام یې قبول کړلو. او د خپلې نکاح معامله یې خپل اوخې ته وسپارله. حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مقام سرف کې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره پخیر راغلی وکړو او همدله یې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د حضرت میمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نکاح وکړه. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عمره وکړه او د معاهدې مطابق یې په مکه مکرمه کې درې (۳) ورځې قیام وکړو. د مکې خلکو د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه مطالبه وکړه چې د مکې نه لاړ شه. نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې تاسو ماله نور هم لګ د هیساریدلو مهلت راکړی، نو زه د ولیمې وعوت وکړو او په تاسو به یې هم وښورم. نو قریشو وویل چې نه داسې نه کیږي. د معاهدې مطابق ته لاړ شه. نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مکې نه مدینې ته روان شو. او د مکې نه یې په لس (۱۰) میله مسافه په مقام سرف کې قیام وکړو. او حضرت میمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هم راغله او هلته یې نکاح او اوله شپه تېره شوه. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مقام سرف کې اوله شپه تېره کړه او ولیمه یې ور کړه. د زماني عجائبو ته وګوری، چې د حضرت میمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا

په همدغه مقام سرف کې نکاح وشوه، اوله شپه تېره شوه، ولیمه ورکړی شوه او هملته مړه شوه او همل‌ته د سرک په غاړه د حضرت میمونه رضي الله عنها قبر جوړ شو. ما د هغې قبر تنعیم نه مخکې د فاطمي غونډۍ سره لیدلی دی فرضي الله عنها وَعَنْ جمیع الصحابة (المرقات ۵/۵۷۱)

ائمه ثلاثوو د زیر بحث حدیث نه د حضرت عثمان رضي الله عنه د قولي روایت نه استدلال کړی دی. د دې جواب دا دی چې دلته نهی کراهت تنزیهی باندې محمول دی. لکه څنګه چې د جمهورو په د نزلا یخطب نهی کراهت تنزیهی باندې محمول دی. همدغه شان لاینکح ولا ینکح هم کراهت تنزیهی باندې حمل دی. د فرق کولو هیڅ وجه نشته دی. چې پیغام استول جائز دي نو نکاح کول هم جائز کیدل پکار دي. جمهورو چې د یزید بن اصم او د ابو رافع د روایاتو نه کوم استدلال کړی دی. د هغې جواب دا دی چې په دي حدیث کې تزوج وهو حلال نه د واده اوله شپه، د ولیمې د دعوت رخصتي او د هغې تشهیر او ظاهریدل مراد دي یعنې نکاح خو د احرام په حالت کې وه خو د نکاح د لوازماتو ظهور هغه وخت وشو چې کله نبي کریم صلی الله علیه وسلم په احرام کې نه ؤ. (المرقات ۵/۳۸۰)

**د ترجیح وجوهات**: د پاس ذکر شوو روایاتو او د استدلالاتو په نظر دواړو اړخ ته تحقیقاتو او د جیحاتو اوږده لړۍ روانه ده. ائمه ثلاثه خپلو استدلالاتو ته ترجیح ورکولو سره وایي چې دا نکاح چې کله شوي وه، هغه وخت نبي کریم صلی الله علیه وسلم حلال وو. په احرام کې نه وو. خو چې کله د نکاح تشهیر وشو نو هغه وخت نبي کریم صلی الله علیه وسلم په احرام کې وو. حضرت ابن عباس رضي الله عنه د همغه وخت بیان کړی دی. صاحب مشکوة د حدیث نمبر ۶ په ضمن کې د امام محی السنة په حوالې سره همدغه تاویل کړی دی دا تاویل بې ځایه تکلیف دی. ځکه د نکاح او پیغام نکاح ټوله معامله د حضرت عباس رضي الله عنه په لاس کې وه. دې څنګه امکان لرلو چې د دې واقعي نه د حضرت عباس رضي الله عنه ځوي او د حضرت میمونه رضي الله عنها نبور حضرت ابن عباس رضي الله عنه تر آخر وخت پورې نا خبره وو. د احنافو ائموو خپل استدلال په څو وجوهاتو باندې راجح کړی دی. کتنه وکړئ:

۱: دا منل شوي دا چې مقام سرف د میقات دننه ځای دی. دا هم منل شوي ده چې د مدینې د خلکو میقات ذوالحلیفه دی. چې د مدینې نه په لس کلومیټره مسافه کې پروت دی. وس مکې ته تللو وخت کې د حضرت میمونه رضي الله عنها سره به نکاح شوي وي. یا به د عمری د فراغت نه وروسته راتللو کې شوي وي. که د تګ وخت کې شوي وي نو یقینا نبي کریم صلی الله علیه وسلم په احرام کې وو. او که بېرته راتللو وخت کې شوي وي نو یقینا یغیر د احرام به شوي وي. دا خبره هم منل شوي ده چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم په مکه کې هیساریدلو لپاره د مکې والو نه نور وخت غوښتلی وو او د ولیمې دعوت یې ورکړی وو. چې د هغې نه معلومه شوه چې دا نکاح د تګ په وخت کې شوي وه. ګني د

وليمي دعوت به يې څنګه ورکولو؟ او د تللو وخت نبي کريم ﷺ په احرام کې ؤ څکه د ميقات نه بغير له احرامه تېريدل ناجائز دي. (المرقات: ۵/۵۷۱)

۲: د احنافو په نزد دويمه ترجيح دا ده چې حضرت عباس رضي الله عنه او د ابن عباس رضي الله عنه تزويج د ميمونه رضي الله عنها کې فقط د يو کور نفر وو. او صاحب البيت ادرى بما فيه د مسلم قول دى.

۳: د احنافو په نزد دريمه ترجيح دا ده چې د محرم په نکاح کې روايات متعارض دي. او د تعارض په حالت کې قياس اړخ ته رجوع کېږي. او قياس دا فيصله کوي چې د محرم حاجي لپاره چې کله ټول عقود او فسوخ جائز دي. نو د نکاح کول هم جائز دي. محرم د جماع لپاره وينزه اخستلی شي. اګر که جماع نشي کولی. همدغه شان د نکاح معامله هم ده.

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ تَزَوَّجَ مَيْمُونَةَ |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ د ميمونې رضي الله عنها سره نکاح په داسې حالت کې |
| وَ هُوَ مُحْرِمٌ.[1] |
| وکړه چې نبي عليه الصلاة والسلام (د عمرة القضاء) احرام تړلی ؤ. |
| ﴿۶﴾ وَ عَنْ يَزِيدَ بْنِ الْأَصَمِّ ابْنِ أُخْتِ مَيْمُونَةَ عَنْ مَيْمُونَةَ |
| يزيد ابن اصم (تابعی) چې د ميمونې رضي الله عنها خور د (د خپلې ترور) ميمونه رضي الله عنها نه نقل کوي چې |
| أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ تَزَوَّجَهَا وَ هُوَ حَلَالٌ.[2] |
| نبي کريم ﷺ کله (د ميمونې رضي الله عنها) سره نکاح وکړه نو نبي عليه السلام د احرام په حالت کې نه ؤ |
| قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحيي السنة: وَالْأَكْثَرُونَ عَلَى أَنَّهُ تَزَوَّجَهَا حَلَالًا وَظَهَرَ أَمْرُ تَزْوِيجِهَا وَهُوَ مُحْرِمٌ ثُمَّ بَنَى بِهَا وَهُوَ حَلَالٌ بِسَرِفٍ فِي طَرِيقِ مَكَّةَ. |

## د محرم لپاره د سر وينځلو اجازت

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ يَغْسِلُ رَأْسَهُ وَ هُوَ مُحْرِمٌ.[3] |
| ابو ايوب رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ به د احرام په حالت کې خپل سر مبارک وينځلو. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۱/۴ رقم الحديث: ۱۸۳۷.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۰۳۲/۲ رقم الحديث: ۱۴۱۱/۴۸.

(۳) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۰/۴ رقم الحديث: ۱۸۴۰، ومسلم في صحيحه ۸۶۴/۲ رقم الحديث: ۱۲۰۵/۹۱.

**توضيح**: چې ويختان نه رژيږي او خوشبو نه لګي نو فقط سر وينځل جائز دي. د خوشبو والا صابن سره وينځل جائز نه دي.

## ښکر لګول جائز دي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : احْتَجَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحرِمٌ.(۱) |
| ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د احرام په حالت ډک خکر ويستلی وو. |

**توضيح**: که ويختان نه رژيږي نو خکر لګول جائز دي که ويختان رژيدل نو په لږو ويختانو صدقه ده.

## د محرم لپاره د پټۍ کولو مسئله

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ عُثْمَانَ حَدَّثَ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرَّجُلِ إِذَا اشْتَكَى عَيْنَيْهِ | | | | | |
| عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د يو سړي باره کې د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا حديث بيان کړی چې سترګې يې خوږيدلې | | | | | |
| وَ | هُوَ | مُحْرِمٌ | ضَمَّدَهُمَا | بِالصبرِ. (۲) | |
| او دا په حالت د احرام کې وُ نو ده په خپلو سترګو باندې د صبري ونې پټي وکړه. | | | | | |

**توضيح**: **تضحيد**: د باب **تفعيل** نه پټۍ کولو او ليپ کولو ته وايي. ځينو سترګو کې دوا اچولو ته هم ويلي دي. د بدن په نورو برخو باندې پټۍ لګولو کې څه باک نشته دی. خو دومره ده چې سر او سترګې په پټۍ يا په دوا سره پټول جائز ندي. که څلورمه برخه پټه کړی شوه نو دم به لازميږي ګينې صدقه لازمه ده. زير بحث حديث په مجبوری باندې محمول دی.

**الصبر** : ايلوی ته صبر وايي چې هغه يو تريخ شی دی. (المرقات: ۵/۵۷۳)

## د محرم لپاره چهترۍ وغيره استعمالول جائز دي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۰﴾ | وَ | عَنْ | أُمِّ | الْحُصَيْنِ | قَالَتْ | : | رَأَيْتُ | أُسَامَةَ وَ بِلَالًا |
| ام حصين رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وايي چې ما اسامه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او بلال رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وليدل چې په هغې کې يو (اسامه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ) | | | | | | | | |
| وَأَحَدُهُمَا آخِذٌ بِخِطَامِ نَاقَةِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْآخَرُ رَافِعٌ ثَوْبَهُ يَسْتُرُهُ مِنَ الْحَرِّ | | | | | | | | |
| خپله ټوټه اوچته کړي وه (د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د سر مبارک د پاسه) د لمر د ګرمۍ د تاو نه سوري کولو لپاره | | | | | | | | |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/٤ رقم الحديث :۱۸۳۵، ومسلم في صحيحه ۸۶۲/۲ رقم الحديث: ۱۲۰۲/۸۷.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۸۶۳/۲ رقم الحديث ۱۲۰٤/۸۹.

| حَتَّى | رَمَى | جَمْرَةَ | الْعَقَبَةِ.[1] |
|---|---|---|---|
| تر دې چې نبي کریم ﷺ په جمره عقبه باندې کاڼي ویشتل. | | | |

**توضیح**: خطام: د اوښې زين ته ويل کېږي. خاء باندې کسره ده. زين او خطام دواړه يو شي دی. (المرقات ۵/۵۷۴)

**رافع ثوبه**: د دینه معلومه شوه چې د محرم په سر باندې سیوری کول جائز دي. اگر که هغه چهترۍ وي یا چهت وي یا گاړی او داسې نور شیانو سره وي. په شرط د دې چې هغه په سر لگیدلې نه وي. د اکثرو فقهاو همدغه مسلک دی. خو امام مالک رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله سوری کولو ته مکروه وايي. کیدی شي خلاف اولی وي. او شیعه گان دیته حرام وايي. نو ځکه هغوی چې د حج موسم کې هغوی په کومو بسونو کې سفر کوي نو په هغه بسونو باندې چهتونه نه وي.

## د سر خرئیلو جزا

| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَرَّ بِهِ |
|---|
| د کعب رضي الله عنه بن عجره نه روایت دی چې نبي کریم ﷺ د هغه په خوا کې تېرېدلو کله چې هغه |
| وَ هُوَ بِالْحُدَيْبِيَةِ قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ مَكَّةَ وَ هُوَ مُحْرِمٌ |
| په مکه کې د ننوتلو نه مخکې په حدیبیه کې ؤ مخکې د دې نه چې داخل شي مکې ته او کعب رضي الله عنه د احرام په حالت کې ؤ (یعنې دا د هغه موقع ذکر دی چې نبي علیه السلام د خپل ملگرو سره مکې ته روان شوی ؤ خوبیا وروسته دیوې معاهدې په بنیاد چې هغې ته حدیبیه وايي، ټول هلته نه د عمرې کولو نه |
| وَ هُوَ يُوقِدُ تَحْتَ قِدْرٍ |
| بغیر بیرته لاړل بهر حال کله نبي علیه السلام د کعب رضي الله عنه په خوا تېرېدلو نو) ده د نغري لاندې اور بلولو |
| وَ الْقَمْلُ تَهَافَتُ عَلَى وَجْهِهِ فَقَالَ: |
| او سپږې (د سر نه رواني وې) د هغې په خله لیدلې نبي علیه السلام (د دې په لیدو ورته) وفرمایل چې آیا |
| أَتُؤْذِيكَ هَوَامُّكَ ؟. قَالَ: نَعَمْ. قَالَ: فَاحْلِقْ رَأْسَكَ |
| داسپږې تا ته تکلیف درکوي؟ ده وویل چې آو. نو نبي علیه السلام ورته وفرمایل چې ته دې داسر وخروه |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۹۴۴/۲ رقم الحديث: ۱۲۹۸/۳۱۲.

| وَ أَطْعِمْ فَرَقًا بَيْنَ سِتَّةِ مَسَاكِينَ . وَالْفَرَقُ : ثَلَاثَةُ آصُعٍ أَوْ صُمْ |
|---|
| او (دجزا په توګه) يو فرق خوراک شپږ مسکينانو باندې وخوره او فرق درې ص ع وي. يا روژې ونيسه |
| ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ أَوِ انْسُكْ نَسِيكَةً .[1] |
| دوه يا درې ورځې يا يو څاروی چې حلالولو جوګه وي حلال يې کړه. |

**توضيح**: **القدر**: نغري ته قدر وايي **قاف** مکسور دی، **دال** ساکن دی. **يوقد ايقاد** اور لګولو ته وايي.

**القمل**: سپګې ته وايي. (المرقات: ۵/۵۷۴)

**يتهافت**: باب **تفاعل** نه د مضارع صيغه ده. دليدلو په معنی دي. (المرقات: ۵/۵۷۴)

**هوامك**: دا د **هامة** جمع ده. د زمکې حشراتو ته وايي. دلته سپګې مراد دي. (المرقات: ۵/۵۷۴)

**الفرق**: په درې پيمانو کې د يوې پيمانې نوم دی. بهرحال که د مجبورۍ په وجه سر وخرئيل شي نو اختيار شته دی. خو د جزا په توګه به دريو تاوانونو کې يو تاوان ورکوي. يا خو شپږ مسکينانو ته نيم نيم صاع غنم ورکړه، يا درې ورځي روژې ونيسه يا د حلاليدلو قابل کوم يو څاروی حلال کړه.

قرآن کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې الله تعالى د دې ترتيب داسې ذکر کړی دی: ﴿فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِّن رَّأْسِهِ فَفِدْيَةٌ مِّن صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ﴾ (سورة بقرة آيت: ۱۹۶)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## په احرام کې د ښځو لپاره ممنوع شيان

| ﴿۱۲﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ : أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَنْهَى |
|---|
| دابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دی چې ده د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي، چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به منع |
| النِّسَاءَ فِي إِحْرَامِهِنَّ عَنِ الْقُفَّازَيْنِ وَ النِّقَابِ |
| کولې ښځې د احرام په حالت کې د دستاني او نقاب اچولو نه (هغه نقاب چې په خوله يې لګېږي) او |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/٤ رقم الحديث: ۱۸۱٤، ومسلم في صحيحه ۸٦۱/۲ رقم الحديث: ۱۲۰۱/۸۳.

| وَمَا مَسَّ الْوَرْسُ وَ الزَّعْفَرَانُ مِنَ الثِّيَابِ وَ لْتَلْبَسْ بَعْدَ |
|---|
| داسې جامې دې وانغوندې چې په هغې باندې زعفران او ورس لړېدلي وي. او وادې غوندي پس د |
| ذَلِكَ مَا أَحَبَّتْ مِنْ أَلْوَانِ الثِّيَابِ |
| احرام نه (يعنې د احرام وتلو نه وروسته) د جامو په قسمونو کې هر يو قسم چې وغواړي، اګر که هغه |
| مُعَصْفَرٍ أَوْ خَزٍّ أَوْ حُلِيٍّ أَوْ سَرَاوِيْلَ أَوْ قَمِيْصٍ أَوْ خُفٍّ.[1] |
| د کسم په رنګ باندې رنګ وي که ريښم وي او که پاجامه وي او يا موزه وي. |

**توضيح: بعد ذلك:** يعنې د وتلو نه وروسته د ښځو لپاره هر قسمه جامه اغوستل جائز دي. هر قسمه زيورات جائز دي. ريښم هم جائز دي. او موزه هم جائز ده. خو د احرام په حالت کې د ښځو لپاره نقاب اغوستل منع دي. دستانې منع دي او ورس او زعفرانو رنګ شوې. جامې هم منع دي. (المرقات: ۵/۵۷۶)

## د احرام په حالت کې د پردې طريقه

| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ الرُّكْبَانُ يَمُرُّوْنَ بِنَا وَنَحْنُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| عائشه رضي الله عنها وايي چې قافلې به تيرېدلې په مونږ باندې او مونږ (د سفر د وران کې) د نبي عليه السلام سره |
| مُحْرِمَاتٌ فَإِذَا |
| يو ځای وو د احرام په حالت (او د احرام په وجه زمونږ خلې ګولاوې وې) ، نو کوم يوه قافله به چې هم |
| حَاذَوْا بِنَا سَدَلَتْ إِحْدَانَا جِلْبَابَهَا مِنْ رَأْسِهَا |
| زمونږ په مخه تېرېدله نو هرې ښځې به (د پردې په غرض) خپل څادر په خپل سر باندې تاو کړو او په |
| عَلَى وَجْهِهَا فَإِذَا جَاوَزُوْنَا |
| خله به يې واچولو (چې هغه څادر د هغوی په خله نه لګېدو) او چې قافله به زمونږ د مخې نه تېره شوه |
| كَشَفْنَاهُ. وَلِابْنِ مَاجَه مَعْنَاهُ.(۲) |
| نو مونږ به خپلې خلې پرانستلې. |

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۴۱۲/۲ رقم الحديث :۱۸۲۷

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۴۱۶/۲ رقم الحديث :۱۸۳۳

**توضیح**:د دې حدیث نه معلومه شوه چې څومره حده پورې امکان وي نو د احرام په حالت کې ښځه خپل مخ د پردې سره نه پټ کړي. داسې نه وي چې د احرام او عبادت په مینځ کې د خپلو مخونو نمائش شروع کړي. خله او مخ پټول داسې هم پټیدلی شي چې د پردې ټوټه مخ سره کلکه نه شي او پرده وکړی شي. د همت ضرورت دی.

## په احرام کې صرف تیل استعمالول جائز دي

| |
|---|
| ﴿۱٤﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَدَّهِنُ بِالزَّيْتِ وَهُوَ مُحْرِمٌ غَيْرَ |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د زیتونو تیل استعمال د احرام په حالت کې بغیر |
| المقتّتِ يَعني غيرَ المطيّبِ. [1] |
| د خوشبو والا . |

**توضیح**: **مقتت**: دا هغه تیلو ته وایي چې په هغې کې خوشبودار بوټي مات کړی شوي وي.

**يدهن**: که تیل د هر قسمه خوشبو نه پاک وي نو د هغې استعمال د دې حدیث نه ثابتیږي. خو که تیل خپله خوشبوداره وي او یا په هغې کې خوشبو اچولی شوي وي. نو پدې کې دومره وضاحت شته دي چې تیل هم په ډیر مقدار سره استعمال نه وي. که دا خاص تیل هم په ډیر مقدار هم استعمال کړی شوي وي. د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په دم خامخا لازمیږي. خو د صاحبینو په نز فقط صدقه لازمیږي. اختلاف هغه وخت دی. چې تیل د خوشبو نه پاک وي. که په تیلو کې خوشبو وي نو دم به خامخا لازمیږي. خو پدې کې دا خبره یاد ساتل پکار دي که خوشبورداره تیل د دوائي لپاره استعمال کړی شوي وي نو دم به نه راځي. او که د خوشبو په غرض استعمال کړی شوي وي نو دم به خامخا لازمیږي. (المرقات :۵/۵۷۷)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## ګنډلې شوې کپړه په بدن باندې اچول څنګه دي؟

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَجَدَ الْقَرَّ |
| نافع رَحِمَهُ اللهُ (تابعی) وایي چې د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (د احرام په کې په یوه موقع باندې) یخنې وشوه. |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۲۹٤ رقم الحديث :۹٦۲

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | : أَلْقِ | عَلَيَّ | ثَوْبًا | نَافِعُ | فَأَلْقَيْتُ | عَلَيْهِ | بُرْنُسًا |

نو ده وویل چې نافع! په ما باندې څه ټوټه واچوه نو ما د هغوی په بدن باندې باراني ټوټه واچوله نو

فَقَالَ : تُلْقِي عَلَيَّ هَذَا وَ قَدْ نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

وې ویل چې ته زما په بدن باندې دا (باراني) اچوې؟ حال دا چې منع کړې ده رسول الله ﷺ

أَنْ يَلْبَسَهُ الْمُحْرِمُ ؟ . [1]

ددې د اغوستلو نه په حالت د احرام کې.

**توضیح:** برنساً: برساتی ته وایي. د یخنی په وجه حضرت ابن عمر رضي الله عنه حضرت نافع ته وویل چې زما په بدن باندې څه ټوټه واچوه، نو هغوی پرې باراني ټوټه واچوله. نو حضرت ابن عمر رضي الله عنه خفه شو او وې فرمایل چې زه د احرام په حالت کې یم او ته په ما باندې ګنډلی شوي ټوټه اچوې؟ تر کومه چې د احنافو فقهی مسلک دی. نو مسئله داسې ده. که ګنډلی شوي ټوټه غیر معتاد طریقی سره په بدن باندې اچولی شوي وي نو په دې سره هیڅ نقصان نه کیږي. (المرقات: ۵/۵۷۸)
حضرت ابن عمر رضي الله عنه انکار ځکه وکړو کیدی شي چې د هغې مسلک همدغه شان وو. چې ګنډلی شوي ټوټه په هیڅ حالت کې استعمالول محرم لپاره جائز ندي. یا ابن عمر رضي الله عنه ځکه انکار کړی وو چې حضرت نافع په هغې باندې باراني ټوټه اچولې وه. چې د هغې سرپرې پټ شوی وو.

﴿۱٦﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَالِكٍ بْن بُحَيْنَةَ قَالَ : إِحْتَجَمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

عبدالله ابن مالک رضي الله عنه چې د ابن بحینه ځوی دی وایي چې ښکرولګولو رسول الله ﷺ د

وَهُوَ مُحْرِمٌ بِلَحْيِ جَمَلٍ مِنْ طَرِيقِ مَكَّةَ فِي وَسْطِ رَأْسِهِ . [2]

مکې په لاره د لحی جمل په مقام باندې د احرام په حالت کې د خپل سر په مینځ کې.

**توضیح:** لحي جمل: د مکې او مدینې په مینځ کې د یو ځای نوم لحی جمل دی. (المرقات: ۵/۵۸۹)

وسط رأسه: که د ښکر لګولو په وجه سر ځلورمه برښه د دینه ډېره برښه ویختان غوڅ کړی شو نو په محرم باندې به دم لازمیږي. که کم وي نو صدقه به لازمیږي. او کوم ځای باندې چې ویختان نه وي

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۴۱۳/۲ رقم الحديث :۱۸۲۸

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۰/۴ رقم الحديث :۱۸۳۶، ومسلم في صحيحه ۸۶۲/۲ رقم الحديث :۸۸/۱۲۰۳

نو هلته په خکر لګولو سره به هېڅ نه لازمېږي. پخپله د ويختانو رجيدلو سره هم نه لازمېږي. پدې حديث کې د عبدالله بن مالک بن بحينه نوم دی. په ښکاره خو داسې لګي چې د مالک بحينه ځوي دی. حال دا چې مالک د بحينه خاوند دی. او د عبدالله ځوي دی. نو د عبدالله اولنی صفت ابن مالک دی. او د هغې دويم صفت بحينه دی او دا د هغې مور ده. (المرقات :۵/۵۷۹)

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: احْتَجَمَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ عَلَى ظَهْرِ الْقَدَمِ |
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ښکرولګولو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د احرام په حالت کې د خپلو ښپو په شا باندې |
| مِنْ وَجَعٍ كَانَ بِهِ.[1] |
| ځکه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ درد وو. |
| ﴿۱۸﴾ وَ عَنْ أَبِي رافِعٍ قَالَ: تَزَوَّجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَيْمُونَةَ وَ هُوَ |
| ابو رافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله ميمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره نکاح وکړه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| حَلَالٌ وَ بَنَى بِهَا وَ هُوَ حَلَالٌ |
| د احرام په حالت کې نه ؤ او چې کله يې د هغې سره اوله شپه تېره کړه نو هم د احرام په حالت کې نه ؤ |
| وَكُنْتُ أَنَا الرَّسُولَ بَيْنَهُمَا. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ[2] |
| خو د هغې دواړو په مينځ کې د نکاح پيغام وړونکی زه وم. |



(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۴۱۸/۲ رقم الحديث :۱۸۳۷

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲۰۰/۳ رقم الحديث :۸۴۱

# باب المحرم يتجنب الصيد

## ښکار نه د محرم لپاره د ممانعت بيان

قال الله تعالی: ﴿أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهُ مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِلسَّيَّارَةِ وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا﴾ (سورة المائده آيت:۹۶).

په دې باب کې د صيد نه مراد هر هغه ځاروی دی چې هغه د خپل تخليق په اعتبار سره متوحش وي او توالد او تناسل په وچه وي، په اوبو کې نه وي. لهذا که عارضي توګه باندې کوم ځاروی مانوس شو لکه هوسۍ او داسې نور ځاروي نو د هغې به اعتبار نه وي. د دې ښکار مسلسل منع دی. همدغه شان که کومې مرغۍ يا د وچې ځاروي په اوبو کې اوسيدل شروع کړل لکه مرغابۍ او داسې نور، نو د دغه عارض په وجه به هغه د ښکار نه خارج نه وي. هغه به په منع کړی شوي ښکار کې شمارل کيږي. د محرم لپاره د اوبو ښکار مطلقًا جائز دی. او که د وچې ښکار ماکول اللحم دی نو مطلقًا حرام دي. او که غير ماکول اللحم دي نو پدې کې تفصيل شته دی. چې آيا هغه ضرر رسونکې دي او که نه. که ضرر رسونکې نه وي نو د هغې ښکار کول هم مطلقًا حرام دی. که ضرر رسونکې دي او په اوله کې حمله کوي، نو د داسې ځاروي وژل د محرم لپاره جائز دي. لکه زمری او شرمخ او داسې نور دي. او که ضرر نه رسونکې ځاروي هم محرم ته د ضرر رسولو لپاره راکوځيږي نو د دفاع په خاطر د هغې په وژلو کې څه باک نشته دی. د ښکار باره کې خو يو د حاجي د احرام حالت دی. پدې حالت کې که حاجي چرته هم وي، هغه د وچې ښکار نشي کولی. دويم د حرم د زمکې حيثيت دی، پدې حيثيت کې که حاجي په احرام کې وي يا حلال وي خو ښکار نشي کولی. لکه يو قسمه ممنوعات د احرام دي او بل قسم له ممنوعات د حرم دي. ځينې شيان داسې دي چې د هغې د ضرر رسولو په وجه په حرم کې د هغې وژل جائز دي. د احرام په حالت کې هم جائز دي. لکه کارغه دی، خر دی، تپوس دی، مار دی، لړم او مګه ده، ليونی سپی دی. د دې ټولو وژل حر حالت کې جائز دي. (المرقات: ۵/۵۸۰)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### محرم د ښکار غوښه خوړلی شي او که نه؟

| ﴿۱﴾ عَنِ الصَّعْبِ بْنِ جَثَّامَةَ أَنَّهُ أَهْدٰى لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِمَارًا وَحْشِيًّا |
| --- |
| صعب رضي الله عنه ابن جثامه نه روايت دی دوی په هديه کې راوليږلو رسول الله صلی الله عليه وسلم ته وحشي خر |

| وَ هُوَ بِالْأَبْوَاءِ أَوْ بِوَدَّانَ |
|---|
| او نبي عَلَيْهِ السَّلَام په مقام ابواء یا ودّان کې (چې د مکې او مدینې په مینځ دی) قیام کولو. نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| فَرَدَّ عَلَيْهِ فَلَمَّا رَأَىٰ مَا فِي وَجْهِهُ |
| دا بېرته وروليګلو چې کله نبي عَلَيْهِ السَّلَام د دې په وجه د هغه په مخ غم (او افسوس) اثرات محسوس کړل |
| قَالَ : إِنَّا لَمْ نَرُدَّهُ عَلَيْكَ إِلَّا أَنَّا حُرُمٌ .[1] |
| نو وي فرمایل چې مونږ ستا هدیه ځکه بېرته دروليګله چې مونږ احرامونه تړلي دي. |

**توضیح:فرد علیه:** یعنې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د احرام په حالت د ښکار غوښه قبوله نکړله. وي فرمایل چې دا هدیه کونکې ته بېرته ولیګی. او وي فرمایل چې خفه نشي، مونږه په احرام کې یو. ځکه د ښکار غوښه نه شو قبلولی. اوس په فقهي نظر سره او د روایاتو د اختلاف نه د مسئلې تفصیل داسې دی. د ټولو فقهاو پدې اتفاق دی چې د محرم لپاره د وچې شکار کول هم حرام دی او پدې کې مرسته کول هم حرام دي. نو که محرم په وچه ښکار وکړلو یا یې د ښکار کونکې مرسته وکړه یا یې د ښکار کونکې ارخ په اشاره سره مشرولي وکړه. نو په دغه ټولو صورتونو کې د محرم لپاره د ښکار غوښه خوړل ناجائز دي. که یې وخوړله نو تاوان به ورکوي. او که غیر محرم د محرم په نیت ښکار وکړلو او د محرم هم په هغې کې مرسته نه وي، نو ایا محرم په صورت دغه غوښه خوړلی شي او که نه؟ پدې کې د فقهاء کرامو اختلاف دی. (المرقات ۵/۵۸۱)

**د فقهاؤ اختلاف:** حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت جابر بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت طاؤس رَحِمَهُ اللهُ ارخ ته منسوب دي چې د دوي په نزد په هېڅ صورت کې محرم لپاره د ښکار غوښه خوړل یا قبلول جائز نه دي. اګر که غیر محرم نیت وکړي او که نه. او همدغه د اسحاق بن راهویه رَحِمَهُ اللهُ او سفیان ثوري رَحِمَهُ اللهُ مسلک دی. چې محرم مطلقًا د وچې د ښکار غوښه نشي قبلوي. دویم مسلک د ائمه ثلاثو دی. هغه فرمایي که غیر محرم د ښکار کولو وخت کې محرم ته د غوښې د خوړلو نیت وکړو نو د محرم لپاره د هغې غوښه خوړل جائز نه ده. (المرقات ۵/۵۸۱)

دویم مسلک د احنافو د ائمو دی. هغه فرمایي که د غیر محرم په ښکار کې د محرم له ارخ نه څه مرسته نه وي نو فقط د نیت کولو په وجه دغه غوښه د محرم لپاره حرامه نه ده.

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۱/۴ رقم الحديث :۱۸۲۵، ومسلم في صحيحه ۸۵۰/۲ رقم الحديث:۱۱۹۳/۵۰.

**دلائل**: اسحاق بن راهویه او داسې نور څېنو سلفو د بحث د لاندې حدیث نه استدلال کړی دی. چې پدې کې نبي کریم ﷺ د ښکار د غوښه بېرته لیګلي ده. او وجه یې دا بیان کړله چې مونږه په احرام کې یو نو معلومه شوه چې محرم د ښکار غوښه نشي خوړلی. اګر که نیت وکړي او که ونه کړي. ائمه ثلاثو د حضرت جابر رضی الله عنه د حدیث نمبر ۵ نه استدلال کړی دی. په هغې کې د **اویصادلکم** الفاظ دي. چې د هغې نه اندازه کیږي که د محرم په نیت سره ښکار وشو نو هغه هم ناجائز دي. ائمه احنافو د حضرت ابو قتاده رضی الله عنه د لاندې حدیث نمبر ۲ نه استدلال کړی دی. چې په هغې نبي کریم ﷺ د خوړونکو صحابوو نه تپوس وکړلو چې تاسو د ابو قتاده رضی الله عنه مرسته وکړه یا مو حکم ورکړو یا مو ورته اشاره وکړه. نو هغوی په نفي کې جواب ورکړلو. نو نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل چې پاتې شوي غوښه وخوری. او خپله نبي کریم ﷺ هم د هغې نه وخوړله. دلته نبي کریم ﷺ د چانه د حضرت ابو قتاده رضی الله عنه د نیت پو ښتنه ونه کړه او ښکاره خبره ده چې وحشي خر غټ څاوری وي. حضرت ابو قتاده رضی الله عنه به خامخا خپل ملګرو ته د غوښې د خوړلو نیت کړی وي. لهذا نیت باندې پاپندي نه شي لګول کیدلی. د احنافو ائمو د فصل ثالث حدیث نمبر ۱۱ نه هم استدلال کړی دی. چې هغه ډیر واضحه دلیل دی. (المرقات ۵/۵۸۱)

**جواب**: اسحاق بن راهویه او څېني سلفو د استدلال جواب دا دی چې حضرت صعب بن جثامه رضی الله عنه د نبي کریم ﷺ په خدمت کې ژوندی وحشي خر راسولی وو. د بحث د لاندې حدیث کې **حماراً وحشیاً** الفاظ دي. چې هغه په غوښه باندې نشي ویلی کیدی. او ژوندی ښکار محرم د ځان سره نشي ایخودلی نو ځکه یې بېرته ولیګل. د احنافو دا جواب پدې حدیث بالکل واضح او برمحل دی. خو د مسلم په څېنو روایاتو کې د **لحم حمار وحش** الفاظ راغلي دي. هلته دا جواب نشي چلیدلی. خو امام ترمذی فرمایې چې **وهو غیر محفوظ** یعنې د حمار وحش ثابت دي. او د لحم حمار وحش غیر محفوظ دي. امام بخاري رحمه الله هم چې صعب بن جثامه رضی الله عنه د روایت لپاره کوم عنوان تړلی دی د هغې نه معلومیږي چې معامله د ژوندي خر حاضرول وو . عنوان دا دی **باب اذا اهدی للمحرم حمراً وحشیاً حیاً**. (اوجز المسالک ج ٦ ص ۳۷۴)

د صعب بن جثامه رضی الله عنه دویم جواب دا دی چې نبي کریم ﷺ سد الذرائع دا یې رد کړی دی چې خلک د احرام په حالت کې په ښکار کې اخته نشي. دا جواب ډیر ښه دی. ائمه ثلاثو چې **اویصادلکم** والا روایت نمبر ۵ نه کوم استدلال کړی دی. د هغې جواب دا دی چې پدې کې مضاف

محذوف دی. ای یصادلامرکم اوبدلالتکم، او امر کول یا مشرولي کول خو جائز نه دي. هسې هم د دې روایت نه د جمهورو استدلال پوره نه دی. ځکه په روایت کې څو احتمالات دي. ژوندی ښکار هم مراد کیدی شي. مرسته او اشاره او د دلالت احتمال هم کیدی شي. لهذا د حضرت ابوقتاده رضي الله عنه صریح او صحیح روایت خپلول ډیر غوره دي. چې د هغې تخریج بخاری او مسلم کړی دی. او پدې کې تفصیلي قصه ده. (المرقات ۵/۳۸۶)

## د غیر محرم د ښکار غوښه محرم خوړې شي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ أَنَّهُ خَرَجَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ابي قتاده رضي الله عنه باره کې روایت دی چې داروان ؤ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره (د حدیبې واقعې په |
| فَتَخَلَّفَ مَعَ بَعْضِ أَصْحَابِهِ وَ هُمْ مُحْرِمُونَ |
| موقع مکې ته) نو دا د خپل یو څو ملګرو نه وروسته پاتې شو چې احرامونه یې تړلي وو (د عمرې لپاره) |
| وَ هُوَ غَيْرُ مُحْرِمٍ فَرَأَوْا حِمَارًا وَحْشِيًّا |
| خو ابوقتاده رضي الله عنه د احرام په حالت کې نه ؤ نو (په لاره یو ځای) دده ملګرو وحشي خر ولیدو خو د |
| قَبْلَ أَنْ يَرَاهُ فَلَمَّا رَأَوْهُ تَرَكُوهُ حَتَّى رَآهُ أَبُو قَتَادَةَ |
| ابوقتاده رضي الله عنه نظر پرې نه ؤ لګیدلی، دده ملګرو فقط دې وحشي خر باندې نظر لګیدلی ؤ (او د |
| فَرَكِبَ فَرَسًا لَهُ فَسَأَلَهُمْ أَنْ يُنَاوِلُوهُ سَوْطَهُ |
| ښکار کولو په عرض) په آسونو سواره شو او د خپلو ملګرو نه یې چابق وغوښتو خو هغوی د (د دې |
| فَأَبَوْا |
| وجې چې پدې ښکار کې زمونږ مرسته شامله نشي) د چابق ورکولو نه انکار وکړو. ابوقتاده رضي الله عنه |
| فَتَنَاوَلَهُ فَحَمَلَ عَلَيْهِ فَعَقَرَهُ |
| د (آس نه کوز شو) او خپله یې چابق را واخیستو او په وحشي خره یې حمله وکړه تر دې چې هغه یې مړ کړو |
| ثُمَّ أَكَلَ فَأَكَلُوا |
| بیا یې (غوښه تیاره کړه) خپله یې هم وخوړه او په ملګرو یې هم وخوړه، خو دده ملګري (د غوښې په |

فَنَدِمُوا

خوراک) پښیمانه شو (ځکه هغوی ګمان وکړو چې د محرم لپاره مطلق د ښکار غوښه حرامه ده، سمه

فَلَمَّا أَدْرَكُوا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ سَأَلُوهُ

نه ده) نو کله چې دوی د رسول الله ﷺ سره مخ شو نو نبي علیه السلام نه یې (د هغې حکم) پوښتنه وکړه

قَالَ

(چې آیا د هغه وحشي څاروي غوښه خوړل زمونږ لپاره جائزو او که نه؟) نو نبي علیه السلام ترې پوښتنه وکړه

هَلْ مَعَكُمْ مِنْهُ شَيْءٌ ؟ قَالُوْا : مَعَنَا رِجْلُهُ

چې تاسو سره د هغې غوښې نه څه پاتې دي او که نه؟ دوی وویل چې مونږ سره د هغې خپې پاتې دي

فَأَخَذَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَأَكَلَهَا.[1]

نو را واخیستي نبي کریم ﷺ دغه خپې او (تیاري یې کړي) او ویخوړلي (دغه شان نبي کریم

ﷺ ښکاره کړل چې د دې غوښه ستاسو لپاره سم وو)

وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا: فَلَمَّا أَتَوْا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: أَمِنْكُمْ أَحَدٌ أَمَرَهُ أَنْ يَحْمِلَ عَلَيْهَا؟ أَوْ أَشَارَ إِلَيْهَا؟ قَالُوا: لَا قَالَ: فَكُلُوا مَا بَقِيَ مِنْ لَحمِهَا.

**توضیح**: حضرت ابو قتاده رضي الله عنه خپله په احرام کې نه وو. نور صحابه په احرام کې وو. او دا واقعه د حدیبي په موقع باندې شوي وه. پدې خبره هم پوهیدل پکار دي چې د احرام په حالت هر ځای کې د محرم لپاره حرام دي. خو که د احرام په حالت کې نه وي نو بیا د حرم په حدودو کې حرام دي. د حرم د حدودو نه بېرون جائز دي. حضرت ابو قتاده رضي الله عنه د حرم د حدودو نه بېرون ښکار کړی وو. دا حدیث پدې خبره باندې په واضحه دلالت کوي چې د محرم لپاره د ښکار غوښه خوړل جائز دي. خو پدې شرط چې هغه ښکار هغې نه خپله کړی وي او نه یې د چا مرسته کړي وي. نو ځکه دا حدیث د احنافو دلیل دی. کوم خلک چې مطلقًا د شکار غوښې ته ناجائز وایي، نو په هغوی باندې دا حدیث حجت دی. همدغه شان حضرت ابو قتاده رضي الله عنه د وحشي خر ښکار فقط د خپل ذات لپاره نه کړی، یقینًا د هغې نیت به خپلو ملګرو باندې غوښه خوړل وو. لهذا دا حدیث په جمهورو باندې هم حجت دی. (المرقات ۵/۵۸۲)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۹/۴ رقم الحديث :۱۸۲۴، ومسلم في صحيحه ۸۵۱/۲ رقم الحديث: ۱۱۹۶/۵۶.

## هغه ځاروي چې هغه په حالت احرام او حرم کې وژل ناجائز دي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : " خَمْسٌ لَا جُنَاحَ |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي: پنځه ځاروي دي چې څه باک نشته |
| عَلٰى مَنْ قَتَلَهُنَّ فِي الْحِل وَالْإِحْرَامِ: الْفَأْرَةُ وَالْغُرَابُ وَ الْحِدَأَةُ وَ الْعَقْرَبُ وَ الْكَلْبُ الْعَقُوْرُ."[۱] |
| دهغې په قتل باندې په حرم کې او په حالت د احرام کې ۱: مږه ۲: کارغه ۳: ټپوس ۴: لړم ۵: ليوني سپی |

**توضيح**: **الغراب**: د دينه کارغه مراد دی. زاغ مراد نه دی. چې د هغې مکوښه سره وي. او پنجې يې هم سري وي. هغه کارغه نه وي. نو د دې وجې نه به په بل روايت کې د **غراب** سره د **ابقع** لفظ هم وي. (المرقات ۵/۵۸۲)

**الحدأة**: د **العنبة** په وزن باندې دی. په بل روايت کې همدغی ته **الحديد** ويل شوي دي. ټپوس ته وايي. د ټپوس او خچر په ورو غټو ټول قسمونه پدې کې شامل دي. (المرقات ۵/۵۸۲)

**العقرب**: دا لړم ته وايي. په بل روايت کې د مار ذکر هم شته دی. دې قسمه نور حمله کونکې نور ضرر رسونکې د زمکې حشرات هم پدې حکم کې شامل دي. (المرقات ۵/۵۸۲)

**الکلب العقور**: حمله کونکی او شلونکی او ټپي کونکې سپی مراد دی. د دې په حکم کې ټول حمله کونکې ځاروي شامل دي. په بل روايت کې د فواسق لفظ هم راغلی دی. مطلب دا دی چې د دې ځارو د خباثت او ورانی او ضرر رسولو په وجه د دې وژل جائز دي. علماوو ليکلي دي چې پدې پنځو (۵) ځارو کې حصر نشته دی. بلکې د ضرر رسولو صفت چې په کوم ځاوري کې وي نو د هغې وژل هم جائز دي. مثلاً مېږی، ماشی، سپږه، منګړه او داسې نور شيان. (المرقات ۵/۵۸۲)

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : خَمْسٌ فَوَاسِقُ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې وي و فرمايل چې ضرر رسونکې پنځه دي چې |
| يُقْتَلْنَ فِي الْحِلِّ وَ الْحَرَمِ : |
| هغه د حرم د حدودو د ننه او بهر هم وژلی شي. (وژونکی که د احرام په حالت کې وي او که د احرام نه بهر |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۵۵/٦ رقم الحديث: ۳۳۱٤، ومسلم في صحيحه ۸۵٦/۲ رقم الحديث: ٦٦/۱۱۹۸.

اَلْحَيَّةُ وَالْغُرَابُ الْأَبْقَعُ وَالْفَأْرَةُ وَالْكَلْبُ الْعَقُورُ وَالْحُدَيَّا .[1]

وي) ۱: مار ۲: ابلق کارغه ۳: مږه ۴: لیوني سپی ۵: تپوس

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## که مرسته نه وي نو د ښکار غوښه د محرم لپاره حلاله ده

﴿۵﴾ عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : لَحْمُ الصَّيْدِ لَكُمْ فِي الْإِحْرَامِ حَلَالٌ

جابر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم و فرمایل غوښه د ښکار ستاسو لپاره دا حرام په حالت کې

مَا لَمْ تَصِيدُوهُ أَوْ يُصَادُ لَكُمْ .[2]

حلاله ده خو په دې شرط چې هغه ښکار نه تاسو کړی وي او نه ستاسو لپاره شوی وي.

## د ملخ د ښکار مسئله

﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : الْجَرَادُ مِنْ صَيْدِ الْبَحْرِ .[3]

ابو هریره رضي الله عنه د نبي علیه السلام نه نقل کوي چې نبي علیه السلام و فرمایل: ملخ د دریاب د ښکار پشان دی

**توضیح:** صید البحر: د دې جملې مطلب دا دی چې ملخ د سمندر د ماهیانو پشان دی. د دې ذبح کول ضروري ندي. د ذبح کولو نه بغیر یې خوړلی شي. لهذا احناف فرمایي چې د دې تشبیه مطلب دا ندی چې د ملخ ښکار کول د محرم لپاره جائز دی. که کوم محرم ملخ مړ کړي نو مناسبه صدقه به کوي. خو نورو علماو دا مطلب بیان کړی دی چې ملخ د سمندر د ماهیانو په شان دی او د سمندر د ماهیانو ښکار د محرم لپاره جائز دی. نو ځکه د ملخ هم جائز دی. دا د حدیث سره موافق دی. (المرقات ۵/۵۸۶)

## د حمله کونکې ځناوري د وژلو حکم

﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : يَقْتُلُ

ابي سعید خدري رضي الله عنه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې نبي علیه السلام و فرمایل چې مړ دې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۵۵/۶ رقم الحديث :۳۳۱۴، ومسلم في صحيحه ۸۵۶/۲ رقم الحديث: ۱۱۹۸/۶۶.

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۴۲۷/۲ رقم الحديث :۱۸۵۱

(۳) أخرجه ابوداود في السنن ۴۲۹/۲ رقم الحديث :۱۸۵۳

| الْمُحْرِمُ السَّبُعَ الْعَادِيَ .[1] |
|---|
| کړي محرم حمله کونکی ځاروی. |

## د ګورکخ د ښکار او د غوښې خوړلو مسئله

| ﴿۸﴾ وَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي عَمَّارٍ قَالَ : سَأَلْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ عَنِ الضَّبُعِ |
|---|
| عبدالرحمن بن ابي عمّار (تابعی) وايي چې ما د جابر ابن عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه ذګورکخ باره کې تپوس |
| أَصَيْدٌ هِيَ ؟ فَقَالَ : نَعَمْ فَقُلْتُ : أَيُؤْكَلُ ؟ |
| وکړو چې آيا دا ښکار دی؟ نودوی وويل: چې آو! ما بيا تپوس وکړو چې آيا د هغې غوښه خوړل شي؟ |
| فَقَالَ: نَعَمْ فَقُلْتُ : سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ؟ قَالَ : نَعَمْ .[2] |
| هغوی وويل چې آو. ما وويل چې آيا تا د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي؟ هغوی وويل چې آو |

**توضيح**: **الضبع**: ضبع يو ځنګلي ځاروی دی چې په بدن کې سپي هومره وي ديته په فارسۍ کې ګُفتار وايي اردو کې ورته هندار او بجو وايي. چرغ هم ورته وايې. پښتو کې ورته ګورکخ وايې. دا تبر کني او مړي خوري. د ګورکخ باره کې دوه جدا جدا مسئلي دي: اوله مسئله دا چې د محرم لپاره د ګورکخ ښکار حرام دی. پدې باندې د ټولو اتفاق دی. که محرم د احرام په حالت کې د ګورکخ ښکار وکړو نو په هغې تاوان وي. او په بدله کې يو سنډا به ورکوي. راتلونکې حديث نمبر ۹ کې د دې تصريح شته دی. دويمه مسئله دا چې آيا د ګورکخ خوړل جائز دي يا حرام دي. دا د کتاب الصيد مسئله ده. پدې د فقهاوو اختلاف دی.

**د فقهاوو اختلاف**: امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ او احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد د ګورکخ غوښه خوړل حلال دي. د جمهورو په نزد د ګورکخ غوښه خوړل جائز نه دي.

**دلائل**: زير بحث حديث کې د امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ دليل دی.
جمهورو راتلونکی د حضرت خزيمه رَحِمَهُ اللَّهُ حديث نمبر ۱۰ نه استدلال کړی دی. چې په هغې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په تعجب سره پوښتنه کړې ده چې آيا څوک ګورکخ هم خوري؟ که د دې روايت سند په طريق سره کمزوری دی نو په بل طريق سره قوي کيږي. نفس حديث په صحت کې شک نشته

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ٤٢٥/٢ رقم الحديث :١٨٤٨
(۲) أخرجه الترمذي في السنن ٢٢٢/٤، رقم الحديث :١٧٩١

دی. جمهورو د ﴿وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَآئِثَ﴾ آيت نه هم استدلال کړی دی. ځکه چې ګورکخ خبيث ترين ښاروی دی. قبر کني او مړی خوري. **جمهورو د كل ذي ناب من السباع فأكله** حرام حديث نه هم استدلال کړی دی. ځکه چې ګورکخ ذی ناب دی.

**جواب**: امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ د بحث د لاندې حديث نه چې کوم استدلال کړی دی. د هغې جواب دا دی. چې د رواياتو د تعارض په وخت کې د حرمت والا روايت ته د حلت والا روايت باندې ترجيح ورکړی کیږي. لهذا حضرت خزيمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ والا روايت راجح دی.

**دويم جواب**: دا چې د تعارض په وجه باندې د حرمت مسئله نه لاندې د مکروه تحريمي اړخ ته راغلي ده. لهذا د شوافعو استدلال جائز مع الكراهة باندې به حمل کیږي. (المرقات ۵/۵۸۷)

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الضَّبُعِ؟ قَالَ: |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د ګورکخ باره کې تپوس وکړو نو نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ |
| هُوَ صَيْدٌ وَ يُجْعَلُ فِيهِ كَبْشًا إِذَا أَصَابَهُ الْمُحْرِمُ.[1] |
| وفرمايل چې دا ښکار دی که کوم محرم د دې مرتکب شو نو د هغې بدله کې ګډ يا پسه ورکړی. |

## ګورکخ حلال نه دی

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ خُزَيْمَةَ بْنِ جَزِيٍّ قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ الضَّبُعِ. |
| خزيمه ابن جزي وايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د ګورکخ د غوښې خوړلو باره کې پوښتنه وکړه |
| قَالَ: "أَوَ يَأْكُلُ الضَّبُعَ أَحَدٌ؟". |
| نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې څوک د دې غوښه هم خوري؟ (يعنې د دې غوښه خوړل ندي پکار) بيا ما د |
| وَسَأَلْتُهُ عَنْ أَكْلِ الذِّئْبِ. قَالَ: أَوَ يَأْكُلُ الذِّئْبَ أَحَدٌ |
| ليوه باره کې تپوس وکړو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې آيا کوم يو کس چې هغه د ليوه غوښه خوري نو |
| فِيهِ خَيْرٌ؟ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ.[2] |
| آيا په دې سړی کې به خير (يعنې ايمان يا تقوی) وي؟. |

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۱۵۸/٤ رقم الحديث: ۳۸۰۱

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲۲۲/٤ رقم الحديث: ۱۷۹۲

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د غير محرم ښکار محرم خوړلی شي

﴿۱۱﴾ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عُثْمَانَ التَّيْمِيِّ قَالَ : كُنَّا مَعَ طَلحةَ بنِ عُبَيدِ اللهِ وَنَحْنُ

عبد الرحمن ابن تیمي رضي الله عنه وایي چې (یو ځل) مونږ د طلحه بن عبید الله رضي الله عنه سره وو او مونږ ټول

حُرُمٌ فَأُهْدِيَ لَهُ طَيْرٌ وَ طَلْحَةُ

د احرام په حالت کې وو ده ته د هدي په توګه دیوه مرغی (پخ شوي غوښه) راولیږلي شوه طلحه رضي الله عنه

رَاقِدٌ فَمِنَّا مَنْ أَكَلَ

هغه وخت اوده ؤ نو ځینو زمونږ نه هغه غوښه وخوړه (ځکه هغوی پوهیدل چې محرم ته د ښکار غوښه خوړل جائز دي خو په دي شرط چې پدې ښکار کې د هغې د حکم او داسې د نور څه هیڅ دخل نه وي)

وَ مِنَّا مَنْ تَوَرَّعَ

او ځینو د هغې نه پرهيز وکړو (ځکه د هغوی ګمان ؤ چې د محرم دا غوښه خوړل درست نه دي) بيا چې

فَلَمَّا اسْتَيْقَظَ طَلْحَةُ وَافَقَ مَنْ أَكَلَهُ

کله طلحه رضي الله عنه رابیدار شو نو هغوی د هغه خلکو سره موافقت وکړو چاچې هغه غوښه خوړلي وه.

قَالَ : فَأَكَلْنَاهُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ .[1]

همدغه شان یې وویل چې مونږ خوړلي وه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره همدغه شان (یعني د احرام په حالت کې د ښکار غوښه).



(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۲/۸۵۵ رقم الحديث: ۱۱۹۷/۶۵

# باب الاحصار وفوت الحج

## د احصار بيان

**قال الله تعالى:** ﴿وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ﴾ (سورة بقره آيت: ۱۹۶)

احصار په لغت کې ودرولو او د منع کولو په منع دی. د شرع په اصطلاح کې د احرام تړلو نه وروسته د حج يا د عمرې نه منع کېدو ته احصار وايي. ملاعلي قاري رحمه الله وايي **الاحصار المنع اوالحبس لغة والمنع من الوقوف والطواف شرعاً**، دې منع کېدو ته احصار او داسې سړی ته محصر وايي. د احصار نه وروسته حاجې ته په کار دي چې هغه د بېت الله د قرباني د څاروي يا د هغې نرخ ولېګي. او کله چې څاروې هلته ذبح کړی شي نو بيا دې احرام پرانيزي او بېرته دې کور ته لاړ شي او د آئنده عمرې يا دحج قضاء دې وکړي. اوس په دې خبره کې د فقهاو اختلاف دی چې آيا حصار فقط د دښمن په وجه محقق وي يا په نورو عذرونو او مراضونو په وجه هم احصار محقق کېږي. (المرقات ۵/۵۸۹)

**د فقهاؤ اختلاف**: د جمهور فقهاؤ په نزد احصار فقط د دښمن په وجه د ډار د وجې نه وي د نورو عذرونو او مرضونو د وجې نه نه وي. که د نورو عذرونو انديښنه وي نو هغه ته د احرام په وخت کې شرط لګولی کېږي چې چيرته ودريدو نو هلته به احرام پرانيزم. چې د هغې بيان به مخکې ضباعه بنت زبير حديث نمبر ۵ کې راځي. د احنافو د ائمو په نزد احصار چې څنګه د دښمن د ويرې نه کېږي نو دغه شان د هغه ټولو عذرونو نه هم احصار محقق کېږي. کوم احصار چې د موجباتو د احرام لپاره مانع وي لکه مريضتيا يا د مصرف ختميدل يا د ښځې عدت يا لاره هيريدل يا د ښځې لپاره د محرم نشتوالی يا غلام ته د خپل مالک د طرف نه اجازت نه ملاويدل دي.

**دلائل**: جمهورو د قرآن کريم د آيت ﴿فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ الخ﴾ نه استدلال کړی دی. د استدلال طرز داسې دی چې د حديبيه په موقع باندې نبي کريم صلى الله عليه وسلم او صحابه کرام رضي الله عنهم قريشو هيسار کړي وو. هغه وخت د احصار حکم راغلی وو او هغه د دښمن د وجې نه وو. لهذا د مرض او داسې نور شيانو نه به احصار نه کېږي. جمهورو د حضرت ابن عمر او حضرت ابن عباس رضي الله عنه د يو اثر نه هم استدلال کړی دی. هغوی فرمايلي دي **لاحصر الامن عدو**. (المرقات ۵/۵۸۹)

د احنافو ائموو د راروان د حجاج بن عمرو انصاری د حديث نمبر ۷ نه استدلال کړی دی. چې په

هغې کې من کسر اوعرج فقدحل واضحه الفاظ ذکر شوې دي. د احنافو د ائموو دمیم دلیل همدغه ذکر شوی ﴿ فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ الخ ﴾ آیت دی. ځکه چې پدې کې احصرتم د باب افعال نه د احصار په معنی دی او احصار عام دی اګر که هغه د دښمن په وجه وي یا د مرض په وجه وي. بلکې د اهل لغت نه فراء ابن سکیت اخفش او کسائی تصریح کړې ده. چې احصار همدغه منع کولو ته وایې. چې فقط د بیمارۍ د وجې نه وي. حصر هغه منع کېدلو ته وایې چې د دښمن د وجې نه وي. همدغه شان دا آیت فقط د احنافو لپاره قطعي دلیل دی. همدغه شان د قیاس تقاضا همدغه ده. چې احصار د فقط د دښمن سره خاص نکړی شي. ځکه ځینې وخت کې خو د دښمن عذر ختم شي خو د مرض عذر پاتې وي. په خاصه توګه باندې د بوډاګانو مرض خو په مرګ باندې ختم شی.

**جواب:** جمهورو چې د دې آیت نه استدلال کړی دی. د هغې خو یو جواب دا شو چې په آیت کې د احصار مصداق دښمن نه بلکې د دې اولنی مصداق مرض دی. دویم جواب دا دی چې که چرې د آیت نزول خاص د دښمن واقعې کې وي خودامسلمه قاعده ده چې **العبرة لعموم الالفاظ لالخصوص الواقعة** لهذا آیت ټولو عذرونو ته عام دی. جمهورو چې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه د اثر نه استدلال کړی دی، د هغې جواب دا دی چې د مرفوع حدیث په شتون کې به اثر کې تاویل کووو. امکان لري چې دې حضراتو کامل او مشهور حصر همدغه ته اکلی وي چې د دښمن د وجه وي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### د احصار هدي چیرته ذبح کړی شي؟

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَدْ أُحْصِرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ابن عباس رضي الله عنه وایي چې (د حدیبې واقعې په کال) نبي کریم صلی الله علیه وسلم (د عمرې نه) منع کړی شوی |
| فَحَلَقَ رَأْسَهُ وَ جَامَعَ نِسَاءَهُ |
| ؤنو نبي علیه السلام خپل سر و خرئیلو او (د احرام خلاصولو نه وروسته) خپلو بیبیانو سره هم بستر شو او د |
| وَ نَحَرَ هَدْيَهُ حَتَّى اعْتَمَرَ عَامًا قَابِلًا.[1] |
| خپلې هدی څاروی یې ذبح کړو. بیا بل کال نبي کریم صلی الله علیه وسلم عمره و کړه. |

(۱) أخرجه البخاري في صحیحه ٤/٤ رقم الحدیث :١٨٠٩.

**توضیح**: احصر: یعني کله چې ۶هجری کې نبي کریم ﷺ د پنځلس سوه (۱۵۰۰) صحابوه سره د عمرې په غرض مکې ته روان شو. نو د حدیبیه په مقام باندې قریشو نبي کریم ﷺ مخې ته تګ نه او د عمرې کولو نه منع کړلو. نو دغه شان احصار بالعدو کې یو صورت پیدا شو. د ډیرو مذاکراتو نه وروسته پدې خبره صلح وشوه چې دې کال دې مسلمانان بغیر د عمرې نه بېرته لاړشي او بل کال دې د عمرې د قضاء لپاره راشي. صلح حدیبیه چې د داسې تولو شرطونو سره پوره شوه نو نبي کریم ﷺ احرام پرانستلو او سر یې وخریلو او د خپلو ښېښو نو سره هم بستر شو او د هدی څاروی یې ذبح کړو. اوس د فقهاو په مینځ کې پدې مسئله اختلاف شو چې آیا د قربانۍ لپاره د حرم زمکه شرط دی یا موضع احصار کې خارج حرم کې هم د هدی څاروی ذبح کیدلی شي. نو پدې د ټولو اتفاق دی چې که د احصار صورت نه وي نو د هدی قربانۍ لپاره د حرم زمکه ضروري ده خو که د احصار صورت وي نو د هدی قرباني چرته وکړی شي. نو پدې کې اختلاف دی.

**د فقهاوو اختلاف**: د ائمه ثلاثو مذهب دا دی چې چرته حاجي د احصار سره مخ شی هملته دې څاروي ذبح کړي او حلال دې شي. د هدی حرم ته د لیګلو ضرورت نشته دی. د احنافو ائمه وايي چې د دم احصار د حرم په زمکه کې ذبح کول ضروري دي. د دغې طريقه به دا وي چې څاروی یا د دغې نرخ به په څه ذریعې سره ولیګل شي او د وخت او د تاریخ تعین به وکړی شي. کله چې هدی ذبح کړی شي نو هله به حاجي احرام پرانیزي او سر به وخروي.

**دلائل**: ائمه ثلاثو د حدیبیې د واقعې نه استدلال کړی دی چې نبي کریم ﷺ او ټولو صحابوو د حدیبیې په مقام باندې هدایا ذبح کړي وي. او حدیبیه د حرم نه بېرون ده. لهذا په حرم کې د ذبح کولو ضرورت نشته دی. (المرقات ۵/۵۸۹)

د احنافو ائمو د قرآن عظیم د واضحه آیت نه استدلال کړی دی. ارشاد دی ﴿ وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ ﴾

**جواب**: احنافو جمهورو ته جواب ورکړی دی چې د حدیبیې څه برخه په حرم کې ده نو ځکه دا قرباني د حرم په زمکه کې شوي وه. امام طحاوی یو حدیث ن نقل کړی دی. الفاظ دا دي: وَعَنْ المسور رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ كان بالحديبية كان خبائه فى الحل ومصلاه فى الحرم. (الطحاوی) (البناية: ۴/۴۰۰)

**دویم جواب**: دا دی چې نبي کریم ﷺ لپاره ځکه امکان نه وو چې هدایا په حرم کې ذبح کړي، نو دا د یو مجبورۍ خاص صورت ؤ. نن سبا حدیبیې مقام ته شمیسی وايي. او همدلته د

تفتيش مرکز او چيک پوسټ دی. په غټ بورډ ليکل شوي دي ممنوع دخول غير المسلمين يعني حرم مخکې زمکه ده، د هيڅ کافر دخول منع دی.

## حصار شوي خلک به حلق کوي او که قصر

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ : خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَالَ |
| عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې مونږ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره (د عمرې لپاره) لاړو نو حصار کړو |
| كُفَّارُ قُرَيْشٍ دُونَ الْبَيْتِ فَنَحَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| مونږ قريشو کافرانو خانه کعبې ته (رسيدو) نه مخکې (حديبيه) کې نو ذبح کړو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| هَدَايَاهُ وَ حَلَقَ وَ قَصَّرَ أَصْحَابه.[1] |
| د خپل هدی څاروی (هملته) او سريې وخريلو. همدغه شان واړه کړل ويختان څينو صحابو د نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| (او څېنو وخريل). |

**توضيح**:**وقصر اصحابه**: يعني څېنو صحابو قصر (ويختان واړه کول) وکړل، نورو اکثرو حلق (سر خريل) وکړو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم حلق وکړو. د دې حديث نه معلومه شوه چې حصار شوي خلکو ته هم حلق يا قصر لازم دی. د احنافو په څېنو کتابونو کې ليکل شوي دي چې حلق او قصر لازم ندی. خو ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللهُ په مرقات کې ليکلي دي چې امام طحاوی رَحِمَهُ اللهُ د حلق او قصر اړخ ته مائل دی. ملاعلی قاری رَحِمَهُ اللهُ وايي :ولا ظهر وجوبه لقوله تعالی ﴿ وَلَا تَحْلِقُوا رُؤُوسَكُمْ حَتَّى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ﴾ ولفعله عليه السلام واصحابه الكرام﴾ (المرقات ۵/۵۹۰)

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحَرَ قَبْلَ أَنْ يَحْلِقَ |
| مسور بن مخرمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذبح کړو خپل څاروي د سر خريلو نه مخکې |
| وَ أَمَرَ أَصْحَابَهُ بِذَلِكَ.[2] |
| همدغه شان نبي عَلَيْهِ السَّلَام خپل صحابو ته هم د دې خبرې حکم وکړو (د هغوی د سر خريلو نه مخکې خپل د |
| هدی څاروي ذبح کړي). |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٤ ، ٤ رقم الحديث :۱۸۱۲.
(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ٤ ، ١٠ رقم الحديث :١٨١١

# د حصاریدو او د حج د فوت کیدو حکم

﴿٤﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ قَالَ: أَلَيْسَ حَسْبُكُمْ سُنَّةِ رَسُولِ
دابن عمر رضي الله عنه باره کې روایت دی چې ویل به یې چې آیا بس نه دي ستاسو لپاره دغه سنت د رسول
اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ؟ إِنْ حُبِسَ أَحَدُكُمْ عَنِ الْحَجِّ
الله صلی الله علیه وسلم (یعنې د نبي علیه الصلاة والسلام دغه ارشاد) چې حصار کړې شي یو کس په تاسو کې د حج نه
(یعنې داسې عذر ورته پیښ شي چې هغه د حج د لوي رکن یعنې د وقوف عرفات نه مانع وي او د طواف
طَافَ بِالْبَيْتِ وَ بِالصَّفَا وَ الْمَرْوَةِ ثُمَّ حَلَّ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ
او د سعی نه مانع نه وي) نو هغه د بیت الله طواف او صفا او د مروه په مینځ کې سعی کولو سره حلال شي
(یعنې د هغې نه وروسته د هغې لپاره هر هغه شي حلال شي چې هغه د احرام په حالت کې منع وو)
حَتَّى يَحُجَّ عَامًا قَابِلًا فَيُهْدِيَ أَوْ يَصُومَ إِنْ لَمْ يَجِدْ هَدْيًا.[1]
ددې لپاره چې د ابل کال حج وکړي او هدی ذبح کړي او که هغه هدی ذبح کولې نه شي نو روژه ونیسي

**توضیح: الیس حسبك:** حضرت عمر رضي الله عنه حقیقت کې د هغه خلکو نه انکار کولو چې د چا خیال ؤ د حج او د عمرې په نیت کې داسې شرط لګول ضروري دي چې ای الله زه د حج نیت کوم خو زما د حلال کېدو ځای هغه دی چرته نه چې زه د مریضتیا او یا د داسې نور عذرونو په وجه حصار کړی شم دا شرط مخکې د حضرت ضباعه په روایت کې راروان دی. د حضرت ابن عمر د رد کولو مقصد دا دی چې کله الله تعالی په خپل کتاب قرآن مجید کې د احصار حکم ښکاره بیان کړی دی، نو بیا د مخکې نه نیت کولو ضرورت څه دی. بس چرته کې چې مریضتیا د وجی نه منع کړی شي، نو د هملته نه د احصار حکم شروع کېږي. د دینه معلومه شوه چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه د مریضیتا د وجی نه د احصار قائل ؤ لکه څنګه چې احناف وایي. بهرحال کوم سړی چې د حج یا د عمرې نه پاتې کړی شو نو په هغه باندې لازم دي چې بل کال ته قضا وکړي. که هغه مفرد وي یا قارن وي او که متمتع وي او عمره کونکی وي. (المرقات ۵/۵۹۱)

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۱۶۹/۵ رقم الحديث :۲۷۶۹.

## په حج او عمره کې د نیت کولو د شرط حکم

| |
|---|
| ﴿٥﴾وَعَنْ عَائِشَةَ. قَالَتْ: دَخَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى ضُبَاعَةَ بِنْتِ الزُّبَيْرِ فَقَالَ لَهَا |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم ضباعة بنت الزبير خوا ته او هغې ته يې و فرمايل |
| لَعَلَّكِ أَرَدْتِ الْحَجَّ؟ قَالَتْ: |
| چې كيدشي ته (مو نږ سره) د حج كولو اراده لرې؟ ضباعه رضي الله عنها وويل چې (آو! زما اراده خوشته خو) |
| وَاللهِ مَا أَجِدُنِي إِلَّا وَجِعَةً. |
| په خداى قسم! زه مريضه يم (يعني د مريضتى په وجه زه ډېره كمزوري محسوسوم كه زه درسره لاړه |
| فَقَالَ لَهَا: |
| شم نو نه پوهېږم چې حج به پوره كړم او كه نه؟) نبي كريم صلى الله عليه وسلم (چې دا واوريدل) نو وي فرمايل |
| "حُجِّي وَاشْتَرِطِي وَقُولِي: اللَّهُمَّ |
| چې ته د حج (ارده) وركړه او (كله چې احرام وتړې نو دا) شرط وكړه يعني ووايه! اى الله! زما د احرام |
| مَحِلِّي حَيْثُ حبستني". [1] |
| نه د وتلو ځاى هغه دى چرته چې زه (د بيمارۍ په وجه) منع كړى شوم. |

**توضيح: حيث حسبتني:** په حج كې د شرط لګولو طريقه داسې ده چې د احرام تړلو وخت كې حاجي دا ووايې چې كه چرته په لاره كې مرض او يا د نورو وجو په سبب ستونزه پيدا شوه نو زه به هملته حلال كړى شم. د دې شرط لګولو څه ګټه شته او كه نه؟ نو د امام ابو حنيفه رحمه الله او د امام مالك رحمه الله په نزد د دې څه ګټه نشته دى. او د امام شافعي رحمه الله او د امام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد دې ګټه شته دى. هغه دا چې كله شرط ولګوي نو د مريضتيا او يا داسې نورو عذرونو په صورت كې به حاجي ژر د احرام نه وځي. او مرور على الحج او عمره به نه لازمېږي. او كه شرط نه وي لګولى شوى نو د مريضتيا په صورت كې د احرام نه تر هغه وخت پورې نشي وتلى تر څو چې په د حج په كارونو باندې مرور ونكړي. بهرحال په دغه شرط باندې حضرت ابن عمر رضي الله عنه هم ارشاد كړي ده. د قرآن كريم آيت هم د دينه نفي كوي. ځكه آيت د احصار د حكم بيان كوي. د شرط هيڅ ذكر

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳۲/۹ رقم الحديث: ۵۰۸۹، ومسلم في صحيحه ۸۶۷/۲ رقم الحديث: ۱۲۰۷/۱۰۴.

نشته دی. خو نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه خپله کله داسې شرط لګولی دی او نه يې صحابه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ ته تعليم ورکړی دی. فقط د ضباعه رَحِمَهَا اللَّهُ خبره ده. نو علماء وايي چې ضباعه رَحِمَهَا اللَّهُ ته يو قسم وهم ؤ چې زه به حج وکړی شم او که نه؟ او که څه ستونزه پيدا شوه نو زه به څه کوم. نو نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې د وهم لرکولو لپاره هغې ته اطمينان ورکړلو او وې فرمايل چې ته داسې شرط ولګوه چې تاته اطمينان وشي. (المرقات ۵/۵۹۲)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د هدي څاروې په حرم کې ذبح کول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۶﴾عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ أَصْحَابَهُ أَنْ يُبَدِّلُوا |
| ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپلو صحابو ته امرو کړو چې ذبح کړي څاروي په بدل |
| الْهَدْيَ الَّذِي نَحَرُوا عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فِي عُمْرَةِ الْقَضَاءِ.(۱) |
| د هغه څارو کې چې کوم هغوی د حديبې په کال ذبح کړي وو د عمرة القضاء په موقع. |
| رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَفِيهِ قِصَّةٌ وَفِي سَنَدِهِ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ |

**توضيح**: په ابو داؤد کې دا حديث د يوې قصې سره ذکر شوی دی. چې په هغې سره دا حديث په اسانه سره پوهه کې راځي. يوه زمانه داسې وه چې د شام په زمکه باندې د بنو اميه حکومت وو. او په مکه کې د حضرت زبير بن عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حکومت وو، د شام خلک د حضرت عبد الله بن زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حکومت ډير مخالف وو. هغوی په مکه باندې لښکر کشي وکړه او بيت الله يې محاصره کړلو. په دغه موقع باندې يو سړی د هدی څاروی د ذبح کولو لپاره مکې ته راروان کړی وو خو د شاميانو لښکر هغه منع کړو. نو هغه سړی په همغه ځای کې د هدي څاروی ذبح کړو. او بيا يې په مکه کې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه. حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې د هدی په بدله هدی واخله او د بيت الله په زمکه په حرم کې يې ذبح کړه. د دې روايت نه د احنافو تائيد کېږي. چې د هدی څاروی حرم ته رسول ضروري دي.

**سوال**: دلته په رزه کې ده تېرېږي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او صحابو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ خو د مقام حديبيه کې چې کوم څاروي ذبح کړي وو. که هغه د حرم په زمکه کې ذبح کړی شوي وو نو بل کال بيا د راوستلو

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۲۷۵ رقم الحديث ۹۱۴

څه ضرورت وو ؟

**جواب**. د مقام حديبيه څه برخه په حرم کې ده. او څه په حل کې ده. نبي کريم ﷺ په مقام حديبيه کې ذبح کړی وو. خو ځينو صحابو د حل په زمکه کې ذبح کړي وه. هم هغوی ته حکم کړی شوی دی چې تاسو بيا څاروي راړئ او په سمې طريقې سره يې ذبح کړئ. نو همدغه شان به دا حديث د احنافو دليل جوړ شي. اګر که خبره نه جوړيږي. ځينې شارحين وايې چې د نوي څارو اخستل او راوړلو مسئله فقط د استحباب او احتياط او د تقوی په بنياد باندې وو. پدې سره به ټول اختلاف ختم شي. (المرقات ۵/۵۹۳)

## د مريضتيا په وجه احصار کيږي

| ﴿۷﴾وَعَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ عَمْرٍو الْأَنْصَارِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ كُسِرَ |
|---|
| حجاج بن عمرو انصاري رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل چې د کوم سړی خپه ماته شي |
| أَوْ عَرِجَ فَقَدْ حَلَّ |
| يا ګوډ شي نو حلال شو (يعنې دده لپاره جائزده چې د احرام پرانيزي او خپل کور ته بېرته لاړ شي) خو |
| وَ عَلَيْهِ الْحَجُّ مِنْ قَابِلٍ. [1] |
| بل کال به پرې حج واجب وي. |
| وَزَادَ أَبُو دَاوُدَ فِي رِوَايَةٍ أُخْرَى: أَوْ مَرِضَ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حسن. وَفِي المصابيح: ضَعِيف. |

**توضيح**:دا حديث د احنافو مضبوط دليل دی چې احصار د مريضتيا او د داسې نورو عذرونو نه محقق کيږي.

## د حج لوی رکن وقوف عرفه دی

| ﴿۸﴾وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ يَعْمُرَ الدَّيْلِي قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الْحَجُّ عَرَفَةُ |
|---|
| عبد الرحمن بن يعمر ديلی وايي چې ما د نبي کريم ﷺ نه اوريدلي چې حج عرفه ده (يعنې د |
| مَنْ أَدْرَكَ عَرَفَةَ لَيْلَةَ |
| حج تر ټولو ستر رکن د ذی الحجې نهم تاريخ کې قيام عرفات دی) چا چې ومونده وقوف عرفات په شپه |

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۲/۴۳۲ رقم الحديث ۱۸۶۲، أخرجه الترمذي في السنن ۳/۲۷۷ رقم الحديث ۹۴۰

| جَمْعٍ | قَبْلَ | طُلُوعِ | الْفَجْرِ | فَقَدْ | أَدْرَكَ | الْحَجَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دمزدلفی کې (یعني دذی الحجې په لسمه شپه) دسحر راختلو نه مخکې نو ده حج وموندو او ورځې د | | | | | | |
| أَيَّامُ | مِنًى | ثَلَاثَةُ | أَيَّامٍ | | | |
| منی (کې د حصاریدو) درې ورځې دي (یعني دذی الحجې یولسم، دولسم، دیارلسم تاریخ چې دې ته ایام تشریق وایي چې په دې ورځو کې په منی کې قیام کېږي او په دې ورځو کې رمی د جمار کېږي) | | | | | | |
| فَمَنْ | تَعَجَّلَ | فِي | يَوْمَيْنِ | فَلَا | إِثْمَ | عَلَيْهِ |
| نو هغه سړی دې تندي وکړي او د دوه ورځو نه دې وروسته راشي. په هغه باندې څه ګناه نشته دی او | | | | | | |
| وَمَنْ تَأَخَّرَ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ[1] | | | | | | |
| کوم سړی چې تاخیر وکړي نو په هغې باندې هم څه ګناه نشته دی. | | | | | | |

**توضیح**: په حج کې درې ارکان فرض دي: اول احرام تړل، دویم نیت کول فرض دي، دریم وقوف عرفه فرض ده او وقوف عرفه د حج لوی رکن دی. که په خوب کې وي او که په ویښه وي، که لږ وي او ډیر وي، که په ورځ کې وي او که د راتلونکې شپې تر سحر پورې وي. پدې سره دا فرض پوره کېږي. د لمر دوبېدلو نه وروسته د عرفی نه لاندې د مزدلفی اړخ ته کوځیدل او په مزدلفی کې شپه تېراول واجب دي. بیا د لمر د راختلو نه مخکې منی اړخ ته تلل دي او هلته په جمره عقبه باندې کاڼي ویشتل دي. بیا په منی کې د عید الاضحی نه وروسته درې ورځې د قیام کولو حکم دی. خو د یولسم او د دولسم تاریخ رمی لازمه ده. خو که چې دا سړی تر دیارلسمی ذوالحجه پورې په منی کې پاتې شو. نو وس به هغه د ورځې کاڼي ولي. خو د لمر د راختلو نه وروسته د هغې ورځ کاڼي ویشتل جائز دي. په ذکر شوې حدیث کې د همدغې مسئلې بیان دی. علماو لیکلي دي چې په منی کې د قیام باره کې هم اهل جاهلیت د خپل جاهلانه رسم په حساب وخت تېرولو څه خلکو د دوو (۲) ورځو نه ډیر حصاریدل ګناه ګڼله. او څه خلکو به د درې ورځو نه مخکې وتل ګناه ګڼله. قرآن کریم کې الله تعالی د اعتدال لاره خودلې ده چې هغه په دې حدیث کې دي. همدغه شان به قریش د مزدلفې نه پاس عرفات نه تلل. اسلام دغه منع کړل او د عرفات وقوف یې په هغوی لازم کړل. (المرقات ۵/۵۹۳)

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۱۸۵/۳ رقم الحديث :۱۹٤۹

# باب حرم مكة حرسها الله

## د حرم مکې د حرمت بیان

قال الله تعالى﴿ إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ مُبَارَكًا وَهُدًى لِلْعَالَمِينَ ٩٦ فِيهِ آيَاتٌ بَيِّنَاتٌ مَقَامُ إِبْرَاهِيمَ وَمَن دَخَلَهُ كَانَ آمِنًا ﴾ (سورت آل عمران آیت: ۹۶/۹۷)

۱: یو لفظ مکه دی. دا د بیت الله ګیر چاپیره نوم دی. د دې منطقې جدا والي وي.

۲: دویم لفظ حرم دی. دا زمکه هغه مقدسي برخې ته وایي چې مکې د ښاز ګیرچاپیره دی. دیته حرم ځکه وایي چې الله تعالی د بیت الله په وجه دغه مقدسه برخه هم واجب احترم کړه. او دا یې د عظمتونو او بزرګیونو نه ډکه کړه. دې برخې ته پدې وجه هم حرم وایي چې الله تعالی پدې کې دیر داسې کارونه حرام کړل چې هغه د دې ځای نه بېرون دي. مثلاً په حدودو حرم کې ښکار کول یا بل قسم وابنه ریبل یيا کوم انسان یا حیوان ته ضرر رسول، جنګ او فساد کول، دا ټول حرام دي. وس دا خبره چې دا ځای څنګه حرم مقرر شو. نو ځینې علماء وایي چې حضرت آدم عليه السلام چې کله زمکې ته راکوز کړی شو نو په مکه کې هغې د پیریانونه خطر محسوس کړو. نو الله تعالی د هغې حفاظت لپاره د هغې نه ګیر چاپیره فرښتې مقررې کړي یا هغه فرښتو د څلور اوخونونه نه مکه په خپل واک کې کړله. فرښتو چې د څلورو اړخونونه په کوم ځای کې حدبندې کړي وه، هغه حدود حرم مقرر شول. ځینې حضرات دا وايي چې حضرت آدم عليه السلام چې کله کعبه جوړه کړه او په خپل لاس یې حجر اسود کیښودلو نو د هغې د رڼا یوه لمبه اوچته شوه. چې د هغې په وجه څلورو اړخونو ته رڼا شوه. چې کوم کوم ځای پورې هغه رڼا ورسیدله نو د همغې ځای نه د حرم حدود شروع شول. نو د حرم حدود دغه شان دي. د مدینې د اړخ نه تنعیم حدی دی. چې د مکې نه په درې میله مسافه کې دی. د مکې نه یمن تر اووه (۷) میله پورې حدی دی. جده، طائف او جعران هم همدغه شان اووه میله دی. ځینو کتابونو کې لیکل شوي دي چې مکه د جدې اړخ نه لس میله حد ده او د جعرانه اړخ نه نهه (۹) میله حد دی.

۳: دریم لفظ مسجد الحرام دی. د بیت الله ګیر چاپیره چې کوم جومات جوړشوی دی هغې ته مسجد الحرام وایي. د شتون سعودي حکومت نه مخکې د مسجد حرام رقبه یو لس زره (۱۱۰۰۰) او پنځه سوه (۵۰۰) مربع وه. خو په شتون حکومت د فراخوالي نه وروسته د مسجد حرام رقبه څلور شپیته زره (۶۴۰۰۰) مربع میتر ده. وسني حکومت د صفا او مروه یعنې مسعی په حرم کې شامله کړې ده. د مسعی رقبه شپاړس زره (۱۶۰۰۰) میتر ده. همدغه شان په اوس وخت کې مسجد حرام کې په یو

وخت کې د نهه لاکه (۹۰۰۰۰۰) لمونځ کونکو ځای شته دی. د مسجد حرام فقط په پاسني بام باندې يو لاکه اته شپیته زره (۱۶۸۰۰۰)لمونځ کونکو ځای دی. د مسجد حرام ټول اووه غټ منارونه دي. د مسجد حرام ټول ۹۵ دروازې دي چې په هغې کې څلور غټې دروازې دي. يعني باب الفتح، باب العمره، ملک فهد او باب ملک عبدالعزيز. په مسجد حرام کې دننه يوه ګرده (ګول) دروازه ده چې هغې ته مطاف وايي . د هغې رقبه پنځلس زره (۱۵۰۰۰) مربع ميتر ده. د مطاف او د ال سعود د عمارت په مينځ کې د ترکانو په زمانه کې د مسجد حرام وو. چې د خائست، کلکوالي او د قبوليت يوه منظره ده. چې د هغې په عمارت تعبير هم دی. او تاريخ هم دی. دا هم ويل کيدلی شي چې هغه ښائسته عمارت هم دی او پدې د اسلافو او اسلام تاريخ هم دی. د ګردي دائرې په فراښه مطاف کې ښخې په مينځ کې شان او د عظمت نه ډک څلور شکله يو عمارت دی. چې هغ ډير وچت دی. چې په هغې کې يوه دروازه ده. او څلورو اړخونو ديوالونه د پاسه يو چهت هم دی. په ديوالونو باندې د پاس تر لاندې پورې ډير ښائسته د ريښمو تور غلاف خور کړی دی. چې په هغې باندې د قرآن آياتونه او حديثونه په سرو زرو او د ريښمو په تارونو ليکل شوي او زوړند کړی شوي. د ناوي پشان دغه عظيم الشان عمارت د الله تعالی کور دی. چې هغې ته کعبه وايي . او بيت الله هم ورته وايي . چې هغه په تخليق کائنات کې د عبادت په توګه تر ټولو نه اول د الله تعالی کور دی. اقبال ويلي دي.

*دنیا کے بت کدو میں وہ پہلا گھر خدا کا　　　ہم اس کے پاسبان ہے وہ پاسبان ہمارا*

...احب تاريخ القديم محمد طاهر الکروی چې کله د کعبې شريفې د ټولو ديوالونو کاڼي وشمارل. نو د هغې مجموعي شمېره يو زر شپږ سوه څوارلس (۱۶۱۴) وه، چې په هغې کې ۴۱۹ کاڼي د کعبې په مشرقي دروازه کې لګيدلي وو. په دې ديوال کې د بيت الله دروازه ده. د کعبې په مغربي عقبې ديوال کې ۴۴۹ کاڼي لګيدلي دي. دا دواړه ديوالونه يو بل ته مخامخ دي. او د نورو ديوالونو نه اوږه دي. د کعبې شمالي ميزابې ديوال کې ۳۱۸ کاڼي لګيدلي دي. دا د حطيم ديوال دی. چې د هغې نه پاس ميزاب رحمت دی. د کعبې جنوبې ديوال کې ۴۲۸ کاڼي لګيدلي دي. دا ديوال رکن يماني او د حجر اسود په مينځ کې دی ديته مخامخ د حطيم ديوال دی. د کعبې د اکثرو کاڼو پلن والی ۹۰ سنيتې ميتر ته نزدې ده. څه د دينه هم پيږ دي. اک ډير هغه دي چې کوم حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام په ديوالونو کې لګولي وو. تر دې تمه پورې د دغې کاڼو پاتې کيدل يو لوی کرامت دی.

**د کعبې حدود:** حضرات ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام چې د بيت الله کوم عمارت جوړ کړی وو. د هغې وچت والی ۹ ګزه وو. فقط ديوالونه وو. پاس چت نه وو. زمکې سره لګيدلي دوه ...روازې وې. يوه د رکن

يماني او خ مغربي ديوال ته وه او هملته وه کومه چې نن سبا ده. وروسته قريشو فقط يوه دروازه پرېښودله خو د زمکې د سطحې نه يې ديره اوچته جوړه کړله او بله دروازه يې بنده کړله.
د حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ په وخت کې د بيت الله پلنوالی څلورو اړخونو ته داسې وو. د حجر اسود تر رکن عراقي پورې ۳۲ گزه مسافه وه. په همدغه برخه کې نن سبا دروازه ده. پدې پيمائش کې د گزنا مراد شرعي گز دی. چې يو لاس يعني د گوتو نه تر څنگل پورې دی. د رکن عراقي نه تر مغربي گوټ د رکن شامي پورې ۲۲ گزه مسافه ود. په همدغه برخه کې نن سبا حطيم او ميزاب رحمت دی. دا ټوله برخه مغربي برخه ده. د دې مخې ته باب عمره پرته ده. د رکن يماني نه تر حجر اسود پورې ۲۰ گزه مسافه وه. د دې برخې مخې ته نوي اذان خانه ده. چرته چې امام د غرمې د لمونځ امامت کوي. دا د جنوب اړخ دی. د دې مسافو نه معلومه شوه چې د بيت الله مشرقي ديوال ۳۲ او مغربي ديوال ۳۱ گزه وو. همدغه شان د جنوبي او شمالي ديوالونو مسافې يو بل ته مخامخ دي. او د هغې مسافې کمې وې. د شمال اړخ ۲۲ او د جنوب اړخ ۲۰ گزه وو. نن سبا خو بيت الله د حطيم نه بهرون دی. نو ځکه د ديوالونه پيمائش کې به فرق وي. حطيم ته حِجر اسماعيل هم وايي.
**د بيت الله د جوړولو جدا جدا مرحلې:** د ټولو نه اول فرښتو د بيت الله بنيادونه وکنستل او د غټو غټو گټو نه يې ډک کړلو. چې کله بنيادونه هوار شو نو د پاس اسمانونو نه بيت المعمور را کوز کړی شول او د هغې په بنيادونو باندې کېښودلی شو. قرين قياس همدغه ديی چې پدې جړيدلو کې حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ موجود وو. د دينه وروستهت حضرت شيث عَلَيْهِ السَّلَامُ د بيت الله ساتنه وکړه خو کله چې طوفانِ نوح راغلو نو د الله تعالی په حکم سره بيت المعمور بېرته اسمانونو ته وخېجولی شو. او د بيت المعمور بنيادونه د خاورو لاندې پټ شول. بيا الله تعالی حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته د بيت الله د جوړولو حکم وکړلو. حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ خاوره وکنستله او بنيادونه يې ښکاره کړل او بيا يې په هغې باندې کعبه جوړه کړله. چې د هغې د حدودي اربعه تفصيل تېر شوی دی. د هغې نه وروسته عمالقه بيا بنو جرهم بيا بنو خزاغه او بيا قصي بن کلاب د بيت الله د ورانولو نه وروسته په خپل خپل وخت کې جوړ کړو. د حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ د بيت الله ت جوړولو نه ۲۶۴۵ کاله وروسته د بعثت نبوي نه پنځه کاله مخکې قريشو د بيت الله عمارت جوړ کړو. د هغې په جوړولو کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ برخه واخستله. د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عمر مبارک ۳۵ کاله وو. قريشو د هغې په جوړولو کې څه رد و بدل هم وکړو. او د حطيم برخه يې بهرون کړه. دوازه يې يوه کړه او د زمکې نه اوچته کړله. د ديوالو وچتوالی يې ډير کړو او ۱۹ گزه يې کړو. پاس يې د لرګو چهت جوړ کړو او د لرګو يې شپږ ستنې ودرولې د حطيم په يو اړخ يې ناوا جوړه کړه چې د چهت او به محفوظ مقام حطيم ته راشي او ډېرې خورې نشي. د حطيم نه گر چاپېره يې د وړوکی ديوال جوړ کړو. د کعبې دروازه

يې ځلور گزه او يو ليشت وچت کړو. او دننه زمکه يې پاس تر دروازه پورې د خاورو نه ډکه کړله، چې د دروازې درشل سره برابره شي. ددې نه وروسته چې کله مکه فتح شوه نو نبي کريم ﷺ د حضرت ابراهيم عليه السلام په طرز جوړولو باندې د بيت الله د جوړولو ارمان وکړو. خو دا ارمان د نبي کريم ﷺ په خپل ژوند مبارک کې پوره نشو. بيا په ۲۴ هجري کې عبدالله بن زبير بيت الله شهيد کړو او نبي کريم ﷺ د ارمان مطابق يې د حضرت ابراهيم عليه السلام په طرز جوړه کړه. کله چې حجاج بن يوسف حضرت عبدالله بن زبير شهيد کړو نو د هغې نه وروسته يې بيت الله شهيد کړو او بيا يې په هغه طرز جوړه کړله په کوم طرز باندې چې په جاهليت کې قريشو جوړه کړې وه. او وې ويل چې زه به د خپل دښمن يادگار پرې نږدم. بيا د هارون الرشيد دور خلافت چې کله راغلو نو هغې د امام مالک رحمه الله نه اجازت واخستلو چې بيت الله به هغه طرز جوړوم چې د کوم ارمان نبي کريم ﷺ کړې وُ. امام مالک رحمه الله يو عالم ته فتوی ورکړه چې اوس بيت الله د اوسني طرز نه بدلول رابدلول حرام دي. ځکه دغه شان به د بادشاهانو په لاسونو دا يوه گډې شي. د هغې نه وروسته بيت الله کې د ترکې خليفه سلطان مراد خان څه مرمت وکړو. او تر نن سبا پورې څه نه څه مرمت د ضرورت مطابق کېږي. خو د بيت الله په بنيادونو کې څه ردوبدل ندی شوی. په حديث شريف کې دي چې د قيامت نه مخکې او تور رنگی غلام بيت الله راگوزاروي. او د هغې خځانه به وړي. شاه عبد العزيز رحمه الله په تفسير عزيز کې ليکلي دي چې نا! لږ مخکې به چې کله الله تعالی په حقيقت کې بيت الله اسمانونو ته وچتوي نو د بيت الله تېريدل به د نبي کريم ﷺ په قبر مبارک وي. بيت الله به روضه رسول باندې داسې سلام کوي: **السلام عليکم يا رسول الله**، نبي کريم ﷺ به جواب ورکړي چې **وعليك السلام يا بيت الله**. ته ماته ووايه چې زما امت تا سره څه وکړل او تا زما د امت سره څه وکړل. نو بيت الله به جواب ورکړي چې کوم يو امتي تر ما پورې را رسيدلی دی نوزه د هغې د شفاعت ذمه واري اخلم او کوم چې تر ما پورې نه دي را رسيدلي نو د هغې شفاعت په تا پورې پرېږدم او د هغې نه وروسته به قيامت قائم شي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ : |
|---|
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ د مکې د فتحې په ورځ وفرمايل چې اوس (مکې |

لَا هِجرَةَ وَ لٰكِنْ جِهَادٌ وَ نِيَّةٌ

نه مديني ته) هجرت (فرض) نشته خو جهاد او عمل کې د نيت اخلاص (ضروري) دی لهذا چې کله

وَ إِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوا .

تاسو د جهاد لپاره راوغوښتلی شی (ستاسو امير تاسو ته د جهاد حکم وکړي) نو د جهاد لپاره وځی.

وَ قَالَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ : إِنَّ هٰذَا الْبَلَدَ

همدغه شان نبي کريم صلی الله علیه وسلم د مکې د فتحې په ورځ داهم وفرمايل چې دا ښار (يعنې د حرم تولله

حَرَّمَهُ اللهُ

زمکه) الله تعالی حرام کړي ده (يعنې په ټولو خلکو باندې د دې پاکې زمکې بې ادبي کول حرامه ده

يَوْمَ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَ الْأَرْضَ

او د دې تعظيم کول واجب دي) د هغې ورځ نه چې الله اسمانونه او زمکه پيدا کړي وه (يعنې د زمکې

فَهُوَ حَرَامٌ بِحُرْمَةِ اللهِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ

د دې برخې د حرمت د شروع نه دی) لهذا دا حرامه کړې شوې ده د الله د طرف نه په ورکړل شوي حرمت

وَ إِنَّهُ لَمْ يَحِلَّ الْقِتَالُ فِيهِ لِأَحَدٍ قَبْلِي

کې تر ورځې د قيامت پورې بېشکه په دې زمکه باندې نه خو زمانه مخکې د چا لپاره وژنه حلال کړی شوي

وَ لَمْ يَحِلَّ لِي إِلَّا سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ

وو او نه زما لپاره حلال کړی شوی ده بغير (د مکې د فتحې نه) د ورځ د يو ساعت نه، پس (د دې ورځې

فَهُوَ حَرَامٌ بِحُرْمَةِ اللهِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ

نه وروسته) د زمکې دا برخه حرام کړي شوي ده د الله د ورکړی شوي حرمت په سبب تر قيامت (دا ولنی

لَا يُعْضَدُ شَوْكُهُ

پورې) پورې د هر سړی لپاره نو نه خو (د دې زمکې) څوک ازغن بوټی غوڅی (اګر که هغه ضرر رسونکې

وَلَا يُنَفَّرُ صَيْدُهُ

وي) نه په دې کې ښکار کېږي (يعنې کوم يو سړی د ښکار په عرض يا فقط د تنګولو په غرض به دلته

| وَلَا | يَلْتَقِطُ | لُقَطَتَهُ | إِلَّا | مَنْ |
|---|---|---|---|---|
| کوم څاروي سره تعارض نه کوي) او نه دي د دې ځای لقطه او چته کړی شي خو هغه سړی (يې او چتولی | | | | |
| عَرَّفَهَا | وَلَا | يُخْتَلَى | خَلَاهَا . | فَقَالَ الْعَبَّاسُ : يَا رَسُولَ |
| شي) چې اعلان وکړي او نه به د دې وابنه ريبل کېږي عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (چې وا وريدل) وي ويل چې يا رسول | | | | |
| اللهِ ! | إِلَّا | الْإِذْخِرَ | فَإِنَّهُ | لِقَيْنِهِمْ |
| الله! داذخر (يو قسم وابنه دي) خو دا سې شی دی چې هغه د آهنګرو او زرګرو (لپاره دا و سپني او سره زرو | | | | |
| وَ لِبُيُوتِهِمْ ؟ | | | | |
| ويلي کولو کې) پکار راځي او د کورونو (چهتونو جوړولو کې) د هغې ضرورت پيښيږي (يعنې د دې د | | | | |
| فَقَالَ: إِلَّا الْإِذْخِرَ. وَفِي رِوَايَةٍ لأَبِي هريرةَ: لَا يُعضدُ شجرُها وَلَا يلتقطُ ساقطتَها إِلَّا مُنشِدٌ [1] | | | | |
| ريبلو اجازه وکړه) نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې آو! اذخر ريبلی شي. | | | | |

**توضيح: لاهجرة فتح:** يعنې د مکې نه مدينې ارخ ته چې کوم خاص هجرت به هر مسلمان باندې فرض دی، وس هغه هجرت فرض پاتې نشو. ځکه چې له مکه اسلام شو. خو د دينه ثوک نه و نه ګڼي چې جهاد ختم شو. وي ويل چې جهاد او نيک عملونه او د جهاد نيت وس هم شته دی. چې کله هم ضرورت کېږي نو هجرت به کېږي او جهاد به کېږي. د نوري دنيا هجروتونه تر هغه وخت پورې پاتې وي چې تر څو پورې جهادونه روان وي. (المرقات ۵/۵۹۵)

**واذااستنفرتم:** چې کله تاسو نه جهاد ته وتلو مطالبه وکړی شي نو تندی سره وځی. (المرقات ۵/۵۹۵)

**لايعضد:** د باب ضرب د ريبلو او پرې کولو په معنی دی. (المرقات ۵/۵۹۶)

**شوكة:** د پرې کيدو په معنی کې دی يعنې پخپله راټو کيدلې ازغې پرې کول هم منع دی (المرقات ۵/۵۹۵).

**ولاينفر:** يعنې د حرم ښکار به پريشانه کولې نه شي. (المرقات ۵/۵۹۶)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴/۴۶ رقم الحديث :۱۸۴۳، ومسلم في صحيحه ۲/۹۸۶ رقم الحديث ۱۳۵۳/۴۴۵.

**ولا يختلى اى لا يقطع خلاها** گياګاني او بوټي مراد دي. په حرم کې د دې ريبل جائز نه دي. (المرقات ۵/۵۹۷)

**الاالاذخر**: اذخر يو قسمه وابنه ده. دا آئينګر لپاره په بهټۍ کې د کوئلي د اور په لمبه کولو لپاره پکارېږي. او په کورونو کې هم استعمالېږي او که په قبرونو کې لوندوالي وي نو د مړي د لاندې د خورولو لپاره هم پکارېږي. د دغه مقاصدونو لپاره عرض وکړی شو. عرض حضرت ابن عباس رضي الله عنه وکړو او نبي کريم صلى الله عليه وسلم استثناء وفرمايله. (المرقات ۵/۵۹۷)

## بغير د ضرورته په مکه کې وسله اوچتول منع دي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ: لَا يَحِلُّ لِأَحَدِكُمْ |
| جابر رضي الله عنه وايي چې ما د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي چې په تاسو کې هيڅ يو سړي ته پکار نه |
| أَنْ يَحْمِلَ بِمَكَّةَ السِّلَاحَ. [1] |
| دي چې هغه په مکه کې وسله راوچته کړي. |

## ابن خطل يې کعبې سره څوا کې مړ کړو

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ دَخَلَ مَكَّةَ يَوْمَ الْفَتْحِ وَ عَلَى |
| انس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د مکې د فتحې په ورځ مکې معظمې ته داخل شو او په |
| رَأْسِهِ الْمِغْفَرُ فَلَمَّا نَزَعَهُ جَاءَ رَجُلٌ |
| سر مبارک باندې خَود ؤ چې کله نبي کريم صلى الله عليه وسلم دغه خَود کوز کړو نو يو سړی راغلو (يعني فضل |
| وَ قَالَ إِنَّ ابْنَ خَطَلٍ مُتَعَلِّقٌ بِأَسْتَارِ الْكَعْبَةِ فَقَالَ اقتله [2] |
| ابن عبيد رضي الله عنه) او وي ويل چې ابن خطل د کعبې پرده نيولې ده نبي عليه السلام وفرمايل چې هغه مړ کړه |

**توضيح: ابن خطل**: علامه طيبي رحمه الله ليکلي دي چې ابن خطل اول مسلمان وو. بيا مرتد شو. او يو مسلمان يې شهيد کړو بيا د اسلام په بدنامۍ پورې اخته ؤ کله چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم فاتحانه انداز کې مکې ته داخل شو نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم يو څو سړي او يو څو ښځې واجب القتل

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲ ۹۸۹ رقم الحديث: ۱۳۵۶/۴۴۹

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ٤ ٤٦ رقم الحديث: ۱۸٤٦، ومسلم في صحيحه ۲ ۹۸۹ رقم الحديث: ۱۳۵۷/۴۵۰.

وګرځولي. په هغوی کې یو ابن خطل وو. دا د کعبې د پردې شاته پټ شوی وو. نو چا ولیدلو او نبي کریم ﷺ ته یې خبر ورکړو. نبي کریم ﷺ حکم وکړو چې ورشه او مړ یې کړه. نو ابن خطل د کعبې دیوال سره لګیدلی وو چې مړ کړی شو. معلومه شوه چې د کافر قتل د جنګ دوران کې وېل د ثواب کار دی. ګناه نده. لکه څنګه یې چې تبلیغې حضرات ګناه ګڼي. د ابن خطل قتل د کوم قصاص د لاندې نه وو بلکې د هغې وینه هدر (بې قصاصه) ټاکل شوې وه. لهذا په دې د بحث کولو ضرورت نشته دی چې د حرم دننه قصاص شته دی او که نه (المرقات ۵/۵۹۹، الکاشف ۵/۵۷۰)

## نبي کریم ﷺ د مکې د فتح په ورځ تور پټکی وهلی ؤ

﴿٤﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ دَخَلَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ

جابر ﷺ راوي دی چې نبي کریم ﷺ د مکې د فتح په ورځ بغیر د احرام نه (مکې ته) داخل شو

وَ عَلَيْهِ عِمَامَةٌ سَوْدَاءُ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ.[1]

او هغه وخت نبي کریم ﷺ (په سر مبارک باندې) تور پټکی ؤ.

**توضیح:** تور پټکی د فتحې نښه ده نبي کریم ﷺ د نورو رنګونو والا پټکي هم استعمال کړي دی خو یو رنګ شعار جوړول او التزام مناسب نه دی لکه څنګه چې پاکستان کې اهل بدعتو شنه لونګۍ شعار کړې ده.

## د کعبې دورانولو متعلق پیشګوئي

﴿٥﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: يَغْزُو جَيْشٌ الْكَعْبَةَ

عائشه ﷺ وايي چې نبي کریم ﷺ وفرمايل یو لښکر په خانه کعبه د حملې کولو اراده کوي

فَإِذَا كَانُوا بِبَيْدَاءَ مِنَ الْأَرْضِ

(چې هغه خانه کعبې ته ضرر ورسوي) نو دغه لښکر به د زمکې یوې هوارې برخې ته راورسیږي. نو

يُخْسَفُ بِأَوَّلِهِمْ وَ آخِرِهِمْ قُلْتُ: يَا رَسُولَ

هغه به د اول تر آخره پورې (یعني ټول لښکر) به زمکه کې ښخ شي ما (دې او ریدو سره) وویل چې یا رسول

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۹۹۰ رقم الحديث: ۱۳۵۸/۴۵۱.

| اللهِ | وَ | كَيْفَ | يُخْسَفُ | بِأَوَّلِهِمْ | وَ | آخِرِهِمْ | وَ | فِيهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الله! هغه لښکر به د اول نه تر آخر پورې (يعني ټول به) څنګه خخ کړی شي حال دا چې په هغوی کې به | | | | | | | | |
| أَسْوَاقُهُمْ | وَ | مَنْ | لَيْسَ | مِنْهُمْ ؟ | | | | |
| کاروباري خلک هم وي او په دې کې به هغه خلک هم وي کوم به چې د دوې نه، نه وي (يعني په لښکر کې به هغه خلک هم وي چې نه به ټول لښکر د کافرانو په شان وي او نه به کعبې د ضرر رسولو لپاره د دوی سره شريک وي بلکې د وی به يې په لښکر په جبر سره شامل کړي وو نو آيا دا سې خلک به هم په زمکه کې | | | | | | | | |
| قَالَ : | يخسف | وَ | آخِرِهِمْ | | | | | |
| خښيږي؟) نبي کريم ﷺ وفرمايل چې (آو) اول نه تر آخره پورې به ټول ښخ کړی شي خو دومره | | | | | | | | |
| ثُمَّ | يُبْعَثُونَ | عَلَى | نِيَّاتِهِمْ.[1] | | | | | |
| ده چې د هغوی د نيتونو په مطابق به هغوی را وچت کړی شي. | | | | | | | | |

**توضيح**: د دې حديث تفصيل به ان شاء الله په کتاب الفتن کې راځي دا سړی سفياني دی. چې هغه به خپل لښکر د حضرت مهدي سره جنګولو لپاره راليږي. خو لښکر به يې په زمکه کې ښخ شي دوه سړی به بچ شي. يو به لاړ شي سفياني ته به خبر ورکړي او بل به حضرت مهدی ته خبر ورکړي. په دې ښخيدو کې به څه بې ګناه مسلمانان هم وي. هغوی ښخ خو به شي، خو د سفياني سره به نه وي. بلکې د ښې عقيدې په بنياد به فيصله کيږي.

## يو تور رنګې سړی به خانه کعبه راګوزاره کړي

| ﴿٦﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُخَرِّبُ الْكَعْبَةَ | | | |
|---|---|---|---|
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم ﷺ وفرمايل چې خانه کعبې ته ضرر رسونکی به د | | | |
| ذُو | السُّوَيْقَتَيْنِ | مِنَ | الْحَبَشَةِ.[2] |
| حبشو نه هغه سړی وي چې د هغې پنډۍ به ورې او نرۍ وي. | | | |

**توضيح**: **السويقتين**: يعني ورې، نرۍ او کړې پنډۍ والا تور رنګی کمزوری سړی به راپاسيږي او

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٤/ ٣٣٨ رقم الحديث ٢١١٨، ومسلم في صحيحه ٤/ ٢٢١٠ رقم الحديث ٨/ ٢٨٨٤.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ٣/ ٤٦٠ رقم الحديث ١٥٩٦، ومسلم في صحيحه ٤/ ٢٢٢٤ رقم الحديث ٥٧/ ٢٩٠٩.

د بیت الله خښته په خښته به یې وران کړي. د دینه اندازه کېږي چې مسلمانان به څومره کمزوري وي. نن سبا د ټولې دنیا مسلمانان او د هغوی حکمرانانو جهاد پرېښودلو او دغه کمزورۍ ارخ ته روان دي. (المرقات ۵/۶۰۰)

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ كَأَنِّي بِهِ |
| ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمایل چې لکه زه د خانه کعبې |
| أَسْوَدَ أَفْحَجَ يَقْلَعُهَا حَجَراً حَجَراً.[1] |
| ورانیدل وینم، هغه یو د تور رنګ والا او یو ذلیل سړی به وي چې مانه کعبې یو یو خښته به راوباسي |

**توضیح: افحج:** چې د کوم سړي د خپلو پنجې یو بل سره نزدې وي او پندې یې لرې وي، داسې سړي ته افحج وایي. یعنې جوختې ګوتې د هغې د کمزورۍ او د ذلالت نښه ده. (المرقات ۵/۶۰۱)

**من الحبش:** یعنې د کافرانو نه به وي.

**کاني به:** یعنې داسې ښکاري چې هغه زه وینم. (المرقات ۵/۶۰۰)

**حجراً حجراً:** یعنې یو یو کاڼي به راوباسي او سمندر ته به یې ګوزار کړي. لکه څنګه چې ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ لیکلي دي. (المرقات ۵/۶۰۱)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## حرم کې احتکار الحاد في الحرم دی

| |
|---|
| ﴿۸﴾ عَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: احْتِكَارُ الطَّعَامِ |
| یعلی ابن امیه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې د غلې احتکار (یعنې په دیر |
| فِي الْحَرَمِ إِلْحَادٌ فِيهِ.[2] |
| نرخ خرسولو لپاره ذخیره اندوزي کول) په حرم کې انحراف دی. |

**توضیح:** حرم کې د الحاد ممانعت ذکر شوی دی. نو کوم سړی چې جمع واړې کوي نو د هغه ځای اوسیدونکې او مسافر به پریشانه وي. نو دا الحاد في الحرم دی چې منع دی او لویه ګناه ده.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۶۰/۳ رقم الحديث: ۱۵۹۵.

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۵۲۲/۲ رقم الحديث: ۲۰۲۰.

## د مکې نه د هجرت په وخت کې په نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې د جدائي حالت

﴿۹﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل د (فتح مکې نه وروسته بېرته راتللو وخت

لِمَكَّةَ : مَا أَطْيَبَكِ مِنْ بَلَدٍ وَ أَحَبَّكِ إِلَيَّ وَ لَوْلَا

کې) د مکې په حق کې چې چې ته څومره ښکلې ښار يې؟او ته په ما ډېر ګران يې! که زما د قوم (قريش)

أَنَّ قَوْمِي أَخْرَجُونِي مِنْكِ مَا سَكَنْتُ غَيْرَكِ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا[1]

خلکو زه د دغه ځای نه ، نه وی ويستلی ، نو زه د دې ښار نه بغير په بل ځای نه وم اوسيدلی.

**توضيح**: نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بيت الله نه د وتلو وخت کې جزوره مقام باندې اودريدو او ذکر شوې جملې يې وفرمايلې چې هغې نه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ډير محبت اندازه کېږي. او ورسره ورسره د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بې وسی اندازه هم کېږي او د کافرانو د ظلمونو اندازه هم کېږي. او د حرم شريف او د بيت الله شريف غوره والی او عظمت هم ښه اندازه کېږي. د دې حديث نه دا هم معلومه شوه چې کوم سړی ډير مجبوره نه وي او نو هغه دې د بيت الله مجاورت او ګاونډي توب نه پرېږدي. او که څوک د دې پاکې خاورې احترام نه شي کولی او د دې په حق کې د کوتاهی خطر وي. نو بيا د بيت الله سره د ځای اختيارول مکروه دي. د دې حديث نه دا هم معلومه شوه چې مکه غوره ده د مدينې نه. امام مالک مدينه غوره ګڼي. (المرقات ۵/۶۰۲)

## په حرمينو شريفينو کې کوم يو افضل دی

﴿۱۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَدِيِّ بْنِ حَمْرَاءَ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاقِفًا عَلَى الْحَزْوَرَةِ

عبد الله ابن عدی ابن حمراء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما وليدل چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حزوره باندې ولاړ ؤ

فَقَالَ : وَ اللهِ إِنَّكِ لَخَيْرُ أَرْضِ اللهِ وَ أَحَبُّ أَرْضِ اللهِ إِلَى اللهِ وَ لَوْلَا أَنِّي

او د (مکې په حق کې) فرمايلې چې په الله قسم! ته د الله په زمکه د ټولو نه محبوبه برخه يې که زه نه وی

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۶۷۹ رقم الحديث :۳۹۲۶

| أُخْرِجْتُ مِنْكِ مَا خرجْتُ.[1] |
|---|
| ویستلی شوی نو زه به کله هم نه وی وتلی. |

**توضیح: خیر ارض الله:** پدې باندې د ټولو فقهاؤ اتفاق دی چې په دې کائنات کې د ټولو نه غوره د وه ښارونه دي. یو مکه دی او دویم مدینه دی. خو پدې کې فقهاؤ اختلاف دی چې پدې کې کوم یو غوره دی. د ائمه ثلاثو په نزد مکه غوره ده. او د امام مالک په نزد مدینه غوره ده ځینې علماؤ پدې کې دا تاویل کړی چې کله نبي کریم ﷺ ژوندی ؤ او مدینه کې ؤ نو هغه وخت مدینه غوره وه اوس مکه غوره ده. زیر بحث حدیث د جمهورو دلیل دی. مالکیو لپاره به پدې تاویل کول وي ځکه هغوی مطلقًا مدینه د مکې نه غوره ګڼي. ملا علی قاري رَحِمَهُ اللهُ لیکلي دي چې مدینه کې د نبي کریم ﷺ قبر مبارک دی. هغه برخه د مکې نه خو لا څه چې د عرش نه هم غوره ده. پدې باندې اجماع ده. (المرقات ۵/۶۰۲)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## په حرم شریف کې د قصاص مسئله

| ﴿۱۱﴾ عَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْعَدَوِيِّ أَنَّهُ قَالَ لِعَمْرِو بْنِ سَعِيدٍ وَ هُوَ |
|---|
| دابو شریح عدوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې نقل دي چې دوي وویل عمرو بن سعید ته هغه وخت چې کله دوي |
| يَبْعَثُ الْبُعُوثَ إِلَى مَكَّةَ : ائْذَنْ لِي أَيُّهَا الْأَمِيرُ |
| د عبد الله بن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مقابله کې مکې ته لښکر لېږلو. چې ای زما سرداره! ما ته اجازه راکړه چې |
| أُحَدِّثْكَ قَوْلًا قَامَ بِهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الغدَ مِنْ يَوْمِ الْفَتْحِ |
| چې زه ستا مخې ته هغه بیان وکړم کوم چې نبي کریم ﷺ بیان کړې وو په سبا ورځ د فتح مکې |
| سَمِعَتْهُ أُذُنَايَ وَ وَعَاهُ قَلْبِي وَ أَبْصَرَتْهُ عَيْنَايَ حِينَ تَكَلَّمَ بِهِ : |
| کې هغه خبره زما غوږونو اوریدلې، زما زړه یاده ساتلې او زما سترګو لیدلې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمایل! |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵ ۶۷۹ رقم الحدیث ۳۹۲۵

حَمِدَ اللّٰهَ وَ أَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ : " إِنَّ مَكَّةَ حَرَّمَهَا اللّٰهُ

نبي عَلَيْهِ السَّلَامْ د الله تعالى حمد او ثناء بيان كړه او بيا يې وفرمايل چې مكې ته الله تعالى عظمت وركړى

وَ لَمْ يُحَرِّمْهَا النَّاسُ فَلَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْآخِرِ

دى، دې ته خلكو بزرګي نه ده وركړي، لهذا كوم سړى چې په الله تعالى او د آخرت په ورځ ايمان لري.

أَنْ يَسْفِكَ بِهَا دَمًا

نو دهغه لپاره حلال نه دي چې هغه په دې ښار كې وينه توى كړي (يعني هيڅ مسلمان دي په دې ښار

كې سړى نه وژني اګر كه هغه د مرګ لائق وي او كوم سړى چې د مرګ لائق نه وي نو د هغه مرګ هرځاى

وَلَا يَعْضِدَ بِهَا شَجَرَةً

كې حرام دى اګر كه هغه د مكې د ننه وي او كه بهر) او نه دا حلال دي چې د دې زمكې بوټې غوڅ كړي او

فَإِنْ أَحَدٌ تَرَخَّصَ بِقِتَالِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِيهَا

كه كوم سړى په دې ښار كې د وژلو لپاره د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمْ د عمل نه جواز پيدا كړي (لكه څنګه

فَقُوْلُوْا لَهُ : إِنَّ اللّٰهَ قَدْ أَذِنَ

چې په حديث نمبر ۳ كې د ابن خطل د وژلو واقعه تېره شوه) نو هغه ته و وايه چې الله تعالى اجازت وركړى

لِرَسُوْلِهِ وَ لَمْ يَأْذَنْ لِرَسُوْلِهِ وَ لَمْ يَأْذَنْ لَكُمْ وَ إِنَّمَا أُذِنَ لِي فِيهَا

خپل رسول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمْ ته او تاته اجازت نشته دى. نو ماته اجازت راكړي شوې وه د قتل كولو په دې

سَاعَةً نَهَارٍ وَ قَدْ عَادَتْ حُرْمَتُهَا الْيَوْمَ كَحُرْمَتِهَا بِالْأَمْسِ

دې ښار كې په ورځ كې د لږ ساعت لپاره او نن ورځ بحال دى حرمت د دې ورځې كوم چې پرون تير شوې وو

(حال دا چې دا خطبه وركول كيده) كوم خلك چې دلته شته دى، هغوى ته پكار دي چې زما دا خبره

وَ لْيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ ". فَقِيلَ لِأَبِي شُرَيْحٍ :

هغه خلكو ته ورسوي كوم چې دلته نشته دى. د ابو شريح رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه پوښتنه وشوه چې تاته څه ويلي ؤ

مَا قَالَ لَكَ عَمْرٌو ؟ قَالَ : قَالَ :

عمرو ابن سعيد (دې حديث اوريدو سره) نو ده وويل چې عمرو بن سعيد ماته وويل چې زه (دې حديث

أَنَا أَعْلَمُ بِذَلِكَ مِنْكَ يَا أَبَا شُرَيْحٍ أَنَّ الْحَرَمَ لَا يُعِيذُ عَاصِيًا

ته) دې باندې د تا نه ډیر پوهیږم ای ابو شریح! خو د حرم ز مکه سرکشه ته پناه نه ورکوي او نه هغه سړي

وَلَا فَارًّا بِدَمٍ وَلَا فَارًّا بِخَرْبَةٍ . وَ فِي الْبُخَارِيِّ : الْخَرْبَةُ : الْجِنَايَةُ .[1]

ته پناه ورکوي څوک چې د قتل کولو نه وروسته تختيدلى وي يا يې تقصير کړى وي او تختيدلى وي.

**توضيح**: **عمرو بن سعيد**: ملاعلى قاري رَحِمَهُ اللَّهُ، شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللَّهُ مظاهر حق او نور شارحينو عمرو بن سعيد د عبدالملك بن مروان رَحِمَهُ اللَّهُ د اړخ نه د مدينې والي ويلى دي. خو ځينو شارحينو ليکلي دي چې عمرو بن سعيد د يزيد بن معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له اوښه د مدينې والي وو. حضرت اقدس محدث العصر مولانا سيد محمد يوسف بنوري رَحِمَهُ اللَّهُ هم مونږ ته د بخاري شريف په درس کې ويلي وو چې عمرو بن سعيد د يزيد والي وو. او دا خبره د پوهيدلو په لحاظ ديره د پوهيدلو قابله ده. ځکه د مدينې په اول ځل مکې باندې د حملې کولو لپاره د يزيد لښکرې راغلې وي. د يزيد د مرګ نه وروسته د مروان بن الحکم حکومت راغلى دى او د هغې نه وروسته د عبدالملک بن مروان حکومت راغلو. هغه وخت حجاج بن يوسف د عبدالله بن زبير خلاف لښکرې رواني کړي وي. او هغه يې شهيد کړو. د دې تفصيلات به کتاب الفتن کې ان شاء الله راځي. زه حيران يم چې ملاعلى قاري رَحِمَهُ اللَّهُ، شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللَّهُ او د هغې نه وروسته ټول شارحين د دې لوى غلطۍ ښکار شول. ما د حضرت مفتي نظام الدين شهيد رَحِمَهُ اللَّهُ تقرير بخارې کې ليدلى دى نو هلته يې صحيح ليکلي وو. بيا فتح الباري کې د ابن حجر لاندې ذکر شوى عبارت وګورئ، نو زړه خوشحاله شي هغه وايي : **اى يرسل الجيوش الى مكة لقتال ابن الزبير لكونه امتنع من مبايعة يزيد بن معاوية واعتصم بالحرم وكان عمرو بن سعيد والى يزيد على المدينة والقصة مشهورة. (فتح البارى)**

اوس د دې حديث د پس منظر کتنه هم لږ وکړئ :د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د شهادت نه وروسته حضرت حسين رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خلافت نه د برات اعلان وکړو. نو حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د ټول امت خليفه شو. هغې په ډير ښه طريقې سره د اسلام خدمت وکړو او اسلامي سلطنت يې فراښه کړو. هغې د مرګ نه مخکې خپل ځوي ځکه ولى عهد کړو چې د مخکې پښان د مسلمانانو په مينځ کې د خلافت په مسئله جنجال پيدا نشي هغې يزيد راوغوښتو او د آئينده باره کې يې عجيبه مدبرانه مشوره ورکړه

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۶۱/۳ رقم الحديث :۱۷۲۷، ومسلم في صحيحه ۹۴۵/۲ رقم الحديث: ۱۳۰۱/۳۱۷.

وي فرمايل چې ستا د حكومت په خلاف به څلور كسان راپاڅېږي. يو محمد بن ابي بكر دی. خو كيدی شي چې د هغې عمر وفا ونه كړي نو ځكه خطر نشته دی. دويم عبد الله بن عمر دی. دا صوفي او عبادت كونكی او تقوی والا سړی دی. د دېنه هم خطر نشته دی. دريم حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی. ياد وساته! دا د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لمسی دی. د دې ډير احترام كوه. څلورم عبد الله بن زبير دی دا ډير هوښيار سړی دی د ده نه ځان ساته. د حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مرګ نه وروسته يزدی د توري په زور بيعت اخستل شروع كړل. د محمد بن ابي بكر ژوند په رشتيا وفا ونه كړه هغه مړ شو. حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم چپ پاتې شو. خو حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عبد الله بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مكې ته د پناه په عرض لاړل. حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د كوفي د خلكو له اړخ نه اتلس سوه (۱۸۰۰) خطونه وصول شول. چې په هغې ورته كوفي ته د راتللو دعوت وركړی شوی وو. د دېنه بغير هم د مشوري والا خلكو حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كوفي ته تللو نه منع كړو خو هغه كوفي اړخ ته روان شو. او هلته كربلا چې څه كيدل هغه وشول. د حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د فارغيدلو نه وروسته يزيد د حضرت عبد الله بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وژلو لپاره د لښكرو د ليګلو حكم وكړو. په مدينه كې يزيد له اړخ نه عمرو بن سعيد والي وو. هغې لښكر روان كړو. نو حضرت ابو شريح صحابي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغې ته ښه زور سره د ياد ساتلو وړ تقرير وكړو او د ښه كولو كوښښ يې وكړو خو د هغې د اقتدار نشه وه. هغې څه په ګډو وډو خبرو سره صحابي پسې خندا وكړه او وي ويل چې زه ستانه ډير پوهېږم. عبد الله بن زبير باغي دی. يزيد خليفه دی. د دې باغي وژل په حرم كې هم جائز دي. ځكه حرم هيڅ قاتل يا غل ته پناه نه وركوي. عمرو بن سعيد ته د اشدق يعنې خله ور لقب وركړو. همدغه شان هغې ته يې لطيم الشيطان هم وويل. يعنې شيطان هغه به څپيړه وهلی دی. دا سړی نه صحابي دی او نه ورته د تابعي درجه ملاو شوي ده. حضرت ابو شريح هغوی ته نصيحت كولو.

**قام به:** دا د قول معنی ده ای قولا قال به.

**الغد:** يعنې د فتح مكې په ورځ يې وفرمايل.

**ترخص:** يعنې كه كوم سړی په مكې د جنګ لپاره نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنګ لپاره بنياد جوړ كړي او د خپل جنګ لپاره؛ جازت او رخصت اخستل غواړي نو داسې كول ناجائز دي.

**انا اعلم:** څومره اهل دی څوک چې د صحابي په مقابله كې ځان ته غټ عالم وی. او كار غلط كوي. همدغه وطيره راروانه ده. ټول اسلامي منافق حكمرانانو ته چې شراب څكې او بيا هم ځان ته د ټولو نه ښه او غوره وايي. (المرقات ۵/۶۰۶)

**ولا فاراً بدم**: يعني حرم هغه سړی ته پناه نه ورکوي چا چې قتل کړی وي او د ې طرف ته را تختيدلی وي

**بخربة**: يعني جرم او تهمت او فساد کونکي ته هم پناه نه ورکوي. عمرو بن سعيد دلته صريح دروغ ويلي دي. ځکه عبد الله بن زبير د شان والا صحابي دی. نه ګناه کونکی وو او قتل کونکی او فساد کونکی وو. بلکې دا کارونه خپله هغه فاسق لطيم الشيطان وو. (المرقات ۵/۶۰۷)

**لايعيذ صبياً**: د دې جملې نه په فقهاؤ کې يو اختلاف پيدا شوی دی. د فقهاؤ د اختلاف تفصيل داسې دی. که کوم يو سړی په حرم کې دننه قتل يا د زخمي کولو جرم وکړي. نو د ټولو فقهاوو اتفاق دی چې په حرم کې به د هغې نه بدله اخستلی کېږي. او د هغې نه به قصاص اخستلی کېږي او که کوم سړی د زخمي کولو جرم وکړي او په حرم کې دننه پناه واخلي نو که قتل شوي انسان نه بغير جرم وي نو اتفاقاً به قصاص اخستلی کېږي او که بېرون قتل وکړي او راشي او حرم کې پناه واخلي نو په دغه صورت کې د فقهاوو اختلاف دی. چې دې له سزا ورکړی کېږي او که نا. (المرقات ۵/۶۰۷)

**د فقهاؤ اختلاف**: امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام شافعی رَحِمَهُ اللهُ وايي چې په حرم کې پناه اخستونکې داسې سړی به د قصاص به بدل کې وژل کېږي. امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د داسې سړي نه به په حرم کې قصاص نه اخستلی کېږي. او نه به حرم کې هغې سزا ورکولی شي. خو دومره دا چې د هغې نه به بائکاټ کېږي، د دې لپاره چې هغه راوتلو ته مجبور شي. او سزا ورکړی شي. د شوافعو او د مالکييو زير بحث حديث کې د ابو شريح په روايت کې عمرو بن سعيد د قول نه استدلال کړی دی چې حرم هېڅ نافرمانه ته پناه نه ورکوي. دې حضراتو دويم استدلال د ابن خطل د واقعې نه کړی دی چې هغه د بيت الله پردې پسې نښتی وو او قتل کړی شو، دا په قصاص کې وژل شوی وو. ځکه دا د اسلام د قبلولو نه وروسته مرتد شوی وو. او هغې يو مسلمان هم وژلی وو. د هغې په قصاص کې وژل شوی وو. احنافو او حنابلو د ابو شريح د روايت نه استدلال کړی چې په هغې کې ځېنې دا الفاظ هم راغلي: **فلا يحل لامرئ يومن بالله واليوم الاخر ليسفك فيها دماً** د دينه معلومه شوه چې په حرم کې په هېڅ صورت کې قتل کول جائز ندي. د **ومن دخله كان آمناً** نه هم د دينه حضراتو استدلال کړی دی.

**جواب**: شوافعو ديو فاسق فاجر سړي د قول نه استدلال کړی دی دا صحيح نه دی پدې مونږه افسوس کوو چې د حديث مرفوع په مقابله کې د اشدق لطيم الشيطان د قول نه يې څنګه استدلال کړی دی. د شوافعو د دويم دليل جواب دا دی چې ابن خطل د ارتداد په وجه وژل شوی وو. د قتل په وجه قصاص نه دی اخستلی شوی.

## د حرم په بې حرمتۍ سره به دا امت هلاک شي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَن عيَاشِ بنِ أَبِي رَبِيعَةَ المَخزُومِي قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لَاتَزَالُ هٰذِهِ الأُمَّةُ |
| عياش بن ابي ربيعه مخزومي رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې دا امت به تر هغه وخت |
| بِخَيرٍ مَا عَظَّمُوا هٰذِهِ الحُرمَةَ |
| پورې په خير سره وي ترڅو چې د دې حرمت (يعنې مکه او د حرم مکي حرمت) تعظيم کوي. څنګه چې |
| حَقَّ تَعظِيمِهَا فَإِذَا ضَيَّعُوا ذٰلِكَ هَلَكُوا .[1] |
| د دې د حرمت حق دی. او چې کله خلک د دې تعظيم پريږدي نو هلاک به کړی شي. |

**توضيح**: د عربو خلک اګر که د بيت الله ډير احترام کوي. خو اوس دا سې محسوسيږي چې دنيا ډيره راغونډول کيږي. نو څکه خپله عرب د ټولو نه ډير د بيت الله توهين او تحقير شروع کړيدی. بلکې څينې بې خبره څوانان وايي چې زمونږ په پرمختګ کې بيت الله ستونزه ده. څکه ټول کال د بيت الله ميلمانه سنبالوو. خپل کارونو لپاره اوزګار نه شو د دوي دا وينا غلطه دي. بلکې حقيقت دا دی چې بيت الله او د محمد رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ په وجه عرب ته پرمختګ ورکړی شوی دی. که د بيت الله بې عزتي وکړی شي نو تباه به شي. (المرقات ۵/۶۰۷)



(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۰۳۸، رقم الحديث ۳۱۱۰

# باب حرم المدینة حرسها الله

## د مدیني د حرم بیان

قال الله تعالیٰ: ﴿لَآ أُقْسِمُ بِهَٰذَا الْبَلَدِ ۱ وَأَنتَ حِلٌّ بِهَٰذَا الْبَلَدِ﴾ (سورة البلد آیت:۱/۲)

د ائمه احنافو په نزد مدینه منوره هم حرم ده. د دې خلاف دا الزام او بهتان صحیح نه دی چې احناف مدینه حرم نه مني احناف مدینه حرم مني هم او وایي هم د عظمت او احترام او د شرافت او مقام په اعتبار سره مدینه منوره داسې حرم ده لکه څنګه چې مکه مکرمه ده. خو احناف په حرم مکه او حرم مدینه کې د ښکار او د بوټو غوځولو او یا د ښکار کولو سزا کې فرق کوي. او وایي چې مکه کې ښکار کول او بوټي غوځول حرام دي. او جرم هم دی. لهذا د جرم په صورت کې مکه کې جریمه ورکول د جزا په توګه وي. خو په مدینه کې د ښکار په صورت کې دغه شان جزا لازم نه ده. څنګه چې حرم مکه کې ده. ائمه ثلاثه هم د دې قائل دي. او د احنافو هم همدغه مقف دی. پدې باب کې مختلف قسمه احادیث راغلي دي. پدې کې به د فقهاوو اختلاف بیا بیانېږي. (المرقات ۵/۶۰۸)

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### د حرم مدینه حدود

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: مَا كَتَبْنَا عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِلَّا الْقُرْآنَ |
| علي رضي الله عنه وایي چې مونږ نه دي لیکلي د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د اړخ نه بغیر د قرآن او د هغه خبرو نه چې |
| وَمَا فِي هَذِهِ الصَّحِيفَةِ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: |
| هغه پدې صحیفه کې دي، علي رضي الله عنه وایي چې (ما) پدې صحیفه کې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد |
| اَلْمَدِينَةُ حَرَامٌ مَا بَيْنَ عَيْرٍ إِلَى ثَوْرٍ فمنْ أَحدَثَ فِيهَا حَدَثًا |
| (هم لیکلی) دی چې مدینه عیر او ثور په مینځ کې حرامه ده. لهذا کوم سړی چې په مدینه کې بدعت |
| أَوْ آوَى مُحْدِثًا |
| وکړي (داسې خبره وکړي او یا یې عملي کړي چې د قرآن او حدیث خلاف وي) یا کوم بدعتي ته پناه ورکړي |
| فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللهِ وَ الْمَلَائِكَةِ وَ النَّاسِ أَجْمَعِينَ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ |
| نو په ده باندې دالله. د فرښتو او ټولو خلکو لعنت دی د دې سړي خو نه (په پوره توګه) فرض قبلیږي |

| وَلَا | عَدْلٌ | ذِمَّةُ | الْمُسْلِمِيْنَ | وَاحِدَةٌ | يَسْعَىٰ | بِهَا | أَدْنَاهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نه يې نفل. د مسلمانانو وعده يوه ده چې د هغې لپاره د هغوی يو معمولي سړی هم کوښښ کوي لهذا | | | | | | | |
| فَمَنْ أَخْفَرَ مُسْلِمًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ لَا يُقْبَلُ | | | | | | | |
| کوم سړی چې د مسلمانانو وعده ماته کړي نو په هغه د الله، د فرښتو او د ټولو خلکو لعنت وي نه قبليږي | | | | | | | |
| مِنْهُ صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ وَ مَنْ وَالَىٰ قَوْمًا بِغَيْرِ إِذْنِ مَوَالِيهِ | | | | | | | |
| د ده نه فرض او نه نفل عمل! کوم سړی چې د خپل ملګرو د اجازت نه بغير د کوم قوم سره ملګرتيا وساتي | | | | | | | |
| فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ.[1] | | | | | | | |
| په ده باندې د الله، د فرښتو او ټولو سړو لعنت دی، نه د هغې فرض قبليږي او نه نفل. | | | | | | | |

**توضيح: هذه الصحيفة:** څو ځله دا خبره ليکلی شوي ده. چې د شيعه او د روافضو دا خيال دی چې نبي کريم ﷺ د خلافت نه مخکې حضرت علي رضي الله عنه ته د خلافت او د داسې نورو شيانو وصيت کړی وو. د حضرت علي رضي الله عنه په زمانه کې هم دا نظر پيدا شوی وو. نو ځکه به د حضرت علي رضي الله عنه نه خلکو نه پوښتني کولې. چې نبي کريم ﷺ تاته د څه خبرې وصيت کړی وو. حضرت علي رضي الله عنه به هميشه د دې ترديد کولو خو شيعه روافض د هغه خبره هم نه مني. (المرقات ۵/۶۰۸)

**المدينة حرام:** يعني مدينه د احترام او د عزت قابل ده. د دې توهين حرم دی. د شوافعو په نزد حرام په معنی د حرم شريف ده.

**ما بين عير الى ثور:** يعني حرم د مدينې په حدود کې د عير غر نه تر د ثور غر پورې ده. (المرقات ۵/۶۰۸)

ملاعلي قاري رحمه الله ليکلي چې د عير او د ثور په مينځ کې د مدينې په غاړه دوه غرونه دي. عير خو په مدينه کې مشهور دی خو د ثور غر په مدينه کې مشهور ندی بلکې مکه کې مشهور دی. چرته چې غار ثور دی. علامه علي بن سمهودی رحمه الله په خپل کتاب وفاء الوفاء باخبار دار المصطفی کې ډير اقوال د معتبر علماوو نه نقل کړي دي. چې هغوی په مدينه کې ثور د غر نه انکار کړی دی او د بحث لاندې حديث کې يې بې ځايه تاويلات کړي دي. بيا علامه سمهودی د هغه اکابر علماوو

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۸۱/۴ رقم الحديث: ۱۷۷۰، ومسلم في صحيحه ۹۹۴/۲ رقم الحديث ۴۶۷-۱۳۷۰.

اقوال هم رانقل کړي دي. چې په مدينه کې يې د ثور غر ثابت کړی دی. ابو عبيده ويلي دي: **بلغني ان بالمدينة جبلاً يقال له ثور. قال المجدو ثور جبل عند احد. قال عبدالسلام الصرى ان حذاء احد عن يساره جانحاً الى ورائه جبل صغير يقال له ثور. قال ابن تيميه رَحِمَهُ اللّٰهُ عير جبل عندالميقات شبيه العير وهوا الحمار و ثور. جبل فى ناحية احدو هوا غير جبل ثور الذي بمكة.(وفاء الوفاء ج ا ص ۹۴)**

حضرت مولانا محمد ادريس کاندهلوی رَحِمَهُ اللّٰهُ د صاحب قاموس په حوالا سره ليکلي دي او علامه ابن حجر د محققينو په حوالا سره ليکلي دي چې عير او ثور دواړه غرونه په مدينه کې دي. د احد غر سره يو وړوکی شان غر دی چې د هغې نوم ثور دی. اگر که مشهور نهدی. د دې تحقيق نه وروسته دا اعتراض ختمېږي. چې په مدينه کې د ثور غر نشته دی. (المرقات ۵/٦٠٩)

**حدثاً:** بدعت او يا بل قسم حادثې او فساد ته وايي . (المرقات ۵/٦٠٨)

**اوی:** ځای ورکولو ته وايي . (المرقات ۵/٦٠٨)

**صرف:** د دينه فرض مراد دی. **عدل:** نه نفل مراد دی. (المرقات ۵/٦٠٩)

**ذمة المسلمين:** يعنې د ټولو مسلمانانو ذمه واري يوه ده. چا چې چاته امن ورکړو او يا يې معاهده وکړه نو په ټولو مسلمانانو باندې د هغې احترام لازم دی.

**يسعیٰ بها:** يعنې مسلمانان د يو منزل پشان يو دي. که کوم وړوکې يا لويې يا ډيرو يا لږو معاهده وکړه نو وړوکی او لويې هره طبقه به کافران کامياب کړي او د هغې احترام به کوي. (المرقات ۵/٦٠٩)

**فمن اخفر:** يعنې د کوم مسلمان معاهده يې ماته کړله او خلاف يې وکړو.

**ومن والى قوماً:** د ولاء نه ولاء موالات هم مراد کيدی شي او ولاء نه عتاقه هم مراد کيدی شي. (المرقات ۵/٦٠٩)

**ولاء:** د دې دوه قسمونه دي. اول قسم موالات دی يعنې کوم سړی چې د چا سره ملگرتيا ماته کړي. په دورجاهليت کې په دغه شان کولو معاهده کولو سره سړی د کور کافر شو. او د يو بل وارث به شو. دويم قسم ولاء عتاقه دی. هغه دا چې کوم سړی يو غلام ازاد کړي. کله چې هغه مړ شي، نو د هغې ميراث د هغې د ازاد کونکې وي. خو پدې شرط چې د غلام هيڅ وارث نه وي. وس معتِق او

معتق یو بل سره ملګري شول. او س په حدیث پوهه شي چې کوم سړی د معاهده کونکو نه بغیر خپله معاهده د بل چا اړخ ته منسوب کړه. نو خپلو ملګرو ته ضرر ورسولو. ځکه دا ګناه ده. منع ده. که ولاء عتاقه مراد وي نو د حدیث مطلب به دا وي چې کوم غلام د خپلې ازادۍ نسبت بل د خپل مالک نه بل کوم چاته وکړو. نو پدې کې به د میراث مسئله پیدا کېږي. ځکه دا ګناه دا، او ناجائزه ده. علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ همدغه دویم مطلب بیان کړی دی. چې دا نسبت همدغه شان حرام دی لکه څنګه چې د خپل پلار نه بغیر بل چاته نسبت کول ناجائز دي. پاتې شوه دا خبره چې د خپل مالک د اجازت څه مطلب دی. چې د هغې د اړخ نه اجازت وي نه دا نسبت به جائز وي؟ نو علماو لیکلي دي چې د هغې د اجازت ورکولو نه بغیر هم جائز نه ده. (المرقات ۵/۶۰۹)

**اذان موالی:** د دې قید اکثر او اغلبې دې څه احتراز نه دی پدې حدیث کې په شیعه شنیعه باندې ښکاره رد دی چې وايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مرګ په وخت کې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لپاره د خلافت پروانه لیکلې وه او د هغې د خلافت نه بغیر یې نور وصیتونه هم لیکلي وو چې هغه د اهل بیت سره خاص وو د شیعه ګانو به اذانونو کې دا تحریف علی اعلان شتون لري. (المرقات ۵/۶۰۹)

## د مدینې حدود او په هغې د ښکار حکم

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ سَعْدٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " إِنِّي أُحَرِّمُ مَا بَيْنَ |
| سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې زه حرام (د عظمت والا) ګرځوم په مینځ |
| لَابَتَيِ الْمَدِينَةِ : أَنْ يُقْطَعَ عِضَاهُهَا |
| د دواړو غرونو د مدینې کې، لهذا تاسو مه غوځوئ د دې دواړو غرونو په مینځ کې د زمکې نه ازغن بوټي |
| أَوْ يُقْتَلَ صَيْدُهَا " وَ قَالَ : الْمَدِينَةُ |
| او مه په دې کې ښکار کوئ، (د احنافو په نزد دا ممانعت د نهي تنزیهي په توګه دی) او وې ویل چې مدینه |
| خَيْرٌ لَهُمْ |
| د هغه (خلکو) لپاره (چې په مدینه کې او سیږي) غوره ده (یعني مدینه کې قیام د دنیا او د عقبی د خیرونو |
| لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ لَا يَدَعُهَا أَحَدٌ |
| ذمه واره ده) خو پدې شرط چې هغه (د دې خیر او غوره والی) و پیژني نو د دې ښار اقامت دې نه پرېږدي |
| رَغْبَةً عَنْهَا |
| او د دنیا د آرام او د راحت لپاره دې د دې پرېښودل او بل ځای ته تګ نه کوي) کوم سړی چې هم بغیر |

| |
|---|
| إِلَّا أَبْدَلَ اللهُ فِيهَا مَنْ هُوَ خَيْرٌ مِنْهُ |
| دضرورت نه دا پرېږدي نو الله به دده په ځای داسې سړی دلته مقیم کړي چې هغه به د هغه نه غوره وي |
| (یعنې دضرورت په وجه مدینه پرېښودل ضرري نه ده بلکې د هغه لپاره به ګټوره وي چې د هغه سړی په |
| ځای بل کوم ښه سړی راشي او مقیم شي خو دضرورت او مجبورۍ په وجه مدینه پرېښودل پدې حکم کې |
| وَلَا يَثْبُتُ أَحَدٌ عَلَى لَأْوَائِهَا وَ جَهْدِهَا |
| داخل نه دي) او کوم سړی چې په مدینه کې د مشکلاتو او ولږې سره ثابت قدم شو (یعنې هلته په هر |
| إِلَّا كُنْتُ لَهُ شَفِيعًا أَو |
| مشکل او تنګۍ باندې صبر کوي) نو زه به دده شفاعت کوم یایې داو فرمایل چې زه به (دده په اطاعت) |
| شَهِيدًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ.[1] |
| ګواه کیږم د قیامت په ورځ. |

**توضیح:** اَنِّی اُحَرِّمُ: د دینه مخکې حدیث کې لفظ احرام راغلی دی. دلته د احرم لفظ دی. حدیث نمبر ۵ کې د حرمت المدینة الفاظ دي. او س کتنه دا ده چې پدې تحرم سره د مدینې حرم کیدل مراد دې او که پدې کې د ښکار ممانعت اړخ ته اشاره ده. په دغه دویم صورت کې د فقهاء کرامو اختلاف دی. (المرقات ۵/۶۱۳)

**د فقهاؤ اختلاف:** د مدینې منورې په حرم کېدلو باندې د ټولو فقهاوو اتفاق دی. خو په مدینه کې بوټو ماتولو او په ښکار کولو کې اختلاف دی. امام شافعی، امام احمد او امام مالک فرمایې چې د حرم مدینې حکم د مکې پشان دی. لکه څنګه چې هلته ښکار او داسې نور څه بوټي ماتول منع دي. همدغه شان په مدینه کې هم منع دي. امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او امام ثوری رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حرم مدینه د مکې د حرم پشان نه دی. لهذا حرم مدینه کې ښکار کول او بوټي ماتول جائز دي. خو دا دا چې دا مکروه تنزیهي یعنې خلاف اولی ده. (المرقات ۵/۶۱۵)

**دلائل:** ائمه ثلاثو د زیر بحث حدیث نمبر ۲ نه استدلال کړی دی. همدغه شان د حضرت ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روایت نمبر ۵ نه یې هم استدلال کړی دی. او دغه شان د حضرت عامر بن سعد د روایت نمبر ۶ نه یې استدلال کړی دي. پدې روایاتو کې د ښکار کولو ممانعت ذکر دی. او د بوټو د

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۹۹۲ رقم الحديث: ۴۵۹/۱۳۶۳

ماتولو ممانعت دی. وسله گرزول او جنگ کول هم منع دي. دا ټول د دې د حرم دليلونه دي. د جزاء او سزا باره کې د ائمه ثلاثه يو قول داسې دی. چې د مکې پشان سزا او جزاء به وي. دويم قول داسې دی چې جرم کونکې به د سامان او د جامې نه محرومه ول کېږي. ائمه احناف او سفيان ثور رَحِمَهُ اللهُ د مشکوة شريف په باب المزاح کې د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ناسکه ورور ابو عمير د روايت نه استدلال کړی دی چې هغې په پنجره کې مرغۍ اچولې وه. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه منع نه کړو بلکې د مرغۍ په مرگ يې تعزيت وکړو او وې فرمايل چې **ياأبا عمير ما فعل النغير؟**

احنافو د حضرت سلمه بن اکوع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت نه هم استدلال کړی دی. چې ابن ابي شيبه او طبراني نقل کړی دی. د هغې خلاصه دا ده چې حضرت سلمه بن اکوع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ښکار غوښه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته پيش کړله نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې که ته چرې د عقيق غونډۍ ته د ښکار لپاره تلې وې نو د تللو په وخت کې به ما ته رخصت کړی وې او بېرته راتللو باندې به مې ستا استقبال کړی وې. ياد وساتۍ چې د عقيق غونډۍ په حرم مدينه کې ده. (المرقات ۵/۶۱۴)

احنافو په مشکوة شريف کې د ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت نمبر۵ هم استدلال کړی دی. هلته په واضحه توگه ذکر دي. چې د وابنه لپاره د بوټو پاڼې غوڅول جائز دی. حال دا چې په مکه کې داسې کول جائز ندي. معلومه شوه چې دواړو حرمينو کې فرق دی. احنافو د طبرانې د يو حديث نه هم استدلال کړی دی چې په هغې دا الفاظ دي **احد حبل يحبنا ونحبه فاذا جئتموه فكلوا من شجره ولو من عضاه** د احد غر په حرم مدينه کې داخل دی. نو ښا د هغې بوټې نه خامخا څه ماتول او خوړل د دې خبرې دليل دی چې په حرم مدينه او په حرم مکه کې فرق دی. (المرقات ۵/۶۱۷)

**جواب:** چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه په حرم مدينه کې ښکار کول او ښکار په پنجره کې بندا ول ثابت دي. د احد د غر د بوټو نه څه غوڅول او خوړل ثابت دي. د څاروو لپاره د بوټو نه پاڼې راشکولو اجازت ثابت دی نو ائمه ثلاثوو په استدلالاتو کې به تاويل کول غواړي چې پدې ټولو احاديثو کې تطبيق راشي. هغه تاويل به داسې وي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې مدينې د بوټو ماتول او د ښکار کولو نه منع کړي ده دا نهی تنزيهی او خلاف اولی باندې محمول دي. او پدې کې حکمت او مصلحت دا دی چې په مدينه کې ښکلا او ښينکی ختم نشي. لهذا دا ممانعت د انتظامي مصلحت د وجې نه وو. د حرم مدينې د حرمت د وجې نه نه وو. دا حکم همدغه شان دی لکه څنگه چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مدينې د ښائسته غرونو د ختمولو نه منع فرمايلې ده. لکه څنگه چې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه چا د حرم مدينې د بوټو ماتولو باره کې پوښتنه وکړه نو هغې وفرمايل چې دا د مدينې د غونډو د د ختمولو پشان دی. او وې فرمايل **انها زينة المدينة**. د انتظامي مصلحت

په بنياد نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حرمينو نه بغير د طائف سره د علاقه وج ښکار او د بوټو ماتول هم منع کړي وو. دا هم همدغه شان حکم دی. علامه تور پشتی رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې په حديث کې واني حرمت المدينة چې کوم الفاظ دي. دا حرمت د تعظيم لپاره دی. د مکې د حرمت پشان ندی. بهر حال جمهورو د محتمل روايت نه استدلال کړی دی. هغه يقيني ندي. الزامي جواب دا دی چې د مکې پشان کفاره د جمهورو په نز هم نشته دی، نو بيا وجوب څنګه؟(المرقات ۵/۶۱۵)

**حرم مدينه:** د دې اول حديث نه معلومه شوه چې د حرم مدينه حد بندي د عير غر نه تر ثور غر پورې دی. د زير بحث حديث کې لابتي المدينة الفاظ دي. د دينه وروسته حديث نمبر ۵ کې د **مأزميها** الفاظ دي. پدې الفاظو د اطرافو او د جهالت اندازه ويلی شوي ده. خاص تحديد نشته دی. ځکه د **لابتي** نه هغه دوه اړخونه دي چرته چې غرونه دي. ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې **لابة** تورو کاڼو ته وايي او **مأزميها** د دوه غرونو مينځ کې تنګي لارې ته وايي. چې هغه غرونو کې راګيره وي. د دينه هم د مدينې منورې دوه اړخونه مراد دي. پدې رواياتو کې د حدود حرم اندازه خو شته دی خو تحديد او تعين نشته دی. د دې په مقابل کې هغه حديثونه دي چې په هغې د مدينې څلور واړه اړخونه د بريد نه شوي دي. دا غوره تحديد او تعين دی. ځکه په بريد کې څلور فرسخ وي او يو فرسخ درې (۳) ميله وي. لهذا يو بريده دولس (۱۲) ميله مسافه ده يعنې حرم مدينه د هر څلور اړخو نه د يو يو بريد په مقدار پورې ده. همدغه شان د مسلم روايت دی وجعل اثنی عشر ميلا حول المدينة حمی امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې يو حرم الشجر دی، دويم حرم الصيد دی د يو بريد په مسافه کې بوټی ماتول ناجائز دی دا حرم الشجر دی او **مابين اللابتين** په مسافه کې ښکار کول منع دی، دا حرم الصيد دی بهرحال مدينه منوره د لاندې مقاماتو په مينځ کې ده د دې مقاماتو نومونه دا دي ذات الجيشو شريب، اشراف المخيض، اشراف المجتهر، الحفياء، ذوالعشيرة، يثب، ثنية المحدث، مضرب القبة.

## د مدينې مصيبت برداشت کول ثواب دی

| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا يَصْبِرُ عَلَى لَأْوَاءِ الْمَدِينَةِ وَشِدَّتِهَا |
|---|
| ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې کوم کس صبر وکړو په ولږې او |

| أَحَدٌ مِنْ أُمَّتِي إِلَّا كُنْتُ لَهُ شَفِيعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ.[1] |
|---|
| سختي باندې زما د امت نه مګر زه به یې دده شفاعت وکړم د قیامت په ورځ باندې. |

**توضیح**:لاواء المدينة: یعنې مدینه کې محنت او مصیبت مثلاً کوم سړی چې په مدینه کې تبه او زکام او د تنده او ولګه برداشت کړي او په هغې باندې صبر کوي. نو هغه سړی ته به هغه اندازه اجر ورکړی کیږي څومره چې په دې حدیث کې ذکر دي.

## د مدینې لپاره د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د برکت دعاء

| ﴿٤﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : كَانَ النَّاسُ إِذَا رَأَوْا أَوَّلَ الثَّمَرَةِ جَاءُوا بِهِ إِلَى النَّبِيِّ |
|---|
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې د خلکو معمول ؤ چې کله به هغوی کومه میوه ولیده نو راوړه به یې نبي |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَإِذَا أَخَذَهُ قَالَ : اللَّهُمَّ بَارِكْ لَنَا |
| کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته او چې کله به یې دغه میوه اخستله نو فرمایل به یې: ای الله! برکت واچوي زمونږ |
| فِي ثَمَرِنَا وَ بَارِكْ لَنَا فِي مَدِينَتِنَا وَ بَارِكْ لَنَا فِي صَاعِنَا |
| په میوو کې ، زمونږ په ښار کې برکت واچوي، زمونږ په صاع کې برکت واچوي (یو صاع دیو پیمانې |
| وَ بَارِكْ لَنَا فِي مُدِّنَا اللَّهُمَّ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ عَبْدُكَ |
| نوم ؤ) زمونږ په مُد کې برکت واچوې (مُد هم دیوې پیمانې نوم ؤ) او ای الله! ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَام ستا بنده ؤ |
| وَ خَلِيلُكَ وَ نَبِيُّكَ وَ إِنِّي عَبْدُكَ وَ نَبِيُّكَ وَ إِنَّهُ دَعَاكَ |
| ستا خاص ملګری او ستا نبي ؤ او زه هم ستا بنده یم او ستا نبي یم، ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَام دعاء کړې وه ستا نه |
| لِمَكَّةَ وَ أَنَا أَدْعُوكَ لِلْمَدِينَةِ بِمِثْلِ مَا دَعَاكَ لِمَكَّةَ |
| د مکې لپاره او زه ستا نه د مدینې لپاره دعا کوم هغه شان دعا کومه چې ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَام د مکې لپاره کړې |
| وَ مِثْلِهِ مَعَهُ. |
| وه بلکې د هغې پشان نوره دعا (یعنې ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَام چې کومه دعا غوښتلې وه زه فقط نه هغه شان |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۰۰۴/۲ رقم الحديث: ۱۳۷۸/۴۸۱.

| ثُمَّ | قَالَ | : | يَدْعُو |
|---|---|---|---|
| دعا بلکې دهغې دوه چنده دعا غواړم) بیا ابوهریره رضي الله عنه وویل چې بیا به راوغوښتل نبي عليه السلام | | | |
| أَصْغَرَ | وَلِيدٍ | لَهُ | فيعطيه ذٰلِكَ الثَّمر.[1] |
| دخپلې کورنۍ تر ټول ماشوم ماشومان او هغوی ته به یې دغه میوه ورکوله (چې هغه ماشومان خوشحاله شي) | | | |

**توضيح:** **ومثله معه:** يعنې په مکه چې د حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام په دعا سره تا کوم برکات اچولې دي. هغه زما په دعا سره په مدينه کې هم واچوې، بلکې د دينه دوه چنده برکات پکې واچوې. د دوه چند لفظ نه حضرت امام مالک رحمه الله استدلال کړی دی چې مدينه د مکې نه غوره ده. ځکه کوم اجر او ثواب چې په مکه کې دی. د هغې دوه چنده يې د مدينې لپاره غوښتلی شوي ده. مضبوط دليل دی.

## د مدينې د حرمت ذکر

| ﴿۵﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ |
|---|
| ابو سعيد رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه نقل کوي چې نبي عليه السلام وفرمايل چې ابراهيم عليه السلام |
| حَرَّمَ مَكَّةَ فَجَعَلَهَا حَرَامًا وَ إِنِّي |
| مکې ته بزرګي ورکړه او هغه يې حرم وټاکلو (يعنې هغې د مکې بزرګی او حرمت ښکاره کړو) او ما |
| حَرَّمْتُ الْمَدِينَةَ حَرَامًا مَا بَيْنَ مَأْزِمَيْهَا أَنْ لَا يُهْرَاقَ فِيهَا دَمٌ |
| مدينې ته بزرګي ورکړه او د مدينې دواړو غاړو مينځ کې د بزرګي تقاضا دا ده چې نه خو به په کې مرګونه |
| وَلَا يُحْمَلَ فِيهَا سِلَاحٌ لِقِتَالٍ وَلَا تُخْبَطَ فِيهَا شَجَرَةٌ |
| کيږي نه به هلته د جنګ لپاره وسله را اوچتيږي، او نه به د دې (د بوټو) پاڼې راوځنډلی شي، خو |
| إِلَّا لِعَلَفٍ.[2] |
| فقط د ځارو د خوراک لپاره به پاڼې راوځنډلی شي. |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۱۰۰۰ رقم الحديث: ۱۳۷۳/۴۷۳.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۱۰۰۱ رقم الحديث: ۱۳۷۴/۴۷۵.

**توضیح:** **واني حرمت المدينة:** جمهورو ددې نه حرمت قطع اشجار او ښکار مراد اخلي چې دواړه ناجائز دي. احناف دا لفظ په عظمت او احترام حمل کوي. او احترام په هر مسلمان باندې لازم دی. (المرقات ۵/۶۱۴)

**مازمیها:** د دې مفرد مازم دی. دوه او خونه مراد دې. (المرقات ۵/۶۱۴)

**لعلف:** د ځاروو وابنو ته علف ویل شوي دي. يعنې د بوټو پاڼي د ځاروو لپاره راسنډلی شي. د دینه د احنافو مسلک ثابتیږي. چې د مکې او مدینې په حرم کېدلو کې فرق دی (المرقات ۵/۶۱۵)

## د حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عجيبه قصه

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ : أَنَّ سَعْدًا رَكِبَ إِلَى قَصْرِهِ بِالْعَقِيقِ |
| عامر ابن سعد (تابعی) وايي چې (يوه ورځ) سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سپور شو او لاړه خپل قصر ته چې په عقيق کې |
| فَوَجَدَ عَبْدًا يَقْطَعُ شَجَرًا أَوْ يَخْبِطُهُ |
| دی نو په (لاره کې) هغې يو غلام وليدو چې هغې يو بوټی ماتولو يا يې د هغې بوټي پاڼي راڅنډلي |
| فَسَلَبَهُ فَلَمَّا رَجَعَ سَعْدٌ |
| سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (د سزا او د تنبيه په توګه) د جامي قبضه کړي. بيا چې کله هغه (مدينې ته) راغلو او دا |
| جَاءَهُ أَهْلُ الْعَبْدِ فَكَلَّمُوهُ أَنْ يَرُدَّ عَلَى غُلَامِهِمْ أَوْ عَلَيْهِمْ مَا أَخَذَ مِنْ غُلَامِهِمْ |
| خبرې يې وکړي چې کوم شی يې چې د هغه غلام نه اخيستی دی (جامي يې) هغه غلام ته واپس کړه |
| فَقَالَ : مَعَاذَ اللهِ أَنْ أَرُدَّ شَيْئًا |
| يا يې د هغې (مالک) ته ور کړه سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل چې د خدای پناه! هغه شی زه څنګه بېرته ورکړم |
| نَفَّلَنِيهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ أَبَى أَنْ يَرُدَّ عَلَيْهِمْ.[1] |
| چې کوم ما ته نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راکړی دی نو سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته کپړي بېرته ورکولو نه انکار وکړو |

**توضیح:** **اوعليهم:** راوي ته شک شو چې غلام ته يې د هغې جامي د بېرته ورکولو وويل او که دا يې وويل چې زمونږ د غلام لپاره جامي دی هغه مونږ له واپس راکړه. (المرقات ۵/۶۱۸)

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۹۹۳ رقم الحديث: ۱۳۶۴/۴۶۱

**نفلنیه:** یعني د نبي کریم ﷺ وصیت وو چې که کوم سړی په مدینه کې بوټی مات کړی او د هغې پاڼې راوسنډی نو د هغه سړی جامې قبضه کړی . همدغه د مدینې د بوټو د ماتول سزا ده. نو د نبي کریم ﷺ د وصیت مطابق اخستی دي. دا به زه کله هم بېرته نه ورکوم. او که ته ډیر شور کې نو زه به د خپل اړخ نه تاتا د دې نرخ درکړم. د امام مالک او د امام شافعي رحمه الله په نز داسې سړی چې مدینې بوټي مات کړې نو هغه ته د مکې پشان سزا نشته دی. خو دا کار به مدینه کې د کفاره ورکولو نه بغیر حرام دی. ځینې نور علماء د مکې پشان د کفاری قائل دي. د احنافو په نزد مدینه کې دا عمل مکروه دی. دلته د بوټو د ماتولو ذکر دی. راروان حدیث نمبر ۲۰ کې دی. چې حضرت سعد رضي الله عنه د ښکار متعلق د ښکاري سامان قبضه کړی دی. (المرقات ۵/۶۱۸)

## د مدینې اب و هوا لپاره د نبي کریم ﷺ دعاء

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: لَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ الْمَدِينَةَ |
| عائشه رضي الله عنها وایي چې نبي کریم ﷺ (او صحابه) چې کله (د مکې نه) مدینې ته راغلل نو |
| وُعِكَ أَبُو بَكْرٍ وَ بِلَالٌ فَجِئْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| دابوبکر رضي الله عنه او دبلال رضي الله عنه تبه شوه نو زه د نبي کریم ﷺ په خدمت کې حاضره شوم او |
| فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ : اللَّهُمَّ |
| نبي کریم ﷺ ته مې (د هغوی د مریضتیا) خبرورکړو ،نبي علیه السلام دادعاوفرمایله: ای الله! |
| حَبِّبْ إِلَيْنَا الْمَدِينَةَ كَحُبِّنَا مَكَّةَ أَوْ أَشَدَّ |
| تەمدینەزمونږلپارەمحبوبەکړيلکەڅنګەچېتامکەزمونږلپارەمحبوبەجوړەکړيوەبلکېدهغېنه |
| وَ صَحِّحْهَا وَ بَارِكْ لَنَا فِي صَاعِهَا وَ مُدِّهَا |
| همډېره ، او د مدینې آب و هوا او د مدینې په صاع او مد کې زمونږ لپاره برکت واچوي، همدغه شان |
| وَ انْقُلْ حُمَّاهَا فَاجْعَلْهَا بِالْجُحْفَةِ.[1] |
| د مدینې تبه د (یعني د مدینې د تبې کثرت او وباء) دلته نه وباسي او حجفه ته یې منتقل کړي. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹۹/٤ رقم الحديث :۱۸۹۹، ومسلم في صحيحه ۱۰۰۳/۲ رقم الحديث: ۱۳۷٦/٤۸۰

**توضیح**: **جحفه**: د مدینې او د مکې په مینځ کې ځای نوم دی چې هغې ته نن سبا رابغ وایي . هغه وخت په هغې یهود وسیدل. نو ځکه نبي کریم ﷺ دا دعا وکړه. (المرقات ۵/۶۱۹)

**وعك**: د تبې شدت ته وایي د مکې مکرمې آب و هوا ډیر صحت منده وه. دلته نه چې کله صحابه مدینې ته لاړل نو مریضان شول. نو د مدینې آب و هوا دومره صحت منده نه وه. نو نبي کریم ﷺ د مدینې وبائي مرضونو جحفه ته منتقولو دعا وغوښتله او الله تعالی هغه دعا قبوله کړله. دعا دا وه. **اللهم حبب الینا المدینة الخ**.

**وعك ابو بکر وبلال**: د حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت بلال رضي الله عنه نومونه ځکه په خاصه توګه ذکر شوي دي چې هغوی چې کله د تبې په مصیبت کې ګیر شول او څه اشعار یې ویلي وو. حضرت ابو بکر رضي الله عنه فرمایلي وو. (المرقات ۵/۶۱۸)

**کل امرئ مصبح في اهله ❁ والموت ادنی من شراک نعله**

حضرت بلال رضي الله عنه د مکې د اوبو د چینو او واشو نوم واخستلو او دا سې یې وفرمایل:

**الا لیت شعري هل ابیتن لیلة ❁ بواد وحولي اذخر و جلیل**

**و هل اردن یوما میاه مجنة ❁ وهل تبدونه لي شامة و طفیل**

| ﴿٨﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ فِي رُؤْيَا النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي الْمَدِينَةِ : |
|---|
| عبد الله ابن عمر رضي الله عنه د مدینې متعلق د نبي کریم ﷺ د خوب باره کې دا حدیث نقل کړی دي |
| " رَأَيْتُ امْرَأَةً سَوْدَاءَ ثَائِرَةَ الرَّأْسِ خَرَجَتْ مِنَ الْمَدِينَةِ |
| چې (نبي علیه السلام وفرمایل) ما یوه توره ښځه ولیده چې د هغې ویختان ګډوډ وو هغه د مدینې نه ووتله |
| حَتَّى نَزَلَتْ مَهْيَعَةَ فَتَأَوَّلْتُهَا : أَنَّ وَبَاءَ الْمَدِينَةِ نُقِلَ إِلَى |
| او مهیعه ته لاړه بیا نبي علیه السلام وفرمایل چې ما د دې خوب تعبیر دا واخیستو چې د مدینې وباء لاړه |
| مَهْيَعَةَ وَهِيَ الْجُحْفَةُ ". [1] |
| مهیعه ته یعني جحفه ته . |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۲۶/۱۲ رقم الحديث: ۷۰۳۹.

**توضیح:** جحفه نن سبا د رابغ په نوم مشهوره ده. چې د مکې او مدينې په مينځ کې د يوې علاقې نوم دی. د دې اصل نوم مهيعه د مکيدة په وزن باندې ؤ. په سيلاب کې دا علاقه لاړه نو بيا د دې نو جحفه شو. دلته اکثر نفوس د يهودو وو.

## مدينه پريښودل او بل ځای کې اوسيدل مناسب نه دي

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ سُفْيَانَ بْنِ أَبِي زُهَيْرٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: يُفْتَحُ الْيَمَنُ |
| سفيان بن ابي زهير رضي الله عنه وايي چې ما واوريدل چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به فرمايل چې كله يمن فتح |
| فَيَأْتِي قَوْمٌ يَبُسُّونَ |
| شي نو يو داسې ټولګی به راشي چې هغه آرام خوښونکی وي (يعني مدينه کې داسې خلک پيدا شي |
| چې هغه به محنت او مشقت نه ځان لرې ساتي او د راحت او د ارام طلب ګار به وي) نو هغه خلک د |
| فَيَتَحَمَّلُونَ بِأَهْلِيهِمْ وَ مَنْ أَطَاعَهُمْ وَ الْمَدِينَةُ خَيْرٌ لَهُمْ لَوْ كَانُوا |
| مدينې نه د خپلو ماشومانو سره لاړ شي. حال دا چې مدينه به د هغوی لپاره غوره وي که هغوی (د |
| يَعْلَمُونَ وَ يُفْتَحُ الشَّامُ فَيَأْتِي |
| مدينې په غوره والي باندې) پوهه شول (نو مدينه به يې نه پريښوده) چې كله شام فتح شي نو رابه شي |
| قَوْمٌ يَبُسُّونَ فَيَتَحَمَّلُونَ بِأَهْلِيهِمْ وَ مَنْ أَطَاعَهُمْ وَ |
| يو ټولګی او هغه به آرام خوښونکې وي. نو هغه به د خپلو ماشومانو سره د مدينې نه لاړ شي حال دا |
| الْمَدِينَةُ خَيْرٌ لَهُمْ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ وَ يُفْتَحُ الْعِرَاقُ فَيَأْتِي |
| چې مدينه به د هغوی لپاره غوره وي که هغوی پوهه شو هم دغه شان چې کله عراق فتح شي نو رابه شي |
| قَوْمٌ يَبُسُّونَ فَيَتَحَمَّلُونَ بِأَهْلِيهِمْ |
| يو ټولګی چې هغه به ارام خوښونکې وي نو هغه خلک د خپلو ماشومانو سره د مدينې نه لاړ شي حال |
| وَ مَنْ أَطَاعَهُمْ وَ الْمَدِينَةُ خَيْرٌ لَهُمْ .لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ.[1] |
| دا چې مدينه به د هغوی لپاره غوره وي. که هغوی پوهه شي (نو مدينه به پرې نه ږدي). |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹۰/۴ رقم الحديث :۱۸۷۵، ومسلم في صحيحه ۱۰۰۹/۲ رقم الحديث: ۱۳۸۸/۴۹۷.

**توضیح:فیأتي قوم**: د دې جملې دوه مطلبه کیدلی شي. یو خو دا چې کله یمن فتح شي نو په مدینه کې به هغه وخت داسې خلک پیدا شوي وي چې په مدینه کې اوسیدل به پرېږدي او یمن ته لاړ شي حال دا چې مدینه به د هغوی لپاره غوره وي په دغه صورت کې دا د نبي کریم ﷺ دا رخ نه په آئنده کې پیشنګوئی ده. ځینو شارحینو داسې مطلب اخیستی دی. د دې جملې دویم مطلب دا دی چې کله یمن فتح شي نو څه خلک به د مدینې نه یمن ته راشي او د هغې کتنه به وکړي نو یمن به یې خوښ شي او بېرته به مدینې ته لاړ شي او خپل ماشومان به ځان سره یمن ته راولي. حال دا چې مدینه به د هغوی لپاره غوره وي که په دوی کې لږ هم عقل وي ځکه مدینه دیني او دنیوي هر لحاظ سره د برکاتو نه ډک ښار دی دادوحي ځای دی اودلته عزتمند پیغمبر آرام کوي(المرقات ۵/۶۲۰)

یا خیر من دفنت بالقاع اعظمه ❁ فطاب من طیبهن القاع والاکم

نفسي الفداء لقبر انت ساکنه ❁ فیه العفاف و فیه الجود والکرم

کومه تشریح چې د یمن پاس شوي ده. همدغه تشریح د شام او د عراق متعلق هم ده. نبي کریم ﷺ پیشن ګوئی فرمایلي چې یمن، شام او عراق به فتح کېږي. دا علاقې به ښني وي. نو د مدینې څه خلک به هلته د تللو ارمان ښکاره کړي. نبي کریم ﷺ داسې خلک په بلنې انداز کې پوهه کړل چې مدینه غوره ده. د دینه نورو علاقو ته مه ځئ . پدې سره د دې ښار پرقار (خکلا)کم شي.

**یسبون**: دا د نصر ینصر نه دی. اوښ یا اسي نورو شیانو ټېدل او په تیزه منډه وهلو ته وایي . د عرب مقوله ده. **یقال یسست الناقة ای سقیتها وزجرتها** په معنی د تیزه منډه وهلو دی. پاس ترجمه کې دویمه ترجمه ده. (المرقات ۵/۶۲۰)

**ومن اطاعهم**: یعنې خپل ماشومان او خپل ملګری او خادمان به ځان سره بوزي. پدې حدیث کې د ډیرو وړاندوینو ذکر دی. پوهیدنکی دې پوهه شي. (المرقات ۵/۶۲۰)

## چې مدینه پایه تخت شي نو مسلمانان به فاتحین شي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " أُمِرْتُ بِقَرْيَةٍ |
| ابو هریره رضي الله عنه وایي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل ماته یو داسې کلي ته دهجرت کولو حکم |
| تَأْكُلُ الْقُرَى . يَقُولُونَ : يَثْرِبَ وَ هِيَ الْمَدِينَةُ |
| راکړی شوی چې هغه په ټولو کلو غالب دي اوهغه کلی ته خلک یثرب وایي او (اوس) هغه مدینه ده. |

| تَنْفِي النَّاسَ كَمَا يَنْفِي الْكِيرُ خَبَثَ الْحَدِيدِ". [1] |
|---|
| چې هغه ناکاره سړی داسې وباسي لکه څنګه چې بټۍ د اوسپنې نه ګند (زنګ) اوباسي. |

**توضيح: تأكل القرىٰ:** يعنې ماته الله تعالى داسې ښار اړخ ته د هجرت کولو حکم را کړی دی. چې هغه به د دنيا ټول ښارونه وخري. د دې جملې دا مطلب دی چې کوم خلک مدينه خپل د اوسيدلو ځای جوړ کړي نو هغه به نورو خلکو باندې غالب شي. او مدينه به د دنيا ټول ښاروه فتح کړي او خپل ماتحت به يې کړي. د دې ښار خصوصيت دا دی چې دا د چا مرکز جوړ شو. نو نورې علاقې به د هغې په لاس کې وي. نو څکه د تاريخ په اعتبار سره علماوو ليکلي دي چې کله عمالقوو مدينه مرکز کړو نو هغه د هغه د نورو علاقو فات يعنې فاتحين شول. بيا چې کله يهودو هغه مرکز کړو نو هغه په عمالقه باندې غالب شول. بيا اوس او خزرج هغه د خپل اوسيدلو ځای جوړ کړو نو هغه په يهودو باندې غالب شول. بيا چې کله نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپلو مهاجرين صحابوو سره مدينې ته تشريف راوړو نو مهاجرين او انصار په يهودو باندې غالب شول بيا چې کله دا ښار د اسلامي خلافت مرکز شو نو د دنيا ټول ښارونه يې فتح کړل. يعنې دور نبوي، دور صديقي، دور عمري او دور عثمانې کې چې تر څو پورې مدينه د خلافت مرکزوو نو اسلام فاتحانه انداز سره مخکې تللو. بيا چې کله د حضرت على رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دور کې مرکز خلافت د مدينې په ځای کوفه شوه نو د اسلام فتوحات ودريدل.

**يقولون يثرب:** د مدينې پخوانی نوم يثرب او اثرب وو. چې د هغې معنی د هلاکت او فساد او زجر راځي. يا د يو عام سړي په نوم باندې دا نوم وو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې نوم مدينه کيښودلو. څکه يثرب د معنې په اعتبار سره ښه نه وو. يا د يو کافر په تاريخي يادګار سره دا نوم وو. او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به بد نومونه په ښه نومونو بدلول. وس ورته يثرب جائز نه دي. وفاءالوفاء کې علامه على بن احمد سمهودی رَحِمَهُ اللهُ د مدينې ټول نومونه په وجه تسميه سره ليکلي دي. او د هر نوم سره يې تاريخ بيان کړی دی. دا ټول نومونه ۹۴ دي ځينې عجيبه دي فقط نومونه ليکم نو وايي:

**يثرب، ارض الله، ارض الحجرة، اكالة البلدان، اكالم القرى، الايمان، البارة، البحرة، البحيرة، البلاط، البلط، بيت الرسول، تندد، تندر، الجابرة، جبار، الجبارة، جزيرة العرب، الجنة، الحصينة،**

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۸۷/۴ رقم الحديث: ۱۸۷۱، ومسلم في صحيحه ۱۰۰۶/۲ رقم الحديث: ۱۳۸۶/۴۸۸

الحبيبة، الحرم، حرم رسول الله، حسنة، الخيرة، ذات الحرار، ذات النخل، السلقلة، سيدم البلدان، الشافيم، طابه، طيبه، طائب، طباب، العاصمة، العذراء، العسراء، العروض، الغرّا، غلبة، الفاضحة، القاصمة، قبة الاسلام، قرية الا سلام، قرية رسول الله، قلب الايمان، المومنة، البارکة، مثوى الحلال والحرام، مبين الحلال والحرام، المجبورة، المحبة، المحببة، الحبيبم، المحبورة، المحرمة، المحفوفة، المحفوظة، المختارة، مدخل الصدق، المدينة، مدينة الرسول، المرحومة، المرزوقة، مسجد الاقصىٰ، المسكينة، المسلمة، مضجع الرسول، المطيبة، المقدسة، المكّتان، المكينة، مُهاجِر الرسول، الموفية، الناجية، نبلاء النحر، الهذراء، يندد، يندر، يثرب.

دا ټول څلورنوي (۹۴) نومونه دي پدې کې يثرب او اثرب منع دي. نور ټول مبارک نومونه دي. وفاء الوفاء کې ليکل شوي دي چې کوم سړی دا نومونه وليکې او تبې مريض ته يې په غاړه کې واچوي نو الله تعالى ورله تبه ختمه وي.

**الكير:** آهنګر چې کله وسپنه په کوټله کې کيدي. نو هغه کوټله د خاورې نه جوړه شوي په يوه ګرد څېر کې وي، لکه نغرى چې وي. د دې څېر نه شاته يو سوري کې کوټله راوځي. بيا آهنګر په سوري کې مشکيزه ږدي او يو ګس په خپلو دواړولاسونو خوزولو سره ديته هوا ورکوي او بيا يې بلې طرف ته پرېږدي. په هغې سره بيا وسپنه نرمه شي. هغې مشکيزي ته په حديث کې الكير ويل شوي دي.

**خبث الحديث:** د دينه مراد اوسپني زنګ دی اوسپنه چې ګرمه شی او سره شي نو د هغې زنګ لاړ شي. او د اوزارو جوړولو لپاره وسپنه خالصه شي. همدغه شان به مدينه منوره خبث او بدعقيده منافق خلک به خپل انداز سره بهر اوباسي. **الناس:** وران او خبيث او ذليل قسم خلکو ته وايي.

## د الله د طرفه د مديني نوم

| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِنَّ اللهَ |
|---|
| جابر ابن سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما اوريدلي دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به فرمايل چې الله تعالى |
| سَمَّى الْمَدِينَةَ طَابَةَ.(۱) |
| د مديني نوم طابه ايښودلى دی. |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۱۰۰۷ رقم الحديث: ۴۹۱/۱۳۸۵.

**توضيح:** ان الله: يعني الله تعالى د محمد عربي صلى الله عليه وسلم په ژبې مبارکې په ذريعې سره د مدينې نوم طابه کيښودلو. په يو روايت کې طيبه لفظ دی. چې د هغې معنی پاک او تروتازه راځي. د مدينې ښار هم د شرک نه پاک دی او د دې اوسيدونکې هم تروتازه دي. د مدينې ۹۴ نومونه د ښه مخکې تېر شوي دي. (المرقات ۵/۶۲۲)

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ : أَنَّ أَعْرَابِيًّا بَايَعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| جابر ابن عبد الله رضي الله عنه وايي چې يو بانډه چې دنبي کريم صلى الله عليه وسلم (سره د پاتې کېدو) بيعت وکړو، |
| فَأَصَابَ الْأَعْرَابِيَّ وَعَكٌ بِالْمَدِينَةِ |
| (څه ورځې وروسته) چې کله هغه مدينه کې (ديره شو) تبه کې اخته شو (او په دغه صورت هغې ته |
| فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| په مدينه کې اوسيدل واره دارنشوا و دهغه ځای نه يې دتللو اراده وکړه) نو راغلو نبي کريم صلى الله عليه وسلم |
| فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ أَقِلْنِي بَيْعَتِي فَأَبَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ |
| ته اووي ويل چې ای محمد ! بيعت ختم کړه! نبي کريم صلى الله عليه وسلم انکار وکړو ، هغه بيا د نبي عليه السلام |
| جَاءَهُ فَقَالَ : أَقِلْنِي بَيْعَتِي فَأَبَى |
| په خدمت کې حاضر شو او وي ويل چې زما بيعت ختم کړه! نو نبي عليه السلام (دغه ځل هم) انکار وکړو، |
| ثُمَّ جَاءَهُ فَقَالَ : أَقِلْنِي بَيْعَتِي فَأَبَى |
| دهغې نه وروسته بيا راغلو او وي ويل چې زما بيعت ختم کړه، نبي کريم صلى الله عليه وسلم بيا انکار وکړو. |
| فَخَرَجَ الْأَعْرَابِيُّ |
| نو هغه (د نبي عليه السلام د اجازت نه بغير) د مدينې نه وتختيدو ، (کله چې نبي عليه السلام خبر شو) نو |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّمَا الْمَدِينَةُ كَالْكِيرِ تَنْفِي خَبَثَهَا وَيَنْصَعُ طِيبُهَا.[1] |
| رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايل چې مدينه د بټۍ پشان ده چې خپل گندا خوا کوي او تازه کوي ښه سرې |
| (يعني ناکاره سرې بهر وباسي او پاک وطن داره سرې د پليت ذهن او بد نيته سرې نه بېلوي). |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹۶/۴ رقم الحديث :۱۸۸۳، ومسلم في صحيحه ۱۰۰۶/۲ رقم الحديث: ۱۳۸۳/۴۸۹.

﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى

ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې قيامت به تر هغه پورې نه راځي چې تر

تَنْفِيَ الْمَدِينَةُ شِرَارَهَا كَمَا يَنْفِي الْكِيرُ خَبَثَ الْحَدِيدِ.[1]

کومه مدينه د خپل ځان نه (يعني بد) خلک داسې ونه باسي لکه څنګه چې بټۍ د اوسپنې نه ګند او باسي

**توضيح: اقلني**: هغه باندې چې لکه چې د ايمان سودا د تماترو سودا ګڼلې وه که چېرې د اخستلو نه وروسته مې خوښ نشو او واپس به يې کړم نبي کريم صلى الله عليه وسلم د هغه مطالبه رد کړه ځکه د اسلام بيعت ختمول جائز ندي. همدغه شان که دغه بيعت په مدينه کې د اوسيدلو وو. تو هم ختمول يې مناسب نه وو. ځکه هغې سره د مدينې هجرت لازم راتلو. ځکه نبي کريم صلى الله عليه وسلم ښکاره ښکاره انکار وکړلو. هغه سړی بغير د اجازت نه لاړو. نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې د مدينې مثال د بټۍ پشان دی. که وسپنه ګندا وي نو د هغې هغه ګند لرې کړي. او که چرې وسپنه پاکه وي نو هغه نورا هم ښائسته کړي. همدغه شان که په مدينه کې بد خلک اوسيږي نو مدينه هغه وباسيږ او که ښه خلک اوسيږي نو مدينه هغه نور هم پاک کړي او ښائسته يې کړي. (المرقات ۵/۶۲۳)

**سوال**: اوس سوال دا دی چې اوس محال په مدينه کې ډير خبيث خلک پټ شوي دي. د بدعتيانو او د بريليانو ځايونه دي او نور ډير بد خلک هلته اوسيږي. نو د مدينې ذکر شوی خصوصيت ولې نه ښکار کيږي؟

**اول جواب**: دا چې د مدينې دا خصوصيت د نبي کريم صلى الله عليه وسلم زمانې سره خاص ؤ.

**دويم جواب**: دا چې د مدينې د دې خصوصيت ظهور دا حکم قيامت ته نزدې وخت کې به وي. چې کله دجال مدينې ته نزدې راشي نو مدينه کې به درې ځله زلزله راشي. چې د هغې په وجه به په مدينه کې اوسيدونکې ټول منافقين به مدينه پرېږدي او د دجال سره به د ليدنې لپاره به لاړ شي. دا هم ممکنه ده چې د دې دغې خصوصيت تعلق به د هر زمان سره نه وي او مفسد خلک به مدينې ته شړلي وي. د زمانې حالات په دې ګواه دي که داسې جنګې آئنده راغلې نو به هغې باندې هم د ... توضيح په رڼا کې پوهيدل په کار دي.

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۱۰۰۵ رقم الحديث: ۱۳۸۱/۴۸۷.

## مدينه به د دجال د دخول نه او د طاعون د مرض نه محفوظه وي

﴿١٤﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : عَلَى أَنْقَابِ الْمَدِينَةِ

ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل چې د مدينې په لاروكې يا د دې په دوا ړو

مَلَائِكَةٌ لَا يَدْخُلُهَا الطَّاعُونُ وَلَا

كې د نګراني په توګه فرښتې مقرر شوي دي، نه خو به په مدينه كې طاعون مرض داخليږي، او نه به

الدَّجَّالُ . [1]

دجال ننوتلى شي.

﴿١٥﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَيْسَ مِنْ بَلَدٍ

انس رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل چې د مدينې او مكې بغير بل داسې ښار نشته دى

إِلا سَيَطَؤُهُ الدَّجَّالُ إِلَّا مَكَّةَ وَ الْمَدِينَةَ لَيْسَ نَقْبٌ مِنْ أَنْقَابِهَا

چې هغه دجال خراب نكړي او مدينه يا مكه او په مدينه كې په هرې لاروكې داسې لاره نشته ده چې په

إِلَّا عَلَيْهِ الْمَلَائِكَةُ صَافِّينَ يَحْرُسُونَهَا

هغه صفونو كې فرښتې ولاړې نه وي كومې چې د دې ښار ساتنه كوي نو (كله چې) دجال (د مدينې نه بهر

فَيَنْزِلُ السَّبِخَةَ فَتَرْجُفُ الْمَدِينَةُ بِأَهْلِهَا ثَلَاثَ

ؤ) په شګنه زمكه كې حاضر شي نو مدينه به خپل او سيدونكو سره (د زلزلې په صورت كې) درې ځله

رَجَفَاتٍ فَيَخْرُجُ إِلَيْهِ كُلُّ كَافِرٍ وَ مُنَافِقٍ . [2]

وخوزيږي چې د هغې په نتيجه كې به هر كافر او منافق د مدينې نه ووځي او د دجال خوا له به لاړ شي.

**توضيح:** **انقاب**: د نقب جمع ده د دينه مراد د دوه غرونو په مينځ كولاوه لاره هم كيدى شي ځنګه چې طيبي رحمه الله ويلي او د دې مطلق لاره هم مراد اخستل كيدى شي چې هغه ملا علي قاري رحمه الله راجح ګڼلې دى. او د هغې د ښار پاټک هم مراد اخستل كيدلى شي. (المرقات ٥/٦٢٥)

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٩٥/٤ رقم الحديث :١٨٨٠، ومسلم في صحيحه ١٠٠٥/٢ رقم الحديث: ١٣٧٩/٤٨٥.

(٢) أخرجه البخاري في صحيحه ٩٥/٤ رقم الحديث ١٨٧٧، ومسلم في صحيحه ١٠٠٨/٢ رقم الحديث: ١٣٨٧/٤٩٤.

**ينزل:** د دينه نزول وارد كيدل هم مراد اخستل كيدلى شي. او امكان ده چې يوا داسې سورلۍ وي يا د الوتكې پښان هوا كې ګرځي او بيا په هغه ځاى باندې راځي. ځينو علماء وايي چې د دجال د خر نه يو قسم له الوتكه مراد ده. (المرقات ۵/۶۲۵)

**السبخة:** شاړې او بنجر زمكې ته سبخه وايي د مدينې منورې دحدود نه بهر ديو ځاي نوم دى يا دهغه ځاىٔ دزمكې دا صفت دى كيدې شي چې دمدينې ائيرپورټ سره خواږ شا علاقه مراد وي د ينزل لفظ هم معنى خيز دى. (المرقات ۵/۶۲۵)

## د مدينې والو سره د دهوكې كوونكې سزا

| |
|---|
| ﴿١٦﴾ وَ عَنْ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَكِيدُ أَهْلَ الْمَدِينَةِ أَحَدٌ |
| سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې كوم يو سړى د مدينې خلكو سره دهوكه |
| إِلَّا انْمَاعَ كَمَا يَنْمَاعُ الْملح فِي الْمَاء.[۱] |
| كوي. هغه به داسې ويلې شي لكه څنګه چې مالګه په اوبو كې ويلې كيږي. |

**توضيح:** **انماع:** په ابو كې مالګې ويلې كېدو ته انماع وايي. يزيد د مدينې والا يرولي وو او د هغوى سره يې دهوكه كړي وه نو په معدي تبه او د سيل په مرض كې داسې اخته شو چې ويلې ويلې شو او په ځوانۍ كې مړ شو.

## مدينې سره د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مينه

| |
|---|
| ﴿١٧﴾ وَعَنْ أَنَسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ فَنَظَرَ إِلَى جُدُرَاتِ |
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به كله د سفرنه بېرته راغلو او وبه يې ليدل ديوالونه د |
| الْمَدِينَةِ أَوْضَعَ رَاحِلَتَهُ وَ إِنْ كَانَ عَلَى دَابَّةٍ حَرَّكَهَا |
| مدينې منورې نو خپل اوښ به يې په منډو كړو او كه په آس يا خچر باندې به سپور ؤ نو هغه به يې تيز كړو |
| مِنْ حُبِّهَا.[۲] |
| او دا د دې وجې نه ؤ چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مدينې سره مينه وه. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴/۹۴ رقم الحديث: ۱۸۷۷، ومسلم في صحيحه ۲/۱۰۰۸ رقم الحديث: ۴۹۴/۱۳۸۷.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۴/۹۸ رقم الحديث ۱۸۸۶

**توضيح**: **جدران**: د جداره جمع ده. دیوال ته وايي. (المرقات ۵/٦٢٥)

**اوضع**: به معنی د سورلۍ د تیزه ولو ده. د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د مدینې سره دومره مینه وه چې د هغې نښې او اثار به یې د لرې نه ولیدلې نو ژر ژر به د رارسیدلو په خاطر د شوق جذبې سره بېدار شو نو اوښ یا آس به یې تیزه په منډو کړلو چې ژر ورسېږي. شاعر ویلي دي:

واعظم مایکونه یوماً ❁ اذا دالت الخیام من الخیام

## داحد د غر فضیلت

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ طَلَعَ لَهُ أُحُدٌ فَقَالَ : |
| انس رضی الله عنه وايي چې کله به د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نظر مبارک د اُحد په غر پريوتو نو فرمايل به يې |
| هٰذَا جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَ نُحِبُّهُ اللّٰهُمَّ |
| چې دا غر مونږ سره مينه ساتي او مونږ ددې سره مينه ساتو (بیا نبي علیه السلام وفرمايل چې) ای الله! |
| إِنَّ إِبْرَاهِيمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ . حَرَّمَ مَكَّةَ وَ إِنِّي أُحرم |
| ابراهيم علیه السلام مکه حرام کړه (يعنې ددې حرم کول يې ښکاره کړو) اوزه د زمکې دا برخه حرام کومه |
| مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا[1] |
| (يعنې د تعظيم قابل يې ګاڼم) چې هغه د مدینې د دواړو غرونو د غاړو په مينځ کې دی. |

**توضيح**: **جبل يحبنا**: دا جمله په خپله حقيقي معنی باندې دی. چې په ريښتيا هم غر مينه کوي. ځکه الله تعالی په کاڼو او بوټو کې هم د هغوی د حال مطابق شعور ایښې دي. بیا خو د انبیاء کرامو معامله څه بل نوره ده. او د حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم به څه وایو. ځینې عارفین وايي چې د اُحد په غر باندې زېړ رنګ دی، دا دې د مینې او نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره عشق نښه ده. ځکه د عاشق علامات دا دي: (المرقات ۵/٦٢٦)

عاشقاں راسہ علامت اے پسر ❁ رنگ زرد و آہ سرد و چشم تر

عـاشق سرې نه خطا کيږي ❁ رنګ يې زېړېږي سترګې بيا بيا نوروينه

هاحد د غر مينه وه چې اويا پاک نفوس يې په خپله غېږه کې راغونډ کړل او د تل لو قبرونه هلته جوړشو.

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۳۰٤ رقم الحديث: ۷۳۳۳، ومسلم في صحيحه ۲/۹۹۳ رقم الحديث: ۱۳٦۵/٤٦٤.

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أُحُدٌ جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَ |
| سهل بن سعد رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې د احد غر مونږ سره مينه ساتي او |
| نُحِبُّهُ . (۱) |
| مونږ د دې سره مينه ساتو. |

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## په مدينه كې د ښكار كوونكي سزا

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ أَبِي عَبْدِ اللهِ قَالَ : رَأَيْتُ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ أَخَذَ رَجُلًا |
| سليمان بن ابو عبدالله (تابعی) وايي چې ما وليدل چې سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه يو سړى ونيولو |
| يَصِيدُ فِي حَرَمِ الْمَدِينَةِ الَّذِي حَرَّمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| چې هغه په حرم مدينه (يعني د مدينې په اړخونو) كې ښكار كولو كوم چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم حرام |
| فَسَلَبَهُ ثِيَابَهُ |
| (يعنې قابلِ تعظيم) ټاكلي وو نو سعد رضي الله عنه د هغه سړي جامې (د زجر او تنبيه په طور) قبضه كړې، |
| فَجَاءَهُ مَوَالِيهِ فَكَلَّمُوهُ فِيهِ فَقَالَ : |
| بيا د دې سړي مالک راغلو او د سعد رضي الله عنه سره يې د هغه باره كې خبرې وكړې سعد رضي الله عنه ورته وويل |
| إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَرَّمَ هٰذَا الْحَرَمَ وَ قَالَ : مَنْ أَخَذَ أَحَدًا |
| چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم دا حرام كړې دى او دايي فرمايلي دي چې كوم سړى چې داسې كس ونيسي |
| يَصِيدُ فِيهِ فَلْيَسْلُبْهُ . |
| چې هغه پدې كې ښكار كوي نو د هغه سامان قبضه كړي لهذا كوم شى چې ماته نبي عليه السلام راكړى دى |
| فَلَا أَرُدُّ عَلَيْكُمْ طُعْمَةً أَطْعَمَنِيهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| (يعنې شى چې ما د نبي كريم صلى الله عليه وسلم په اطاعت كولو كې ترلاسه كړى دى) نو هغه زه (په هيڅ |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲/ ٤ رقم الحديث : ۱۸۸۲، ومسلم في صحيحه ۲/ ۱۰۱۱ رقم الحديث: ٥٠٤/ ۱۳۹۳.

| |
|---|
| وَ لَكِنْ إِنْ شِئْتُمْ دَفَعْتُ إِلَيْكُمْ ثَمَنَهُ .⁽¹⁾ |
| حال کې هم) بېرته نه ورکوم، او که ته غواړی نو زه به د دې نرخ (د احسان په توګه) تاته درکړم. |

**توضيح**: زير بحث حديث کې د ښکاري قصه ده. د هغې نه حضرت سعد رضي الله عنه سامان قبضه کړی ؤ.
د دينه مخکې په اول فصل کې حديث ۶ کې د بوټو ماتولو قصه ده چې د هغې حضرت سعد رضي الله عنه سامان قبضه کړو. داسې معلومېږي چې په حرم مدينه کې ښکار کولو عموماً سزا او جزا نشته دی. څنګه چې په حرم مکه کې ده. دلته خلکو له فقط ودريدل پکار دي چې هغه د حرم مدينې ښائست ته ضرر ونه رسوي، په دغه وجه احنافو وويل چې مدينه منوره حرم ده خو د احترام او د عظمت په وجه ده. د کفارې او د بدلې په وجه نده. که چرې عموماً کفاره وی نو ښکار په نرخ لګولو سره به صدقه کول پکار ؤ. لکه څنګه چې د حرم مکې دی. د حرم مدينې د مجموعي احاديثو نه ثابته شوه چې دلته د جرم کولو جزا د سزا په توګه ده. چې د جرم کونکې سامان دي قبضه کړی شي. (المرقات ۵/۶۲۷)

## د حديث په سند کې ديوې سهوې اصلاح

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَ عَنْ صَالِحٍ مَوْلًى لِسَعْدٍ أَنَّ سَعْدًا وَجَدَ عَبِيدًا مِنْ عَبِيدِ الْمَدِينَةِ |
| د سعد رضي الله عنه ازاد کړی شوی غلام صالح وايي چې سعد رضي الله عنه وليدل د مدينې په غلامانو کې څه |
| يَقْطَعُونَ مِنْ شَجَرِ الْمَدِينَةِ فَأَخَذَ مَتَاعَهُمْ وَ قَالَ يَعْنِي لِمَوَالِيهِمْ |
| غلامان چې هغوی د مدينې بوټي ماتول نو ده د هغوي سامان قبضه کړو او وي ويل د هغوي مالکانو ته |
| سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَنْهَى أَنْ يُقْطَعَ مِنْ شَجَرِ الْمَدِينَةِ شَيْءٌ |
| چې ما خپله اوريدلي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د مدينې د بوټو هره برښه د ماتولو نه منع کړې ده. |
| وَ قَالَ : مَنْ قَطَعَ مِنْهُ شَيْئًا فَلِمَنْ |
| همدغه شان نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې کوم سړی د مدينې د بوټي کومه برښه ماته کړي نو |
| أَخَذَهُ سَلَبُهُ .⁽²⁾ |
| هغې اسباب د هغه سړی لپاره دي چا چې هغه ونيولو. |

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۵۳۳/۲ رقم الحديث ۲۰۳۷
(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۵۳۳/۲ رقم الحديث :۲۰۳۸

**توضیح: وَعَنْ صالح مولی لسعد:** په صحیح روایت کې سند داسې دی (**وعن صالح مولی لسعد**) شیخ جزری وایي چې دهغه حدیث صالح د حضرت سعد رضی الله عنه د ازاد کړی شوي غلام نه روایت کړی دی. د مشکوة د سند نه معلومېږي چې صالح د حضرت سعد رضی الله عنه ازاد کړی شوی غلام ده. حال دا چې داسې نه ده بلکې هغه شیخ خو امة ازاد کړی شوی غلام دی. لهذا دلته دا سند داسې دی:

**وَعَنْ صالح عن مولی لسعد** یعنې صالح د حضرت سعد رضی الله عنه د یو ازاد کړی شوي غلام نه روایت کوي. هغه غلام مجهول دی دلته صالح نه وروسته د عن لفظ یا د کاتب د غلطی نه پاتی شوي او یا مصنف د مشکوة نه د قلم غلطي شوي ده ځکه **لکل جواد کبوة ولکل سیف نبوة** دلته د حضرت سعد رضی الله عنه غلام مجهول دی معلومه نه ده چې څوک دی خو دا ده چې صالح ثقه دی (المرقات ۵/۶۲۷)

## مقام وج کې د ښکار ممانعت

| ﴿۲۲﴾ وَعَنِ الزُّبَيْرِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ صَيْدَ وَجٍّ وَعِضَاهَهُ حِرْمٌ |
|---|
| زبیر رضی الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې په وج کې ښکار او دهغې ازغن بوټي حرام دي |
| مُحَرَّمٌ لِلّٰهِ.[1] |
| کوم چې الله تعالی لپاره (یعنې الله تعالی د حکم مطابق) حرام کړی شوي دي (یا دا چې د الله تعالی د |
| خوښ بنده ګانو یعنې د غازیانو په وجه حرام کړی شوي دي). |
| رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَقَالَ مُحْيِي السُّنَّةِ: وَجٌّ ذَكَرُوا أَنَّهَا مِنْ نَاحِيَةِ الطَّائِفِ وَقَالَ الْخَطَّابِيُّ: إِنَّهُ بدل إِنَّهَا. |

**توضیح: عضاه:** د غنو جانبه یا کوم ازغن بوټي ته عضاه وایي. (المرقات ۵/۶۲۹)

**حرم:** حا باندې زیر دی، دا په معنی د حرام دی. **محرم:** د حرم لپاره تاکید دی.

**لله: ای لا جل امر الله. انه بدل انها:** یعنې علامه خطابي د انه مذکر استعمال کړی او محی السنة د انها مؤنث استعمال کړی پدې کې څه تعارض نشته دی ځکه د ضمیر والا قاعده د ها هو والا قاعده ده. که د لفظ اړخ ته ضمیر تاؤ کړي نو مذکر دی او که د کلمة اړخ ته یې تاؤ کړي نو مؤنث دی. که دلته د موضع په معنی واخستلی شي نو مذکر او که د بقعة په معنی واخستلی شي نو مؤنث دی.

**صید وج:** علماء لیکي چې مقام وج کې د ښکار کولو ممانعت د حرمت حمی په توګه دی. یعنې د

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۲/۵۲۸ رقم الحدیث ۲۰۳۲

منع کړی شوي علاقې په توګه وو، ځکه چې به دغه علاقه کې د غازیانو اسونه څریدل. نو ځکه ضرورت وو چې نور څاروي دي دلته نه رازي. دا یوه انتظامي معامله وه. د حرمت د وجې نه وه. ځکه د طائف د چاپیریال علاقه په حرم کې نه ده. احنافو چې د مدینه باره کې کوم ښکار او د بوټو ماتولو کوم حکم ورکړی دی. دا حدیث د هغې تائید کوي. ځېنو علماوو لیکلي دي چې په مقام وج کې د ښکار حرمت د حرم په توګه وو. دا خو به د ابتدائي دور خبره وي، وروسته دا حکم منسوخ شو. امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ د مقام وَج باره کې وايي چې پدې کې دې نه ښکار وکړی شي، نو دې بوټي مات کړی شي. خو هغې د کوم ضمانت یا د جزا او د کفارې ذکر ندی کړی. (المرقات ۵/۶۲۸)

## په مدینه منوره کې د مړ کیدو فضیلت

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنِ اسْتَطَاعَ أَنْ يَمُوتَ بِالْمَدِينَةِ |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې کوم سړی په مدینه کې مړ کیدی شي نو |
| فَلْيَمُتْ لَهَا فَإِنِّي أَشْفَعُ لِمَنْ يَمُوتُ بِهَا. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا[1] |
| هغه ته په مدینه کې مړ کیدل پکار دي ځکه کوم سړی چې په مدینه کې مړ شي د هغه شفاعت به زه کوم |

**توضیح: فليمت بها:** مرګ خو د چا په اختیار کې نه وي، خو د حدیث مطلب دا دی چې څومره امکان کیدی شي، سړی د هغه ځای د مرګ ارمان وکړي. د هغې لپاره دې دعا وکړي او چې څومره کیدلی شي د هغې لپاره دې اسباب تیار کړي. (المرقات ۵/۶۲۹)

**اشفع:** د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شفاعت خو د ټولو مسلمانانو لپاره عام دی. لهذا دلته د شفاعت نه خاص شفاعت مراد دی. لکه د داسې سړی د شفاعت د ضمانت خبره عامه ده. عامه خبره نده. داسې وګڼي چې دغه سړی ته د شفاعت سند ورکړی شو. د دې حدیث نه معلومه شوه چې د مدینې منورې لویې شان دی. او په دې کې د مړېدو سعادت ډیر لوی سعادت دی. نو ځکه د حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا ارمان وو. اللهم ارزقني شهادة في سبيلك واجعل موتي في بلد رسولك (المرقات ۵/۶۲۹)

## د مدینې د ښار عمر د ټولو ښارونو نه اوږد دی

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : آخِرُ قَرْيَةٍ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل آخري ښار په ورانیدونکو او بربادیدونکو |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۶۷۶/۵ رقم الحديث :۳۹۱۷

| مِنْ قُرَى الْإِسْلَامِ خَرَابًا الْمَدِينَةُ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[1] |
|---|
| اسلامي ښارونو کې به آخري نمبر د مدينې وي. |

**توضيح: خراباً:** مطلب دا دی چې قيامت ته نزدې به په کائنات کې بربادي شروع کېږي. د دنيا ټول غټ او واړه ښارونه به برباد شي او ختم به شي. په ټولو کې آخر به د فنا کېدلو دور په مدينه منوره باندې راځي. دا عظمت د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وجود مسعود په برکت سره وَرکړی شوی دی. (المرقات ۵/۶۳۰)

## د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هجرت لپاره د مدينې ټاکل

| ﴿۲۵﴾ وَ عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : |
|---|
| جرير بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې |
| "إِنَّ اللهَ أَوْحَى إِلَيَّ : أَيَّ هَؤُلَاءِ الثَّلَاثَةِ نَزَلْتَ فَهِيَ |
| الله تعالى د وحي په ذريعې سره ما ته خبر راکړو چې ته په دې درې ښارونو کې کوم ښار کو زېږې نو هغه |
| دَارُ هِجْرَتِكَ الْمَدِينَةِ أَوِ الْبَحْرَيْنِ أَوْ قِنَّسْرِينَ ".[2] |
| به ستا د پاره د هجرت ځای وي هغه درې ښارونه ۱: مدينه ۲: بحرين ۳: قنسرين دی. |

**توضيح: اوحى:** يعنې الله تعالى د وحي په ذريعې سره ما ته خبر راکړو چې په دې درې ښارونو کې چې ته کوم يو اختيار روې او هجرت وکړې او لاړ شي نو همغه به ستا د هجرت ځای وي. په هغې کې يو بحرين دی. ياد ولرئ چې وسنی بحرين د ډېرو جزيرو يو مجموعي نوم دی. چې د خليج غربي په جنوب مغربي برښه کې پروت دی. پدې جزيرو کې د ټولو نه غټې جزيرې نو منامه دی. چې دويم نوم يې بحرين دی. د دې جزيرې نوم په وجه د ټول ملک نوم بحرين دی. علماوو ليکلي دي چې د زير بحث حديث کې نور د تاريخ کتابونو کې د بحرين دا لفظ پدې علاقه باندې ويل شوی دی. چې کوم د جزيرة العرب په مشرقی غاړه د خليج بصره نه تر قطر او تر عمان پورې خورشوی دی. چې اوسني بحرين به مغرب کې پروت دی. نن سبا دي علاقې ته احساء ويل کېږي. زير بحث حديث کې د بحرين نه مراد همدغه احساء مراد ده چې د حکومت په نزد يو غټ ښار دی. (المرقات ۵/۶۳۰)

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۶۷۶ رقم الحديث :۳۹۱۹

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۶۷۸ رقم الحديث :۳۹۲۳

**قنسرين**: د ملک شام د يو غټ ښار نوم دی. د تاريخ د كتابونو نه معلوميږي چې دا ښار په ملک شام كې يو لويې مقدس ښار ګڼلی كيږي. كله چې صحابوو دا فتح كړلو نو هغوی ډير خوشحاله شول او ټولو ته اندازه وشوه چې اوس ټول شام په لاس كې د راتللو والا دی. په تاريخ مدينه كې ليكل شوی دي چې نبي كريم ﷺ ته دا اختيار په ابتدا كې وركړی شوی وو. وروسته بيا په مدينه د هجرت لپاره متعين شوه. (المرقات ٥/٦٣٠)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## مدينه منوره به د دجال د ويرې نه محفوظه وي

| |
|---|
| ﴿٢٦﴾ عَنْ أَبِي بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : لَا يَدْخُلُ الْمَدِينَةَ |
| ابو بكرة رضي الله عنه نبي كريم ﷺ نه نقل كوي چې نبي عليه السلام فرمايي چې نه به داخليږي مدينې |
| رُعْبُ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ لَهَا يَوْمَئِذٍ سَبْعَةُ أَبْوَابٍ |
| ته ويره د ړوند دجال، هغه ورځ (چې كله ړوند دجال ښكاره كيږي) د مدينې به اوه ۷ دروازې (يعنې اوه |
| عَلَى كُلِّ بَابٍ مَلَكَانِ .[1] |
| لارې) وي او هره دروازه باندې (ښي او چپ) دوه فرښتې (د مدينې ساتلو لپاره ټاكل شوي) وي. |

## مدينه كې د بركت لپاره د نبي كريم ﷺ دعاء

| |
|---|
| ﴿٢٧﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : اللّٰهُمَّ |
| انس رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي چې نبي عليه السلام (د دعا په توګه) وفرمايل: ای الله! |
| اجْعَلْ بِالْمَدِينَةِ ضِعْفَيْ مَا جَعَلْتَ بِمَكَّةَ مِنَ الْبَرَكَةِ.[2] |
| مدينې ته د دې بركت نه دوه چنده بركت وركړي كوم چې تا مكې ته وركړی دی. |

**توضيح**: **ضعفي**: مطلب دا دی چې په مكه كې چې كوم بركات دي. ای الله! مدينه ته د هغې نه دوه چنده وركړې. دا حديث د امام مالک رحمه الله دليل دی. هغه وايي چې مدينه منوره د مكې نه غوره ده. ځكه د نبي كريم ﷺ دعا مقبوله ده. د امت د جمهورو به نز مكه غوره ده. ځكه د نيكيو

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٩٥/٤ رقم الحديث :١٨٧٩

(٢) أخرجه البخاري في صحيحه ٩٧/٤ رقم الحديث :١٨٨٥، ومسلم في صحيحه ٩٩٤/٢ رقم الحديث: ١٣٦٩/٤٦٦.

(حسنات) په اعتبار سره مکې ته مخکې والی (سبقت) حاصل دی. خو علماوو ليکلي دي چې په مدينه منوره کې چې د نبي کريم ﷺ د جسد مبارک د قبر کومې برخې سره پيوسته دی هغه برښه خو د مکې نه څه بلکې د عرش نه هم غوره ده. همدغه شان د مرقات او داسې نورو کتابونو کې ليکل شوي دي. او همدغه شان مونږ د خپل استاذانو نه هم اوريدلي دي.

## په مدينه کې د اوسيدو فضيلت

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَعَنْ رَجُلٍ مِنْ آلِ الْخَطَّابِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ زَارَنِي مُتَعَمِّدًا |
| او د خطاب په خاندان کې يو کس نا قل دی چې نبي کريم ﷺ و فرمايل چې کوم کس زيارت کوي |
| كَانَ فِي جِوَارِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَ مَنْ سَكَنَ الْمَدِينَةَ |
| زما په قصد سره د قيامت په ورځ به زما ګاونډي او زما په پناه کې به وي او کوم سړی چې واوسيدو په |
| وَ صَبَرَ عَلَى بَلَائِهَا كُنْتُ لَهُ شَهِيدًا |
| مدينه کې او ددې په سختيو يې صبر وکړو د قيامت په ورځ به زه د هغه (د اطاعت کولو) ګواه جوړيږم |
| وَ شَفِيعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَ مَنْ مَاتَ فِي أَحَدِ الْحَرَمَيْنِ |
| او دده (د ګناهو د ښښنې لپاره) به شفاعت کوم او کوم سړی چې مړ شو په يو د حرمينو کې (يعنې مکه |
| بَعَثَهُ اللهُ مِنَ الْآمِنِينَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.[1] |
| او مدينه) کې نو د قيامت په ورځ به يې الله تعالى د امن والا سره راپاڅوي (يعنې د قيامت په ورځ به |
| د عذاب د ويرې نه په امن کې وي). |

**توضيح: متعمداً:** يعنې په قصد او ارادې سره د نبي کريم ﷺ د زيارت کولو په غرض سره يې د مدينې سفر وکړو څه تجارت يا رياکاري او داسې نور څه يې مطلوب نه وو. د علامه طيبي رحمه الله د کلام نه معلوميږي چې کوم سړی د حج لپاره ځي بيا زيارت هم کيږي. دا د قصد او د ارادې زيارت نه دی. اصل زيارت هغه دی چې فقط په مدينې شريف کې د نبي کريم ﷺ د زيارت کولو په غرض سفر وکړي. (المرقات ۵/۶۳۱)

**جوار:** د ګاونډي په معنى دی يعنې جنت کې به زما ملګری وي.

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان.

**شهیداً**: یعني د هغه سړی په اطاعت کولو باندې به زه ګواه کېږم.

**احدالحرمین**: یعني په مکه یامدینه کې کوم حج کوونکی یاعمره کوونکی یا د هغه ځای اوسیدونکی مړ کېږي نو هغه به د قیامت په ورځ د هر فکر او غم نه په امن کې وي. خو پدې شرط چې مؤمن وي. (المرقات ۵/۶۳۰)

## د روضه اطهر د زیارت فضیلت

| ﴿۲۹﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَرْفُوعًا : |
|---|
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مرفوع طریقې سره (یعنې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد ګرامي) نقل کوي چې |
| مَنْ حَجَّ فَزَارَ قَبْرِي بَعْدَ مَوْتِي |
| (نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل) چې کوم سړی حج وکړو او بیا زما د مرګ نه وروسته زما د قبر زیارت وکړو |
| كَانَ كَمَنْ زَارَنِي فِي حَيَاتِي. [1] |
| نو دا د هغه سړی په شان وي کوم چې زما په ژوند کې زما زیارت کړی وي. |

**توضیح**: **في حیاتي**: د مرګ نه وروسته نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته پوره ژوند حاصل دی. ځکه چاچې د مرګ نه وروسته د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قبر زیارت وکړو نو لکه هغې چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ژوند کې د هغې زیارت وکړو. همدغه د حیاتُ النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مطلب دی(المرقات ۵/۶۳۲) په یو روایت کې دي چې کوم سړی چې زما د قبر زیارت وکړي. نو هغې لپاره زما شفاعت واجب او لازم شي. په یو بل روایت کې دي چې کوم سړی حج وکړو او زما د قبر زیارت یې ونکړو. هغې زما سره بېوفائي وکړه، همدغه شان په یو بل حدیث کې دي چې کوم سړی د مکې یعنې د حج اراده وکړه او بیا یې زما زیارت وکړو او زما به جوما کې یې د حاضریدلو قصد وکړو نو د هغې لپاره به د دوه (۲) مقبول حجونه لیکل کېږي. توضیحات جلد دویم **باب التشهد** کې د **حیات النبي** صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تفصیل کتنه وکړئ.

---

(۱) أخرجه البیهقي في شعب الإیمان ۳/۴۸۹، رقم الحدیث : ۴۱۵۴.

## مدينه منوره د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نظر كې

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| يحيى بن سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (ماته دا حديث را رسيدلى دى چې يوه ورځ) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| كَانَ جَالِسًا وَ قَبْرٌ يُحْفَرُ بِالْمَدِينَةِ فَاطَّلَعَ رَجُلٌ فِي الْقَبْرِ فَقَالَ بِئْسَ مَضْجَعِ |
| ناست ؤ او قبر كنستل كيدو په مدينه كې، يو سړى قبر كې وكتل او وې ويل چې (دا) قبر د خوب بد ځاى |
| الْمُؤْمِنِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : بِئْسَ مَا |
| دى د مؤمن لپاره، نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (چې دا واوريدل) وې فرمايل چې بد خو هغه شى دى كوم چې |
| قُلْتَ قَالَ الرَّجُلُ إِنِّي لَمْ أُرِدْ هٰذَا إِنَّمَا أَرَدْتُ الْقَتْلَ فِي سَبِيلِ اللهِ |
| تا وويل هغه سړى وويل چې زما خو به دا نه وه بلكې د دې خبرې نه زما مطلب د الله په لاره كې شهيد |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| كيدل (غوره ولى) ښكاره كول ؤ. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل (چې هو! دا خبره خو سمه ده) د الله |
| لَا مِثْلَ الْقَتْلِ فِي سَبِيلِ اللهِ مَا عَلَى الْأَرْضِ بُقْعَةٌ |
| په لاره كې د شهيد كېدو نه غوره بل شى نشته خو دا خبره هم ده چې د زمكې په سر داسې يوه ټوټه د زمكې |
| أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ يَكُونَ قَبْرِي بِهَا مِنْهَا |
| نشته دى چې هلته زما قبر جوړ شي او هغه ماته د مدينې نه ډېره محبوبه وي. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ثَلَاثَ مَرَّاتٍ.[1] |
| دا خبره درې ځل وفرمايله. |

**توضيح: بئس مضجع المؤمن:** هغه سړى وويل چې قبر د مؤمن لپاره د خوب بد ځاى دى. په دې مطلق اطلاق كې د مؤمن هغه قبر هم راغلى چې هغه د جنت په باغيچو كې يوه باغيچه وي. په همدغه وجه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خفگان ښكاره كړو. او وې فرمايل چې تا ډېره بده خبره وكړه. ځكه قبر د مؤمن لپاره جنت وي. پدې باندې هغه سړى وضاحت وكړو چې زما مقصد دا ؤ چې دا

---

(۱) أخرجه مالک في الموطأ ۴۶۲/۲ رقم الحديث: ۳۲ من كتاب، الجهاد

سړي په مدينه کې په خپل قدرتي مرګ باندې مړ شو او قبر کې خښ کړی شو. ددې پر ځای که هغه شهيد شوی وی نو د دې قبر به بهر د يو شهيد قبر جوړ شوی وی نو ښه به وي. نو پدې باندې نبي کريم ﷺ د هغه سړي د خبې تحسين وکړلو چې آوو دا خبره سمه ده. چې د الله په لاره کې د مړکيدلو نه غوره هيڅ شی نشته دی. خو خبره دا هم ده چې په ټوله دنيا کې هيڅ داسې ځای نشته دی چې په هغې کې زما قبر جوړ شي او د مدينې نه ډېره محبوبه وي، نبي کريم ﷺ دا جمله درې خله وفرمايله. پدې کلام سره نبي کريم ﷺ په مدينه منوره کې د راتلونکې مرګ او په مدينه کې يې د ښخيدلو غوره والی ښکاره کړو. حضرت ابو سفيان بن حارث د نبي کريم ﷺ په مرګ باندې د حضرت فاطمې رضي الله عنها داسې تعزيت وکړو: (المرقات ۵/۶۳۲)

أَفَاطِمَ إِنْ جَزِعْتِ فَذَاكَ عُذْرٌ ❁ وَإِنْ لَمْ تَجْزَعِيْ ذٰلِكَ السَّبِيْل

فَقَبْرُ أَبِيكِ سَيِّدُ كُلِّ قَبْرٍ ❁ وَفِيْهِ سَيِّدُ النَّاسِ الرَّسُوْل

## د عقيق غونډۍ فضيلت

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې عمر بن خطاب رضي الله عنه وويل چې ما اوريدلي دي د رسول الله ﷺ |
| وَ هُوَ بِوَادِي الْعَقِيقِ يَقُولُ : أَتَانِي اللَّيْلَةَ آتٍ مِنْ رَبِّي |
| نه عقيق غونډۍ باندې (چې د مدينې يو ځنګل دی) چې نن شپه زما د پروردګار د اړخ نه يو راتلونکی |
| فَقَالَ: صَلِّ فِي هَذَا الْوَادِي الْمُبَارَكِ وَ قُلْ : عُمْرَةٌ |
| (يعنې فرښته) ماله راغله او وې ويل چې پدې مبارکه غونډۍ کې لمونځ وکړه او هغه عمره ووايه |
| فِي حَجَّةٍ ". وَ فِي رِوَايَةٍ : قل عُمرةٌ و حِجَّةٌ.[1] |
| کومه چې د حج سره وي. په يو بل روايت کې دا الفاظ دي چې حج او عمره ووايه. |

**توضيح**: **اتاني**: د دينه مراد دا دی چې ماته په تېره شوې شپه کې يو داسې خوب وليدلو، او ښکاره خبره ده چې انبياؤ خوب هم د وحی په حکم کې وي. نو عقيق د غونډۍ غوره والی هم ښکاره شو. که نبي کريم ﷺ په وينبه داسی عمل کړی وی نو د دې به هم همدغه حکم وو چې څه نبي کريم ﷺ په خوب کې وکړل. د عقيق غونډۍ د مسجد نبوی نه د احد او د خندق اړخ ته د يوې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۲۹۱ رقم الحديث: ۱۵۳۴.

غونډۍ نوم دی چې ډیره مبارکه ده. نبي کریم ﷺ ته حضرت جبریل امین حکم وکړو چې پدې غونډۍ کې لمونځ وکړه او بیا دا لمونځ په عمره او حج کې برابر شمار کړه. په عربۍ کلام کې قل کله کله د افعل په معنی راځي. دلته د افعل په معنی دی چې دوه رکعته لمونځ وکړه او دا د حج او د عمرې برابر شمار کړه. ملاعلي قاری رحمه الله وایي چې د عقیق غونډۍ کې د لمونځ کولو غوره والي حکمت مفوض الی الشارع ی. خو نبي کریم ﷺ ته اګر چې حضرت جبریل امین د لمونځ کولو حکم کړی وو خو د دینه وروسته خاصو او عامو ته هیڅ پته نشته دی چې دا د لمونځ کولو ځای دی او د دې غوره والی شته دی. چا پدې بادې عمل ونکړو او د نورو مقاماتو پشان دا ځای د زیارت ځای جوړ شو. د دینه معلومه شوه چې د نبي کریم ﷺ په خصوصیاتو کې یو خصوصیت وو. د دې حدیث دا مطلب هم اخستل کیدلی شي او شارحینو دې اړخ اشاره هم کړې دا او د حدیث سیاق او سباق هم د دې تائید کوي. هغه دا چې جبریل امین نبي کریم ﷺ ته د حج قِران اشاره کړي ده چې د حج او عمرې نیت یو ځل سره وکړه او همدغه قِران دی. کوم چې د احنافو په نز غوره دی. د دینه مخکې نبي کریم ﷺ داسې الفاظ فرمایلي وو چې د هغې نه معلومیدله چې نبي کریم ﷺ یا مفرد دی یا متمتع دی. (المرقات ۵/۶۳۴)

**ډېر عقیدت او محبت**: دا چې د مدینې منورې د غوره والي او د نبي کریم ﷺ قبرمبارک باندې د حاضریدلو متعلق د احادیثو توضیح او تشریح پوره شوه. اوس دلته مناسبه ښکاري چې نبي کریم ﷺ او د نبي کریم ﷺ د ښار متعلق څو بیانات په ډېره مینه باندې پیش کړی شي.

**حرم مدینه کې د ګنبد خضراء مخې ته حضرت مولانا مفتی اعظم محمد شفیع رحمه الله وویل**

| | | |
|---|---|---|
| پھر پیش نظر گنبد خضراء ہے حرم ہے | ❁ | پھر نام خدا روضہ جنت میں قدم ہے |
| یہ ان کا کرم ہے ان کا کرم ان کا کرم ہے | ❁ | پھر شکر خدا سامنے محراب نبی ﷺ ہے |
| پھر سر ہے مرا اور تیرا نقش قدم ہے | ❁ | محراب نبی ہے کہ کوئی طور تجلی |
| دل شوق سے لبریز ہے اور آنکھ بھی نم ہے | ❁ | یہ ان کا کرم ان کا کرم ان کا کرم ہے |
| پھر منت دربان کا اعزاز ملا ہے | ❁ | اب ڈر ہے کسی کا نہ کسی چیز کا غم ہے |
| یہ ان کا کرم ان کا کرم ان کا کرم ہے | ❁ | پھر بارگاہ سید الکونین میں پہنچا |
| یہ ان کا کرم ان کا کرم ان کا کرم ہے | ❁ | یہ ذرۂ ناچیز ہے خورشید بداماں |
| دیکھ ان کے غلاموں کا بھی کیا جاہ و حشم ہے | ❁ | یہ ان کا کرم ان کا کرم ان کا کرم ہے |
| ہر موئے بدن بھی جو زبان بن کے کرے شکر | ❁ | کم ہے بخدا ان کی عنایات سے کم ہے |

یہ ان کا کرم ان کا کرم ان کا کرم ہے ❁ رگ رگ میں محبت ہو رسول عربی کی
جنت کے خزائن کی یہی بیع سلم ہے ❁ وہ رحمت عالم ہے شہ اسود واحمر
وہ سید کونین ہے آقائے امم ہے ❁ یہ ان کا کرم ان کا کرم ان کا کرم ہے
وہ عالم توحید کا مظہر ہے کہ جس میں ❁ مشرق ہے نہ مغرب ہے عرب ہے نہ عجم ہے
دل نعت رسولِ عربی کہنے کو بے چین ❁ عالم ہے تحیر کا زبان ہے نہ قلم ہے
یہ ان کا کرم ان کا کرم ان کا کرم ہے

## عشق نبی عظمت آدم کا نشان ہے

پھر سوئے حرم یہ دلِ شوریدہ رواں ہے ❁ پھر ہر غم ہستی سے حفاظت ہے اماں ہے
پھر سایہ میں روضہ اطہر رہیں گے ❁ دیکھیں گی تجھی تو غم ایام کہاں ہے
انوار ہی انوار! تجلی ہی تجلی! ❁ گلیوں میں مدینے کی بہشتیوں کا ساں ہے
اِک عالم حیرت میں نظر کھوئی ہوئی ہے ❁ جلوے ہیں مگر طاقت دیدار کہاں ہے
کانٹے بھی عرب کی گل ولالہ سے حسیں ہے ❁ ذروں پہ چمکتی ہوئی سورج کا گماں ہے
جن نام کے صدقے میں ملی دولتِ کونین ❁ وہ نام مری صلِّ علیٰ وردِ زباں ہے
ہے گرمی بازار محبت ترے دم تک ❁ تو عشق نبی ﷺ عظمت آدم کا نشاں ہے
کیفی! میں درِ شافع محشر کا گدا ہوں ❁ کیا غم ہے گناہوں کا اگر بار گراں ہے؟

مولانا منظور احمد صاحب دامت برکاتہم استاذ المحدثین جامعہ خیر المدارس

## نعت النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

سرکار دو عالم کی رخ پر انوار کا عالم کیا ہوگا ❁ جب زلف کا ذکر ہے قرآن میں رخسار کا عالم کیا ہوگا
معراج کی شب جب اللہ نے محبوب کو اپنے بلوایا ❁ سوچو تو سہی ان دنوں میں گفتار کا عالم کیا ہوگا
بُو بکر و عمر، عثمان و علی ہیں اوساری صحابہ دو زانوں ❁ جب بیٹھے ہونگے مجلس میں، سردار کا عالم کیا ہوگا
کھائی قسم خود قرآں نے اصحاب کی دوڑتے گھوڑوں کی ❁ اصحاب کا جب یہ عالم ہو تو سرکار کا عالم کیا ہوگا
کہتے عرب کی ذروں پر انوار کی بارش ہے ❁ ای ظفر نہ جانے طیبہ کی گلزار کا عالم کیا ہوگا

دا نعتيه کلام د علامه سيد سليمان ندوي رَحِمَهُ اللهُ دی. چې هغه د روضه اطهر مخې ته ويلي ؤ:

آدم کے لئے فخر یہ عالی نسبی ہے ❁ مکی مدنی ہاشمی و مطلبی ہے
پاکیزہ تر از عرش و سماجنتِ فردوس ❁ آرام گاہ پاک رسول عربی ﷺ ہے
آہستہ قدم نیچی نگاہ، پست صدا ہو ❁ خوابیدہ یہاں روح رسول عربی ﷺ ہے

ای زائر بیتِ نبوی یاد رہے یہ ❁ بے قاعدہ یہاں جنبشِ لب بی ادبی ہے
کیا شان ہے اللہ رے محبوب نبی ﷺ کی ❁ محبوب خدا ہے وہ، جو محبوب نبی ﷺ ہے
بجھ جائے تیری چھینٹوں سے اے ابرِ کرم آج ❁ جو آگ میری سینے میں مدت سی لگی ہے

## سوئے حرم

### اقبال عظیم

سجدیں جبیں جبیں ہیں، دعائیں زباں زباں ❁ سوی حرم چلے ہیں مسافر کشاں کشاں
احساسِ معصیت سے ہے لرزان بدن بدن ❁ اور چشمِ شرمسار سے آنسو رواں دواں
طے ہو رہی ہے راہِ طلب یوں قدم قدم ❁ شاداں عیاں عیاں ہیں، پشیمان نہاں نہاں
جلوے فلک فلک ہیں، اجالے فضا فضا ❁ چمکا ہے آفتابِ رسالت کہاں کہاں
پھوٹی وہیں وہیں سے تجلی کرن کرن ❁ لوحِ جبیں پاک جھکی ہے جہاں جہاں
مانو تو ہر صدائے مؤذن ہے اِک پیام ❁ سمجھو تو ہے ندائے محمد ﷺ اذاں اذاں
گزرے جو ہم مدینے کی گلیوں سے یوں لگا ❁ خوشبو چمن چمن ہے، بہاریں جناں جناں
بیٹھا ہے آستانے پہ اقبال گو خموش ❁ برپا ہے دل میں ایک طلاطم نہاں نہاں

## اقبال عظیم

مدینہ کا سفر ہے اور میں نمدیدہ نمدیدہ ❁ جبیں افسردہ افسردہ، قدم لغزیدہ لغزیدہ
چلا ہوں ایک مجرم کی طرح میں جانب طیبہ ❁ نظر شرمندہ شرمندہ، بدن لرزیدہ لرزیدہ
کسی کے ہاتھ نے مجھ کو سہارا دیدیا ورنہ ❁ کہاں میں اور کہاں یہ راستہ پیچیدہ پیچیدہ
کہاں میں اور کہاں اس روضہ اقدس کا نظارہ ❁ نظر اس سمت اٹھتی ہے، مگر دزدیدہ دزدیدہ
غلامانِ محمد ﷺ دور سے پہچانے جاتے ہیں ❁ دل گرویدہ گرویدہ، سر شوریدہ شوریدہ
مدینہ جاکے ہم سمجھے تقدس کس کو کہتے ہیں ❁ ہوا پاکیزہ پاکیزہ، فضا سنجیدہ سنجیدہ
بصارت کھو گئی لیکن بصیرت تو سلامت ہو ❁ مدینہ ہم نے دیکھا ہے مگر نادیدہ نادیدہ
وہی اقبال جس کو ناز تھا کل خوش مزاجی پہ ❁ فراقِ طیبہ میں رہتا ہے اب رنجیدہ رنجیدہ

## زه خو د دې قابل نه وم

۱۴۰۹هجري کې دبیت الله شریف د حج فراغت نه وروسته څه اشعار په حرم پاک کې او څه په جده کې وویل شول.

## نفیس

شکر ہے تیرا خدایا' میں تو اس قابل نہ تھا ❀ تو نے اپنے گھر بلایا' میں تو اس قابل نہ تھا
اپنا دیوانہ بنایا' میں تو اس قابل نہ تھا ❀ گرد کعبے کی پھرایا' میں تو اس قابل نہ تھا
مدتوں کی پیاس کو سیراب تو نے کر دیا ❀ جام زمزم کا پلایا' میں تو اس قابل نہ تھا
ڈال دی ٹھنڈک مرے سینے میں تو نے ساقیا ❀ اپنے سینے سے لگایا' میں تو اس قابل نہ تھا
بھا گیا میری زبان کو ذکر اَلا اللہ کا ❀ یہ سبق کس نے پڑھایا' میں تو اس قابل نہ تھا
خاص اپنے در کار کھا تو نے اے مولا مجھے ❀ یوں نہیں دَر دَر پھرایا' میں تو اس قابل نہ تھا
میری کوتاہی کہ تیری یاد سے غافل رہا ❀ پر نہیں تو نے بھلایا' میں تو اس قابل نہ تھا
میں کہ تھا بے راہ تو دستگیری آپ کی ❀ تو ہی مجھ کو رہ پہ لایا' میں تو اس قابل نہ تھا
عہد جو روزِ ازل تجھ سے کیا تھا یاد ہے ❀ عہد وہ کس نے نبھایا' میں تو اس قابل نہ تھا
تیری رحمت' تیری شفقت سے ہوا مجھ کو نصیب ❀ گنبدِ خضراء کا سایا' میں تو اس قابل نہ تھا
میں نے جو دیکھا سو دیکھا جلوہ گاہِ قدس میں ❀ اور جو پایا سو پایا' میں تو اس قابل نہ تھا
بارگاہِ سید کونین ﷺ میں آ کر نفیس ❀ سوچتا ہوں' کیسے آیا؟ میں تو اس قابل نہ تھا

(۱۴۰۹هـ/۱۹۸۹ء)

مجاهد کبیر عاشق رسول ﷺ د پښتو ژبې مشهور مداحِ رسول ﷺ دحاجي ترنګزئي رحمه الله یو خاص ملګری حاجي محمد امین رحمه الله فرمایلي وو:

زړګیه سترګي لګوه د قدم لاره نه ده ❀ حضرت پرې ایخی قدمونه دومره خواره نه ده
په دې کوخوکې جبرائیل علیه السلام پښې ابله ❀ له شوقه تللو ورروره ستا د خپودپاره نه ده
چې دحرم په خمکه ږدې قدم او سترګې نه ږدې ❀ زړه دې زخمي نه دی سینه دې هم بیماره نه ده
دامخامخ قبه چې ښکاري زرغونه د محبوب ❀ مانی دعرش له دې نه لوړه او نامداره نه ده
دغه پنځه مناري لوړې د محبوب د حرم ❀ یوه هم کمه د فردوس له لوړ میناره نه ده
اوس به په باب سلام ورشي د محبوب روضې له ❀ سینه د هیڅ غاشق له دې درده کراره نه ده
نور په ادب او شوق حیران یم دمحبوب روضې له ❀ بې له مولا نه مې سپارلې دغه چاره نه ده
سلام دمحمد امین عرض کړه په حضور د محبوب ❀ څولی خالي راوړې چاله دې درباره نه ده

یارب صل وسلم دائماً ابداً ❀ علی حبیبك خیر الخلق کلهم

۲۷ جمادی الثاني ۱٤۱۰هـ

# كتاب البيوع

## د اخيستلو او خرڅولو بيان

قال الله تعالى ﴿يَا أَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا﴾ (سورة مؤمنون آيت:۵۱)

قال الله تعالى ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلَّا أَن تَكُونَ تِجَارَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ﴾ (سورة نساء آيت:۲۹)

**په اسلام کې د اخیستلو او خرڅولو تصور**: په اسلامي نقطه نظر سره د انسان د عملي ژوند دوه محوره او دوه بنیاده دي ۱: اول بنیاد حقوق الله دی چې د عباداتو په نوم سره یادېږي. ۲: دویم بنیاد حقوق العباد دی چې هغې ته معاملات او بیوعات (اخیستل او خرڅول) ویل کېږي. دا چې د حقوق الله تعلق په کائنات انسان کې د هر انسان سره دی نو ځکه عموماً پدې وجه باندې دا مخکې کېږي. او دا چې د حقوق العباد دائره دومره عامه نده نو ځکه دا وروسته کېږي. ځېنو محدثینو په کتاب النکاح او د ابواب یې په کتاب البیوع باندې مخکې کړی دی او د فقهاؤ هم دغه طریقه ده. خو ځېنو بیوعات مخکې کړې دي لکه څنګه چې د صاحبِ مشکوة طرز او طریقه ده. ځکه هغې کتاب البیوع دلته ایخی دی. (المرقات ۶/۵)

د بیع او شراء سره د انساني بقاء ډېر مضبوط تعلق دی ځکه چې انسان مدنی الطبع دی دا شهریت او د نورو انسانانو سره د تعلق ساتلو لپاره محتاجه دی او پدې د بېلا بېلو شیانو ضرورت پېښېږي. که چرې بیع و شراء مشروع او جائز نشي نو د ضرورت شیان به انسان د خپل ضرورت مطابق د بل نه قبضه کوي چې په هغې ظلم او فساد دی. او یا به سوال کوي چې په هغې د شرافت سپکاوی دی. او به صبر کوي چې په هغې کې د انسان د هلاکت خطر دی؛ ځکه چې ډېره ولګه کې خوراک نه اخلی یا دیره یخنی کې جامه نه اخلی نو مړ به شي. نو ځکه اسلام د انساني بقاء به خاطر بیع و شراء جائز بلکې مامور به ګرځولی دی. او د بیع و شراء او انسان د معاملاتو معیار معلومولو لپاره او د هغې د لټولو لپاره یوه کسوړه ده. ځکه د انسان د صدق او دیانت او د روغ ناروغه پته په معاملاتو نه معلومېږي. ویلی کېږي چې چا د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په مخکې د یو سړي تعریف وکړو نو حضرت عمر فاروق رضي الله عنه پوښتنه وکړه چې آیا کله دې د هغې سره معاملات کړې دي هغه وویل چې معاملاتو کې ورسره کله نه یم مخ شوی خو هغه ښه سړی دی. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ورته وویل چې په معاملاتو کې ورسره نه یې مخ شوی نو بیا ته څنګه ویلی شې چې هغه ښه سړی دی

ځکه ښه فیصله د انسان په معاملاتو کېږي. بهر حال کله چې د انسان معاملات سم شي نو د هغې ټول نظام سم وي. ځکه چې کله هغه په حلاله طریقې سره مال حاصلوي او خیټې ته یې حلال خې نو د هغې نظر، فکر او د هغې ژبه او مازغه او د هغې ظاهري اعضاء د ټولو حرکات او سکنات سم شي. خو که دي په خیټه کې حرام لاړ شي نو د هغې باطني او ظاهري نظام تباه شي. نه د هغې نظر پاک وي، نه ژبه په واک کې وي او نه به یې سوچ او فکر سم وي او نه به د هغې د لاس او د خپو حرکات او سکنات سم وي. ما د مشکوة شریف د کتلو په زمانه کې وکتل چې په جوماتو کې د لمونځ لپاره په صف کې ناست یو بوډا سړی بل بوډا ته ځپېړه ورکړه؛ نو زمونږ استاذ محترم حضرت مولانا فضل محمد صاحب سواتي رَحِمَهُ اللهُ وفرمايل چې دا بوډا ګان د همسا په مرسته په مشکل سره جوماتته راځي دا خپله څوک چرته وهلی شي. بلکې حقیقت کې د دوي په خېټه کې حرامه غذا رسیدلې ده، هغه د داخل نه ورانی کوي. همدغه وجه ده چې امام محمد رَحِمَهُ اللهُ نه چا پوښتنه وکړه چې آیا تا په تصوف کې کوم کتاب لیکلی دی؟ هغه ورته په جواب کې وویل چې آو ما په جامع صغیر کې د کتاب البیوع تصوف کې لیکلی دي مطلب دا چې د کوم سړي ټول معاملات سم نو هغه د ټولو نه لوی صوفي دی نو په پس منظر باندې به تاسو داسې پوهه شئ چې مثلاً یو ګاډی دی د هغې په ټینکۍ کې تاسو د پټرولو سره سره اوبه او ګند هم واچولو او س دا ګاډی کله هم خپل مزل برابر نشي ساتلی هغه به شور کوي او بازینګري به اړوي، او دریږي به او بیا به روانیږي او بیا به خرابیږي بالکل همدغه شان د انسان خیټه ده. چې پدې کې وران خوراک دننه شي او د انسان د بدن کالبوت برابر نه شي پاتې کیدلی. بهرحال اسلام د اقتصادیات د انسانې ضرورتونو یوه برخه ګڼي. خو اقتصادیات د ژوند اصل مقصد نه ګڼي او نه یې د ژوند اصل مقصد جوړوي. خو سرمایه دارانه نظام اقتصادیات د انساني ژوند اصل مقصد ګڼي او هغه د انساني ژوند محور جوړوي. ګویا چې سرمایه دارانه نظام معاشیات به ایمانیاتو باندې مخکې ګڼي او اسلام ایمانیات په معاشیاتو باندې مخکې ګڼي. په اسلام او سرمایه دارانه نظام کې دویم فرق دا دی چې اسلام د ذاتي ملکیت قائل دی خو پدې کې د تصرف کولو شرائط او قانون ساتي د دې لپاره سرمایه پاکه شي او سرمایه دارانه نظام اګر که د ذاتي ملکیت قائله ده خو د قانو او قاعدې پابنده نده. بلکې د خپل خوښې قائله ده. پاتې شو د سوشلزم او کمیونزم نظام، نو هغه خو د چا د ذاتي ملکیت قائله نه دی. همدغه شان د اسلام نظام د زیاتې او کمي نه پاک او په مساوات او عدل او اعتدال باندې قائم دی.

**د بیع تعریف: بیوع** جمع دی د دې مفرد **بیع** دی. د **بیع** لفظ د اضدادو نه دی د دې اطلاق په اخستلو باندې هم کېږي او په خرڅولو باندې هم کېږي ځکه د بیع پوره مفهوم او ترجمه د اخستلو او خرڅولو

ده. همدغه شان **شراء** لفظ هم د اضداد نه دی د دې اطلاق په اخستلو باندې کېږي او په خرڅولو باندې هم کېږي.

د بيع شرعي تعريف دادی : **البيع هو مبادلة المال بالمال بالتراضي** يعنې په خپل مينځ کې په رضا سره د مال په بدل کې مال اخستلو او ورکولو ته بيع ويل کېږي. که په جانبينو کې مال نه وي نو بيع جائز نه ده او که د جانبينو رضا نه وي نو بيا هم بيع جائز نه ده. (المرقات ۶/۵)

**د بيع شرعي حيثيت او قسمونه**: پدې باندې اجماع ده چې بيع جائز ده او سود حرام دی. قرآن کريم کې د الله تعالی حکم دی ﴿ **وَأَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا** ﴾ (**سورة بقره آيت**:۲۷۵) د فقهاؤ په دې اتفاق دی چې د هر عاقل بالغ او خپلواک انسان بيع صحيح ده. د بيع بنياد په درې شيانو باندې قائم دی. ۱: اول د ايجاب او قبول معامله ده مثلاً يو سړی يې خرڅوي او بل سړی يې اخلي. ۲: دويم د بيع شتون. ۳: دريم ثمن يعنې نرخ. د دې درې ارکانو په وسعت سره د بيع قسمونو کې وسعت راځي. همدغه وجه ده چې په کتابونو کې البيوع يا البيوعات د جمعی صيغه ذکر کړې ده. او چرته چې کتاب البيع مفرد لفظ سره راځي نو هلته جنس مراد وي. چې په لړ يا ډير لپاره ويل کېږي. بهرحال د ډيرو قسمونو نه د يو څو ذکر کېږي. د يوه اجمالي نقشه د لوستونکو ذهن ته راشي. د ټولو نه اول پدې پوهه په کار ده چې بيع غټ قسمونه څلور دي.

۱: بيع نافذ : دا هغه بيعه ده چې په هغې بايع (خرڅونکی) او مشتري (اخستونکی) او د مبيعه او د ثمن ټول شرطونه پوره شي.

۲: بيع موقوف: دا هغه بيعه ده چې د مالک په اجازې پورې موقوف وي.

۳: بيع فاسد : دا هغه بيعه ده چې **بِأَصْلِهِ** بيع جائز وي خو **بِوَصْفِهِ** جائز نه وي يعنې د کوم خارجي امر په وجې سره بيع جائز نه وي لکه څنګه چې **سعي الى الجمعة** په وخت اخستل او خرڅول وي.

۴: بيع باطل دا هغه بيعه ده چې نه د اصل په اعتبار سره جائز وي او نه د وصف په اعتبار سره.

بهرحال د بيوعاتو د ډيرو قسمونو بيان داسې دی : ۱: بيع مطلق ۲: بيع سلم ۳: بيع الرف ۴: بيع المقايضه ۵: بيع الرابحه ۶: بيع توليه ۷: بيع الوضعيه ۸: بيع لازم ۹: بيع با لخيار ۱۰: بيع المزابنه ۱۱: بيع المحاقله ۱۲: بيع العرايا ۱۳: بيع المصرات ۱۴: بيع ملامسة ۱۵: بيع منابذه ۱۶: بيع الاقاله ۱۷: بيع غرر ۱۸: بيع بالسنين ۱۹: بيع على سوم الشراء ۲۰: بيع المزايده ۲۱: بيع حبل الحبله ۲۲: بيع النجش ۲۳: بيع تلقی الرکبان ۲۴: بيع حاضر لباد ۲۵: بيع الکالی بالکالی ۲۶: بيع العينه.

دا ټول بيوعات نن سبا په معاشره کې رائج دي. خو خلک غافل دي. د کتاب البيوع په احاديثو کې

د دې بيوعاتو ذکر راروان دی. ورسره ورسره به تعارف هم ليکلی کېږي.

## باب الكسب وطلب الحلال

## گټه کول او د حلالو د تلاش بيان

د خپل ځان او د خپل ناموس د حفاظت لپاره د مال گټلو لويې فضيلت دی. که يو سړی په حلاله گټلو کې محنت نه کوي نو خامخا به هغه د نورو نه سوال کوي يا به گرځې راگرځې يا په طمع او لالچ کې به ژوند تېروي. د دينه غوره چې سړی د خپلو متو په قوت سره وگټي، خپله يې هم وښوري او په نورو يې هم وښوري. ويل کېږي چې يو سړی په ځنگل د يوه لومبړه وليدله چې د څلور واړو ښپو نه محرومه وه او يو ځای کې ناسته وه. هغه سړی سوچ وکړو چې د دې خوراک به څه انتظام کېږي. هغه هملته کيناتسلو او انتظار يې وکړو چې په لږ ساعت کې زمري يو ښکار په خُله کې نيولی راغلو. څه يې وخړو او پاتې يې لومبړي ته واچولو. لومبړي هغه ښه وخوړلو. هغه سړی سوچ وکړو چې الله تعالی دغه لومبړي ته پدې حالت کې خوراک ورکوي نو ماته به يې راکړي. زه به هم همدغه شان کينم. نو بس همغلته کيناستلو. ډير وخت تېر شو. خو د خوراک لپاره ورته څه شی ملاوو نشو. نو پريشانه شو چې په دغه وخت کې ورته د غيب نه اواز راغلو چې ته د لومړي پشان ولې فلج شوی ناست يې. د زمري پشان ولې نه جوړېږې. چې خپله يې هم وخوري او په نورو يې هم وخوري. بهر حال که د کوم سړی د مخکې نه د خوراک څکاک انتظام شته دی. نو علماوو ليکلي دي چې بيا هغې له د گټلو کې چکري وهل په کار ندي. بلکې په عبادتو کې وله مشغولېدل په کار دي. خو که انتظام نشته دی نو بيا په گټلو کې محنت ضرور په کار دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## د خپل لاس گټه د ټولو نه بهتر ده

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ مَعْدِيكَرِبَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَا أَكَلَ أَحَدٌ |
| مقداد بن معديکرب رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې نه دي خوړلي هيڅ يو کس |
| طَعَامًا قَطُّ خَيْرًا مِنْ أَنْ يَأْكُلَ مِنْ عَمَلِ يَدَيْهِ وَإِنَّ نَبِيَّ اللهِ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ كَانَ يَأْكُلُ |
| رزق بهتر په خپل لاس د گټلي رزق نه همدغه وجه ده چې د الله تعالی نبي داؤ عليه السلام به خوراک کولو |

| مِنْ عَمَلِ يَدَيْهِ .[1] |
| --- |
| د خپل لاس په مينه سره ګټلي رزق نه. |

**توضيح: من عمل يديه:** يعني حضرت داود عَلَيْهِ السَّلَامُ به په خپل لاس سره ګټله او بيا به يې خوړله. الله تعالى حضرت داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ ته ډېره لويه بادشاهي ورکړې وه. هغې هره ورځ د يو نه يو سړي خپل باره کې تپوس کولو چې وايه داؤد څنګه بادشاه دی؟ عادتونه او سيرت يې څنګه دی؟ يو ورځ الله تعالى د يو سړي په شکل کې يو فرشته راوليږله هغې په جواب کې وويل چې داؤد ډير ښه سړی دی خو کاش که د بيت المال نه يې وظيفه نه خوړلې پدې خبره باندې د حضرت داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ په زړه او مغزو کې د برق پشان څړيکه تېره شوه او عهد يې وکړو چې د بيا لپاره به وظيفه نه اخلم. نو الله تعالى ورته د زغري جوړولو هنر زده کړو. او د هغې په لاس کې يې اوسپنه د شمعې په شان نرمه کړه. ويل کېږي چې هغه به هره ورځ يوه زغره جوړوله او په څلور يا پنځه زره به يې خرڅوله. څه به يې خپله خوړله او نوره به يې د بني اسرائيلو په فقراو کې تقسيموله. (المرقات ٦/٧)

**د مختلفو انبياو د راتلو ذريعې:** حضرت شاه عبد العزيز رَحِمَهُ اللَّهُ په تفسير عزيز کې د جدا جدا انبياء کرامو کسبونه داسې ليکلي دي: ۱: د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ کسب زمينداره وه ۲: د حضرت ادريس عَلَيْهِ السَّلَامُ کسب او معاش ذريعه خياطي وه ۳: د حضرت نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ کسب او د معاش ذريعه نجاري وه ۴: د حضرت هود عَلَيْهِ السَّلَامُ او د حضرت صالح عَلَيْهِ السَّلَامُ دواړو کسب تجارت ؤ ۵: د حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ کسب او د معاش ذريعه زمينداره وه ۶: د حضرت لوط عَلَيْهِ السَّلَامُ کسب هم همدغه ؤ ۷: د حضرت شعيب عَلَيْهِ السَّلَامُ کسب او د معاش ذريعه چيلي ساتل وو ۸: د حضرت موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ کسب هم چيلي ساتل وو ۹: د حضرت داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ کسب زغري جوړول وو ۱۰: د حضرت سليمان عَلَيْهِ السَّلَامُ کسب پچې (توکرې) جوړول ۱۱: د حضرت محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د معاش ذريعه جهاد في سبيل الله ؤ الله تعالى د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رزق د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نيزې د لاندې ايخى ؤ. نو دا نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په مدني دور کې دا رزق ورکړی شوی وو. (تفسير عزيزي ۱/۲۴۵)

## د حرام خور دعاء نه قبليږي

| ﴿۲﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " إِنَّ اللهَ |
| --- |
| ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې بېشکه الله تعالى (د کمي او عيبونو نه) |

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ٣٠٣/٤ رقم الحديث ٢٠٧٢.

| طَيِّبٌ لَا يَقْبَلُ إِلَّا |
|---|
| پاک دی دده ذات په دربار کې صرف هغه (صدقې او عملونه) قبول وي چې د (شرعي عیبونو او د نیت |
| طَيِّبًا وَ أَنَّ اللهَ أَمَرَ |
| د فسادنه) پاک وي (یادو ساتی.) الله چې د کوم شیانو (یعنې د حلال مال خوړلو او د نیک عملونو) حکم |
| الْمُؤْمِنِيْنَ بِمَا أَمَرَ بِهِ الْمُرْسَلِيْنَ فَقَالَ : |
| کړی خپل رسولانو ته ورکړی همغه حکم یې مؤمنانو ته هم ورکړی نو ځکه د الله تعالی ارشاد دی فرمایي |
| ﴿ يَا أَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَ اعْمَلُوْا صَالِحًا ﴾ وَ قَالَ : ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا |
| ای رسولانو! حلال رزق خورئ او نیک اعمال کوئ، همدارنګې الله تعالی بیا فرمایي: ای مؤمنانو |
| كُلُوْا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ ﴾ ثُمَّ |
| تاسو فقط هغه پاک حلال رزق خوری. کوم چې مونږ تاسو ته درکړی دی) بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَام د (مثال په |
| ذَكَرَ الرَّجُلَ يُطِيلُ السَّفَرَ أَشْعَثَ أَغْبَرَ يَمُدُّ يَدَيْهِ |
| طور) دیو سړی حال ذکر کړو چې هغه په یو اوږد سفر روان شي ګډ وډ او ګرد نه ډک خپل لاسونه اوچت |
| إِلَى السَّمَاءِ : يَا رَبِّ يَا رَبِّ |
| کړي آسمان طرف ته او وایي چې ای زما ربه! ای زما ربه! (یعنې د خپلو مقاصدو لپاره دعا غواړي) حال دا |
| وَ مَطْعَمُهُ حَرَامٌ وَ مَشْرَبُهُ حَرَامٌ وَ مَلْبَسُهُ حَرَامٌ وَ غُذِّيَ بِالْحَرَامِ |
| چې خوراک یې حرام، جامه یې حرامه (د پیدائش نه تر او س پوری) ساتنه یې په حرامو (خوراکو) شوې |
| فَأَنَّى يُسْتَجَابُ لِذَلِكَ ؟ ".[1] |
| نو بیا به څنګه دده دعاء قبوله شي. |

**توضیح**: پدې حدیث کې خو اول د حلال ګټلو فضیلت بیان شوی دی چې انبیاء هم الله تعالی د حلال ګټلو پابند کړي دي نو مسلمان به هم د هغې پابند وي. د دینه وروسته نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه سړی د دعا ذکر داسې وکړو چې مثلاً یو عبادت کونکی هم دی مسافر هم دی په اوږد سفر کې

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۷۰۳ رقم الحديث: ۱۰۱۵/۶۵.

سخته هم تېره کړي ګډ ود او مجبوره هم دی. ډير په ژړا او فرياد سره دعا هم غواړي. دواړه لاسونه د الله تعالی مخکې ته خواره کړي په داسې حالت کې د دعا د قبليدو ډير اميد وي. خو نبي کريم وفرمايل چې چې د هغه سړی دعا نه قبلېږي چې خوراک څکاک يې حرام دی او په بدن يې چې کومه جامه ده هغه هم د حرامو ده. نو د دغه سړی دعا به څنګه قبوله شي. د عارفينو مقوله ده چې د دعا دوه وزرې دي که هغه وي نو دعا پاس الوتی شي: يو د اکل حلال او دويم صدق مقال يعني په خيټه کې حلال وي او په ژبه باندې رېښتيا وي نو دعا قبلېږي ګينې نه قبلېږي. (المرقات ٦/٧)

ما يقبل الله الاكل طيبة ❁ ما كل من حج بيت الله مبرور

او چا څه ښه ويلي دي:

يحجون بالمال الذي يجمعون ❁ حراماً الى البيت العتيق المحرم

## په آخر وخت کې به د حلال او د حرام په مينځ کې فرق ختم شي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ |
| ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې په خلکو به يوه داسې زمانه راځي چې |
| لَا يُبَالِي الْمَرْءُ مَا أَخَذَ مِنْهُ أَمِنَ الْحَلَالِ أَمْ مِنَ الْحَرَامِ.[1] |
| يو سړی ته چې کوم مال ملاوېږي د هغې باره کې دا پرواه نه کوي چې دا حلال دي او که حرام. |

**توضيح**: قيامت ته نژدې وخت کې چې نوري فتنې او ګمراهيانې به هم وي نو دغه ګمراهي به هم ښه په تيزی سره روانه وي چې د حلالو او د حرامو تر مينځ به فرق ختم شي. بس روپۍ په کار دي چې د هر ځای نه راشي او چې هر څنګه راشي، دا فرق په کې نه کوي چې دا به حلال وي او که حرام، لکه څنګه چې د مزار د منجورانو باره کې ويل شوي دي:

اخون له خو بس پې د خري وي او که د سپي

يعني منجور لپاره پې په کار دي که د خري وي او که د سپي وي.

## د شکمن شيانو نه ځان ساتل په کار دي

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْحَلَالُ بَيِّنٌ وَالْحَرَامُ بَيِّنٌ |
| نعمان بن بشير رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې حلال ظاهر دي او حرام ظاهر دي |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٢٩٦/٤ رقم الحديث: ٢٠٥٩.

وَ بَيْنَهُمَا مُشْتَبِهَاتٌ لَا يَعْلَمُهُنَّ كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ فَمَنِ اتَّقَى

او ددي دوا ړو په مينځ کې شکمن شيان دي چې هغه ډير خلک نه پيژني لهذا کوم سړی چې پرهيز وکړو

الشُّبُهَاتِ اسْتَبْرَأَ لِدِيْنِهِ وَ عِرْضِهِ وَ مَنْ وَقَعَ فِي الشُّبُهَاتِ

د شکمن شيانو نه هغه خپل دين او خپل عزت محفوظ کړو او کوم سړی چې په شکمن شيانو کې اخته شو

وَقَعَ فِي الْحَرَامِ كَالرَّاعِي يَرْعَى حَوْلَ الْحِمَى

نو دا په حرامو کې اخته شوا او دده مثال د هغه شپونکې پشان دی چې څاروي څروي په غاړه د ممنوعه ځای

يُوشِكُ أَنْ يَرْتَعَ فِيهِ

چې هر وخت د دې امکان وي چې څاروي به هغه منع کړی شوي ځرځای ته ننوځي او څريدل شروع کړي

أَلَا وَ إِنَّ لِكُلِّ مَلِكٍ حِمًى أَلَا وَ إِنَّ حِمَى اللهِ

پوهه شئ د هر يو بادشاه منع کړی شوي ځرځای وي او ياد وساتئ چې د الله تعالى منع کړی شوی ځرځای

مَحَارِمُهُ أَلَا وَ إِنَّ فِي الْجَسَدِ مُضْغَةً إِذَا صَلَحَتْ

حرام شيان دي او دا خبره هم ياده وساتئ چې د انسان په بدن کې د غوښې يوه ټوټه ده چې هغه په روغ

حالت کې وي (يعنې کله چې هغه د عيمان او عرفان او يقين په رڼا سره رڼا شوي وی نو د خير عملونه

صَلَحَ الْجَسَدُ كُلُّهُ وَ إِذَا فَسَدَتْ

او ښائسته اخلاق او دا حوالو دو چې نه) ټول بدن روغ وي او کله چې په ټوټه کې ګډوډوالی راپيدا شي

فَسَدَ الْجَسَدُ كُله أَلَا وَ هِيَ الْقَلْب.[1]

نو ټول بدن ګډوډ شي. ياد وساتئ! د غوښې هغه ټوټه زړه دی.

**توضيح: الحلال بين وهو الذي توجد فيه دلائل الحل فقط:** يعنې واضحه حلال هغه شيان دی چې د هغې حلت باندې د شريعت واضحه دلائل وي، په هغې هيڅ قسمه څه شک نه وي لکه نکاح کول او د حلال څاروي غوښه خوړل، په وخت باندې اوده کيدل او د خدای د مخلوق خدمت کول او داسې نور نور.

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱ رقم الحديث :۵۲، ومسلم في صحيحه ۳: ۱۲۱۹ رقم الحديث: ۱۵۹۹/۱۰۷.

**و الحرام بين وهو الذي توجد فيه دلائل الحرمة فقط**: يعني واضحه دلائل وي او په هغې کې څه شک و شبه نه وي لکه زنا کول، غلا کول، دروغ ویل او چغلي (خبرې وړونکی راوړونکی) کول او یا داسې نور. (المرقات ۶/۱۱)

**وبينهما مشتبهات وهي ما تعارضت فيها ادلة الحل والحرمة ولم يتضح وجه الترجيح**: يعني مشتبهات هغه امور دي چې په هغې کښ حل او حرمت دواړه شتون لري مثلاً يو طرف ته وکتلی شي نو داسې معلومېږي چې حلال دي او بل طرف ته وکتلی شي نو داسې محسوسېږي چې حرام دي. اوس پدې کې شک پیدا شو چې په هغې ډیر خلک نه پوهېږي. او نه د هغې باره کې څه فیصله کوي. خو جيد او مجتهدین په خپل قوت اختیار سره یو طرف راجح وګڼي او فیصله وکړي یا مثلاً داسې دلائل شته دی چې په هغې د مجتهدینو د اجتهاد ځای وي. نو د یو مجتهد د اجتهاد په نظر سره هغه شیان حلال شي. اوس پدې کې شک راغلو نو د احتیاط تقاضا داده چې هغه پرېښودلی شي. په پاس دوه (۲) ذکر شوې مثالونو باندې داسې پوهه شی چې یو سړی سره څه روپۍ د حلالی ګټې دي او څه د حرامې ګټې دي. نو د ټولو نه ځان ساتل غوره دي. یا کومې ښځې ګواهي ورکړه چې ما فلاني هلک او فلانۍ جینۍ ته یئ ورکړي دي لهذا د هغوی نکاح صحیح نه ده. اوس دا د یو طرف نه د دې ښځې وینا ده بل طرف ته قاعده ده چې د یوې ښځې ګواهي معتبره نه ده. لهذا په دې نکاح کې جائز او ناجائز شک راغلو نو پرېښودل یې غوره دي. (المرقات ۶/۱۲)

بهرحال د شک والا شیانو باره کې. علماؤ اقوال په درې قسمه دي: ۱: شکمن شیان دي حرام وګڼلی شي، فقط په اضطراري حالت کې د ځان ساتلو په خاطر دی استعمال کړی شي.

۲: داسې شکمن شیان دې مباح وګڼلی شي چې استعمالول او نه استعمالول دواړه یې جائز دی.

۳: داسې شکمن شیان دي نه حرام وګڼلی شي او نه حلال وګڼلی شي ځنګه چې په شکمن حالت کې وي په همغه حالت باندې یې پرېږدی. زمونږ استاد حضرت مولانا محمد ادریس صاحب رَحِمَهُ اللهُ شیخ الحدیث جامعه بنوری ټاؤن مسلم شریف په درس کې د دې حدیث په تشریح کې ویلي چې نن سبا بین الاقوامي توګه باندې د بیوعاتو نظام فاسد دی. لهذا که مونږ خپله پیسه هم حلاله کړو او کوم شی اخلو نو هغه به نه حلالېږي ځکه دا حکم دا دی چې د ځان د بچ کولو لپاره په خاص حالت کې د حاجت مطابق خوړل په کار دي او بیا استغفار ویل په کار دي. حضرت سید محمد یوسف بنوري رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د دې حدیث متعلق به شاه انور شاه کشمیري رَحِمَهُ اللهُ ویل که دا حدیث امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ یا امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ ویلي وي نو څه حق به یې ادا کړې شوې وي. زمونږ د طاقت نه خو بهر ده. بیا یې وویل چې علامه شوکاني رَحِمَهُ اللهُ یې داسې شرح لیکلی ده خو هغه ډکی ده. ډکی!

معالم السنن کې علامه خطابي رَحِمَهُ اللهُ چې کومه تشریح لیکلې ده او تقي الدین ابن دقیق العید چې کومه تشریح لیکلې ده او مصباح السیاده کې د دې حدیث چې کومه تشریح لیکلی شوې ده. که وس دا ټول وګتلی شي نو د دې حدیث به تر ډېره حده پورې حق ادا شي.

بهرحال دا حدیث د امهات اسلام نه دی که دا حدیث د اسلام په بنیادی احادیثو کې دریم دی نو دا به **ثلث الاسلام** ویل کېږي. او که دا حدیث په بنیادي احادیثو کې څلورم دی نو بیا دا به ربع الاسلام ویل کېږي. **انما الاعمال الخ** او **من حسن اسلام المرء الخ** او زیر بحث حدیث د اسلام په بنیادي احادیثو کې دی. (المرقات ٦/١٢)

**کالراعي:** پدې حدیث کې چې د مشتبهاتو کوم ذکر راغلی وو. د هغې د وضاحت لپاره یو مثال ورکړی شوی دی. مثلاً یو بادشاه دی. د هغې یو څرن ځای دی. چې هغه منع کړی شوی دی. وس چې کوم خلک هغې ته نزدې ورځي او بېزي پکې څروي نو امکان لري چې یوه بېزه ده دننه لاړه شي او نقصان به وکړي. لهذا د داسې شک ځای ته بېزي بوتلل او څرول ښه نه دي. بالکل همدغه شان الله تعالی په احکاماتو کې ځینې شیان حرام ګرځولي دي. نو خلک باني جوړوي او ګرد ترینه ګرځي. د هغوی لپاره خطر دی چې چرته هغه خلک په حرامو کې واقع نشي. (المرقات ٦/١٣)

**حمیٰ:** شپول او غاړی ته وایي. د ښاروو نه د فصل د بچ کولو لپاره چې چار چاپیره کوم ازغن تار تاوو کړی کېږي. هغې ته حمی وایي. (المرقات ٦/١٣)

شیخ علی متقي رَحِمَهُ اللهُ د دې حدیث په رڼا کې د جائز او ناجائزو حدود په پنځه مرحلو مشتمل یو ترتیب داسې لیکلی دی: ١: ضرورت ٢: مباح ٣: مکروه ۴: حرام ۵: کفر. فرمایې چې کله انسان د خپلي بقاء او د خپل عزت د ساتلو حد پورې ضروري شیانو باندې اکتفا کوي نو هغه د هرې فتنې او خطر نه محفوظ وي. خو که انسان د خپل ضرورت د حد نه تېر شي او مخکې لاړ شي. نو هغه د حد ضرورت نه حد مباح ته لاړ شي. او که هغه په حد اباحت باندې هم قناعت نه کوي نو هغه په حدی کرهت کې داخل شی. او کله چې په حد کراهت باندې قناعت نه کوي او مخکې لاړ شي نو په حد حرام کې داخل شي. او کله حې هغه په حد کراهت هم قناعت هم نه کوي او مخکې لاړ شي نو په حد حرام کې ولوېږي. چې د هغې نتیجه دا راوځي چې په مخکې مرحله کې هغه حد کفر ته داخل شي.

**ألا وهي القلب:** د حدیث په آخر کې د نتیجې په توګه ویل شوي دي چې حرام او مشتبه شیانو په استعمالول سره د انسان په بدن کې دننه یوه ټوټه ده هغه اغیزمنه کېږي. په حرام خوراک سره هغې

باندې تورتم راخپور شي او هغه ټوټه خرابه شي. هغه د ټول بدن لپاره د یو مضبوط کور وي. که چېرې هغه خراب شو نو ټول بدن به خراب شي. هغه ټوټه پشان د بادشاه ده. که د بادشاه ارادې بنې نه وي نو د بدن یو اندام اراده هم صحیح نه پاتې کېږي. وي فرمایل هغه زړه دی د دې په احساساتو، جذباتو او میلان سره ټول بدن حرکت کوي. لهذا د دې د اصلاح کوښښ وکړئ. د حرامو نه ځان وساتئ او حلال استعمال کړئ چې د زړه اصلاح وشي. او چې کله زړه اصلاح وي نو د دې خدام یعنې د بدن ټول اندامونه په صالح وي. (المرقات ٦/١٤)

## د زناکارې ښځې لپاره اجرت حرام دی

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَعَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ثَمَنُ الْكَلْبِ خَبِيثٌ وَ |
| رافع ابن خدیج رضی الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې د سپي قیمت ناپاکه مال دی او |
| مَهْرُ الْبَغِيِّ خَبِيثٌ وَكَسْبُ الْحَجَّامِ خَبِيثٌ.[1] |
| د زناکارې ښځې اجرت حرام مال دی، د ځکر لګونکې ګټه ناخوښه مال دی. |

**توضیح: مهر البغي خبیث:** لغوی اعتبار سره لفظ خبیث ناپاک ته ویلی کېږي. خو په فقهي اصطلاح کې د فقهاء کرامو او مجتهدینو دا لفظ د موقع په مناسبت سره کله په حرام حمل کوي، کله په مکروه باندې حمل کوي. کله یې په خلاف اولی او ناخوښه عمل باندې حمل کوي. نو ځکه پدې حدیث کې **ثمن الکلب خبیث** کې د احنافو فقهاؤ دا لفظ په مکروه باندې حمل کړی دي. او نورو ائمو د خپل خپل اجتهاد مطابق په حرام باندې حمل کړی دي. اختلاف په ورسره لاندې حدیث کې راروان دی. زیربحث حدیث کې **کسب الحجام خبیث** لفظ کې فقهاؤ لفظ خبیث په خلاف اولی باندې حمل کړی دي. (المرقات ٦/١٣)

**مهر البغي:** پدې کې د مهر نه مراد اجرت او معاوضه ده پدې باندې د مهر د صورة اطلاق شویدی. ګیني دا د بهړوا ټیکس دی معروف مهر مراد نه دی. دلته دا لفظ ټولو علماؤ په حرامو باندې حمل کړی دی. چې بازارۍ او کنجري ښځې چې په خپل کوم بازاري کسب باندې روپۍ ګټلي دي هغه حلالې نه دي بلکې حرامې دي ځکه هغوی ناجائزه بدن فروشي کړې ده د نائي کسب یې ځکه خلاف اولی ګڼلی دی چې اسلام مسلمانانو ته اوچت اخلاق او اوچت مقام ورکوي لهذا اسلام مسلمانانو

(١) أخرجه مسلم في صحيحه ١١٩٩/٣ رقم الحديث: ٤١/١٥٦٨

ته د داسې کسب خپلول نه خوښی. چې په هغې سره د مسلمانانو او چت والي کې کوتاهي راځي. مثلاً خلک به وايي فلانې فلانې د سپو فارم خلاص کړې دی. فلانې د پیشوګانو د اخستلو او خرڅولو فارم خلاص کړې دی. او فلانی وینه راوباسی (خکر لګوي) او رزق ګټي. پدې سره د مسلمانانو لوړ شان ته تاوان رسېږي. (المرقات ٦/١٦)

لکه څنګه چې اقبال متوفی ویلي دي.

اے طائر لاہوتی اس رزق سے موت اچھی ۞ جس رزق سے آتی ہو پرواز میں کوتاہی

## د سپو د اخیستلو او خرڅولو مسئله

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَمَهْرِ |
| ابو مسعود انصاری رضي الله عنه راوي دي وايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم منع کړې د پیسو د سپو، اجرت |
| الْبَغِيِّ وَ حُلْوَانِ الْكَاهِنِ.[1] |
| د بدکارې ښځې او د کاهن د شیرینی یعني (د اجرت په توګه د حاصل شوی مال) د استعمالولو نه. |

**توضیح: نهی عن ثمن الکلب:** یعني نبي کریم صلی الله علیه وسلم د سپي د نرخ اخستلو نه منع فرمایلي ده چې د هغې مطلب دا شو چې د سپي اخستل او خرڅول جائز نه دي. او س فقهي نقطه نظر سره تفصیل دا دی چې د ټولو فقهاؤ پدې باندې اتفاق دی چې د کلب عقور د لیوني سپي اخستل او خرڅول ناجائز دي. همدغه شان په شوق سره د ساتونکو سپو خرڅول او اخستل هم منع دي. او بداسې سپو په کورونو کې ساتنه هم ناجائزه ده. خو د فقهاؤ په دې کې اختلاف دی چې شریعت چې کوم سپي په کورونو کې د ساتلو او روزلو اجازت ورکړی دی لکه کلب معلم دی، کلب صيد دی، کلب ماشیه او کلب حراسه دی. آیا د دې اخستل او خرڅول جائز دي او که نا؟ او د دې ثمن او نرخ حلال دی یا حرام دی. پدې کې اختلاف دی (المرقات ٦/١٦).

**د فقهاء کرامو اختلاف:** د امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمه الله او د راجح قول مطابق امام مالک رحمه الله ائمو ثلاثو په نزد د سپو بیع او شراء مطلقاً ناجائز دي که هغه مُعلّم سپي وي یا غیر معلم وي یا د څوکیدارۍ لپاره وي یا که د بل کوم یو کار لپاره وي ټول ناجائز دي او د دې اخستلي شوي روپۍ ټولې حرامي دي. امام ابو حنیفه رحمه الله او صاحبین او په یو قول کې امام احمد رحمه الله او امام مالک رحمه الله وایي چې شریعت چې کوم سپي په کورونو کې د ساتلو حکم ورکړی دي. خو د هغې

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٤/٤٢٦ رقم الحديث: ٢٢٣٧، ومسلم في صحيحه ٣/١١٩٨ رقم الحديث: ٣٩/١٥٦٧.

سره انساني منفعت وي لکه کلب معلم دی. د څوکیدارۍ سپی دی یا د جاسوسۍ سپی دی. نو د داسې سپو اخستل او خرڅول جائز دي. او پدې سره اخستلې شوې روپۍ حلالې دي. (المرقات ۶/۱۷-۱۶)

**دلائل**: شوافع او د هغې د موافقینو دلیل زیر بحث حدیث دی. چې په هغې په واضحه توګه باندې د سپي نرخ اخستلو ممانعت راغلی دی. همدغه شان د دې احادیثو نه هم دې حضراتو استدلال کړی دی چې په هغې کې لفظ خبیث استعمال شوی دی. د احنافو او د هغوی د موافقینو اولنی دلیل د نسائي دا حدیث دی: **عن جابر رضي الله عنه ان النبي صلى الله عليه وسلم نهى عن ثمن السنور والكلب الا كلب الصيد. (نسائي)**

د احنافو دویم دلیل د مسند احمد او د نسائي دا حدیث دی **عن جابر رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم نهى عن ثمن الكلب الا الكلب المعلم. (احمد نسائي)**

د احنافو دریم دلیل په مسند احمد امام اعظم کې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه حدیث دی چې د هغې الفاظ دا دي: **عن ابن عباس رضي الله عنه قال رخص رسول الله صلى الله عليه وسلم في ثمن كلب الصيد. (مسند امام اعظم)**

د احنافو څلورم دلیل د ابن شهاب زهري فتوی ده. که چیرې یو سړی یو ښکاري سپی مړ کړو نو په قاتل به د هغې د نرخ تاوان راځي. (طحاوي)

همدغه شان د حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه واقعه ده. چې هغه څلویښت (۴۰) دراهم د سپو په تاوان کې وصول کړي وو. د حضرت ابن عمر رضي الله عنه فیصله مستدرک حاکم او طحاوي کې ذکر ده چې هغې کلب صید په قتل کې څلویښت دراهم (۴۰) تاوان اېښودلی وو. او د کلب ماشیه په قتل باندې یې دوه (۲) دوه نران ګډان اېښودلي وي. دلته د قیاس هم دغه تقاضا ده چې د سپي نرخ جائز دی ځکه چې شریعت د سپي نه د ګټه اخستلو لپاره ساتل جائز کړي دي نو مال کیدل هم ثابت شول او کوم شی چې د شریعت په نظر کې مال وي نو د هغې اخستل او خرڅول هم جائز دي. پوره تفصیل طحاوي او زجاجة المصابیح کې دی.

احناف د زیر بحث د حدیث یو جواب دا ورکوي چې دا په مکروه تنزیهي باندې محمول دی. دویم جواب دا دی چې د دې ممانعت تعلق د اسلام ابتداء سره دی. حال دا چې د سپو باره ډېره سختي وه. بیا هغه سختي ختمه شوه. دریم جواب دا دی چې د دې ممانعت تعلق د هغه سپو سره دی چې هغه عقور لیوني وي چې په هغې څه ګټه نه وي. که چېرې شوافع حضرات دا ووایي چې د سپي په ثمن

باندې د خبیث اطلاق شوی دی نو مونږ به وایو چې دا اطلاق خو کسب الحجام باندې هم شوی دی. حال دا چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم خو خپله نائی ته د خکر لګولو اجرت ورکړی وو. که شوافع حضرات دا وایي چې سپی نجس العین دی، ځکه یې نرخ حرام دی. نو مونږ به وایو چې هاتهی هم نجس دی، نو د هغې نرخ ولې جائز دی؟

**حلوان الکاهن:** کاهن هغه سړی وي چې د آینده باره کې غیبو خبرې کوي. چې هغې ته دست شناس هم ویل کېږي. هغې ته چې په دغه عمل څه ورکړی کېږي هغې ته حلوان ویل شوي دي یعنې د نجومي مټائی او شیریني، بهرحال نجومي ته تګ او د هغې د آینده باره پوښتنه کول او د هغې خبره منل ټول حرام دي. دا نجومي خپله انسان دی. دیته د غیبو علم څنګه کیدلی شي. بابا سعدي په ګلستان کې یوه قصه لیکلي ده. چې د یو نجومي کور ته بد کاره سړی راغلو او د نجومي ښځې سره په ګپ شپ کې ښې مزې اخستلې. او نجومي بازار کې خلکو ته اسمانونو خبرې کولې. بابا سعدي هغه مخاطب کړی او وایي: (المرقات ۶/۱۷)

*تُو بر اوج فلک چه دانی چیست ✿ چون نه دانی که در سرائے تو کیست*

یعنې ته به د اسمان به برجونو باندې څه معلوم کړې حال دا چې تا ته دا هم معلومه نده چې دا وخت ستا په خپل کور څه روان دي.

اقبال مرحوم انسان ته تقدیر د تابع کېدلو ویلي دي نه دا چې ستورو تابع شي. نو وایي:

*تیری تقدیر کو انجم شناس کیا جانے ✿ تو خاک زندہ ہے تو تابع ستارہ نہیں*

## وینه خرڅول حرام دي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ نَهَى عَنْ ثَمَنِ الدَّمِ وَ ثَمَنِ الْكَلْبِ |
| ابو جحیفه رضی الله عنه وایي چې: نبي کریم صلی الله علیه وسلم منع کړې ده د وینې د پیسو، د سپي د پیسو او د |
| كَسْبِ الْبَغِيِّ وَ لَعَنَ آكِلَ الرِّبَا وَ مُوْكِلَهُ |
| بدکارې ښځې اجرت نه او همدارنګې یې لعنت فرمایلي دي په سود اخستونکي او سود ورکونکي، |
| وَ الْوَاشِمَةَ وَ الْمُسْتَوْشِمَةَ وَ الْمُصَوِّرَ. [1] |
| خال وهونکي (ځان ته یا بل چا ته) او تصویر جوړونکي باندې. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴/۳۱۴ رقم الحديث :۲۲۳۸.

**توضيح**: **ثمن الدمر**: که د دم نه مراد وينه وي نو د ويني اخستل او خرڅول حرام دي. ځکه دا مال نه دی. او که دم نه مراد د ښکر کولو اجرت وي نو بيا دا مکروه تنزيهي دی. لکه څنګه چې مخکې ليکلی شوي دي. د سود او بوا خبره مخکې راروانه ده. (المرقات ۶/۱۷)

**الواشمة**: **وشم** اصل کې د سوري کولو او خال جوړولو په معنی دی. په پخواني عربي لغت کې د وشم لفظ ډير په کثرت سره استعمال شوی دی. د محبوبې د کنډرو نښانو تشبيه د وشم سره ورکړی شوي ده. (المرقات ۶/۱۷) مشهور شاعر طرفه بن العبد وايي :

**لخولة اطلال ببرقة ثهمد ❁ تلوح كباقي الوشم في ظاهر اليد**

**المستوشمة**: سين او تاء د طلب لپاره دی. يعنې هغه ښځه چې د خال لګولو عمل د نورو ښځو لپاره کوي. د وشم طريقه دا وي چې مثلاً يو سړی يا ښځه د خپل بدن په يوه حصه کې سوري يا زخم وکړي او بيا په هغه زخم کې رانجه يا نيل واچوي. چې کله زخم ښه شي نو دا رانجه يا نيل د سرمني لاندې پاتې شي. چې په هغې سره په بدن کې يو خال او نښان جوړ شي. اسلام ځکه منع کړی دی چې پدې کې د الله تعالی په تخليق کې بدلون راځي. او پدې کې د کفارو او فاسقانو سره مشابهت هم دی. بهرحال واشمه هغه رنګ ډکولو والا ښځې ته وايي چې هغه په پدې کار پوهېږي. او د دې کريګره وي. او مستوشمة هغې ښځې ته وايي چې هغې ته خال لګولی کېږي. په پښتو کې د دې ترجمه دا ده. چې نبي کريم ﷺ په سوري کونکې او چاته چې سوري کېږي دواړو باندې لعنت ويلی دی. د وشم دا قبيح عمل مصر، ليبيا، افغانستان او په داسې نورو ملکونو کې ډېر کېږي. خپنې تور رنګي خلک خپل مخ وشلي او کربښې جوړوي. دا هم د الله تعالی د خلقت په بدلولو کې داخل دی چې حرام دی. پدې حديث کې عکس ويستونکې باندې هم لعنت ويل شوی دی. د دې نه مراد هغه خلک دي چې کوم د ځاروو عکسونه جوړوي د دې جوړول، اخستل او خرڅول ټول ناجائز دي. **باب التصاوير** کې ان شاء الله د دې تفصيل راشي. (المرقات ۶/۱۷)

## د حرامو شيانو اخيستل او خرڅول هم حرام دي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ عَامَ الْفَتْحِ وَ هُوَ بِمَكَّةَ: |
| جابر رضي الله عنه اوريدلي دي د رسول الله ﷺ نه د فتح مکې په کال په مکه کې چې فرمايل يې |
| إِنَّ اللهَ وَ رَسُولَهُ حَرَّمَ بَيْعَ الْخَمْرِ وَ الْمَيْتَةِ وَ الْخِنْزِيرِ وَ الْأَصْنَامِ . فَقِيلَ : |
| الله او د هغه رسول شراب، مردارو خنزير او د بتانو اخستل او خرڅول حرام کړي دي. چې وويل شو |

| |
|---|
| يَا رَسُولَ اللهِ أَرَأَيْتَ شُحُومَ الْمَيْتَةِ ؟ فَإِنَّهُ تُطْلَى بِهَا السُّفُنُ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته شو : يا رسول الله! مونږ ته د مردار د وازګه حکم هم ووايه چې کشتيو باندې مږلی شي |
| وَ يُدْهَنُ بِهَا الْجُلُودُ وَ يَسْتَصْبِحُ بِهَا النَّاسُ ؟ |
| او همدغه شان هغې سره څرمني غوړول کېږي او خلک (په کورونو کې) هغې باندې ډيوي بلوي نو نبي |
| فَقَالَ : لَا هُوَ حَرَامٌ . ثُمَّ |
| عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې د مردارې چربې هم حرامه ده ځکه دا د ګټې اخستلو لپاره جائز نه ده بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| قَالَ عِنْدَ ذَلِكَ : قَاتَلَ اللهُ الْيَهُودَ إِنَّ اللهَ لَمَّا حَرَّمَ شُحُومَهَا |
| هغه وخت دا هم وفرمايل چې الله دې په يهودو لعنت وکړي چې کله الله د مردارو وازګه حرامه کړه نو |
| أَجْمَلُوهُ ثُمَّ بَاعُوهُ فَأَكَلُوا ثَمَنَهُ .(۱) |
| يهودو (دا حيله جوړه کړه چې هغوی) وازګه ويلي کړه او تخم يې پکې واچوو او بيا يې د دې قيمت خوړو |

**توضيح: بيع الخمر**: شيخ عطاء ليکلي دي چې شراب خرڅول چې څنګه حرام دي. همدغه شان آلات د لهو لعب مثلاً ډول باجا او داسې نور شيان خرڅول هم ناجائز دي. هغوی دا هم ليکلي دي چې که چا د لهو لعب دا سامان مات کړل نو په هغې باندې تاوان نشته دی. المدينة: د مردارې اخستل او خرڅول چې څنګه ناجائزه دي همدغه شان د يو کافر مړی خرڅول هم ناجائز دي. په غزوه خندق کې نوفل کافر د مړي په بدل کې کفار په بدل کې لس زره (۱۰۰۰۰) درهمو پيشکش وکړو. خو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړل او مړي يې مفت ورکړلو. (المرقات ۶/۱۸)

**الاصنام**: د بتانو اخستل او خرڅولو کاروبار د ممانعت لاندې د پلاتک او د داسې نورو شيانو ګډۍ ګاني او نوري مجسمي هم راتلی شي. (المرقات ۶/۱۸)

**قال لا**: يعني چې يو شی اصل کې حرام دی نو د هغې ګټه اخستل په هيڅ صورت کې جائز نه دي. امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ وايي که چېرې په يوه کشتۍ باندې نجسه وازګه ملاوو شي يا په هغې باندې ديوه بل کړی شي نو دا جائز دي. خو د دې اخستل او خرڅول جائز دني. جمهور فرمايي چې نه

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲٤/٤ رقم الحديث :۲۲۳٦، ومسلم في صحيحه ۱۲۰۷/۳ رقم الحديث: ۱۵۸۱/۷۱.

اخستل او خرڅول جائز دي او نه نورې ګټې اخستل جائز دي. خو کله چې د مردار څرمن چې کله رنګ کړی شي نو د مستقل حديث د حکم د وجې نه د هغې استعمال جائز دی.

**اجملوه:** دا د اجمال نه دی اجمال د باب افعال صيغه ده. د ويلې کېدو په معنی ده. دا صيغه د مجرد لپاره هم استعمالېږي. خو مزيد په مبالغه کې دی. يهودو د خپلې عيارۍ، مکارۍ او د حيلو بهانو په وجه دا مسلسل وليکوله. خو هغوی دا بانه جوړه کړه چې دا خو وازګه نده. بلکې تيل دي. حال دا چې په وليکولو سره د دې حقيقت نه بدلېږي. د دينه معلومه شوه چې هره هغه حيله چې په هغې سره د کوم شي د حلالو کوښښ وکړی شي نو هغه حيله ناجائزه ده. د دې حديث نه دا هم معلومه شوه چې د يو شي نرخ د هغې شي تابع وي. که شی حرام دی نو د هغې قيمت هم حرام دی. (المرقات ٦/١٨)

## د يهودو چالاکي

| ﴿۹﴾ وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : قَاتَلَ اللهُ الْيَهُودَ |
|---|
| عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل الله تعالی دې يهود هلاک کړي، په هغوی (د |
| حُرِّمَتْ عَلَيْهِمُ الشُّحُومُ فَجَمَلُوْهَا |
| مرداری) وازګه حرامه شوه نو هغوی هغه ويلې کړه (چې د وازګی نوم پاتې نشي) او بيا يې د هغې |
| فَبَاعُوْهَا .[1] |
| اخيستل او خرڅول شروع کړل (د دې وضاحت پاس حديث شوی دی). |

## د پيشو د اخستلو او خرڅولو مسئله

| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَ السِّنَّوْرِ.[2] |
|---|
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سپي او پيشو نرخ (د استعمالولو) نه منع فرمايلې ده. |

**توضيح:** السنور: سنور پيشو ته وايي د دې اخستل او خرڅول د ټولو علماؤ په نزد جائز دي. فقط خلاف اولی او مکروه تنزيهي دي. خو حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هره د اخستلو قائل دی. د دې حديث نه د احنافو د مسلک تائيد کېږي چې د قابل انتفاع سپي اخستل او خرڅول مکروه تنزيهي دي. يعنې خلاف اولی دي حرام نه دي.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٤/٤١٤ رقم الحديث: ۲۲۳۳، ومسلم في صحيحه ۳/۱۲۰۷ رقم الحديث: ۱۵۸۲/۷۲

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۱۹۹ رقم الحديث: ۱۵٦۹/٤۲

د استدلال طرز داسی دی لکه څنګه چې د پیشو د اخستلو او خرڅولو لپاره استعمال شوی دی. بالکل همغه الفاظ د سپي لپاره هم استعمال شوي دي. چې د جمهورو نه د پیشو متعلق الفاظ په مکروه تنزیهی باندې حمل کوي او استعمالوي نو احنافو هم د سپي باره کې وارد الفاظو کې د همغې الفاظو تاویل کړی دی. فرق فقط دا دی چې د پیشو متعلق فیصله د جمهورو ده او د سپي متعلق فیصله د احنافو ده. (المرقات ۶/۲۰)

## د خکر لګولو کسب حلال دی

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: حَجَمَ أَبُو طَيْبَةَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ لَهُ بِصَاعٍ |
| انس رضي الله عنه وايي چې ابو طيبه نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته خكر ولګو، نو نبي عليه السلام حكم وكړو ده ته |
| مِنْ تَمْرٍ وَ أَمَرَ أَهْلَهُ أَنْ |
| يو صاع كهجوري. همدغه شان نبي كريم صلى الله عليه وسلم د هغې مالكانو ته حكم وركړو چې هغه د ابو |
| يُخَفِّفُوا عَنْهُ مِنْ خراجه.[۳] |
| طيبه د ګټې نه لږه اخلي. |

**توضیح**: ابو طيبة: دا د نبي كريم صلى الله عليه وسلم خاص نائی ؤ. دا د سر خريلو او د خکر لګولو هنرمند ؤ.

**امر له بصاع**: د دې نه معلومیږي چې د نائی کسب حلال دی ګینې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به اجرت نه ورکولو. (المرقات ۶/۲۰)

**من خراجه**: خراج ټیکس ته وایي. د عربو عادت وو چې هغوی به خپل غلامان په جدا جدا کسبونو کې لګول. او هغوی سره به یې خبره کوله چې د ورزنې ګټه کې به دومره برخه زما وي. او دومره به ستا وي. ابو طيبه د بنو بیاضه غلام ؤ. هغه چې په ده باندې څومره ټیکس لګولی وو. نو نبي كريم صلى الله عليه وسلم د هغې د کمولو سفارش وکړو هغوی کم کړو. نبي كريم صلى الله عليه وسلم خو رحمت للعالمین وو دلته د یو رحمت ظهور وشو. (المرقات ۶/۲۰)

---

(۳) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۲٤/٤ رقم الحديث: ۲۱۰۲، ومسلم في صحيحه ۱۲۰٤/۳ رقم الحديث: ۱۵۷۷/٦٤.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د اولاد ګټه د مور او پلار ده

﴿١٢﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِنَّ أَطْيَبَ مَا أَكَلْتُمْ

عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل بهتر په هغه څه کې چې تاسو خوري هغه

مِنْ كَسْبِكُمْ وَ إِنَّ أَوْلَادَكُمْ مِنْ كَسْبِكُمْ .[1]

دی چې هغه تاسو ته د ګټې څخه حاصل شوی وي او ستاسو اولاد هم ستاسو ګټه ده.

وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ وَالدَّارِمِيِّ: إِنَّ أَطْيَبَ مَا أَكَلَ الرَّجُلُ مِنْ كَسْبِهِ وَإِنَّ وَلَدَهُ من كسبه.

**توضيح:** مور او پلار د بچو لپاره د دويم سبب دی نو د کوم ماشوم وجود چې مور او پلار ته محتاجه وي، اوس مور او پلار د ولګي نه پريشانه وي نو له خپل محنت د هغې مخې ته اېښودل په کار دي. دا مناسبه نه ده چې اولاد په راحت کې وي او په مور او پلار ولګه تېرېږي. پدې حديث کې هم دغه فرمايلی شوي دي چې د اولاد مال د مور او پلار لپاره پاک حلال دي. که مور او پلار محتاجه وي او په اولاد باندې د هغوی کفالت واجب دی. که مور او پلار په راحت کې وي نو خامخا په خپل اولاد باندې پېټی مه جوړېږی. (المرقات ٦/٢١)

**انت ومالك لابيك:** والا حديث متعلق يوه عجيبه قصه ده. او د بوډا پلار يو څو اشعار دي چې په حماسه کې ذکر شوې دي. ما په علمي خطباتو کې هغه نقل کړي دي.

## د حرام مال صدقه جائز نه ده

﴿١٣﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ :

عبد الله بن مسعود رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه نقل کوي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل

لَا يَكْسِبُ عَبْدٌ مَالَ حَرَامٍ فَيَتَصَدَّقُ مِنْهُ

چې داسې کله هم نه کېږي چې يو بنده حرام مال وګټي او په هغې صدقه او خيرات کوي او د هغه

فَيُقْبَلُ مِنْهُ

صدقه قبوله کړې شي (که کوم سړی په حرام ذريعې سره ګټلی مال صدقه او خيرات کړي نو د هغه

[1] أخرجه الترمذي في السنن ٦٣٩/٣ رقم الحديث :٢١٠٢

صدقه قطعاً نه قبلېږي او نه هغې ته څه ثواب ورکول کېږي) او نه کله دا سې کیدی شي چې هغه سړی

وَلَا يُنْفِقُ مِنْهُ فَيُبَارَكُ لَهُ فِيهِ

حرام مال (په خپل ځان او په خپل اهل او عیال باندې) خرچ کوي او په هغې کې برکت حاصلیږي

(یعنې د حرام مال نه چې څه شی هم خرچ کېږي په هغې کې بالکل برکت نه وي) او کوم سړی چې (د

وَلَا يَتْرُكُهُ خَلْفَ ظَهْرِهِ إِلَّا كَانَ

مرګ نه) وروسته حرام مال پرېږدي د هغې حیثیت د دېنه بغیر بل هیڅ نه پاتی کېږي چې هغه مال د

زَادَهُ إِلَى النَّارِ.

هغه سړی لپاره یوه توشه جوړه شي چې هغه دا سړی جهنم ته ورسوي او (دا خبره یاد وساتی چې)

إِنَّ اللهَ لَا يَمْحُو السَّيِّئَ بِالسَّيِّئِ وَ لٰكِنْ يَمْحُو السَّيِّئَ بِالْحَسَنِ إِنَّ الْخَبِيثَ

الله بدي په بدي سره نه لرې کوي بلکې بدې په نیکۍ سره لرې کوي، همدغه شان نجس مال نجس

لَا يَمْحُو الْخَبِيثَ. [1]

لره نه لرې کوي (یعنې حرام مال بدي نه لرې کوي بلکې حلال مال بدۍ لرې کوي).

**توضیح: فیقبل منه:** یعنې د حرامو نه ورکړی شوي صدقه الله تعالی نه قبلوي. ځکه:

**ما یقبل الله الاکل طیبة ۞ ما کل من حج بیت الله مبرور**

فقهاؤ لیکلي دي چې که د چا سره حرام مال وي او هغه د هغې نه ځان خلاصوي نو د ثواب د نیت نه بغیر دي کوم فقیر ته ورکړي. که د ثواب نیت یې وکړلو نو په هغې کې د کفر خطره ده. د غاړه خلاصیدلو نیت په کار دی. همدغه شان که د حرام مال اخستلو والا فقیر ته معلومه شوه چې دا د حرامو صدقه ده نو هغه دې د صدقې لپاره دعاء خیر نه کوي. که چا دعا وکړه نو د کفر خطره ده.

**لا یمحوا السیئ:** پدې جمله کې نبي کریم ﷺ یو قانون بیان کړی دی. چې دین د دینداری په لاره حاصلیږي. د بې دینی په لاره دین ته پر مختګ نه ملاویږي. مثلاً که یو سړی د ګناهونو د بښلو کوښښ کوي نو هغې له په کار ده چې د حلال شي صدقه وکړي چې ګناه وینځل شي او ثواب ملاوو شي خو دا امکان نه لري چې صدقه د حرام شي کوي او طمع د ثواب لري او ناست وي. پدې حدیث

(۱) أخرجه البغوي في شرح السنة ۱۰/۸ رقم الحديث ۲۰۳۰

کې ﴿إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ﴾ (سورة هود آیت:۱۱۴) آیت ته اشاره ده. (المرقات ۶/۲۲)

## د حرام خوړلو سخت وعید

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ لَحْمٌ نَبَتَ |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل نه داخلیږي جنت ته هغه غوښه چې هغه ساتل |
| مِنَ السُّحْتِ |
| شوې وي په حرامو (یعنې د کوم سړي چې بدنې ساتنه په حرام مال خوړو سره شوې وي نو هغه به جنت |
| وَ كُلُّ لَحْمٍ نَبَتَ مِنَ السُّحْتِ كَانَتِ النَّارُ أَوْلَى بِهِ.[1] |
| ته نه داخلیږي) او کومه غوښه (یعنې کوم بدن) چې په حرامو سره لوي شوی وي نو هغه د دوزخ لائق دی |

توضیح: السحت: حرام مال ته وایي.

## په شک و شبه کې شیان اچونکو نه ځان ساتل په کار دي

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾وَعَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: حَفِظْتُ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وایي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وینا (خپله اوریدلې او هغه) مې یاد ساتلې |
| دَعْ مَا يَرِيبُكَ إِلَى مَا |
| ده چې کوم شی تاسو په شک کې واچوي نو هغه پرېږده او هغه شي طرف ته میلان کوه چې هغه |
| لَا يَرِيبُكَ فَإِنَّ الصِّدْقَ طُمَأْنِينَةٌ وَ إِنَّ الْكَذِبَ رِيبَةٌ.[2] |
| تاسو په شک کې نه اچوي ځکه حق د زړه د اطمینان سبب دی او باطل د شک او تردد موجب دی. |

**توضیح: ما یریبك:** یعنې د یو شي په استعمال کې خپله یو سړی شک او تردد وي چې آیا دا جائز دی او که ناجائز دی مناسب دی او که نامناسب، نو دغه شان سړی له په کار دي چې په داسې شک کې اچونکې شی پرېږدي او هغه صورت اختیار کړي چې په هغې ورته اطمینان وي، هیڅ تردد نه وي. ګویا کې دا حدیث وایي چې کله په زړه کې تردد پیدا شو نو پوهه شه چې څه تاوان دی لهذا هغه پرېږده او داسې صورت خپل کړه چې په هغې کې تا ته پوره اطمینان وي. د دې حدیث مضمون د

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۴۰۹/۲ رقم الحديث: ۲۷۷۶.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲۱۹/۴ رقم الحديث. ۲۵۳۲.

دينه ورسته راتلونکې حديث پشان دی. تپوله تشريح به هلته کېږي. دومره پوهه شی چې دا معيار د هغه خلکو دی چې د هغوی زړونه آئني پشان پاک او شفاف وي. په ګنده زړونو کې تردد چرته پيدا کېږي. هغوی احساس هم نه کېږي. چې دا غوښه د خنزير ده چې ښه نده او که د کوم حلال څاروی ده چې ښه ده. ريبة: شک او تردد او اظطراب ته ريبة وايي. (المرقات ۶/۲۴)

## د نيکۍ او بدۍ پېژندنه

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَ عَنْ وَابِصَةَ بْنِ مَعْبَدٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : يَا وَابِصَةُ |
| وابصه بن معبد رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم ماته وفرمايل چې وابصه: ته خو راغلی يې |
| جِئْتَ تَسْأَلُ عَنِ الْبِرِّ وَ الْإِثْمِ ؟ قُلْتُ : نَعَمْ |
| همدغه پوښتنې ته چې نيکي څه ده او ګناه څه ده؟ما وويل چې آو !دده بيان دی چې (دې اوريدو سره) |
| قَالَ : فَجَمَعَ أَصَابِعَهُ فَضَرَبَ صَدْرَهُ وَ قَالَ : اسْتَفْتِ نَفْسَكَ |
| نبي عليه السلام خپلې ګوتې راغونډې کړې او زما په سينه يې ووهلې او وي فرمايل چې د ځان نه پوښتنه |
| اسْتَفْتِ قَلْبَكَ ثَلَاثًا الْبِرُّ مَا |
| وکړه د خپل زړه نه پوښتنه وکړه نبي عليه السلام دا الفاظ درې ځل وويل او بيا يې وفرمايل چې نيکي هغه |
| اطْمَأَنَّتْ إِلَيْهِ النَّفْسُ وَ اطْمَأَنَّ إِلَيْهِ الْقَلْبُ وَ الْإِثْمُ |
| ده چې په هغې سره انسان مطمئن شي او په هغه سره يې زړه ته سکون حاصل شي. او ګناه هغه ده چې |
| مَا حَاكَ فِي النَّفْسِ وَ تَرَدَّدَ فِي الصَّدْرِ |
| په هغې سره د انسان زړه خفګان محسوس کړي او په هغې سره د هغې زړه ته شک او تردد پيدا شي، |
| وَ إِنْ أَفْتَاكَ النَّاسُ. [1] |
| اګر که خلک به ورته صحيح وايي. |

**توضيح:** پدې حديث کې د نيکۍ او د بدۍ پېژندلو لپاره يو داسې علامت ويل شوی دی چې هغه هر نيک او صالح انسان معلومولی شي چې آيا دا قول او فعل جائز دی او که ناجائز ده. نو وي فرمايل چې کوم قول او فعل سره زړه مطمئن شي او زړه راحت او خوشحالي محسوسه کړي نو پوهه کيدل په

---

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۲/۳۲۰ رقم الحديث : ۲۵۳۲

کار دي چې دا قول او فعل ښه او جائز دی. او چې په قول او فعل سره زړه مطمئن نشي بلکې طبیعت کې تشویش او خفګان پیدا شي او زړه او مغزو کې د شک کیفیت پیدا شي، یو څېز که او تردد پیدا شو نو پوهه شه چې دا قول او فعل غلط دی. اګر که د دې قول او فعل باره کې د مفتیانو صاحبانو د اړخ نه فتوی وي چې دا جائز دي. د زړه د اضطراب په حالت فتوی ته کتل په کار ندي. ځکه یوه فتوی ده او بله تقوی ده. د دواړو حدونه جدا جدا دي.

**یاوابصة جئت تسال:** پدې جمله کې د نبي کریم ﷺ د یوې معجزې په لګي ځکه حضرت وابصه رضي الله عنه د نبي کریم ﷺ مخې ته د خپل مطلب او د مقصد تذکره نه فرمایلې او نه یې اشاره کړې وه. نبي کریم ﷺ د خپله ځانه وویل چې ای وابصه! ته دې پوښتنې کولو له راغلی یې.

**ثلاثا:** یعنې نبي کریم ﷺ دا جمله درې ځله تکرار کړه. (المرقات ۶/۲۴)

**ماحاك:** د زړه بې اطمینانې او اضطراب ته وایي چې دې ته شک هم وایي.

**استفت قلبك:** د زړه نه استفتاء غوښتل هغه وخت وي چې په شریعت کې کله یو واضحه حکم نه وي، ګیني که په شریعت یو واضحه حکم وي نو په هغې باندې به عمل کول وي. بیا که په ظاهره باندې د قرآن په آیتونو کې تعارض ښکاره شو نو واجب ده چې احادیثو ته رجوع وکړي او که په احادیثو کې هم په ښکاره تعارض وي نو بیا د خپل زړه نه فتوی معلومول په کار دي. چې کوم اړخ ته د زړه اطمینان وي په هغې باندې عمل کول په کار دي. (المرقات ۶/۲۵)

**ماحاك في صدرك:** دا حالت هغه خلکو ته حاصل وي چې د هغوی زړونو د آئیني پشان پاک او شفاف وي. متقي او پرهیزګاره وي. د الله والوو به مجلسونو کې پاتې کېږي او د خپل زړه په پاکوالي کې یې ښه محنت کړی وي. داسې زړونه داسې فیصله کولی شي. چې دا شی حلال دی او که حرام دی. دا د هر سړي کار ندی. (المرقات ۶/۲۶)

**حکایت:** ماته یو مولانا وویل چې عوامو او خواصو کې مشهوره وه چې حضرت مولانا احمد علی لاهوری رحمه الله به حلال او حرام د کشف په توګه معلومول. نو ځکه مونږ د حضرت مولانا احمد علی لاهوری رحمه الله امتحان اخستل وغوښتل نو یو درجن مالټې مو هغې له یوړې. خو یو درجن حرامې مالټې مو د هغې سره ګډې کړلې. حضرت لاهور رحمه الله فوراً دواړه یو ځای کړې او یوه دانه به یې دې اړخ ته کیخودله چې دا حلاله ده او بله به یې بل اړخ ته کیخودله چې دا حرامه ده. مونږ حیران شو. یاد ساتل په کار دي چې دا د معیاري زړونو او د هغه پاک نفس د هغه د الله والوو دي چې

هغوی محبتنه کړي دي او خپل ایمان یې ژوندی ساتلی دی. دا زړه د هغه مړه شوي زړه انسانانو ندی چې هغوی د خپل زړونو خواهشات او شهوات گنده کړي وي چې په هغې سره د هغوی د زړونو مړه شوي وي او د ښو او د بدو په مینځ کې بالکل فرق کولو کې ناکام شوي وي. په ځینو روایاتو کې د گناه او د غیر گناه معلومولو لپاره د دې اضطراب او گدوډوالي سره دا هم ویل شوي دي. چې گناه هغه وي چې هغه تا ته خلکو ته په ښکاره کولو کې پیتې او کراهت محسا وسیږي. دا صفت هم د پاکو زړونو یو زیور دی دا د ناپاکو خلکو کار نه دی لایقاس الملوك الحدادین بادشاهان په آهنگرو باندې قیاس کیدی نه شي.

هزار نکته باریک ترز موا این جا این است ❁ نه هر که سر بتراشد قلندري داند

## د تقوی تعریف او مرتبې

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ عطيَّةَ السَّعدِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَبْلُغُ الْعَبْدُ |
| عطیه سعدي رضي الله عنه وايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل بنده تر هغه وخت پورې نه رسیدي |
| أَنْ يَكُونَ مِنَ الْمُتَّقِينَ حَتَّى يَدَعَ مَا لَا بَأْسَ بِهِ |
| (کامل) پرهیزگارو درجې ته تر څو هغه شیان پرې نه ږدي چې په هغې کې کوم قباحت نه وي او دغه |
| حَذَرًا لِمَا بِهِ بَأْسٌ. (۱) |
| شان د هغه شیانو نه هم بچ شي چې په هغې کې قباحت وي. |

**توضیح: من المتقین:** د الله د نافرمنی نه د بچ کیدو نوم تقوی ده. د دې حدیث مطلب دا دی چې سړی تر هغه وخت پورې د تقوی مقام ته نشي رسیدی تر څو هغه د خدای د وېرې نه ځینې هغه جائز شیان پرېږدي چې د هغې د کولو وجه باندې په ناجائز کې ولیدو خطر وي یعنې ځینې مباحات ځکه مه پرېږدي. چې د هغې په ذریعې سره د څه ناجائزو کې واقع کېدو خطر وي. (المرقات ۶/۲۷) ملا علی قاري رحمه الله د تقوی درې مرتبې لیکلي دي: ۱: د شرک او د کفر نه بچ کیدل تقویه ده. لکه څنگه چې فرمایلی شوي دي: ﴿وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوَى﴾ یعنې الله تعالی صحابه کرام رضي الله عنهم د شرک نه بچ کړل او د توحید په لاره یې کړل. ۲: د هرې وړې او غټې گناه نه ځان ساتل د تقوی دویمه مرتبه ده. بلکې د ځینې علماوو په نز د تقوی دغه مرتبې ته رسیدلو لپاره ضروري ده چې د صغیرو

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٤/٥٤٧ رقم الحديث ٢٤٥١.

نه ځان وساتي. ۳: د تقوی دريمه درجه دا چې سړی هر هغه شی پرېږدي چې هغه په توجه الی الله کې مشکل جوړېږي بلکې دا سړی په هغه درجه کې وی چې په زړه کې پوره توجو سره د الله تعالی اړخ ته متوجه وي د هغې د زړه احساساتو میلان د الله تعالی نه بغیر بل هیڅ شي کې مشغوله نشي. حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت کعب رضي الله عنه نه د تقوی باره کې تپوس وکړو نو هغه دا تعریف وکړو چې د تقوی حقیقت داسې دی چې مثلاً یو-سړی د ازغو په جانبه کې ننوتو او هغه خپل بدن او جامې دازغو نه مسلسل بچ کوي د څښنو احادیثو نه د تقوی تعریف داسې معلومېږي :**ان لا يراك مولاك حيث نهاك** يعنې ښکاره او په پټو معاملاتو کې د خپل رب سره د پاک او سيدو نوم تقوی دی. (المرقات ٦/٢٧)

## د شراب خور په وجه لس کسه لعنتیان ګرځي

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ : لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْخَمْرِ عَشَرَةً : |
| انس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم لعنت ويلي د شراب په معامله کې په لس کسانو باندې |
| عَاصِرَهَا وَ مُعْتَصِرَهَا وَ شَارِبَهَا وَ حَامِلَهَا |
| ۱: شراب جوړونکې، ۲: شراب ورباندې جوړونکی ۳: شراب څکلووالا ۴: شراب اوچتونکی یعنې |
| وَ الْمَحْمُولَةَ إِلَيْهِ |
| هغه سړی چې شراب اوچت کړی او بل کس ته يې ورکوي. شراب ورباندې اوچتونکی یعنې چې د |
| وَ سَاقِيَهَا وَ بَائِعَهَا وَ آكِلَ ثَمَنِهَا |
| شراب اوچتولو لپاره بل ته وايي ۶: شراب څکوونکی ۷: شراب خرڅولووالا ۸: شراب نرخ خوړلووالا |
| وَ الْمُشْتَرِي لَهَا |
| ۹: شراب اخستونکې یعنې هغه سړی چې هغه د بل د څکلو لپاره یا د تجارت لپاره په طریقه د وکالت |
| وَ الْمُشْتَرَى لَهُ .[1] |
| یا په طریقه د ولایت شراب اخلي ۱۰: اخستونکی یعنې څوک چې په بل باندې د خپلو څکلو یا د |
| خپل تجارت لپاره شراب راغواړي. |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۵۸۹ رقم الحديث :۱۲۹۵

**توضیح:عاصرها:** دا هغه سړی ته وایي چې خپل شراب جوړوي هغه که د ځان لپاره وي او یا که د بل لپاره وي. **معتصر:** دا هغه سړی ته وایي چې د شراب جوړولو بل ته حکم کوي که د ځان لپاره وي او که د بل لپاره وي(المرقات ۶/۲۸).

**المحمولة الیه:** یعنې د چا په خاطر چې شراب اوچتولی کېږي. چې د هغې په حکم سره کوم مزدور رد بازار نه راوړي.

**المشتری لها:** د لها ضمیر شراب اړخ ته دی یعنې شراب اخستونکی. (المرقات ۶/۲۸)

دي سره لاندې حدیث کې **مبتاعها** لفظ راغلی دی. د دېنه مراد شراب اخستونکی سړی دی. د زیر نظر حدیث نه معلومېږي چې د یو شراب خور په وجه لس کسان لعنتیان شي. نو سوچ کول په کار دي د شراب د یو مسلمې معاشرې لپاره څومره لویې لعنت دی. او د عامو او خاصو لپاره څومره لوی لعنت دی. عام خلک دا ګڼي چې د شراب څکلو سره فقط شراب څکونکی ګناه ګار وي. مونږ یې فقط د راړلو والا یو یا جوړونکې یا تقسیم کونکی یو. یاد وساتې چې په شرابو کې هر قسمه مرسته کولو سره سړی لعنتي کېږي. څنګ چې په شرابو کې لس سړی ملعون او لعنتي کېږي. همدغه شان په سودې کاروبار کې هم ډیر خلک ملعون شي. (المرقات ۶/۲۸)

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَعَنَ اللهُ الْخَمْرَ |
| ابن عمر رضي الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې الله لعنت فرمایلی شرابو باندې، شراب |
| وَشَارِبَهَا وَسَاقِيَهَا وَبَائِعَهَا وَمُبْتَاعَهَا وَعَاصِرَهَا |
| څکونکې باندې، شراب خرڅونکې باندې، شراب اخستونکې باندې، شراب جوړونکې باندې، |
| وَمُعْتَصِرَهَا وَحَامِلَهَا وَالْمَحْمُولَةَ إِلَيْهِ.[1] |
| شراب ور باندې جوړونکې باندې، شراب اوچتونکې باندې اوشراب ور باندې اوچتونکې باندې. |

## د خکر لګوونکي د ګټې حکم

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ مُحَيِّصَةَ أَنَّهُ اسْتَأْذَنَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أُجْرَةِ الْحَجَّامِ |
| د محیصه رضي الله عنه باره کې نقل دي چې ده اجازت وغوښتو د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه د خکر لګولو نو |

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۸۱/٤ رقم الحدیث : ۳۶۷٤

| فَنَهَاهُ | فَلَمْ | يَزَلْ | يَسْتَأْذِنُهُ |
|---|---|---|---|
| نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دا منع کړو نو کله چې هغه سړی بیا بیا اجازت وغوښتلو نو نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ هغه | | | |
| حَتَّى قَالَ : اعْلِفْهُ نَاضِحَكَ وَ أَطْعِمْهُ رَقِيقَكَ. [1] | | | |
| ته دا حکم وکړو چې ددې ګټې مال په خپل اوښ باندې وخوره، یا یې په غلام (وینزه) باندې وخوره. | | | |

**توضیح: محیصة:** میم باندې ضمه ده او یا باندې شد او کسره ده د یو صحابي نوم دی. (المرقات ۶/۲۹)

**استأذن:** یعني د خکر د کاروبار او د هغې مزدورۍ د حلت اجازت یې وغوښتلو. د دې صورت دا وو چې عربو به په خپل غلامانو باندې ټیکس مقرر وو هغوی به مزدوري کوله. او مقرره برخه به یې خپلو مالکانو ته ورکوله. او په دغه صورت حضرت محیصه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل غلام د مزدورۍ د خوړو اجازت غوښتلو چې په خکر لګولو باندې به یې ګټله. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې ته اجازت ورنه کړو. د هغې په بیا بیا اصرار باندې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې د دې مزدوري د خپلو غلامانو په خوراک کې استعمال کړه او د اَسونو په واښو کې یې خرچ کړه. د دې حدیث نه ښکاره معلومیږي چې د حجامه مزدوري جائزه نده. خو ټولو فقهاؤ او ټولو علماؤ بل حدیث په کتلو سره د دې جائز کېدو فتوی ورکړي ده. هغه وخت د حدیث حکم خلاف اولی او مکروه تنزیهي باندې به محمول وو. د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چې د غلامانو حیثیت دومره لویې ندی چې په یو بدکاره کسب باندې هغې ته ضرر ورسوي. خو د شرافاوو او د احرارو شان خو لوي وي نو ځکه دا ګټه د هغوی د شان منافي ده. د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چې نایانو هغه مزدوري چې د سر خرئیلو او د سر ویختانو په انګریزي طریقې سره جوړلو لاندې اخلي، هغه هم جائز نه ده. ځکه په وینه ویستلو کې فقط حقارت دی. په شریعت کې د دې ممانعت نشته دی. خو ږیره خرئیل خو شرعاً حرام دي. لهذا د دې مزدوري هم حلاله نه شي کیدی. (المرقات ۶/۲۹)

## د سندرو ویونکي د مزدورۍ حکم

| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَكَسْبِ |
|---|
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړې ده د پیسو د سپي نه او د مزدورۍ د |

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۷۰۷ رقم الحدیث: ۳۴۲۲

الزَّمارةِ.[1]

سندري خوړلو والاو نه.

**توضيح:كسب الزمارة:** زماره سندر غاړي ته وايي. زماره اصل کې شپيلۍ ته وايي. دا سندر غاړي هغه شپيلۍ وهي نو ځکه د هغې نوم اخستلې شوی ګيني د سندرو ټول اوزار سندر غاړي استعمالوي. په عربو کې هم دود وو چې هغوي به په سندر غاړې ښځې باندې مزدوري کوله. لکه څنګه چې به يې په غلامانو او وينزو باندې په نورو کسبونو روپۍ ګټلې. نو ځکه نبي كريم ﷺ دا منع کړل. ملاعلي قاري رحمه الله د زماره مصداق زناكاره ښځه هم ګڼلې ده. چې د وينزو او کنجرو مزدوري جائز نده. ټول احمالات صحيح دي. خو د دې مصداق که سندرغاړي وګڼلې شي نو هغه د ټولو نه واضحه ده. د دې نه معلومه شوه چې په تلويزون، وی سي ار او كيبل او داسې نورو آلاتو باندې لهو و غنا د مزدورۍ او د هغې کاروبار حرام دی. (المرقات ٦/٢٩)

| |
|---|
| ﴿٢٢﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا تَبِيعُوا الْقَيْنَاتِ وَلَا |
| ابو امامه رضي الله عنه وايي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل چې سندرغاړې وينزه مه خرڅوی، او مه |
| تَشْتَرُوهُنَّ وَلَا تُعَلِّمُوهُنَّ وَ ثَمَنُهُنَّ حَرَامٌ |
| يې اخلۍ او مه وينزو ته سندري ښايې (او د سندرغاړو وينزو) نه ترلاسه شوی پيسې حرام مال دی. |
| وَ فِي مِثْلِ هَذَا نَزَلَتْ : ﴿ وَ مِنَ النَّاسِ |
| اوپه دغه سلسله کې (يعني د سندرغاړو وينځو اخستلو مذمت کې) دا آيت نازل شو او په انسانانو کې |
| مَنْ يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ ﴾[2] |
| ځينې داسې (نادانه او بدكاره) خلک هم دي چې هغوی اخلي لوبو او ټوقو او بې كاره خبرو لره. |
| وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَعلي بن يزيد الرواي يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ جَابِرٍ: نُهِيَ عَنْ أَكْلِ أَهِرٍ فِي بَابِ مَا يَحِلُّ أَكْلُهُ" إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى |

**توضيح:لاتبيعوا القينات: قينات د قينة جمع ده.** په دواړو کې تخفيف دی مشدد نه دی. قينه مطلق وينزې ته وايي هغه که سندرغاړي وي او که نه، خو دلته سندر غاړی وينزه مراد ده. ځکه که

(١) أخرجه في شرح السنة ٦٠/٣.

(٢) أخرجه الترمذي في السنن ٥٧٩/٣ رقم الحديث :١٢٨٢.

سندرغاړي نه وي نو د دهغې اخستل او خرڅول منع نه دي. د بیع و شراء مانع پدې خبره دلیل دی چې سندرغاړی وینزه مراد ده. (المرقات ۶/۳۰)

**ولاتعلموهن:** یعني هغه وینزو ته سندري او ګډا او د سرور هنر مه زده کوی ځکه چې: **لان الغناء قیم الزنا.** (المرقات ۶/۳۰)

**ثمنهن حرام:** یعني هغه وینزو ته سندري یا ګډا او سرور باندې چې کومه روپۍ وګټلی شوي نو هغه حرام دي. قاضي عیاض رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې د اخستلو او خرڅولو دا ممانعت په هغه صورت کې دی چې کله وینزه فقط او فقط ګډا او سرور لپاره اخستلی شي. د دی حدیث ظاهرې حکم همدغه دی چې د سندرغاړي وینزه بیع و شراء ناجائز دي. خو د جمهورو علماوو په نزد داسې وینزي بیع و شراء جائز ده. هغوی د دې حدیث د ضعیف کولو باوجود پدې کې تاویل کړی دی. چې دلته بیع و شراء مراد ندی. بلکې د هغوی په سندرو باندې اجرت اخستل جائز ندي. لکه څنګه چې په نورو احادیثو کې دي. (المرقات ۶/۳۰)

**ومن الناس:** دا آیت د سورت لقمان دی. چې نضر بن حارث باره کې نازل شوی دی. دې سړی به د قرآن سخت مخالفت کولو. او د عجمو ښارونو ته لاړو او د رستم او د اسفندیار د قیصو کتابونه به یې عربۍ ته ترجمه کول او ویل به یې چې محمد تاسو ته د عاد او د ثمود قصې کوي. او زه درته د رستم او د اسفندیار او د عجمو د بادشاهانو قصې کوم. دې سړی به سندرغاړو محفلونه جوړول او چې څومره به یې اوریدل چې خلک د قرآن ارخ ته میلان کوي نو هلته به یې وینزي لیږلي او د قرآن اثر به یې کمول غوښتل لکه څنګه چې نن سبا ګمراه حکمرانانو شروع کړي دي. (المرقات ۶/۳۰)

**لهو الحدیث:** د دینه مراد ټول منکرات دي. لهذا د شپې قصې کول، فضول مجلسونه او تلویزون باندې درامې ټول خرافات لهو الحدیث کې داخل دي. (المرقات ۶/۳۰)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## حلال رزق ګټل فرض دي

| **﴿۲۳﴾ عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَلَبُ كَسْبِ الْحَلَالِ فَرِيْضَةٌ** |
| --- |
| عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې حلال رزق ګټل د فرض نه |

| بَعْدَ الْفَرِيضَةِ. [1] |
| --- |
| وروسته يوه فرض دى. |

**توضيح**: چې په كوم سړى باندې د بل سړى يا د خپل اهل و عيال نفقه واجب وي. په هغې فرض دي چې د محنت وكړي او د هغې لپاره رزق وګټي او كه د ګټلو نه بغير د مزدوري څه انتظام كيدلى شي نو بيا فرض ندي.

**بعد الفريضة**: د دې جملې مطلب دا دى چې مال ګټل بېشكه فرض دي خو د اسلام د نورو متعين كړى شوي فرائضو نه وروسته فرض دى. مثلاً د لمونځ، روژه او داسې نورو عباداتو نه وروسته ګټل فرض دي. دا مطلب ندى چې نور فرائض پرېږدى . او ګټلو پسې ورپسې شي او خوشحالېږى چې زه هم د يوى فريضې په ادا كولو كې لګيدلى يم. د لمونځ كولو دوران كې ګټې پسې لګيدل جائز ندي. په پاكستاني نوټونو باندې چې دا ليكل شوي دي چې د حلال رزق ګټل عبادت دى. دا هغه وخت عبادت دى چې كله نور عبادتونه پوره كړى شي ګيني همدغه رزق به د عذاب سبب جوړ شي. (المرقات ۶/۳۱)

## په قرآن باندې اجرت اخستل جائز دي

| ﴿۲۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ أُجْرَةِ كِتَابَةِ الْمُصْحَفِ |
| --- |
| د ابن عباس رضي الله عنه باره كې نقل دي چې د ده نه د قرآن په كتابت باندې د اجرت اخستلو حكم تپوس وشو |
| فَقَالَ : لَا بَأْسَ |
| (چې د قرآن د كتابت اجرت جائز دى او كه نه؟) نو ده وويل چې په دې كې څه باک نشته دى. ځكه |
| إِنَّمَا هُمْ مُصَوِّرُونَ وَإِنَّهُمْ إِنَّمَا يَأْكُلُونَ مِنْ عَمَلِ أَيْدِيهِمْ. رَوَاهُ رزين |
| كاتبان خو فقط نقشه جوړوي چې هغه د خپلو لاسونو مزدوري ده. |

**توضيح**: قرآن كريم د الفاظو او د معاناګانو د مجموعې نوم دىى. دا وهم راتلى شو چې د قرآن د الفاظ په ليكلو سره اجرت اخستل جائز ندي. همدغه خيال حضرت ابن عباس رضي الله عنه ختم كړلو. چې ليكلو والا خو نقشه جوړوي چې هغې پكې ډير مشقت وي. لهذا دا مزدوري او د دې محنت په بدل كې اجرت اخستل جائز دي.

(۱) رواه البيهقي في شعب الايمان ۶/۴۴۰ رقم الحديث ۸۷۴۱.

## د لاس ګټه د ټولو نه بهتره ده

| ﴿۲۵﴾ وَ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ قِيلَ يَا رَسُولَ اللهِ اَیُّ الْكَسْبِ أَطْيَبُ ؟ |
|---|
| رافع بن خدیج رضي الله عنه وايي چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه دا پوښتنه وشوه چې کوم يو کسب پاک دی |
| قَالَ : عَمَلُ الرَّجُلِ بِيَدِهِ وَ كُلُّ بَيْعٍ مَبْرُورٍ .[1] |
| (غوره دی) نو نبي عليه السلام وفرمايل چې د انسان په خپل لاس سره ګټل او هر هغه تجارت چې مقبول وي |
| (د شرعي اصولو او قانون مطابق وي). |

**توضیح:** لکه څنګه چې مخکې ليکلي شوي دي چې نص صريح ثابت دی چې د ټولو نه غوره ګټه هغه ده چې کوم يو مسلمان ته په جهاد کې د مال غنيمت نه ترلاسه شي. دلته د لاس ګټه د ټولو نه غوره ګڼلې شوي ده. په دې کې هيڅ تضاد نشته دی. جهاد کې چې کوم مال غنيمت لاس ته راځي هغه د سخت محنت او ځان په خطر کې د اچولو نه وروسته لاس ته راځي نو هغه هم د لاس لويه ګټه ده.

**بيع مبرور:** د مبرور نه بيع مراد دا چې په هغې کې دروغ نه وي، نه خيانت وي، نه دهوکه وي بلکې د بيوعاتو د اصولو بالکل موافق وي. (المرقات ۶/۳۴)

## په جائز کاروبار شرم کول په کار نه دي

| ﴿۲۶﴾ وَ عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ قَالَ : كَانَتْ لِمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِيْ كَرِبَ جَارِيَةٌ |
|---|
| ابي بکر بن مریم رحمه الله (تابعي) وايي چې د مقدام ابن معديکرب رضي الله عنه (صحابي) يوه وينځې وه |
| تَبِيعُ اللَّبَنَ وَ يَقْبِضُ الْمِقْدَامُ ثَمَنَهُ |
| (د هغې د کور د څاروو) شوده خرڅول. او مقدام به د هغې نه د شودو نه ګټلې شوې قيمت اخستلو. |
| فَقِيلَ لَهُ : سُبْحَانَ اللهِ أَتَبِيعُ اللَّبَنَ ؟ |
| نو (يوه ورځ) د مقدام نه چا پوښتنه وکړه چې سبحان الله! (څومره عجيبه خبره ده) وينزه شوده خرڅوي |
| وَ تَقْبِضُ الثَّمَنَ ؟ فَقَالَ نَعَمْ وَمَا بَأْسٌ بِذَٰلِكَ سَمِعْتُ |
| او ته د هغې قيمت اخلې؟ مقدام ورته وويل چې صحيح خو ده په دې کې خبره نشته دی ما اوريدلي دي |

(۱) أخرجه احمد في المسند ۱۴۱/۴.

| رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : لَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَا يَنْفَعُ |
|---|
| د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه چې فرمايلي يې دي : رابه شي په خلکو باندې يوه داسې زمانه چې فائده |
| فِيهِ إِلَّا الدِّينَارُ وَ الدِّرْهَمُ.[1] |
| به نه ورکوي په غير د درهم او دينارو نه بل هيڅ شي. |

**توضیح:** سبحان الله: په باندو او د عربو په قبائلو کې به د شودو نه د يو انسان د مرستی نه بغير څه اجرت وو. لکه څنګه چې نن سبا په پاکستان کې په کليو کې رواج دی. حضرت مدام چې کله د شودو د خرڅولو کاروبار شروع کړلو نو معاشري خلکو هغه بد وګڼل. حضرت مقدام د هغې جواب ورکړلو چې پدې کې د شرم څه خبره ده. دا جائز کاروبار دې چې به هغې د خپل عزت او د دين حفاظت کوم. نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پيشنګوئی ده چې يوه زمانه به داسې راشي چې په هغې کې به فقط روپۍ کار ورکوي يعنې د خپل عزت او د خپل دين او عبادت حفاظت به حلالو روپو سره کېږي. که مال نه وي نو د تولو نه اول به د سړی دين ځي. بيا به يې عزت او عظمت رخصتېږي. (المرقات ۶/۳۳)

## تر څو چې کاروبار چليږي نو بدلول يې ښه نه دي

| ﴿۲۷﴾ وَ عَنْ نَافِعٍ قَالَ : كُنْتُ أُجَهِّزُ |
|---|
| نافع رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې ما د خپل تجارت مال او اسباب تيار کړو (د خپلو خادمانو او وکيلانو په موجودګي |
| إِلَى الشَّامِ وَ إِلَى مِصْرَ فَجَهَّزْتُ إِلَى الْعِرَاقِ |
| کې) شام او مصر ته ولېږلو، بيا وروسته زه (يو ځل) ما خپل تجارتي سامان عراق طرف ته وليګلو |
| فَأَتَيْتُ إِلَى أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ عَائِشَةَ فَقُلْتُ لَهَا : |
| نو زه د عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا په خدمت کې حاضر شوم او هغې ته مې وويل چې يا ام المؤمنين ما (اول خو) |
| يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ كُنْتُ أُجَهِّزُ إِلَى الشَّامِ فَجَهَّزْتُ إِلَى الْعِرَاقِ |
| خپل تجارتي سامان شام ته ليګلو او اوس مې اراده ده چې خپل تجارتی سامان عراق طرف ته ولېږم. |

---

(۱) أخرجه مسند أحمد ۱۳۳/۴، رقم الحديث: ۱۷۲۴۰.

| |
|---|
| فَقَالَتْ : لَا تَفْعَلْ مَا لَكَ وَ لِمَتْجَرِكَ ؟ |
| (دې اوريدو سره) عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وويل چې داسې مه كوه. په تا او ستا په تجارت څه شوي دي؟ |
| فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : |
| (چې ته د شام د تجارت سلسه ختموي) ما د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي دي چې فرمايل يې |
| إِذَا سَبَّبَ اللهُ لِأَحَدِكُمْ رِزْقًا مِنْ وَجْهٍ فَلَا يَدَعْهُ حَتَّى |
| كله الله تعالى تاسو ته د رزق څه سبب په يو صورت كې پيدا كړي نو هغه پرېښودل په كار نه دي تر دې |
| يَتَغَيَّرَ لَهُ أَوْ يَتَنَكَّرَ لَهُ.⁽¹⁾ |
| پورې چې په هغې كې بدلون رانه شي او يا څه ضرر ونه رسوي. |

**توضيح: اجهز:** دا سړی وايي چې ما به مال تجار شام او مصر او داسې نورو ملكونو اړخ ته خپله تيار كړو او لګلو به مې او يا به مې د خپلو وكيلانو په ذريعې سره تيارولو. يو ځل ما اراده وكړه چې اوس خپل تجارتي مركز عراق كړم نو ما خپل سامان تيار كړو. خو په زړه كې مې خيال راغلو چې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره مشوره وكړو، نو د هغې نه مې مشوره وغوښتله. حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا منع كړو. چې يو عراق لرې هم دی او دويمه خبره دا چې په پدې بدلون كې حرص دی. (المرقات ۶/۳۳)

**متجرك:** تجارت لپاره هم ويل كېږي. خو دلته د تجارت ځای مراد دی. يعنې د دې بدلو څه ضرورت دی چې الله تعالى درته د يو ځای نه رزق دركوي او ته هغه دا مناسب نه ګڼې. (المرقات ۶/۳۴)

**اذا سبب الله:** يعنې كله چې د يو اړه او الله تعالى رزق دركوي او هغه ځای سبب او ذريعه جوړه كړي ده. تو هغه ولي بدلوي.

**يتغيرله:** يعنې ګټه بنده شي. اويتنكرله: يعنې د مال سر ضائع شي. او بد حالت ښكاره شي. بهر جال د الله تعالى يو نظام دی. نو په ورز ورز سره د سړی بدلو پدې نظام كې مداخله راځي. چرته نه چې الله تعالى وركوي. د هملته نه يې اخلی. (المرقات ۶/۳۴)

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۷۲۷ رقم الحديث :۲۱۴۸

## د نااهله كاريګر د مزدورۍ حكم

﴿۲۸﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كَانَ لِأَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ غُلَامٌ يُخْرِجُ لَهُ

عائشه رضي الله عنها وايي چې ابوبكر رضي الله عنه سره يو غلام ؤ چې هغې په خپلې مزدورۍ يوه مقرره برخه

الْخَرَاجَ

ابوبكر رضي الله عنه ته وركوله (څنګه چې د عربو معمول وو چې هغوی په خپلو غلامانو باندې مزدوري

فَكَانَ أَبُو بَكْرٍ

لګوله. او د هغوی د ګټلې شوي اجرت نه به يې څه برخه ځان لپاره مقرره وله) نو ابوبكر رضي الله عنه به هم

يَأْكُلُ مِنْ خَرَاجِهِ فَجَاءَ يَوْمًا بِشَيْءٍ فَأَكَلَ مِنْهُ أَبُو بَكْرٍ

د هغه غلام راوړي شوي اجرت خوړو هغه غلام يو ورځې يو شی راوړو چې د هغې نه ابوبكر رضي الله عنه

فَقَالَ لَهُ الْغُلَامُ : تَدْرِي مَا هٰذَا ؟

(هم) وخوړل (د هغې د خوړلو نه وروسته) غلام وويل چې ته پوهېږې چې دا څنګه شی دی؟

فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ : وَمَا هُوَ ؟ قَالَ : كُنْتُ

ابوبكر رضي الله عنه وويل چې ماته څه معلومه ده ته يې ووايه چې دا څه شی دی؟ غلام وويل چې ما په

تَكَهَّنْتُ لِإِنْسَانٍ فِي الْجَاهِلِيَّةِ

جاهليت كې (يعنې خپل حالت كفروخت كې) يو سړي ته د غيبو خبرې كولې حال دا چې زه به د كهانت په

وَمَا أُحْسِنُ الْكَهَانَةَ إِلَّا أَنِّي

هنر (يعنې د پټو خبرو ښكاركولو په هنر) باندې ښه نه پوهيدم بلكې ما به هغه ته (غلطې خبرې جوړولې)

خَدَعْتُهُ فَلَقِيَنِي فَأَعْطَانِي بِذٰلِكَ فَهٰذَا الَّذِي

دهوكه به مې وركوله (تصادفي) د هغه سړي سره زما ملاقات وشو نو هغه ماته دا شی راكړو دا هغه شی

أَكَلْتَ مِنْهُ قَالَتْ : فَأَدْخَلَ أَبُو بَكْرٍ يَدَهُ

دی چې تا وخوړو عائشه رضي الله عنها وايي چې (دې اوريدو سره) ابوبكر رضي الله عنه داخل كړو خپل لاس په

| فَقَاءَ | كُلَّ | شَيْءٍ | فِي | بَطْنِه.[1] |
|---|---|---|---|---|
| په خپلې خلې کې او قئ يې وکړو او چې څه په خېټه کې وو (د احتیاط په خاطر) ټول رابهر کړل. | | | | |

**توضیح: تکهنت:** یعنې د راروان وخت باره کې مې ورته د غیبو خبرې کړې وې. خو زه په هغه هنر کې پوهمند نه وو. (المرقات ۶/۳۴)

**فقاء:** حضرت ابوبکر رضي الله عنه د څه حیلي بنیاد باندې د خیټې دننه نه دا مشتبه شوده قئ کړې. دا د احتیاط او د تقوی په بنیاد باندې وو. امام شافعي رحمه الله فرمایې چې دغه شان صورت راتلل وخت کې کانګې کول لازم او واجب دي. (المرقات ۶/۳۴)

خو امام عزالي رحمه الله په خپل کتاب **منهاج العارفین** کې دا په تقوی او احتیاط باندې حمل کړې دي، د دې حدیث نه دا خبره مخې ته راغله چې څوک د چانه څه شی اخلې نو هغه ته په کار دي چې بنه معلومات وکړي چې چرته په هغې کې د حرامو شی نه وي. په راتلونکې حدیث کې دا خبره په واضحه توګه شته دی چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه قئ کړې وې. (المرقات ۶/۳۵)

## د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه تقوی

| ﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ جَسَدٌ |
|---|
| ابوبکر رضي الله عنه وایي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي داخل به نه شي جنت ته هغه بدن کوم ته |
| غُذِيَ بِالْحَرَامِ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شعب الإِيمَان |
| چې په حرام مال سره غذا ورکړې شوه. |

## د حرامي مزدورۍ پلیتي په عبادت پریوځي

| ﴿۳۰﴾ وَ | عَنْ | زَيْدِ | بْنِ | أَسْلَمَ | أَنَّهُ | قَالَ | : | شَرِبَ | عمر |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| زید بن اسلم (چې د عمر فاروق رضي الله عنه ازاد کړې شوی غلام ؤ) وایي چې (یو ځل) وڅکل عمر بن | | | | | | | | | |
| بْنِ | الْخَطَّابِ | لَبَنًا | وَ | أَعْجَبَهُ | وَ | قَالَ | لِلَّذِي | سَقَاهُ | : |
| خطاب شوده چې دا ورته ډیره بنه معلوم شوې نو د هغه کس نه چا چې پرې شوده څکلې وو پوښته | | | | | | | | | |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۷/۷ رقم الحديث: ۳۸۴۲

مَنْ أَيْنَ لَكَ هٰذَا اللَّبَنُ ؟ فَأَخْبَرَهُ أَنَّهُ وَرَدَ عَلَى مَاءٍ

وکړه چې دا شوده تاته د کوم ځای نه ملاؤ شوي وو؟ نو هغه ورته وويل چې دا (يعني زه) زه د اوبو په

قَدْ سَمَّاهُ فَإِذَا نَعَمٌ مِنْ نَعَمِ الصَّدَقَةِ

يو کوهي تېر يدم يا يې د کوهي نوم وويل نو ما هلته وليدل چې د زکوة څه څاروي (يعني اوښ او بېزې

وَ هُمْ يَسْقُوْنَ فَحَلَبُوا لِي مِنْ أَلْبَانِهَا

او داسې نور څاروي د اوبو لپاره راوستي وو) او د هغه څاروو ساتونکې به ترې نه پئ رالوشل او

فَجَعَلْتُهُ فِي سِقَائِيْ وَ هُوَ هٰذَا فَأَدْخَلَ عُمَرُ

په خلکو به يې څکل نو ماترې هم پئ رالوشل او ما خپله مشکيزه کې واچول، دا همغه پئ دي (دي

يَدَهُ فَاسْتَقَاءَهُ.[1]

اوريدو سره) عمر رضي الله عنه (خپل تالو کې) لاس ورکړو او هغه يې قئ کړل (او هغه پئ يې د خيټې نه

راويستل ځکه هغه د زکوة مال وو چې د هغې لپاره جائز نه وو)

**توضيح**: د حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه دير لوي شان ؤ. تاسو دي واقعې ته وګورئ چې د تشې خيټې نه يو څو ګوټه راويستل او قئ کول څومره ګران کار دی. بيا دلته مسئله د خالص حرمت هم نه ده. فقط شک راغلی وو. چې د صدقه شوي اوښانو نه حاصل کړی شوي شوده کيدیشي د زکوة د مال وي چې د هغې استعمال د هغې لپاره جائز نه وو.

## د حرامې مزدورۍ اثرات په عبادت غور څيرې

﴿۳۱﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : مَنِ اشْتَرٰى ثَوْبًا بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ وَ فِيهِ دِرْهَمٌ

ابن عمر رضي الله عنه وايي چې که چرې يو سړی (مثلاً) يو ټوټه په لس درهمه واخلي او په هغې کې درهم

حَرَامٌ لَمْ يَقْبَلِ اللهُ لَهُ صَلَاةً مَا دَامَ

د حرام مال وي نو الله تعالى تر هغه وخت پورې د دې سړی مونځ نه قبلوي ترڅو پورې چې د سړي بدن

عَلَيْهِ ثُمَّ أَدْخَلَ أُصْبَعَيْهِ فِي أُذُنَيْهِ

باندې هغه ټوټه وي د دې نه وروسته ابن عمر رضي الله عنه د شهادت دواړه ګوتې خپل غوږونو کې ورکړې

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۸۲/۱.

وَ قَالَ صُمْتَا إِنْ لَمْ يَكُنِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُهُ .[1]

اووي ويل چې دا دواړه غوږونه دې کاڼه شي که ما دا خبره د نبي کريم ﷺ نه وي اوريدلي

**توضيح: لم يقبل الله:** يعني د فرض لمونځ ثواب هغه سړی ته نه ورکړی کېږي شوي مونځ خو به وشي. خو قضا راګرځول يې لازم نه دي. خو قبوليت او ثواب به ورته نه ملاويږي. (المرقات ٦/٣٦).

**صمتا:** يعني که ما دا خبره خپله د نبي کريم ﷺ نه، نه وي اوريدلي نو زما دواړه غوږونه دې کاڼه شي. صحابه کرامو رضي الله عنهم به داسې قسمه کلام لپاره ځکه داسې ارشاد فرمايلو چې د اوريدونکی ته بنه يقين شي او څوک په غلط انداز سره حديثونه بيانول شروع نه کړي. (المرقات ٦/٣٦)



(١) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ١٤٢/٥، رقم الحديث ٦١١٤.

# باب المساهلة

## معاملاتو کې د نرمۍ کولو بيان

په خرڅولو .اخيستلو ،قرض ورکولو او اخيستلو کې نرمي او چشم پوشي کولو (سترګې پټولو) ته مساهله وايي. اى المجاملة والمسامحة. (المرقات ٦/٣٧)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### په معامله کې نرمۍ کونکې ته د نبي کريم صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ دعاء

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : رَحِمَ اللهُ رَجُلًا سَمْحًا |
| جابر رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهُ اوي دى چې نبي کريم صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ و فرمايل: الله تعالى دې په هغه سړي خپل رحمت نازل |
| إِذَا بَاعَ وَإِذَا اشْتَرَى وَ إِذَا اقْتَضَى .[1] |
| کړي چې په اخستلو ، خرڅولو او په غوښتنه کې نرمي کوي. |

**توضيح: سمحاً**: په نرمه کتلو. سترګې پټولو او په نرم انداز سره د سخاوت والا سړي لپاره د نبي کريم صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ دعا په دې حالت سره شرط دى چې هغه سړى په لين دين کې نرمي کوي. (المرقات ٦/٣٧)

### په لين دين کې د نرمۍ کونکې سړي يو حکايت

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ رَجُلًا كَانَ فِيمَنْ قَبْلَكُمْ |
| حذيفه رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ و فرمايل چې د يو سړي واقعه د ستاسو نه مخکې تېرو |
| أَتَاهُ الْمَلَكُ لِيَقْبِضَ رُوحَهُ |
| شوو خلکو (يعني مخکني امتونو) کې چې کله ورته د مرګ فرښته د روح قبضه کولو لپاره راغله نو |
| فَقِيلَ لَهُ : هَلْ عَلِمت مَنْ خَيْرٍ ؟ قَالَ : مَا أَعْلَمُ |
| دده نه يې تپوس وکړه چې تا کوم نيک کار کړى ؟ ده ورته وويل چې ماته ياد نه دي (چې ما کوم نيک |

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ٣٠٦/٤ رقم الحديث :٢٠٧٢

| قِيلَ | لَهُ | انْظُرْ | قَالَ : | مَا | أَعْلَمُ | شَيْئًا | غَيْرَ | أَنِّي |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

کار کړی وي) بیا ورته وویل شو چې بنه سوچ وکړه ده بیا وویل چې ما ته بېخي نه دي یاد. خو (دومره

| كُنْتُ | أُبَايِعُ | النَّاسَ | فِي | الدُّنْيَا | وَ | أُجَازِيهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|

راته پته ده چې) ما به چې کله په دنیا کې د خلکو سره (د اخستلو او خرڅولو) معامله کوله نو د غو بنتنې

| فَأُنْظِرُ | الْمُوسِرَ |
|---|---|

په وخت کې ما به په هغوی د احسان کولو چې استعداد لرونکو خلکو ته به مې مهلت ورکول

| وَ | أَتَجَاوَزُ | عَنِ | الْمُعْسِرِ |
|---|---|---|---|

او چې کوم بې وسه وو هغو به مې معاف کول (یعنې د خپلې مطالبې نیمه یا ټوله برخه به مې ورته

| فَأَدْخَلَهُ | اللهُ | الْجَنَّةَ ".[1] |
|---|---|---|

معاف کوله) نو الله تعالی (د دې عمل نه په خوشحالیدلو سره) دا جنت ته داخل کړو.

وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ نَحْوَهُ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ وَأَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ فَقَالَ اللهُ أَنَا أَحَق بذا مِنْك تجاوزوا عَن عَبدِي

**توضيح**: **الملك**: حضرت عزرائیل عَلَيْهِ السَّلَام هم مراد کیدی شي. او د **الملك** نه هغه فرښته مراد کیدی شي کومه چې د حضرت عزائیل عَلَيْهِ السَّلَام د حکم د لاندې د مرګ په کار باندې مقرره ده. د مرګ نسبت فرښتې طرف ته اسناد مجازي دي ګینې حقیقت کې خو مرګ ورکولو والا الله تعالی ذات دی. (المرقات ۶/۳۷)

## په اخیستلو او خرڅولو کې ډیر قسمونه مه خورئ

﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاكُمْ وَكَثْرَةَ الْحَلِفِ فِي الْبَيْعِ

ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې تاسې ځان وساتئ د ډیرو قسمونو

| فَإِنَّهُ | يُنَفِّقُ |
|---|---|

نه په تجارتي ژوند کې ځکه په تجارتي معاملاتو کې ډیر قسمونه خوړل (خو اول) کاروبار لره رواج

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۹۱/۶ رقم الحديث: ۳۴۵۱، ومسلم في صحيحه ۱۱۹۴/۳ رقم الحديث: ۱۵۶۰/۲۶

| ثُمَّ يَمْحَقُ.[1] |
|---|
| کوي خو بیا یې برکت ضائع کوي. |

**توضیح: ایاکم:** یعنې بچ شئ، احتیاط کوئ او منع شئ. کثرة الحلف: د ډیرو قسمونو ممانع ځکه کړې شوې دی چې په لین دین کې څه نه څه قسمونه کېږي. د ډیرو قسمونو نه بچ کیدل پکار دي. خو واړه قسمونه خو که یو هم وي هغه ډېره تباهي راولي. (المرقات ۶/۳۹)

**ینفق:** دا صیغه د مجرد نه د **باب نصر** نه هم راځي او د باب **تفعیل** نه هم راځي. دلته ډېره واضحه همدغه ده چې د باب **تفعیل** نه وي. د **ینفق** مطلب دا دی چې د تجارت او سودا ته رواج ملاوو شي. په مارکيټ کې د هغې ښه ډېره غوښتنه وي.

**یمحق:** محق په معنی د ورانیدلو دی یعنې د هغې برکت ختم شی. د ډیرو قسمونو همدغه اثر وي.

**ای ینفق حالا و یمحق مآلا:** که د دروغو قسم وي نو یو قسم هم د برکت ختمولو لپاره بس دی. او که څه ریښتیا وي نو بیا هم کثرت قسم سره برکت ځي. (المرقات ۶/۳۹)

## قسمونو خوړلو سره د تجارت نه برکت ځي

| ﴿۴﴾. وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ: الْحَلْفُ |
|---|
| ابو هریره رضي الله عنه وايي چې ما واوریدل چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به فرمایل چې قسم (شروع کې) د |
| مَنْفَقَةٌ لِلسِّلْعَةِ مَمْحَقَةٌ لِلْبَرَكَةِ.[2] |
| مال او اسباب کې د منفعت سبب جوړېږي خو (انجام یې) د برکت د ختمیدلو سبب جوړ شي. |

**توضیح: الحلف:** یعنې د دروغو قسم، یا په کثرت سره ډیر قسمونه خوړل. **منفق:** د منفعة پشان دی. چې د مفعله په وزن باندې دي. د سبب او د ذریعې په معنی کې دی.

**السلعة:** سودا ته وايي. یعنې د سودا ترویج کېږي خو برکت یې ختم شي. یا خو اصل مال هلاک شي یا د هغې منافعه بې ځای شي. (المرقات ۶/۳۹)

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۲۲۸/۳ رقم الحديث: ۱۶۰۷/۱۳۲.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۱۵/۴ رقم الحديث: ۲۰۸۷، ومسلم في صحيحه ۱۲۲۸/۳ رقم الحديث: ۱۶۰۶/۱۳۱.

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : ثَلَاثَةٌ |
| ابو ذر رضي الله عنه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې درې کسان |
| لَا يُكَلِّمُهُمُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا |
| دي چې الله تعالى به د قيامت په ورځ د هغې سره (د مهرباني او عنايت) خبرې نه کوي، نه (د رحمت |
| يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ . |
| په نظر) به ورته ګوري او نه به هغوی (د ګناهونو نه) پاک کړي او د هغه درې وا ړو لپاره دردناک عذاب |
| قَالَ أَبُو ذَرٍّ : خَابُوا وَ خَسِرُوا مَنْ هُمْ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ قَالَ : |
| دی ابو ذر رضي الله عنه افسوس وکړو چې يا رسول الله! دا به کوم کسان وي؟ نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل |
| الْمُسْبِلُ وَ الْمَنَّانُ وَ الْمُنَفِّقُ |
| چې پينځې لاندې زوړونکی او دويم (چې چاله څه شی ورکړي) احسان زباتونکی او دريم تجارت |
| سِلْعَتَهُ بِالْحَلِفِ الْكَاذِبِ .(۱) |
| ډيرونکې په دروغه قسمونه سره. |

**توضيح:المسبل:** د بښنګري نه لاندې پاجامه يا قميص يا لنګ زوړونکې ته مسبل وايې او دې عمل ته اسبال ويل کيږي. **المنّان:** احسان زباتونکې ته وايي. (المرقات ۶/۴۰)

**المنفق:** د باب تفعيل نه د اسمِ فاعل صيغه ده. په دروغو قسم خوړل او تجارت ډيرونکې ته منفق وايي. د دې حديث نه معلومه شوه چې قسم د دروغو قسم نه دی. (المرقات ۶/۴۰)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د رېښتني او امانتدار تاجر فضيلت

| |
|---|
| ﴿۶﴾ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : التَّاجِرُ الصَّدُوقُ الْأَمِينُ |
| ابو سعيد رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل تاجر رېښتينې (په قول او فعل کې) او امين |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۰۲/۱ رقم الحديث: ۱۰۶/۱۷۱

| مَعَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ والشهداءِ . وَقَالَ التِّرمِذِيّ: هَذَا حَدِيث غَرِيب[1] |
|---|
| دا به د نبیانو، صدیقانو او د شهیدانو سره وي. |

## تاجر لره صدقه کول په کار دي

| ﴿۷﴾ وَ عَنْ قَيس بن أَبِي غَرزَة قَالَ : كُنَّا نُسَمَّى فِي عَهْدِ |
|---|
| او قیس بن عرزه (چې سوداګري به یې کوله) وايي چې مونږ ته (یعنې سوداګروته) خلکو ویل په زمانه |
| رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّمَاسِرَةَ فَمَرَّ بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې سماسره. نو (یو ورځ) نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمونږ په اړخ باندې تېرېدو |
| فَسَمَّانَا بِاسْمٍ هُوَ أَحْسَنُ مِنْهُ |
| نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام زمونږ طبقې ته یو داسې نوم راکړو چې هغه زمونږ د مخکې نوم نه ډیر غوره دی. نو نبي |
| فَقَالَ : يَا مَعْشَرَ التُّجَّارِ إِنَّ الْبَيْعَ يَحْضُرُهُ اللَّغْوُ وَ الْحَلِفُ |
| عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل چې ای د تاجرانو ټولګیه! په تجارت کې اکثره بې ګټه خبرې او ډیر قسم (یاد دروغو |
| فَشُوبُوهُ بِالصَّدَقَةِ .[2] |
| قسم) خوړلو په صورت کې ځي راځي. نو ځکه تاسو تجارت د صدقو او د خیراتونو سره ساتئ. |

**توضیح:السماسرة:** د سمسار جمع ده چې د دلال په معنی دی. د اسلام نه مخکې د تاجرانو نوم دلال وو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوی د تاجرانو په نوم سره یاد کړل. د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا په تاجرانو ډیر لوی احسان دی.

**فشوبوه:** باب تفعیل نه د ملاولو او د ګډ وډ کولو په نوم دی. یعنې بېکاره خبره او قسم عموماً په تاجرانو کې وي؛ نو ځکه د هغې بد اثرونو ختمولو لپاره صدقه کوئ. ځکه صدقه کولو سره د الله تعالی د غضب اور مړ کېږي. (المرقات ٦/٤١)

---

(١) أخرجه الترمذي في السنن ٣/١٥١٥ رقم الحديث :١٢٠٩.

(٢) أخرجه ابوداود في السنن ٣/٦٢٠ رقم الحديث :٣٣٢٦.

## کامياب تاجر څوک دي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ رِفَاعَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ |
| عبيد بن رفاعه رَحِمَهُ اللَّهُ (تابعي) د خپل پلار (رفاعه ابن رافع رَحِمَهُ اللَّهُ انصاري صحابي) نه او هغه د نبي |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : التُّجَّارُ يُحْشَرُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فُجَّارًا |
| کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل تاجران به را او چتيږي د قيامت په ورځ د فاجرانو |
| إِلَّا مَنِ اتَّقَى |
| (يعنې د دروغجنو او نافرمانه خلکو) سره خو (هغه تاجر به د هغوی نه نه وي) چا چې پرهيزګاري اختيار |
| وَ بَرَّ |
| کړه (يعنې په دهوکه کې شريک نه وي) او نيکي يې وکړه (يعنې په خپل تجارتي معاملاتو کې خلکو |
| وَ صَدَقَ. (۱) |
| سره ښه اخلاق کوي يا دا چې د خدای عبادت کوي) او رښتيا ويلو باندې ولاړ وي. |
| وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ. عَنِ الْبَرَاءِ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. |

**توضيح: تجار** : دا د **تاجر** جمع ده. او **فجار** د **فاجر** جمع ده فاسق او نافرمان ته وايي.

**اتقی**: يعنې د الله تعالی ويريدلو او واړه او غټ ګناهونو نه يې ځان وساتلو او د دهوکې او خيانت هم يې هم پرهيز وکړو. (المرقات ۶/۴۲)

**و بر و صدق**: يعنې د خلکو سره د عامو خبرو نه ځان وساتلو، هميشه يې رښتيا ويل او خصوصاً خپل تجارت کې يې هم رښتيا وويل. قاضی عياض رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې تجارت يو عادت وي چې خراب شی په کې خرڅوي. په تجارت کې اخوا ديخوا کوي او د دروغو قسمونو په ذريعې سره به هر صورت کې خپل تجارت ته د رواج ورکولو لپاره آماده اوسي. نو ځکه په عمومي توګه يې د فسق او فجور حکم لګولی دی بيا چې په هغوی کې کوم ښه تاجر وي نو هغه به د قيامت په ورځ نه فاسق تاجر پشان پاڅيږي او نه به د بل کوم يو جرم مرتکب وي. او د الله تعالی په نزد به کامياب وي. (المرقات ۶/۴۲)

---

اخرجه الترمذي في السنن ۲۷۵/۳ رقم الحديث ۱۲۱۰

# باب الخیار

## د خیار بیان

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

### د خیار مجلس مسئله

﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلْمُتَبَايِعَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا

ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل خرڅونکې او اخستونکې هريو په دې دواړو

بِالْخِيَارِ عَلَى صَاحِبِهِ

کې د خپل دويم صاحب معامله باندې (ددې خبرې) اختيار لري (چې د اخستلو او خرڅولو معامله

مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا

پاتې ساتي او که ختموي يې) تر کومې چې هغه د يو بل نه جدا نشي (يعنې په کوم مجلس کې چې دا

معامله شوې وي نو کله چې هغه ختمه شي يا د يو بل نه جدا شي نو بيا په دې کې د هيڅ يو اختيار نه پاتې

إِلَّا بَيْعَ الْخِيَارِ[1]

کېږي) خو بيع خيار د دې نه مستثنى ده (يعنې په بيع کې اخستونکى د دې اختيار شرط کړې وي چې

که چيرې زه وغواړم نو د غه اخيستلې شوې شى ځان سره کېخودى شم او که و نه غواړم بېرته به يې ورکوم

په دې بيع کې د يو بل نه د بېليدلو نه وروسته هم اختيار پاتې کېږي).

وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: إِذَا تَبَايَعَ الْمُتَبَايِعَانِ فَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالْخِيَارِ مِنْ بَيْعِهِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا أَوْ يَكُونَ بَيْعُهُمَا عَنْ خِيَارٍ فَإِذَا كَانَ بيعهما عن خيار فقد وجب وَفِي رِوَايَةٍ لِلتِّرْمِذِيِّ: اَلْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا أَوْ يَخْتَارَا . وَفِي الْمُتَّفَقِ عَلَيْهِ: "أَوْ يَقُولَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ: اخْتَرْ بَدَلَ أَوْ يختارا".

**توضيح: د خيار پېژندنه :كل واحد منهما خيار** : خيار د اختيار نه مشتق دى په دوه شيانو کې د يو بنه شي انتخابول او خوښولو ته په لغوي توګه خيار وايي. د فقهاؤ په اصطلاح کې د خيار تعريف

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ٣٢٦/٤ رقم الحديث :٢١٠٧، ومسلم في صحيحه ٢٨٠١/٣ رقم الحديث: ١٥٣١/٤٣.

داسې دی: کومې تجارتي معاملې پاتې ساتل او یا د هغې فسخ کولو نوم خیار دی. دا خیار په بیع وشراء کې بائع (خرڅونکی) او مشتري (اخستونکی) دواړو سره وي. (المرقات ۶/۴۴)

**د خیار قسمونه**: د خیار غټ شپږ (۶) قسمونه دي: ۱: **خیار شرط**: د عقد پوره کېدلو نه وروسته د جانبینو معامله پاتې کیدل یا د ختمولو نوم خیار شرط دی. ۲: **خیار عیب**: په کوم اخستلی شوي شي کې عیب ښکاره کېدلو باندې مشتري ته د هغې کینبودلو او یا د بېرته ورکولو د اختیار نوم خیار عیب دی. ۳: **خیار رؤیت**: د نه لیدلو شي د اخستلو نه وروسته چې کله مشتري ولیدلو نو هغې سره د کینبودلو او د بېرته ورکولو کوم اختیار مشتري ته حاصل وي. د هغې نوم خیار روویت دی.

۴: **خیار تعیین**: د یو څو شیانو په سودا کې د څېنو د اینبودلو او د څېنو د بېرته ورکولو چې کوم اختیار د مشتري سره وي. دا خیار تعیین دی. ۵: **خیار قبول**: د بائع د قبولی نه وروسته د مشتري د قبولو یا د نه قبلولو چې کوم اختیار وي هغې ته خیار قبول وایي. ۶: **خیار مجلس**: په یو مجلس کې د بائع او د مشتري په مینځ کې دمعامله کولو نه وروسته تر مجلس ختمیدلو پورې هر یو سره د دی عقد د ختمولو یا د پاتې ساتلو د اختیار نوم خیار مجلس دی. د خیار په دې آخري قسم کې د فقهاؤ ډیر سخت اختلاف دی:

**د فقهاء کرامو اختلاف**: شوافع او حنابله وایي چې د بائع او د مشتري د عقد نه وروسته تر کومې چې په مجلس کې ناست وي. هر یو ته د عقد د فسخ کولو یا پاتې ساتلو اختیار حاصل دی. خو د مجلس د ختمیدلو نه وروسته د فسخ اختیار ختمېږي. او **مالم یتفرقا** کې تفرق بالا بدان مراد دی. احناف او مالکیه وایي چې د ایجاب او قبول نه وروسته چې کله عقد پوره شي نو وس هیڅ یو سره د فسخ کولو حق نشته دی. اګر که هغه دواړه په مجلس کې ناست وي. او مالم یتفرقا نه تفرق بالا قوال مراد دی. (المرقات ۶/۴۴)

د فقهاؤ د دلائلو اختلاف بنیاد همدغه زیر بحث حدیث باندې دی خو د استدلال طریقه او اجتهادي فکر جدا جدا دي. او په حدیث کې جانبینو فکر او د استدلال ګنجائش دی لهذا دا نشي ویل کیدی چې دا حدیث فقط د یو اړخ د فقهاؤ دلیل دی. اګر که په ظاهري الفاظو کتلو سره داسې معلومېږي چې دا حدیث د شوافعو او د حنابلو دلیل دی. نو ځکه دغه حضراتو د خیار مجلس د ثبوت لپاره د همدغې حدیث نه استدلال کړی دی. هغوی د خیار لفظ نه د خیار مجلس مراد اخلي. او مالم یتفرقا کې د تفرق ابدان نه د تفرق مراد اخلي. مطلب دا شو. چې د عقد نه وروسته بائع او مشتري چې تر څو پورې مجلس کې ناست وي. نو هغوی د عقد د فسخ کولو اختیار حاصل دی. خو که هغوی به بدنې توګه د یو بل نه جدا شول او وس به د فسخې اختیار د دواړو نه ختم شي. او الابیع الخیار یا الا

**ان یختار** چې کوم استثناء ده د دې مطلب دا دی چې دې دواړو د عقد نه وروسته دوه یا درې ورځې او یا داسې د نورو ورځو خیار شرط یخی وي نو وس د مجلس د ختمیدلو نه وروسته به هم هغه اختیار وي. همدغه شان دې حضراتو د حدیث مفهوم او مضمون بیان کړی دی. (المرقات ۶/۴۴)

احنافو او مالکیوو د دې حدیث سره سره به فصل ثاني کې د حضرت عمروبن شعیب رضی الله عنه د حدیث نه هم استدلال کړی دې. چې د همدغي زیر بحث حدیث د طریقو نه یوه طریقه ده الفاظ داسې دي: **ولا یحل له یفارق صاحبه خشیه ان یستقیل**: دا لفظ په واضحه توګه په اقاله باندې دلالت کوي. معلومه شوه چې که په مجلس کې یو فریق هم عقد فسخ کول غواړي نو دا به اقاله وي. او په اقاله کې دبل ملګري د رضا ضرورت دی. (المرقات ۶/۴۸)

احنافو او مالکیو زیر بحث حدیث کې د ابن عمر رضی الله عنه د روایت کې د خیار نه د خیار قبول مراد اخستی دی. او د یتفرقا نه تفرق بالا قوال مراد اخستی دی چې تر څو پورې مجلس کې د ایجاب نه وروسته بل فریق نه قبلوي. نو هغوی ته اختیار حاصل دی چې قبلو یې کړي یا یې نه کړي. که قبول یې کړي نو عقد پوره شو. او که قبول نشو نو عقد نیم ګړی پاتې شو. امام طحاوی ذکر کړي دی چې امام ابویوسف رحمه الله دلته خیار قبول مراد اخستی دی. اګر که د حدیث راتلونکې الفاظ الابیع الخیار د دې توجیه نو قبولوي. بهرحال تفرق بالا قوال نه د دې حدیث نه احناف استدلال کولی شي. چې په هغې د خیار مجلس د دعوی نفي کېږي. احنافو او مالیکیوو د بیوعاتو او د عقود و فسوخ د اصولي قواعدو نه هم استدلال کړی دې. او دا استدلال ډیر مضبوط دی. وایي چې ټولو عقودو حقیقت ایجاب او قبول دی. د ایجاب او قبول نه بغیر هېڅ یو شی د هېڅ عقد رکن ندی. په بیع کې هم همدغه شان دی. کله چې د بیع دواړه رکن متحقق شول نو عقد پوره شو. وس د قرآن کریم د حکم مطابق د ایفاء عقد ضروري ده ارشاد دی: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَوْفُوا بِالْعُقُودِ﴾ (سورة مائدة:۱) اوس که یو فریق بیع فسخ کول غواړي نو دا به اقاله وي. چې هغه د بائع په رضا باندې موقوف ده. احناف او مالکیوو د دې باب په فصل ثاني کې د آخري حدیث نه هم استدلال کړی دی چې په هغې واضحه الفاظ دي. چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د عقد بیع نه وروسته بانه چې ته اختیار ورکړلو. که دا حق خپله حاصل شوی وو نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم هغې له ولې ورکړی وو؟(المرقات ۶/۴۸)

احنافو او مالیکیوو یو عقلي دلیل هم پیش کړی دی. وایي چې کله کله جانبین مجلس کې په ساعتونو ساعتونو ناست وي. دلته د مارکیټ په نرخون کې د دقیقو دقیقو په حساب سره وچتوالی او لاندېوالی راځي. وس به دا حضرات ناست وي. چې نرخ به لوړ شوی وي. یا به کم شوی وي. وس به یو فریق عقد فسخ کوي او بل به انکار کوي. نو دغه شان لانجه پیدا شي. همدغه شان به د عقد

بېع حیثیت شکمن پاتې شو. چې کله هم هغه ختمیدلی شي. همد غه وجه ده چې حضرت شيخ الهند رَحِمَهُ اللهُ دغه صورت د اخلاقیاتو په قبیل سره ګڼلی دی. هغه وایي چې خیار په قانوني حیثیت سره ندی. د اخلاقي اعتبار نه دی.

**جواب**: دا چې احناف هم د دې حدیث نه استدلال کړی. لهذا د دې د جواب ضرورت نشته دی. خو بیا هم شارحینو یو جواب دا کړی دی. چې دلته مالم يتفرقا نه تفرق بالا قوال مراد دی. نه ده چې تفرق بالا بدان تفرق بالاقوال کې دا لفظ حقیقت دی. او تفرق بالابدان کې مجاز دی. نو حقیقت باندې چې تر څو پورې عمل کېږي نو د مجاز طرف ته د تللو ضرورت نشته دی. تفرق بالاقوال دا سې کېږي چې د ایجاب او قبول نه وروسته د عقد بیع خبرې نه بغیر نوري خبرې شروع شوی جانبين په نورو خبرو کې مشغول شول. په ځینو روایاتو کې د **مالم يتفرقا من بيعهما** الفاظ دي چې هغه د دې خبرې قرینه ده چې تفرق بالاقوال مراد دی همد غه شان ابراهیم نخعي نه نقل دي **مالم يتفرقا عن منطق البيع**

**دويم جواب**: دا دي که چرې خیار مجلس مرادی وي نو دا د اخلاقیاتو په توګه استحبابي امر دی. قانون او قواعد نه دي.

**الابيع الخيار** :دا استثناء د ماقبل حدیث د ټول مفهوم نه ده. د حدیث نه مفهوم کېدلو چې د تفرق نه وروسته خیار نه پاتې کېږي. نو پدې جملې کې استثناء راغله. که کوم شرط کېښودلی شوی دی. نو بیا به د هغې شرط لحاظ کول وي، دا مطلب د ټولو فقهاؤ د مسلک مطابق دی. د دې جملې دويم مطلب دا چې بائع د مشتري د عقد په وخت کې ویلي وو چې وس فیصله ښه سوچ سره وکړه. وروسته به بیا اختیار نه وي. مشتري وویل چې ما ښه په سوچ سره فیصله کړي ده. د داسې ویلو نه وروسته به د ایجاب و قبول نه وروسته به هيچ چا ته د خیار مجلس حق حاصل نه وي. دا مطلب شوافعو بیان کړی دي. (المرقات ۶/۴۴)

بهرحال احنافو د خیار نه خیار قبول مراد اخلي. او د تفرق نه یې تفرق بالاقوال مراد اخلي. او د **المتبائعان** نه **مشغولين في البيع** مراد اخلي.

**نوټ**: الحمدلله کتاب البیوع نه تر دې ځای پورې په رمضان ۱۴۲۵هجری کې په مکه مکرمه کې لیکلی شوی دی.

## په بیع و شراء کې رښتیاویل د برکت سبب دی

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ حَكِيْمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلْبَيِّعَانِ |
| حکیم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ابن حزام وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل اخستونکې او خرڅونکې دواړو ته |

بِالْخِيَارِ

(د تجارتي معاملې ساتولو يا فسخ كولو) اختيار حاصل وي (خو دا اختيار تر هغه وخت پورې حاصل

مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا

وي) تر كومې چې هغوى جدا شوى نه وي او (يا دو ساتى) كله چې اخستونكى او خرڅونكى دواړه

فَإِنْ صَدَقَا وَ بَيَّنَا

(د اخستونكې شي كې) رېښتيا ووايي او (په هغه شي كې چې كوم عيب او نقصان وي هغه) ښكاره

بُورِكَ لَهُمَا فِي بَيْعِهِمَا

كړي (چې د دهوكې او فريب دخل په كې نه وي) نو د هغوى په تجارتي معامله كې بركت اچولى كېږي

وَ إِنْ كَتَمَا وَ كَذَبَا مُحِقَتْ بَرَكَةُ بَيْعِهِمَا.[1]

او كله چې هغوى عيب پټوې او دروغ وايي نو د هغوى د اخستلو او خرڅولو نه بركت ختم كړى شي.

## غبن فاحش سره بيع فاسده كېږي

﴿۳﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَجُلٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي أُخْدَعُ فِي الْبُيُوعِ

ابن عمر رضي الله عنه وايي چې يو سړى ته نبي كريم صلى الله عليه وسلم ووېل چې زه ډېر دهوكه كېږم په اخيستلو او

فَقَالَ : " إِذَا بَايَعْتَ

خرڅولو كې، نبي كريم صلى الله عليه وسلم هغه ته وفرمايل چې ته (كله) د اخستلو او خرڅولو معامله كوې نو

فَقُلْ : لَا خلابة " فَكَانَ الرَّجُلُ يَقُوْلُه.[2]

نو هغه وخت دا وايه چې (په دين كې) دهوكې (لپاره هېڅ ځاى) نشته نو بيا به هغه سړى همدغه ويل.

**توضيح**: **لاخلابة**: خا باندې كسره ده او ضمه هم ده. دهوكې ته وايي. دا سړى حضرت حبان بن منقذ انصارى ؤ. د ده عمر ۱۳۰ كاله ؤ. ځينې غزواتو كې دا په سر لګېدلى ؤ چې د هغې په وجه د ده قوت خيالى متاثره شوى وو. د ده د اخستلو او خرڅولو سره ډېر شوق ؤ. خو د تجربې نه لرلو په وجه به يې اكثر دهوكه خوړه. د دې خاندان نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته عرض وكړو چې د دې بيع و شراء باندې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۰۹/۴ رقم الحديث :۲۰۷۹، ومسلم في صحيحه ۱۱۶۴/۳ رقم الحديث: ۱۵۳۲/۴۷.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۹۵/۴ رقم الحديث :۲۱۱۷، ومسلم في صحيحه ۱۱۶۵/۳ رقم الحديث: ۱۵۳۳/۴۸.

پابندي ولګوه. نبي کريم صلی الله علیه وسلم چې کله د دې سره خبرې وکړې نو دې وويل. چې يا رسول الله صلی الله علیه وسلم زه بيع و شراء نشم پرېښودلی. نو هله ورته نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې کله بيع و شراء کوی نو دا وايه لاخلابة يعني ما سره به دهوکه نه کېږي. که چا دهوکه وکړه نو تر درې ورځو پورې به ماسره د واپس کولو اختيار وي. زه به تجربه کارو خلکو ته دهوکه ورکومه. که سودا مناسب وي نو ښه ده ګيني واپس کوم به يې . اى لا خداع في الدين لان الدين النصيحة ګويا کی الفاظ د دې سړی لپاره شرط وو. ځکه ځينې رواياتو کې ولي الخيار ثلاثة ايام الفاظو سره دا لفظ دی. د دې وجې نه خلک د دې سړی سره دهوکی نه ځان ساتلو. د دې مقصد لپاره به دغه الفاظ استعماليدل. ځينې شاحينو د دې حديث دا مطلب اخستې دی. (المرقات ۶/۴۶)

ځينې شارحينو ليکلي دي چې لاخلابة ويلو سره خلابة ايخودل شرط نه دي. بلکې د خيار شرط لپاره دا الفاظ د تمهيد په طور ؤ. د شرط ذکر به جدا ؤ. د جمهورو په نز د لفظ نه خيار شرط مراد نه ثابتېږي. د دې ذکر جدا کرل ضروري دي. د دې لفظ ويلو سره به مقصد فقط دومره ؤ. چې خلکو ته معلومه شي چې دا سړی تجربه کار نه دی نو بايد د دې سره دهوکه ونه کړی شي. هغه وخت به خلک ښه وو. د دې وضاحت نه وروسته به يې دهوکه نه کوله. اوس فقهي نقطه نظر سره امام احمد وايي . که چا بيع په وخت کې دا لفاظ وويل او بيا هم د هغې سره دهوکه وشوه نو هغه بيع به فسخ کېږي. جمهور علماء وايي چې که داسې صورت کې بيع فسخ نه شي کيدی. خو د احناف د دې قائل دي. که د چا سره غبن فاحش وشو نو هغه لره حق دی چې بيع فسخ کړي. ملا علی قاري رحمه الله ليکلي :

**اقول الغبن الفاحش يفسد البيع و يثبت الخيار عند القائل به و قال ابو ثور اذاكان الغبن فاحشا لا يتغابن الناس بمثله فسد البيع (المرقات ٦/٤٦)**

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د خيار مجلس نفي باندې دليل

| |
|---|
| ﴿٤﴾ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه نه نقل کوي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل : |
| اَلْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ |
| اخستونکی او خرڅونکی دواړه (ترهغه وخت پورې بيع ساتلو يا فسخ کولو) اختيار لري ترڅو چې |

| يَتَفَرَّقَا | إِلَّا | أَنْ | يَكُونَ | صَفْقَةَ | خِيَارٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| دا جدا نه شي مګر دا چې د دوی د بيع و شراء خيار وي (نو په هغې کې د جدا کيدو نه وروسته هم اختيار پاتې | | | | | |

| وَلَا | يَحِلُّ | لَهُ | أَنْ | يُفَارِقَ |
|---|---|---|---|---|
| وي) او په دې دواړو کې هيڅ يو لپاره (د تقوی د مخې) دا جائز نه دې چې هغوی معامله کولو سره و د رپړي | | | | |

| صَاحِبَهُ | خَشْيَةَ | أَنْ | يَسْتَقِيلَهُ .[1] |
|---|---|---|---|
| د دې ويرې نه چې بل فريق د معاملې د فسخ کولو اختيار و نه غواړي (يعنې تر کومه پورې چې بل | | | |
| فريق بنه مطمئن نشي په ايجاب و قبول کې په هغوی کې د هيڅ يو لپاره په کار نه دې چې هڅې نه چې | | | |
| دويم فريق معامله فسخ نه کړي ، يا په معامله کې په دوي کې يو سړی فقط د دې وجې نه زر لاړ شي | | | |
| چې چرته دويم فريق د فسخ کولو اختيار شرط و نه غواړي). | | | |

**توضيح:** خشية ان يستقيله اى يطلب منه الاقالة وهو ابطال البيع قال علي القاري وهو دليل صريح لمذهبنا لان الاقالة لاتكون الابعد تمام العقد ولوكان له خيار المجلس لماطلب من صاحبه الاقلة (المرقات ۶/۴۸)

| ﴿۵﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : لَا يَتَفَرَّقَنَّ اثْنَانِ |
|---|
| ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل نه دې جدا کيږي اخستونکی او خرڅونکی |
| إِلَّا عَنْ تراضٍ .[2] |
| دواړه په خپل مينځ کې د رضامندی نه بغير. |

**توضيح:** الا عن تراض: يعنې متعاقدينو کې هر يو دې بل ته دا و وايي چې آيا ته خوشحاله يې، خفه خو به نه يې، نو د ايجاب و قبول نه وروسته به عقد پوره شي. بيا به چاسره د عقد د فسخ کولو حق نه وي. خو دا کلام د اخلاقياتو د قبيلې نه دی چې يو استحبابي حکم دی. (المرقات ۶/۴۹)

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۷۳۶ رقم الحديث :۳۴۵۶

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۷۳۷ رقم الحديث :۳۴۵۸

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د خیار شرط د وخت مقدار

| |
|---|
| ﴿٦﴾ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ خَيَّرَ أعرابيّاً |
| جابر رَضِيَاللهُعَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّىاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ اختيار ورکړې ؤيو باندچي ته پس دا خستلو او د خرڅولو |
| بَعْدَ الْبَيْعِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ[1] |
| د معاملې نه (د بل فريق په رضامندۍ سره د دې معاملې د فسخ کولو). |

**توضيح: خير اعرابيا:** د دې حديث نه معلومه شوه چې د خيار مجلس هيڅ څه قانوني حيثيت نشته دی ګيني نبي کريم صَلَّىاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ به هغه سړي له اختيار نه ورکولو. بلکې هغې ته به خپله د خيار مجلس حق حاصل وی. وس پاتې شوه د خيار شرط خبره نو دا داسې وګڼې چې په يو عقد کې د خيار عقد شرط ايخودل او د شريعت د مخې جائز دی. پدې باندې د ټولو فقهاؤ اتفاق دی. خو دا ده چې د خيار شرط په نيټه ايخودلو کې اختلاف دی. اما ابو حنيفه رَحِمَهُاللهُ او امام شافعی رَحِمَهُاللهُ د درې ورځو پورې د خيار شرط قائل دي. د دينه د ډيرو ورځو قائل ندي. امام احمد او صاحبين وايي چې د بائع او مشتري خوښه ده چې څومره نيټه لپاره خيار شرط لګول غواړي. ايخودلی شي.
د امام مالک رَحِمَهُاللهُ په نز د نيټې مقرره ول مناسب ندي بلکې د ضرورت مطابق لګه ډېره مده کيدلی شي. دارومدار په مبيعاتو باندې دی. لهذا کور او زمکه کې شپږ دريش (۳۶) ورځې دي. غلام کې لس (۱۰) ورځې دي. د کور په سامان کې پنځه (۵) ورځې خيار شرط دی، او په څاروو کې تر دووو (۲) ورځو پورې خيار شرط حق حاصل دی).

**نوټ:** الحمد لله د **کتاب البيوع** نه تر **کتاب الربوا** پورې د احاديثو توضيح او تشريح مکه مکرمه کې په رمضان ۱۴۲۵ هجری کې ليکلی شوې ده.



(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۵۵۱ رقم الحديث ۱۲۴۹

۳ جمادی الثاني ۱٤۱۰ھ

# کتاب الربوا
# د سود بیان

قال الله تعالی: ﴿وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَا﴾(سورة بقره آیت: ۲۷۵)

قال الله تعالی: ﴿يَمْحَقُ اللَّهُ الرِّبَا وَيُرْبِي الصَّدَقَاتِ﴾(سورة بقره آیت: ۲۷٦)

**د ربوا تعریف**: د ربا الف مقصوره سره ربا یربوا د نصر نه دی. د عرب مشهور قبائل اهل هیره په لغت کې دا لفظ واو سره ربوا لیکلی کیږي. بیا اهل هیره د اهل حجاز ته دا لغت وخودلو. لهذا په مصاحفو کې دا لفظ واو سره لیکلی شوی دی. د عربو په لغت کې دا لفظ "رماً" په میم سره دی. هغه هم رباً دی. رباً ته "ربیة" هم وایي. لغت کې ربا زیادت او ډیر والي په معنی دی. د ربا اصطلاحی تعریف داسې دی. اَلرِّبَا فَضْلٌ خَالٍ عَنِ الْعِوَضِ شُرِطَ لِأَحَدِ الْعَاقِدَيْنِ. (المرقات ٦/٥٠)

میر سید سند شریف رَحِمَهُ اللَّهُ په خپل کتاب التعریف کې د ربا همدغه تعریف لیکلی دی.

ځینو علماؤ دا تعریف کړی دی "الربا هو مبادلة المال بالمال مع الفضل بلاعوض"

ربا یو عام مفهوم دی. چې په هغې بغیر له څه عوض نه اضافی مال اخستلو کیږي. د مروجه سود په خاخونو کې یو یو خاخ او د هغې په قسمونو کې یو قسم دی. لهذا د ربوا ترجمه د سود په نه په کولو سره په هغې کې منحصر کول غلط فهمي جهنم ورکوي.

**د لفظ ربا اطلاق**: په قرآن او حدیث کې د ربوا لفظ پنځه مفهوماتو او د پنځه معاګانو لپاره ویل شوی:

۱: اول مفهوم **رِبَا النَّسِيئَةِ** ده. او د همدغي نوم ربا بالقرض هم دی. چې په قرآن کې الله تعالی حرام کړی دی. او د سورت بقره په آخري حصه کې د دې په حرمت باندې څو آیاتونه نازل شوي دي. لکه د سورت بقري آیت ۲۷۵ او آیت ۲۷۸ او آیت ۲۷۹ او آیت ۲۸۰ کې پوره تفصیل ذکر دی.

د ربا بالقرض صورت دا وي چې یو سړی بل سړی ته تر معلومي نیټې پورې په قرض روپۍ ورکولي. او شرط به یې دا ایخودلو چې کله قرض بېرته راکوي نو دومره پیسه به راکوي او که ټاکلي شوي وخت پورې دي قرض بېرته رانکړو نو بیا به د هغې دوه چنده راکوي. مثلاً دوه زره (۲۰۰۰) په ځای به څلور زره (۴۰۰۰) راکوي. په جاهلیت کې د ربا همدغه صورت مشهور وو. او قرآن عظیم کې د دې په حرمت باندې آیتونه نازل شوي دي. نن سبا په ربا بالقرض باندې سودي کاروبارونه په بنه

زور سره روان دی.

۲: رباالفضل: د ربا دويم قسم او د هغې دويم اطلاق ربا الفضل باندې کېږي چې هغې ته ربا المعاملات هم ويل کېږي. متحد الجنس و النوع او متحد القدر شيانو په بدلون کې چې کوم ډير مال حاصلېږي هغې ته ربا الفضل وايي. د ډيرو احاديثو تعلق د دې قسمه سره دی. لکه د يو سير غنمو په بدل کې دوه سره غنم اخستل او يا داسې نور نور شيان، تفصيل مخکې راروان دی.

۳: ربوا العطية: د ربوا دريم قسم او د هغې دريم اطلاق ربوا العطية باندې کېږي. د دې صورت دا وي چې مثلاً يو سړی بل سړي ته څنده ورکوي خو په زړه کې يې دا خيال ښه پرخ وي چې ماته به د دې په بدل کې ډېره ملاوېږي. نو د دې لپاره په قرآن کې دا آيت دی.

﴿وَمَآ آتَيْتُم مِّن رِّبًا لِّيَرْبُوَ فِي أَمْوَالِ النَّاسِ فَلَا يَرْبُو عِندَ اللَّهِ﴾(سورت روم آيت: ۳۹)

۴: ربو الاعمال: د ربوا څلورم اطلاق په هر ناجائز مالي معامله باندې هم کړلی شوی دی. چې په کوم کار د ډيروالي معنی وموندلی شي لکه څنګه چې د قرآن آيت دی چې د يهودو په مذمت کې نازل شوی دی: ﴿وَأَخْذِهِمُ الرِّبَا وَقَدْ نُهُوا عَنْهُ﴾(سورت نساء آيت: ۱۴۵)

۵: د ربا پنځم اطلاق کله کله په په هغه ناجائزه کار باندې شوی دی چې په هغې کې د زيادت معنی وي. لکه څګه چې په يو حديث کې دي "ان اربى الربوا استطالة الرجل فى عرض اخيه" (الحديث)

په قرآن و حديث کې د ربوا دا پنځه اطلاقونه راغلی دي خو شريعت چې کوم شی سود او ربوا ګڼلي دہ. هغه فقط اولني دوه قسمه دي. يعنې رباالقرض او ربا الفضل، د دې دووو قسمونو د لاندې سودي کاروبارونو ټول قسمونه راځي. په همدغي کې ربا الدهن داخل دی. که چري يو د مرهونه شي نه استفاده کوي او رأس المال محفوظ وي. نو پاس ذکر شوې دوه قسمونونه د قرآن وحديث په او د امت په اجماع سره مطلقًا حرام دي. په قرآن کريم کې الله تعالى ربوا القرض بيان کړی دی. او حرام يې ګڼلی دی. تورات او زبور پشان اسماني کتابونو کې هم دا حرام ګڼلی شوي دي علامه

جصاص د ربوا القرض تعريف داسې کوي: هو القرض المظروط فيه الاجل وزيادة مال على التقرض، يعنې ربا القرض دې وايي چې چاله مال ورکړی شو. او په هغې بېرته ورکولو وخت مقرر کړی شو. خو په مقروض باندې په قرض ورکو کې څه مال ډير مقرر کړو. علماؤ ليکلي دي چې په قرآن کې چې الله تعالى په څومره سختۍ سره د ربوا وعيدونه ذکر کړی دي هغه همدغه رباالقرض په صورت کې دہ. په وخت د جاهليت کې هر ګس و نا ګس په دي پوهيدلو چې کله چې د قرآن آيتونه نازل شول نو

خلکو هم دغه قسمه ربا پرېښودله. لهذا نن سبا د ملحدينو دا ويل هېڅ معنی نه لري چې قرآن د قرض نه بغير په د يو بل صورت ترديد کړی دی. او ربالقرض جائز ده.

علماؤ ليکلي دي چې نن سبا په بينکونو کې چې کوم کاروبار دی. هغه د همدغه قسم نه دی. چې د چانه قرض واخلي يايې ورکړي. او په واپسۍ کې د مال سر هم واخلي او د سو د په توګه اضافه روپۍ هم ورکړي. د زمانه جاهليت د سود کاروبار هم همدغه شان وو. او په قرآن کريم همدغه صورت بيان شوی دی. او همدغه حقيقي سود او ربوا ده.

**د بينکونو ظلم**: د مرستي او همدردۍ په نوم چې د دنيا بېنکونه کوم ظلم کوي. د هغې معمولي شان نندارې تاسو داسې وګڼئ. که چرې په انصاف سره وکتلی شي او بيا د بېنکونو نه پوښتنه وکړی شي چې کوم غريب ته بينک قرض ورکړی دی، آيا دا بينک فقط د دې غريب سره مرسته کوي. يا په شراکت سره کاروبار کوي. که د بينک له اړخ فقط د غريب سره مرسته کول مقصد وي. نو بينک کله يو کال يا دوه کله وروسته خپله قرضه اخلي. نو د انصاف او همدردۍ تقاضا خو دا ده چې بينک فقط خپله قرض بېرته واخلي. دا بينک د غريب په شرح سود کې ډېرې روپۍ ولي اخلي؟ معلومه شوه چې د خپل همدردۍ دعوی کې دروغ جن دی. همدغه شان وګڼئ چې سړی هم دروغ جن ظالم دی. چې کوم غريب ته مرستي په نوم قرض ورکوي او بيا په هغې باندې ډيرې روپۍ اخلي. او که بينک د يو غريب روپۍ په بينک کې ځکه جمع کړي دي چې د هغې سره د ګټې په شراکت وکړي، نو د انصاف تقاضا خو دا ده چې بينک د دې غريب په ګټه او تاوان کې شريک شي. حال دا چې هغه داسې نه کوي. معلومه شوه چې د بېنکونو دا دعوی چې د غريبانانو سره مرسته کوو. دروغ جنه دعوی ده. د هغوی کاروبار دروغ جن دی. د هغې چلونکې دروغ جن دي. او سود يو داسې ناسور دی. چې په هغې سره د غريبانانو د بدن ويني ځکلی کېږي. وس ووايې چې آيا دا بېنکونه د غريبانانو د سهولت لپاره دي؟ هېڅ کله نه، بلکې اوس خو د دنيا آئی ايم ايف د مسلمانانو ملکونو حکمرانانو په ايمان سودا کوي او قرض ورکوي. د ربوا دويم قسم ربوا المعاملات او ربا الفضل دی. چې د هغې تفصيل د دې باب په حديث ۲ کې راتلونکی دی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### د سود په لين دين کې څلور کسان لعنتي کيږي

﴿۱﴾ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: لَعَنَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اٰكِلَ الرِّبَا وَمُؤْكِلَهُ

جابر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم لعنت فرمايلي دي په سود اخستونکې او سود ورکونکې

| وَ | كَاتِبَهُ | وَ | شَاهِدَيْهِ | وَ | قَالَ | : |
|---|---|---|---|---|---|---|
| د سود د لین دین لیکونکي او د دې په ګواهونو باندې، او دغه شان نبي کریم ﷺ وفرمایل | | | | | | |
| هُمْ | سَوَاءٌ .[1] | | | | | |
| دا (په اصل ګناه کې) برابر دي (اګر که د مقدار په اعتبار سره جدا دي). | | | | | | |

**توضیح**: **وشاهدیه**: یعنې د سود په لین دین باندې ګواهي ورکونکې هم لعنتیان شي. د دې نه معلومه شوه چې د سود په کاروبار کې هر قسمه مرسته کولو سره سرې په سود کې برابر ګڼلی کېږي. لهذا په دې کې هر قسم تعاون کول حرام دي د بینکونو د مختلف شعبو کار ندې دې کې خه سوچ او کړئ چې هغوي خو چرته په دغه کار کې معاون خو نه جوړېږي. (المرقات ۶/۵۱)

## د کومو شیانو په لین دین کې سود راځي

| ﴿۲﴾ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ وَ |
|---|
| عباده ابن صامت رضي الله عنه وايي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل "سره زر د سرو زرو په بدل کې او |
| الْفِضَّةُ بِالْفِضَّةِ وَ الْبُرُّ بِالْبُرِّ وَ الشَّعِيرُ بِالشَّعِيرِ وَ التَّمْرُ بِالتَّمْرِ وَ الْمِلْحُ بِالْمِلْحِ |
| سپین زر د سپین زرو په بدل کې او غنم د غنمو په بدل کې او وربشې د وربشو په بدل کې او مالګه د مالګې |
| مِثْلًا بِمِثْلٍ سَوَاءً بِسَوَاءٍ يَدًا بِيَدٍ |
| په بدل کې ورکړی شي نو دهغې لین دین (مقدار) کې مثل پشان د مثل یعنې برابر او لاس په لاس پکار |
| فَإِذَا اخْتَلَفَتْ هٰذِهِ الْأَصْنَافُ |
| دی او کچرې دا قسمونه جدا وي (مثلاً د غنمو په بدل کې جوار یا د جوارو په بدل کې کهجورې) نو |
| فَبِيعُوا كَيْفَ شِئْتُمْ |
| بیا اجازت شته دی څنګه چې وغواړئ اخستل او خرڅول وکړئ (یعنې برابر او یو شان ضروري نه ده). |
| إِذَا كَانَ يَدًا بِيَدٍ.[2] |
| د لین دین لاس په لاس (په دغه صورت کې هم) ضروري دي. |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۲۱۹ رقم الحديث: ۱۰۶-۱۵۹۸

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۲۱۱ رقم الحديث: ۸۱-۱۵۸۷

**توضيح:الذهب بالذهب**: كه يباع فعل محذوف ومنلى شي نو **الذهب** به د دې نائب فاعل مرفوع وي او كه بيوع د امر صيغه محذف ومنلى شي نو الذهب ته به منصوب وي. تر آخره پورې اعراب داسې وي. د دې حديث لپاره اول په دې پوهه كيدل پكار دي. چې د جنس او قدر مطلب څه دى؟ تاسو داسې وګڼئ چې د لين دين او د تجارت چې د كوم شيانو سره تعلق وي نو هغ درې قسمه دي. ۱: يا خو د دې لين دين په وزن سره وي ۲: يا د كوم لوخي سره په تول باندې وي. ۳: يا هغه شيان نه په پيمائش كې راځي او نه په وزن كې راځي. (المرقات ۶/۵۲)

د اولني قسم مثال د سرو او د سپينو زرو او داسې نورو شيانو سره دى. هغې ته موزوني وايي . د دويم قسم مثال غله ده. ديته مكيلى وايي . د دريم قسم مثال هغه شيان دي چې په هغې كې نه وزن وي او نه پيمانه وي. بيا دا خبره هم په ذهن كې ساتل پكار ده چې شريعت كوم شيانو ته موزوني يا مكيلى ويلي دي، هغه به هميشه موزوني او مكيلي وي. د زمانې په بدليدلو سره دا نه بدلېږي او نه د خلكو رواج دا بدلوى شي. بيا په دې خبره هم پوهه شئ چې په يو شي كې د وزن او كيل صفت ته قدر وايي . و د يو شي حقيقت او ماهيت ته جنس وايي . مثلاً د غلې غله كيدل د هغې حقيقت دى. د توتې توته كيدل د هغې حقيقت دى. د سپينو زرو سپين زر كيدل د هغې حقيقت دى. همدغه حقيقت او ماهيت ته جنس وايي . نو د لين دين شيانو په قدر كې راځي. او يا په جنس كې راځي. نور وضاحت به راروان تفصيل مذاهب كې راځي. اوس زير بحث حديث طرف ته راشئ پدې حديث كې د شپږو (۶) شيانو ذكر دى. پدې كې سود هم راځي. لهذا نه پدې تفاضلاً تبادله جائز ده او نه نسيئة تبادله جائز ده. وس د فقهاء كرامو په رائى كې اختلاف راغلو. چې آيا دلته تفاضل او نسيئة د خرڅولو چې كوم ممانعت دى. دا همدغه شپږ شيانو پورې محدود دى. او كه د دينه بغير پهو نورو شيانو كې به هم د سود حكم روان وي. د غير مقلدينو روحاني پيشوا داوود ظاهرى او د هغې نه علاوه شيه قتاده او طاووس دا خيال دى چې د سود د ممانع حكم په همدغه شيانو پورې محدود دى. د دينه بغير بل د هيڅ يو شي اړخ ته به د علت ممانعت متعدي نه وي. د دې نتيجه به دا روزي. چې د هغوى په نز به د وګې په بدل كې وړى كې به تفاضل جائز وي. ځكه په حديث كې وړي نوم ندى راغلى. همدغه شان معامله د وريجو او د داسې نورو شيانو دا. ګويا كې چې په احاديثو كې د كومو شيانو نومونه ندي راغلي. هغه په خپل اصل حلت كې پاتې كېږي. د دې حضراتو نه بغير ټول فقهاء كرام او ائمه اربعه په دې باندې متفق دي. چې ددې شپږو شيانو د حرمت وجه د څه علت دوجي نه دى كه هغه علت په نورو شيانو كې وموندلى شو. نو په هغې به هم د سود حرمت راځي. اوس پدې شپږ شيانو كې د حرمت د علت كتلو كې او د دې په متعين كولو كې د دې فقهاؤ په مينځ

کې د خپل خپل اجتهاد په رڼا کې اختلاف پیدا شوی دی. هر د یو د خپل اجتهاد په رڼا کې کې د علت تعین کړی دی. دلته دا خبره هم په ذهم کې وساتئ چې پدې شپږو شیانو کې د سرو زرو او د سپینو زرو بېل علت دی. او په نور څلور شیانو کې علت بېل دی. اوس د فقهاؤ د اختلاف کتنه وکړئ. (المرقات ۶/۵۲)

**دسود په علت راویستو کې دفقهاؤ اختلاف**: د شوافع په نزاو په یو قول کې امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد پدې شپږ شیانو کې علت ثمنیت او طعم یعنې ذغذائیت دی. ذهب و فضه کې د ربا علت ثمنیت دی. او پاتې څلورو کې طعم یعنې غذائیت دی. د دې قول و علت په رڼا کې د دې حضراتو په نز ربا الفضل او ربا المعاملات ټولو کې به مطعومات کېږي. اگر که هغه مطعوم مکیلي وي یا موزوني یا عددی وي په ټولو کې به سود راځي. مثلاً انار، مڼه، چارمغز (غوځان) او هګۍ. کوم چې عادي شیان دي. په ټولو کې به سود راځي. همدغه شان به په ترکاریانو کې هم سود راځي. او که مطعوم ندي اوسپنه ده، ستیل دي، تانبا ده نو پدې کې به سود نه راځي. (المرقات ۶/۵۲)

۲: د مالکیو په نزد دشپږو شیانو په حرمت سود کې علت ثمنیت او قوت اوادخار دی په اولنو دوو کې ثمنیت علت دی په نورو څلورو کې قوت اوادخار علت دی د قوت مطلب د خوړلو شی دی او ادخار مطلب دا دی چې په اکثر کال کې هغه محفوظ پاتې کیدی شي لهذا ترکاري او میوه او داسې نورشیانو کې به سودنه وي ځکه داشیان پائیدارنه دي چې ذخیره کړی شي اگرکه پدې کې قوت دی.

۳: د احنافو ائمه او په یو قول کې امام احمد وایي چې پدې شپږ شیانو کې د حرمت سود د علت قدر مع الجنس دی. لکه څنګه چې مخکې لیکلی شوي دي چې د قدر اطلاق موزوني او مکیلی په دواړو شیانو باندې کېږي. نو پدې شپږ شیانو کې په اولنو دوو شیانو کې علت وزن دی. لهذا د دنیا ټول موزوني شیانو کې به سود کېږي. په پاتې څلورو شیانو کې د حرمت سود د علت کیل دی. لهذا د دنیا په ټولو مکیلی شانو کې به سود کېږي. (المرقات ۶/۵۲)

اوس د مع الجنس مطلب دا شو چې چرته وزن مع الجنس وموندلی شو نو هلته به دواړو اړخونو ته سره زر وي او سپین زر وي. نو په هغې کې وزن هم دی او جنس هم دی. پدې صورت کې د دې د اخستلو او خرڅولو کې تفاضل هم حرام دی او یو نقد او دویم قرض هم حرام دی همدغه صورت او همدغه حکم د وکیل مع الجنس هم دی مثلاً غنم دي، په مقابله کې هم غنم دي اوس دواړه مکیلی دي او جنس هم متحد دی لهذا تفاضلاً هم پدې کې حرام دي او په قرض کولو کې هم پدې کې حرام دي.

د دې قانون په رڼا کې د حرمت سود د حکم د هر موزون او د هر مکیلی شیانو پورې به عام شي. هغه که مطعومات د قسم نه وي او که د غیر مطعوماتو نه وي لکه څنګه چې غله ده یا چونا ده یا ډوډی

ده یا وري ده یا پیتل او تانبا وي. پدې شیانو کې د جنس او د قدر د اتحاد او د اختلاف د وجې نه د دې په حکم باندې اثر کوي. (المرقات ۶/۵۲) دلته ټول څلور صورتونه جوړیږي.

۱: که په دوه شیانو کې اتحاد جنس هم وي او اتحاد قدر هم وي مثلاً د زرو په بدل کې زر وي او د غنمو په بدل کې غنم وي، پدې کې دوه شیان ناجائزه دي یعنې تفاضل هم ناجائزه دی. او قرض کول هم ناجائزه دی. او که لاس په لاس وي او برابر وي نو جائز ده.

۲: که اتحاد جنس وي او اتحاد قدر نه وي مثلاً که هګو په بدل کې هګۍ وي، نو پدې کې تفاضل جائز دی. هګۍ نه مکیلي دي او نه موزوني دي. پدې کې تفاضل جائز دی مګر قرض کول په کې ناجائزه دی.

۳: که اتحاد قرض وي او اتحاد جنس نه وي مثلاً د وریجو په بدل کې چڼې دي قدر شته دی. چې دواړه مکیلي وي. خو اتحاد جنس نه دی. وریجې بېل جنس دی او چڼې بېل جنس دی. پدې کې هم تفاضل جائز دی مګر قرض په کې ناجائزه دی.

۴: که نه اتحاد جنس وي او نه اتحاد قدر وي لکه په هګو په بدل کې چارمغز وي نو پدې کې تفاضل هم جائز دی او قرض اخستل او ورکول هم جائز دی. د احنافو په نز په په شپږو شیانو کې اولي دوه شیان موزوني دي او نور څلور شیان مکیلي دي. دا خبره څو ځله لیکلې شوې ده چې د قدر نه مراد وزن او کیل دی. او کوم شیان ته چې شریعت موزوني یا مکیلي ویلي دي هغه به همیشه همغه شان وي اګر که د خلکو رواج بدل شوی وي.

**دلائل:** شوافعو وویل چې په مال کې بنیادي صفت د هغې ثمنیت دی چې په کوم سره د مال بقاء تړلې ده. او د انسانانو بقاء د خوراک سره تړلې ده. لهذا پدې حدیث کې د حرمت سود لپاره ثمنیت او طعم د علت په توګه بیان کړی شوی دی. مالکیه وایي چې پدې حدیث کې که فقط د طعم اړخ ته اشاره کول مقصود وی نو فقط یو د مطعوم ذکر کول بس وو. د څلورو د ذکر کولو ضرورت نه وو. چې د څلورو ذکر وکړی شو نو معلومه شوه چې د طعم نه علاوه د بل شي اړخ ته هم اشاره کول مقصود ده او هغه ادخار دی. تو د سود حرمت د علت ثمنیت سره د قوت و ذخیره کول هم دی. مالکیه وایي چې په ذکر شوې حدیث کې د ذکر شوې شیانو ترتیب داسې جوړ شو چې د غنم او د جوارو کولو په وجې سره د اقسام حُبوب اړخ ته اشاره ده. او د تمر نه ټول د ذخیره کولو حلاوات اړخ ته اشاره ده. لکه شهد او داسې نور شیان او د مالګه نه ټول مصالحه جاتو اړخ ته اشاره کړی شوي ده. (المرقات ۶/۵۲)

د احنافو ائموو د ذکر شوې حدیث د اشاراتو نه په استباط او اجتهاد کولو سره د جنس او د قدر د حرم سود لپاره علت جوړ کړی دی. او دا اجتهاد ډیر مناسب او جامع ده. د مسلم شریف په څنې

احادیثو کې لفظ د وزن او د کیل صراحت شتون لري. چې د دې علت تائید دی. (المرقات ۶/۵۲)

﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ وَ

ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: سره زر د سرو زرو په بدله کې او

الْفِضَّةُ بِالْفِضَّةِ وَ الْبُرُّ بِالْبُرِّ وَ الشَّعِيرُ بِالشَّعِيرِ وَ التَّمْرُ

سپین زر د سپین زرو په بدل کې او غنم د غنمو په بدل کې او وربشې د وربشو په بدل کې او کهجورې

بِالتَّمْرِ وَ الْمِلْحُ بِالْمِلْحِ مِثْلًا بِمِثْلٍ يَدًا بِيَدٍ

د کهجورو په بدل کې او مالګه د مالګې په بدل کې نو د دې لین دین برابر او لاس په لاس په کار دی.

فَمَنْ زَادَ أَوِ اسْتَزَادَ فَقَدْ أَرْبَى

لهذا چا چې (داسې و نه کړل بلکې) د یریې ورکړو یا یې د یرو غوښتل او و اخیستل او هغه سود و اخستلو

الْآخِذُ وَ الْمُعْطِي فِيهِ سَوَاءٌ.[1]

نو اخستونکی او ورکونکی دواړه په دې کې برابر دي.

﴿۴﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَبِيعُوا الذَّهَبَ بِالذَّهَبِ

ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل سره زر د سرو زرو په بدل کې مه خرڅوی

إِلَّا مِثْلًا بِمِثْلٍ وَلَا تُشِفُّوا بَعْضَهَا عَلَى بَعْضٍ وَلَا تَبِيعُوا

مګر که دا دواړه په وزن کې برابر وي لهذا دواړو کې کمي یا زیاتی مه کوی، همدغه شان مه خرڅوی

الْوَرِقَ بِالْوَرِقِ إِلَّا مِثْلًا بِمِثْلٍ وَلَا تُشِفُّوا بَعْضَهَا عَلَى بَعْضٍ

سپین زر د سپینو زرو په بدل کې مګر که دا دواړه په وزن کې برابر وي لهذا په دواړو کې زیاتې او کمې مه

وَلَا تَبِيعُوا مِنْهَا

کوی، همدغه شان که په دې (سرو او سپینو زرو) کې د چا په خپل مینځ کې لین دین داسې نه وي چې

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۲۱۱ رقم الحديث ۸۲ ۱۵۸٤

| غَائِبًا بِنَاجِزٍ.(۱) |
|---|
| يو يې نغد ورکړي او بل يې قرض ورکړي. |
| وَفِي رِوَايَةٍ: لَا تَبِيعُوا الذَّهَبَ بِالذَّهَبِ وَلَا الْوَرِقَ بِالورق إِلَّا وزنا بِوَزْن. |

**توضيح**:ولا تشفوا: ملا علی قاري رَحِمَهُ‌اللهُ ليکلي د دې لفظ ترجمه لاتفضلوا ده يعنې برابر لين دين وکړئ، زياتوالی مه کوئ، وي ويل چې دا جمله د ماقبل مثلاً بمثل لپاره تاکيد دی. او "ها" د ضمير ذهب ته راجع ده. دې ته د مؤنث ضمير هم راړول کيدی شي. ورق: سپين زرو ته وايي په را باندې کسره ده. دې طرف ته د مؤنث ضمير د فضة په اعتبار سره راړول شوی دی. (المرقات ۶/۵۳)

**غائبا**: قرض ته غائب ويلی شوی دی. **ناجز**: حاضر او نغدو ته ناجز ويلی شوی دی.

## د هم جنسه شيانو بدلون هم برابر په کار دی

| ﴿۵﴾وَعَنْ مَعْمَرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ: كُنْتُ أَسمع رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: الطَّعَامُ |
|---|
| معمربن عبد الله رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهُ وايي چې ما د نبي کريم صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ نه اوريدلي چې فرمايل يې: غذا په بدله |
| بِالطَّعَامِ مِثْلاً بِمِثْلٍ.(۲) |
| د غذا کې (يعنې غله د هم جنس غله په بدله) کې واخستلی شي نو دا لين دين برابر په کار دی. |

## په هم جنس شيانو کې د قرض لين دين ناجائز دی

| ﴿۶﴾وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ |
|---|
| عمر رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ وفرمايل د سروزرو تبادله د سرو زرو سره (که برابرهم وي) |
| رِبًا إِلَّا هَاءَ وَ هَاءَ |
| سود دی مگر که دا لين دين لاس په لاس وي (يعنې که دواړه جانبين برابر په برابره او لاس په لاس لين |
| وَ الْوَرِقُ بِالْوَرِقِ رِبًا إِلَّا |
| دين وکړي نو بيا سود نه دی) همدغه شان د سپينو زرو د سپينو زرو سره تبادله سود دی مگر که دا لين دين |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۷۹/۴ رقم الحديث: ۲۱۷۷، ومسلم في صحيحه ۱۲۰۸/۳ رقم الحديث: ۱۵۸٤/۷۵.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۲۱٤/۳ رقم الحديث: ۱۵۹۲/۹۳.

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِالشَّعِيرِ | الشَّعِيْرُ | وَ | هَاءَ | وَ | هَاء | إِلَّا | بِالْبُرِّ | الْبُرُّ | وَ | هَاءَ وَ هَاءَ |

لاس په لاس وي غنمو په غنمو سره تبادله سود دی مګر که دالین دین لاس په لاس وي، وربشي د وربشو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رِبًا | بِالتَّمْرِ | التَّمْرُ | وَ | هَاءَ | وَ | هَاءَ رِبًا |

سره تبادله سود دی مګر که دالین دین لاس په لاس وي، د کهجورو د کهجورو سره تبادله سود دی که

إِلَّا هَاءَ وَ هَاءَ.[1]

چري دالین دین لاس په لاس وي.

**توضیح: الاهاء وهاء:** زمخشري په فائق کې لیکلي دي چې دا کلمه د اواز لپاره ده. چې معنی یې خذ ده. لکه هَاؤُمُ اقْرَؤُوا كِتَابِيَهُ کې دي. ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللهُ لیکلي چې دا کلمه ممدود ده یعنې د مد سره ده. او په همزه باندې فتح ده. دا ډېره مشهوره ده. (المرقات ۶/۵۴)

## په اعلی او ردي شي کې هم تفاضل جائز نه دی

﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ وَأَبِي هُرَيْرَةَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَعْمَلَ رَجُلًا عَلَى خَيْبَرَ

ابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راویان دي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ولیږلو یو کس خیبر ته د

فَجَاءَهُ بِتَمْرٍ جَنِيبٍ

عامل په توګه نو کله چې هغه سړی واپس راغلو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته یې ډېرې خائسته کهجورې راوړې

فَقَالَ: أَكُلُّ تَمْرِ خَيْبَرَ هٰكَذَا؟

نبي عَلَيْهِ السَّلَام (چې هغه کهجورې ولیدې) د هغه سړی نه یې تپوس وکړو چې آیا ټولې کهجورې د خیبر

قَالَ: لَا وَ اللهِ يَا رَسُولَ اللهِ

همدغه شان (ښې) وي؟ هغه سړی وویل چې نه! په الله قسم یا رسول الله ټولې کهجورې داسې نه وي

إِنَّا لَنَأْخُذُ الصَّاعَ مِنْ هٰذَا بِالصَّاعَيْنِ وَ الصَّاعَيْنِ بِالثَّلَاثِ

بلکې مونږ داسې کوو چې د دوه صاع کهجورو په بدل کې یو صاع ښې کهجورې او د درې صاع (خرابو)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۴۷/۴ رقم الحديث: ۲۱۳۴، ومسلم في صحيحه ۱۲۰۹/۳ رقم الحديث: ۱۵۸۶/۷۹.

| فَقَالَ : لَا تَفْعَلْ بِعِ الْجَمْعَ |
|---|
| کهجورو په بدل کې (دوه (صاع) کهجوري اخلو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمایل داسې مه کوی بلکې اول ټولې |
| بِالدَّرَاهِمِ ثُمَّ ابْتَعْ بِالدَّرَاهِمِ جَنِيبًا. |
| کهجوري ګډې کړې او د درهمو په عرض يې فروخت کوی او بیا د دې درهمو په عوض ښې کهجوري |
| وَ قَالَ : فِي الْمِيزَانِ مِثْلَ ذَلِكَ.[1] |
| اخلې او بیايې و فرمایل چې تله (یعنې وزن) به اخیستلی او ورکولی کېږي د دې هم همدغه حکم دی. |

**توضیح: تمر جنیب:** دا جمله موصوف او صفت واقع شوي ده. اضافت نه ده. جنیب یو خاص قسمه کهجورو نوم ندی بلکې ښې کهجورو ته وایي . (المرقات ٦/٥٥)

**والصاع بالثلاث:** یعنې بېلابېل نرخو لګي. کله د دوو (۲) صاع په بدل کې یو صاع اخلي او کله د دریو (۳) صاع په بدل کې دوه (۲) صاع اخلي. (المرقات ٦/٥٥)

**بع الجمع:** دراغونډي کړې شوي خرابو کهجورو مجموعي ته ویل شوي دي. یعنې بېکاره کهجوري اول په دراهمو باندې خرڅې کړې او په هغه دراهمو سره بیا ښې کهجور واخلې. د دې حدیث په تعلیم باندې دي هر مسلمان فکر وکړي که چیري په حلالو او په حرامو کې یو سړی فرق کول غواړي او د حرامو نه بچ کېدو کوشش کوي نو دا کار هیڅ مشکل نه دی. بلکې د معمولي حیلي په ذریعې سره سړی د حرامو نه بچ کیدی شي. نن سبا ملحدین وایي چې شرعی احکام په نن سبا دور کې نشي چلیدی د هغوی دا خبره غلطه ده دین په دښمنۍ باندې دی ګیني کار ډیر آسانه دی. (المرقات ٦/٥٥)

**في الميزان مثل ذلك:** یعنې څنګه چې په مکیلی شیانو کې جید او ردي برابر دي همدغه شان په موزوني شیانو کې هم جید او ردي مساوي دي. دا جائز ندي. چې د ښه سرو زرو سره په تبادله کې بېکاره واخستلی شي. ده سود دی. ځکه چې "جیدها وریها سواء" دا واضحه حکم دی. احنافو په شپږ شیانو کې د کیل او وزن د علت په توګه راویستلی دی. د دې تائید د دې لفظ نه کېږي. خکه دلته د وزن واضحه لفظ شتون لري. (المرقات ٦/٥٥)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٣٩٩/٤ رقم الحديث: ٢٢٠١، ومسلم في صحيحه ١٢١٥/٣ رقم الحديث: ١٥٩٣/٩٥.

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ : جَاءَ بِلَالٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يوه ورځ) بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كې نبي |
| بِتَمْرٍ بَرْنِيٍّ. فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مِنْ أَيْنَ هٰذَا ؟ |
| قسمه كهجوري راوړي نونبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې نه تپوس وكړو چې دا دي د چرته نه راوړي ؟ |
| قَالَ : كَانَ عِنْدَنَا تَمْرٌ رَدِيءٌ فَبِعْتُ مِنْهُ صَاعَيْنِ |
| هغوی وويل چې ما سره څه خرابې كهجوري وي په هغې كې ما دوه صاع كهجوري وركړي او په بدل |
| بِصَاعٍ فَقَالَ : أَوَّهْ عَيْنُ الرِّبَا عَيْنُ الرِّبَا لَا تَفْعَلْ |
| كې يو صاع دا (نبي) كهجوري واخيستي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل اوه دا بېخي سود دی دا سې مه كوه خو دا |
| وَ لٰكِنْ إِذَا أَرَدْتَ أَنْ تَشْتَرِيَ فَبِعِ التَّمْرَ |
| ده چې كله ته (نبي كهجوري) بدلوي نو (دا طريقه) خپلوه چې اول (خپلي خرابې) كهجوري خرڅې |
| بِبَيْعٍ آخر ثُمَّ اشْتَرِ بِهِ.[1] |
| كړه (د درهمو يا د روپو په عوض) بيا په هغه درهمو يا روپو باندې نبي كهجوري واخله. |

**توضيح: تمر برني:** برنی د مديني منوري د مشهورو كهجورو نوم دی.

زه د دې حديث تشريح او توضيح دا وخت ۲۰ د شعبان ۱۴۲۵ھ كې د حاجي نورمحمد صاحب په كور كې ليكم. دا كور په مدينه منوره كې د تمرمنډۍ سره واقع دی. والحمد لله، دلته په ټولو كورونو كې د برنی كهجوري شتون لري چې د كومو ذكر په احاديثو كې دی. دا درميانه درجې كې نبي كهجوري دي. (المرقات ٦/٥٧)

**اووه:** دا كلمه د همزې فتحه او واو مشدد او ها ساكنه سره ويل كېږي. د افسوس او پښيمانتيا او د نقصان رسيدلو د ښكاره كولو لپاره دا كلمه ويلی كېږي. (المرقات ٦/٥٧)

**عين الربا:** يعني دا خو خالص سود دی. ځكه د جنس اتحاد سره تفاضل راغلی. (المرقات ٦/٥٧)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰۲/۳، رقم الحديث: ۲۳۱۳، ومسلم في صحيحه ۱۲۱۵/۳ رقم الحديث: ۱۵۹٤.

## د يو غلام په بدل کې دوه غلامان ورکول څنګه دي؟

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : جَاءَ عَبْدٌ فَبَايَعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو غلام (د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په خدمت کې) حاضر شو او بيعت يې وکړو د نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| عَلَى الْهِجْرَةِ |
| سره په هجرت باندې (يعنې ده د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام سره بيعت وکړو چې زه به خپل وطن پرېږدم او د نبي |
| وَ لَمْ يَشْعُرْ أَنَّهُ عَبْدٌ |
| عَلَيْهِ السَّلَام په خدمت کې به حاضريم) او نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته معلومه نه وه چې دا غلام دی (څه ورځې وروسته) |
| فَجَاءَ سَيِّدُهُ يُرِيدُهُ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِعْنِيْهِ |
| دده مالک دا کتلو او راغلو نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته وويل چې دا غلام په ما را خرڅ کړه نو نبي |
| فَاشْتَرَاهُ بِعَبْدَيْنِ أَسْوَدَيْنِ |
| عَلَيْهِ السَّلَام هغه غلام د دوو (۲) تور رنګو غلامانو په بدله کې واخيستو او بيا د هغې نه وروسته نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| وَ لَمْ يُبَايِعْ أَحَدًا بَعْدَهُ حَتَّى يَسْأَلَهُ أَعَبْدٌ هُوَ أَوْ حُرٌّ.[1] |
| د هيچا نه بيعت وانخيستلو چې تر څو پورې به معلومه نه کړله چې هغه غلام دی او که آزاد. |

**توضيح**: دا چې غلام د يو انسان ملکيت وي نو ځکه هغه د مالک د اجازت نه بغير نه جهاد ته تللی شي، نه حج کولی شي او نه هجرت کولی شي. زير بحث حديث کې همدغه مسئله ده چې يو غلام د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاس باندې د هجرت کولو بيعت وکړو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته معلومه نه وه چې دا غلام دی. او د مالک د اجازت ضرورت دی. وروسته د هغې مالک راغلو. د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مکارم (ښه) اخلاقو برداشت نکړی شو چې غلام مايوسه کړي او بېرته يې د مالک په لاس باندې خرڅ کړي. نو ځکه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورله مالک نور دوه غلامان ورکړل او دغه غلام يې واخستلو. په دې حديث کې چې د هجرت دا کوم لفظ راغلی دی. د دې دوه مطلبه اخستلی کيدلی شي. يو دا چې غلام د خپلې علاقې نه د هجرت کولو او د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې د پاتې کېدو بيعت وکړو، ملا علی قاری رَحِمَهُ اللهُ د دې کلام نه دې مطلب اړخ ته معمولي اشاره

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۲۲۵/۳ رقم الحديث: ۱۶۰۲/۱۲۳.

کبرې. اګر که د هجرت دا مفهوم عام ندی، دویم مطلب دا دی چې غلام د مکې نه مدینې ارخ ته هجرت کولو باندې بیعت وکړو. دا مفهوم عام او مشهور دی. د دې حدیث نه دا مسئله هم معلومه شوه چې یو غلام د دووو غلامانو په عرض کې اخستل جائز دي. پدې کې تفاضل جائز دی او د څاروو هم همدغه حکم دی. بلکې د اموال غیرربویه حکم همدغه شان دی. خو پدې شرط چې لین دین په نغدو وي نه دا چې په قرضو وي. په قرضو کې د فقهاؤ معمولي شان اختلاف دی. چې آیا د څاروو په بدل کې څاروي د قرضو په لین دین جائز دی او که نه. د صحابه کرامو رضي الله عنهم یوه طبقه او د تابعینو د یو جماعت په نزد دحیوان په بدل کې حیوان په قرضو اخستل جائز نه دی د امام ابو حنیفه رحمه الله همدغه مسلک دی. دې حضراتو د دې باب حدیث نمبر ۱۶ نه استدلا کړی دی. چې په هغې د قرضو لین دین کولو ممانعت راغلی دی. د صحابو او د تابعینو یوی طبقې دغه شان لین دین کول جائز ګڼلي دي د امام شافعي رحمه الله هم همدغه مسلک دی. دا حضرات د زیر بحث حدیث نه استدلال کوي نورتفصیل به د حضرت سمره رضي الله عنه په حدیث نمبر ۱۶ کې راځي. (المرقات ۶/۵۸)

## د هم جنسه شیانو په لین دین کې تفاضل جائز نه دی

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْهُ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الصُّبْرَةِ مِنَ التَّمْرِ |
| جابر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم منع کړې ده د خرڅولو او اخيستلو د کهجورو د داسې ډهيري |
| لَا يُعْلَمُ مَكِيلَتُهَا بِالْكَيْلِ الْمُسَمَّى مِنَ التَّمْرِ.[1] |
| نه چې مقدار يې معلوم نه وي په بدل د يو معين پيماني د کهجورو باندې. |

**توضیح: الصبرة:** صبرة ډهیرې ته وایي دلته د کهجورو نامعلومه ډهیری مراد ده د بیوعاتو په اصولي قواعدو کې دا دي چې مبیعه معلومه وي، ثمن هم معلوم وي، نو پدې دواړو کې جهالت کول پکار ندي. ځکه په بل وخت کې پدې کې جنجال پیدا کیدی شي. او شریعت د معاملاتو هر هغه صورت کې ناجائزه ګڼلی دی. چې په هغې کې جنګ کیدلی شي. زیر بحث حدیث کې "لایعلم مکیلتها" الفاظ نه دي ارخ ته اشاره ملاوېږي چې کله د ډهیري کهجورو مقدار معلوم نه وي نو په هغې د کمیدلو او د زیاتیدلو احتمال دی. چې د هغې په وجه د سود خطر دی. دا هغه وخت دی چې کله لین دین کې دواړه شیان هم جنس وي که جنس جدا جدا وي نو بیا تفاضل جائز دی. (المرقات ۶/۵۹)

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۱۶۲/۳ رقم الحديث: ۱۵۳۰/۴۲

## دزرو په بدل کې دزرو د لین دین مسئله

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ فَضَالَةَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ قَالَ: اشْتَرَيْتُ يَوْمَ خَيْبَرَ قِلَادَةً بِاثْنَيْ عَشَرَ دِينَارًا فِيهَا ذَهَبٌ |
| فضاله بن عبید وایي چې ما د خیبر په کال یو امیل په دولس (۱۲) دیناره واخیستو او هغه د سروزروؤ |
| وَ خَرَزٌ فَفَصَّلْتُهَا |
| او په هغې کې ملغلري پیوسته کړی شوي وې بیا چې کله ما جدا جدا کړې (یعني ملغري مې سروزرو |
| فَوَجَدْتُ فِيهَا أَكْثَرَ مِنَ اثْنَيْ عَشَرَ دِينَارًا فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| نه وویستلې) نو هغه سره زر مې د دولس دینارو د قیمت نه اوچت شو، ما د دې ذکر نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام |
| فَقَالَ: لَا تُبَاعُ حَتَّى |
| ته وکړو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل چې "(داسې امیل) دې تر هغه وخت پورې خرڅ نه کړی شي تر کوم |
| تُفَصَّلَ.[1] |
| وخت پورې سره زر او ملغلري جدا جدا شي. |

**توضیح**: د مثال په توګه د سرو زرو یو امیل دی. په هغې سره زر هم دي او څه نور جواهرات هم دي. هغه یو سړی د سرو زرو په بدل کې اخیستل غواړي نو په شرعي توګه دا ضروري ده چې اول د دغي امیل نه سره زر جدا شي. د دې برابر سره زر په وزن کړی شي او بیا سودا وکړی شي د دې لپاره چې سره زر د سروزرو مقابل کې برابر راشي. او د ربوا صورت پیدا نشي. د امیل د نورو شیانو جدا قیمت لګول او اخستل کیدی هم شي. خو که چرې د سروزرو امیل د سپینو زرو په بدل کې یا د نغدو روپو په بدل واخستلی شي نو هغه صورت جائز دی. (المرقات ۶/۵۹)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د سود د عام کېدو په باره د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پیشنګوئي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: په خلکو به یوه داسې زمانه راشي |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۲۱۳/۳ رقم الحديث: ۱۵۹۱/۹۰

| لَا | یَبْقَی | أَحَدٌ | إِلَّا | أَکَلَ | الرِّبَا | فَإِنْ | لَمْ | یَأْکُلْهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

چې د سود خوړونکو نه علاوه به بل هیڅ څوک پاتې نشي او که چرې داسې یو سړی پاتې هم شي نو هغه

| أَصَابَهُ | مِنْ | بُخَارِهِ | . | وَ | یُرْوَی | مِنْ | غُبَارِهِ .[1] |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

ته به د سود بخار ضرور رورسیږي. او په روایت کې غبآره هم راغلي یعنې د سود ګرد به یې وررسیږي.

**توضیح: بخآره:** او د غبآره د الفاظ نه د سود اثر مراد دی یعنې داسې وخت به راشي چې د سود لعنت به عام شي. څه خلک به بغیر د څه واسطې سود خولې او څه خلک به په واسطی سره په خوړلو کې اخته شي او څه خلک به په ناپوهۍ سره د سود په جال کې راګیر شي. دا پیشنګوئی نن سبا په پوره توګه رښتنې ده. اوس خو د تجارت په بنیاد په بین المللی توګه باندې سود قائم دی. د دنیا په منډیانو کې په ناجائزه طریق باندې په هر تجارت باندې مووثره ده. هیڅ یوه معمولی شعبه هم د سود نه پاکه نشي ګڼلی کیدلی. د باغ نه چې کله میوه هم راځي نو هغه هم په ناجائزه طریقې سره راځي. یو قراردادي (ټهیکدار) د پنځو کالو لپاره باغ واخلي. حال دا چې د میوې د پخیدلو نه مخکې د هغې اخستل او خرڅول ناجائز دي. د دې سود نه څوک بچ کیدی شي. زمونږ د استاذانو نه مونږ اوریدلي دي چې وس یو سړی کوم یو شی د بازار نه خوري. نو هغه دې پدې سوچ سره وخوري چې په اضطراري حالت کې ځان د بچ کولو لپاره دا مرداره خورم. وس خو حالت دا دي چې د حکومتونو له اړخه په غیرسودي کاروبار باندې پابندي ده. د پاکستان سپریم کوټ د سود روان ساتلو لپاره سرکاري حکم جاري کړی دی. "قاتلهم الله انی یووفکون". (المرقات ۶/۶۰)

**﴿۱۳﴾** وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَاتَبِيعُوا الذَّهَبَ بِالذَّهَبِ

عباده بن صامت رضی الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمایل مه خرڅوي سره زر د سرو زرو په بدل

| وَلَا | الْوَرِقَ | بِالْوَرِقِ | وَلَا | الْبُرَّ | بِالْبُرِّ | وَلَا | الشَّعِيرَ | بِالشَّعِيرِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

کې، نه سپین زر د سپینو زرو په بدل کې، نه غنم د غنمو په بدل کې، نه وربشې د وربشو په بدل کې.

| وَلَا | التَّمْرَ | بِالتَّمْرِ | وَلَا | الْمِلْحَ | بِالْمِلْحِ | إِلَّا | سَوَاءً | بِسَوَاءٍ | عَيْنًا | بِعَيْنٍ | يَدًا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

نه کهجوري د کهجورو په بدل کې او نه مالګه د مالګې په بدل کې. خو که برابر نغد په نغد یعنې لاس

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۷ ۲۷۴ رقم الحدیث ۴۵۶۰

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بِيَدٍ | وَ | لٰكِنْ | بِيعُوا | الذَّهَبَ | بِالْوَرِقِ | وَ الْوَرِقَ بِالذَّهَبِ |

په لاس لین دین جائزدی نو څکه سره زر، د سپینو زرو په بدل کې او سپین زر د سرو زرو په بدل کې او

وَ الْبُرَّ بِالشَّعِيرِ وَ الشَّعِيرَ بِالْبُرِّ وَ التَّمْرَ بِالْمِلْحِ وَ الْمِلْحَ بِالتَّمْرِ

غوړې د جوارو په بدل کې او جوار د غوړو په بدل کې او کهجورې د مالګې په بدل کې او مالګه د کهجورو

يَدًا بِيَدٍ كَيْفَ شِئْتُمْ.[1]

په بدل کې چې لاس په لاس څنګه وغواړئ اخستلی او خرڅولی شئ.

۳۰ جمادی الثاني ۱۴۱۰هـ

## دوچې او د تازه میوو په خپل مینځ کې د لین دین مسئله

﴿۱۴﴾ وَ عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ سُئِلَ

سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه وايي چې ما اوریدلي د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه کله چې ترې تپوس وشو

عَنْ شِرَاءِ التَّمْرِ بِالرُّطَبِ فَقَالَ: أَيَنْقُصُ الرُّطَبُ

د تازه کهجورو په بدل کې (د وچو) کهجورو د اخستلو نو نبي علیه السلام وفرمایل چې: آیا کمیږي تازه

إِذَا يَبِسَ؟ فَقَالَ: نَعَمْ فَنَهَاهُ عَنْ ذٰلِكَ.[2]

کهجورې د وچیدو نه پس عرض وکړی شو چې آو! نو نبي علیه السلام د داسې لین دین نه منع وفرمایله.

**توضیح:** د لمدو کهجورو بیع د وچو کهجورو په بدله کې جائز ده که ناجائز؟ په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی:

**د فقهاؤ اختلاف:** د ائمه ثلاثه او صاحبینو په نزد بیع الرطب بالتمر جائز نه ده، د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد جائز ده. (المرقات ۶/۶۰)

**دلائل:** جمهورو د زیر بحث حدیث نه استدلال کوي د کوم خلاصه داده چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د بیع الرطب بالتمر باره کې تپوس وشو نو حضور پاک صلی الله علیه وسلم پوښتنه وکړه چې لمدې کهجورې په وچیدو سره کمیږي او که نه؟ صحابه کرامو رضي الله عنهم وویل چې آو کمیږي نو بیا حضور

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۲۷۴/۷ رقم الحديث: ۴۵۶۰.

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۶۵۴/۳ رقم الحديث: ۳۳۵۹

پاک ﷺ دا بيع منع کړه په اصل کې د ائمه ثلاثه په نزد بيع کې حالاً او مآلا مساوات ضروري دی او دلته چې لمدې کهجورې کله وچې شي نو مساوات باقي نه پاتې کيږي په دې وجه ناجائز دی د امام ابو حنيفه رحمه الله دليل د بيوعاتو شرعي قاعده او ضابطه ده د دغه قاعدې او کليې به په هر حال کې خيال ساتلې شي . هغوي وايي چې د کهجورې لوند والې وچوالې دا په دې کې وصف زائده دی او د وصف زائد اعتبار نشته دی ، په حديث کې راغلي دي : **جيدها ورديها سواء** . لهذا په مستقبل او مآل کې د مساوات ضرورت نشته دی، امام ابو حنيفه رحمه الله چې کله بغداد ته تشريف يوړو نو دهغه ځای علماو په دې مسئله کې امام صاحب سره بحث وکړو او سخت مخالفت يې وکړو . هغوي ورته وفرمايل چې دا راته وښايي چې رطب او تمر يو جنس دی که جدا جدا جنس دی ، که چيرې يو جنس دی نو **حديث التمر بالتمر مثلاً بمثل** د وجې نه دا بيع جائز ده او که چيرې رطب د تمر د جنس نه ، نه دی نو حديث **اذا اختلف النوعان فبيعوا كيف شئتم** د وجې دا بيع جائز کيدل په کار دی . امام صاحب دا هم فرمايي چې که چيرې په رطب کې نقص راغلو نو د دې ذمه واري د بايع نه ده دا نقص خو د مشتري په لاس کې راغلې دی د کوم نه چې بائع خلاص دی په وخت د بيع نقص نه وو لهذا بيع جائز ده هم دغه شان مسئله د نورو ميوو هم ده او دغه شان حکم د تازه او وچې غوښې هم ده بهر حال جمهور هم يو طرف ته دي او صاحبين هم هغوي سره دي حديث هم واضح دی که فتوی د صاحبينو او جمهورو په مسلک باندې ورکړې شي نو بعيد به نه وي .

**جواب** : د جمهورو دليل زير بحث د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه د روايت جواب دادی چې د دې تعلق د قرض سره دی او د دې تائيد هم د حضرت سعد رضي الله عنه د هغه حديث سره کيږي په کوم کې چې حضور پاک ﷺ د تازه کهجورو په بدله کې د وچو کهجورو لين دين په قرض او نسيئة کې منع فرمايلي ده ، الفاظ دادي : **عن سعد بن ابي وقاص ان رسول الله ﷺ نهى عن بيع الرطب بالتمر نسيئة (ابوداؤد)**

امام ابو حنيفه رحمه الله د اهل بغداد د استدلال په جواب کې دا هم فرمايلي چې زير بحث حديث د ابو عياش راوي د وجې نه ضعيف هم دی . لهذا د بيوع د قواعدو خيال به ساتلې شي او په جزئياتو کې به تاويل کولې شي لکه ځنګه چې د امام صاحب فقهي سوچ دی ، د امام مالک رحمه الله د فقهي سوچ مدار د اهل مدينه په تعامل باندې دی ، د امام شافعي رحمه الله د فقهي سوچ مدار د اهل مکه په تعامل باندې دی او د امام احمد رحمه الله فقهي سوچ مدار په ظاهر د حديث باندې دی ، هم دغه وجه ده چې هغوي په يوه مسئله کې ډير اقوالو او احوالو باندې فتوی ورکوي .

## د غوښې او ژوندي څاروي د تبادلې مسئله

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ مُرْسَلًا : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ نَهٰى |
| سعيد بن مسيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ارسال په طريقې سره نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع فرمايلې ده |
| عَنْ بَيْعِ اللَّحْمِ بِالْحَيَوَانِ قَالَ سَعِيدٌ : كَانَ |
| د څاروپه بدل کې د غوښې د لين دن نه. همدغه شان د سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان دی چې د څارو په بدل کې د |
| مِنْ مَيْسِرِ أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ. [1] |
| غوښې لين دين د زمانهٔ جاهليت د خلکو د جوارۍ د قسم نه وو. |

**توضيح: ميسر اهل الجاهلية**: د دې مطلب دا دی چې څنګه په غلطې طريقې سره د جهالت خلکو به د خلکو مال خوړو. په هغه بيع کې هم دغه شان دی. اګر که د جوارۍ طريقه بله ده. هلته به د تېرانو په ذريعې سره جواري کيده او دلته په لين دين سره کېږي. په غلط طريقې سره د مال د حصول تشبيه ده. پدې مسئله کې فقهاؤ معمولي شان اختلاف دی. چې آيا د ژوندي څاروي تبادله د غوښې سره جائز ده او که نه؟(المرقات ٦/٦٢)

**د فقهاو اختلاف**: امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ دا بيع مطلقًا حرام او ناجائزه ګڼلې دي. امام محمد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې که غوښه د څاروې د غوښې نه ډېره کيخودلی شي چې د غوښې مقابل کې غوښه راشي او د څاروي د زائد حصول په بدل کې اضافي غوښه راشي نو دا صورت جائز دی ګينې نه دی جائز. امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د غوښې په بدل کې د ژوندي څاروي لين دين نقداً جائز دی او په قرض ناجائز دی.

**دلائل**: امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ د زير بحث حديث نه استدلال کړی چې هغه يو واضحه دليل دی. د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ دليل د بيوعاتو د اصولي قواعدو رعايت دی. چې که غوښه موزوني ده او څاروی غير موزوني دی. لهذا د اتحاد قدر د نشوالي په وجې سره د کمي زياتي نه باوجود هم دلته سود نشته دی. لهذا جائز دی.

**جواب**: د شوافعو د مستدل د زير بحث حديث نه جواب دا دی چې دا حديث د قرضو په لين دين باندې محمول دی. او قرضو په عدم جواز سره احناف هم قائل دي. که چرې يو اړخ ته شی موجود

---

(۱) أخرجه شرح السنة ٤٨١/٣، باب بيع اللحم بالحيوان.

وي او بل طرف ته وعده وي، شې شتون نه لري، نو دا ناجائزه ده.

**دویم جواب**: دا چې د جهالت د وخت خلکو به پدې جواري کوله. نو ځکه د جوارۍ د ختمولو لپاره دا ممانعت راغلی دی. (المرقات ۶/۶۲)

## د بیوعاتو په قواعد کلیه باندې د احنافو دلیل

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ نَهَى عَنْ بَيْعِ الْحَيَوَانِ |
| سمره بن جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نهي فرمايلي ده د خرڅولو د څاروي په بدل د |
| بِالْحَيَوَانِ نَسِيئَةً. [1] |
| څاروي کې په قرضو سره. |

**توضیح**: د احنافو ائمو دا حدیث د سود په بابونو کې د بنیاد په توګه اخستی دی. او د بیوعاتو د قواعدو کلیه حفاظت لپاره يې ځو جزائي احاديثو کې تاويل کړی دی. دلته په حديث کې په واضحه توګه باندې د قرض لفظ شتون لري. نو چرته چې دا لفظ نشته دی، هلته به هم دغه مراد اخستلی کېږي. د دې لپاره چې په احاديثو کې تطبيق راشي.

## غير مثلي شيانو کې د قرض اخيستلو مسئله

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د عبد الله بن عمرو بن العاص باره کې مروي دی چې (د يو غزوې په موقع) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ده ته |
| أَمَرَهُ أَن يُجَهِّزَ جَيْشًا |
| وفرمايل چې د لښکر سامان صحيح کړه (يعني په لښکر کې شريک کيدونکو لپاره سپرلۍ، وسله او |
| فَنَفِدَتِ الْإِبِلُ |
| نور شيان تيار وساته) نو کله چې دا وښانو کمې شو (يعني چې څو مره اوښان وو هغه اکثر په خلکو کې |
| تقسيم شوا و په کومو خلکو کې عبد الله بن عمرو بن العاص هم شريک وو، او ښ ورته ملاؤ نه شو) نو |
| فَأَمَرَهُ أَن يَأْخُذَ عَلَى قَلَائِصِ الصَّدَقَةِ |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عبد الله ته حکم وکړو چې هغه د زکوة او ښ په بدل کې او ښ په (قرض) واخله |

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۵۳۸ رقم الحديث ۱۲۳۷

| فَكَانَ | يَأْخُذُ | الْبَعِيرَ | بِالْبَعِيرَيْنِ | إِلَى | إِبِلِ | الصَّدَقَةِ.[1] |
|---|---|---|---|---|---|---|

نو عبدالله د زکوة د اوښ رتللو پورې (په باندې) د دوو اوښانو په عوض کې يو يو اوښ اخيستلو.

**توضيح: على قلائص الدقة:** قلائص جمع ده. د دې مفرد قلوص دی. زوان اوښ ته وايي. د صدقې نه مراد د زکوة اوښان دي. يعنې نبي کريم ﷺ عمروبن العاص ته وفرمايل چې د يو سړی نه اوښ قرض واخله او په مجاهدينو يې تقسيم کړه چې د جهاد لښکر روان شي. او چې کله صدقه او زکوة بيت المال ته راشي نو بيا د هغه سړی قرض ورکړه.

**بألبعير:** يعنې حضرت عمرو بن العاص به د دووو اوښانو په بدل کې يو اوښ اخستلو. او په مجاهدينو به يې تقسيمولو. دغه د قرض اخستلو باره کې دي اصولي خبرې باندې پوهيدل پکار دي. چې قرض فقط د هغه شي اخستلی کېږي. چې د کوم خپل مثل وي. مثلاً هګۍ دي نو دا مثل دي، غله مثل ده، روپۍ مثل ده. د دې شيانو قرض اخستل جائز دي. ځکه که نن دي قرض واخستلو نو بيا به د هغه شي پشان شي قرض ورکړي. ځکه مثل يې شته ده. خو چې د کومو شيانو مثل نه وي نو د هغې قرض ورکول او اخستل هم ناجائز دي. ځکه سبا چې بيا قررض اخستونکی قرض بېرته ورکوي نو مثل ورکول به يې مشکل وي. لکه څنګه چې زير بحث حديث کې مسئله ده. څاروي مثلي نه دي. بلکې د ذوات القيم شيانو نه دی. اوس په قرض کې د دې ورکول مشکل دي. لهٰذا دې قرض اخستلو جائز دي. خو دا ضابطه د احنافو د مسلک مطابق ده. شوافع حضرات د غير مثلی شيانو يعنې په څاروو کې د قرض اخستلو او ورکول جائز ګڼي. د هغوی دليل زيربحث حديث دی. د احنافو ائمه په عدم جواز سره د حضرت سمره بن جند د حديث نه استدلال کوي. چې د دينه مخکې تېر شوی دی. او دا مسئله هم اختلاف مع دلائل ليکل شوي ده. د دې حديث باره کې احناف تاويل کوي چې په احاديثو کې تاويل تطبيق راشي. يو جواب دا ورکوي چې د يو څاروي په بدل دوه څاروي د قرض په توګه هغه وخت جائز وو کله چې د ربوا او د سود د ممانعت حکم نه وو راغلی. بيا چې کله سود حرام شو نو هغه دغه بيوعات هم ختم شول. علامه توربشتی همدغه جواب ورکړی دی. هغوی دا حديث ضعيف هم ګڼلی دی. (المرقات ٦/٦٣)

---

(١) أخرجه ابوداؤد في السنن ٦٥٢/٣، رقم الحديث ٣٣٥٧.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د قرض په لين دين كې د سود مسئله

﴿۱۸﴾ عَنْ أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : الرِّبَا فِي النَّسِيئَةِ . وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ : لَا رِبًا فِيمَا كَانَ يَدًا بِيَدٍ.[1]

اسامه بن زيد رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل د قرض په لين دين كې سود كيږي. او په يو روايت كې داسې دي چې: په هغه لين دين كې سود نه وي چې كوم لاس په لاس وي.

**توضيح**: يعنې چې كله دوه شيان د يو جنس نه وي او برابر وي او نغد وي، قرض نه وي نو په هغه صورت كې سود نشته دى همدغه شان په هغه صورت كې هم سود نه وي چې دوه شيان د جدا جدا وي نو د اختلاف په وجه بيا هم ربا كېږي. خو ربا به هغه وخت راځي چې كله د يو جنس دوه شيانو لين دين په قرضو وي. حضرت اسامه رضي الله عنه همدغه صورت بيان كړى. د حضرت اسامه رضي الله عنه كلام نه ابن عباس رضي الله عنه ته شک شو او هغوى په نغدو كې د ربا انكار وكړو او وي فرمايل چې ربا فقط د قرضو په صورت كې وي. خو چې ابي ابن كعب رضي الله عنه كله هغه بنه ورټلو او په سختۍ سره يې منع كړو نو هغه د خپلې رائې نه رجوع وكړه او وي فرمايل چې ما د حضرت اسامه رضي الله عنه د كلام داسې ګڼلي وو. حضرت ابي ابن كعب رضي الله عنه هم دا وفرمايل چې آيا داسې كيدى شي چې تا د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه يو حكم اوريدلى وي يا دي ليدلى وي او مونږ نه وي اوريدلى او نه مو ليدلى وي. حال دا چې زمونږ رفاقت د نبي كريم صلى الله عليه وسلم طويل (اوږد) وو. (المرقات ۶/۶۴)

## د سود يو درهم د شپږ ديرش (۳۶) ځله زنا كولو نه لويه ګناه ده

﴿۱۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ حَنْظَلَةَ غَسِيلِ الْمَلَائِكَةِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِرْهَمُ رِبًا يَأْكُلُهُ الرَّجُلُ وَ هُوَ يَعْلَمُ أَشَدُّ مِنْ سِتَّةٍ وَ ثَلَاثِينَ زِنْيَةً.[2]

عبد الله بن حنظله غسيل الملائكه رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل: د سود يو درهم چې يو انسان خوري د سود د درهم د پيژندلو باوجود نو دا د شپږ ديرش ځله زنا كولو نه هم لويه ګناه ده

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٤ ٣٨١ رقم الحديث :٢١٧٩

(۲) أخرجه مسند أحمد ٢٢٥/٥، رقم الحديث : ٢٢٠٠٧، سنن الدار القطني ٣ ١٣٤١، رقم الحديث ٢٨٧٩.

**توضيح**: **غسيل الملائكة**: حنظله د شان والا صحابي دی د ابو عامر فاسق ځوی دی. هغه د نبي كريم ﷺ او د اسلام ډير سخت مخالفت وكړو. اول د ابو عامر راهب په نوم مشهور ؤ. بيا د نبي كريم ﷺ د مخالفت په وجه انصارو دا د ابو عامر فاسق په نوم مشهور كړو. د احد په ميدان دي ګندي وكنستلي. چې په هغې كې ډير مسلمانان وغورځيدل او شهيدان شول. د دې ځوی حنظله كفارو شهيد كړو. خو ابو عامر د جسد په ازغنو خاښونو سره نور هم ووهلو. الله تعالى دي صحابي ته ډير لوي شان وركړو. كله چې نبي كريم ﷺ ميدان احد طرف ته وتلو اعلان وكړو نو د دې صحابي په ذمه باندې فرض غسل ؤ. ده هغه غسل پرېښودو او د نبي كريم ﷺ په اعلان باندې يې لبيك وويل او لاړو او د كفارو سره په ميدان جنګ كې جنګيدو او شهيد كړی شو. دا چې په جنابت كې ؤ نو ځكه فرښتو ده ته غسل وركړو نو غسيل الملائكه باندې مشهور شو. (المرقات ۶/۶۴)

**وهو يعلم**: د دې مطلب دا دی چې هغه سړی ته معلومات وي چې دا د سود روپۍ دي او بيا يې هم خوري نو دا لويه ګناه ده. د دې نه معلومه شوه چې كه كوم سړی ته په صحيح توګه باندې معلومه نه وي چې دا سود روپۍ دي او هغه وخوړلي نو ددې غلطۍ په وجې باندې هغه معذوره دی. خو كه كوم سړی په دار اسلام كې اوسيږي او د سود د لين دين د حكم نه بې خبره دی او د هغې د حلال او د حرام صورتونو د زدكړې كوښښ نه كوي نو هغه سړی هم په دې وعيد كې شريک دی. (المرقات ۶/۶۴)

**ستة وثلاثين**: يعنې د شپږديرش ځله زنا كولو نه سود لويه ګناه ده. د شپږديرش شمېرنه د تحديد او تعين د شارع كار دی. همغه د دې په حكمت پوهيږي. مونږ د دې حكمت په لټنې باندې مكلف نه يو. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې پدې حديث كې د سود د حرمت او د هغې د خوړلو د ممانعت په توګه د زجر و تشديد مبالغه كول مقصود دی. چې سړی د دې حرام نه ځان وساتي او د حلالو اړخ ته لاړ شي. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ دا هم ليكلي دي چې د سود معامله باندې الله تعالى د سود خور سره د جنګ اعلان كړی دی. دا صورت هم د ځو زناګانو نه سخت دی. همدغه شان علماء ليكلي چې كوم سړی سودي كاروبار كوي. نو هغه د بېوعاتو د سختو مسائلو د وجې نه هغه حلال ګڼي او عقيده ساتي چې دا صورت جائز دی. (المرقات ۶/۶۴)
دلته زنا د هر مذهب خلك عيب او ګناه او ناجائزه ګڼي. د دغې وجې نه هم د سود نوعيت د زنا نه بدتره دی، كوم چې پدې حديث بيان كړی شوی دی.

## سود حلال ګڼل د مور سره زنا کولو په شان ده

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : الرِّبَا سَبْعُونَ جُزْءًا |
| ابو هریره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم و فرمایل د سود د ګناه اويا (۷۰) درجې دي او په هغې |
| أَيْسَرُهَا أَنْ يَنْكِحَ الرَّجُلُ أُمَّهُ.[1] |
| چې کومه تر ټولو نه وړه درجه ده، هغه دا ښې ده چې لکه کوم سړی چې د خپلې مور سره جماع وکړي. |

**توضیح**: په قباحت و شناعت کې دا تشبیه خپل آخري مقام باندې پرته ده. د دینه زیات نو څوک څنګه پوهه کولی شي. خپله مور او د هغې سره زنا استغفرالله.

**ینکح**: د نکاح په معنی نه دی بلکې لغوي معنی جماع کول مراد دي. دا خو په اویا درجو کې ادنی درجه ده. نوري درجې به لا څه وي. **(نعوذ بالله منها)** (المرقات ۶/۶۵)

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنِ الرِّبَا وَ إِنْ |
| ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم و فرمایل سود (نه حاصل شوی مال) اګر که څومره |
| كَثُرَ فَإِنَّ عَاقِبَتَهُ تَصِيرُ إِلَى قُلٍّ.[2] |
| هم ډېر وي مګر آخر به هم پدې کې کمی (یعنې بې برکتي) راځي. |

**توضیح**: دا حدیث د پیشنګوئی په درجه کې دی چې د سودي کاروبار انجام تباه کولو والا دی. او سود خور به آخر کې د ټکې ټکې محتاجه وي. او د هغې لویې لویې ماڼۍ او لویې لویې برجونه به د تباهي په وجه تَس و نَس شي. دا خو دنیا ذلالت دی. او که په دنیا کې هیڅ ونشول نو د آخرت تاوان خو دومره یقیني دی لکه د ورځې نه وروسته د شپې راتلل یقیني وي. مال د هغه شي نوم نه دی چې هغه وشمیرل شي. او سړی خپله د هغې څوکیدار شي. بلکې مال د هغه راحت رسونکې شي نوم دی چې هغه د انسان لپاره راحت جوړ شي. سود خور ته کله هم د مال په وجه راحت نه وي. دا هم بد انجام نښانه ده. سود خور سره خو د راحت سامان ډېر وي خو خپله د راحت نه محرومه وي. او په سامان راحت او په راحت کې ډېر فرق وي. یو غریب سړی حلال رزق وګټي، د شړې په ډېرې باندې بې غمه خراړی کوي او وده وي. خو سود خود مالداره به قسما قسم د خوب ګلی ګاني خوري خو بیا به هم د

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۷۶۴/۲ رقم الحديث :۲۲۷۴.

(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۷۶۵/۲ رقم الحديث ۲۲۷۹

خوب د خوند نه پاتې وي. سود خور سړی د معاشري لپاره د زهرجن مار ډیر زهرجن شي. د همدردی او خیګڼې خو پکې څه نوم د هغې په رګ او ریښو کې پاتې نه وي. بلکې هغه د یو غریب د بدن وینه څکلو لپاره هر وخت سرګردانه وي. نن سبا خو په نړیوالا کچه باندې سودي کاروبار غریب ملکونه د مالداره ملکونو غلامان کړي دي. په اقتصادي توګه باندې غریب ملکونه د سود خور ملکونو د ظلم په میچن کې میده کېږي. خو د فریاد کولو قابل هم نشول.

## د سود خور خیټه به د زهرجن مارانو نه ډکیږي

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَتَيْتُ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِي عَلَى قَوْمٍ |
| ابو هریره رضی الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل د معراج په شپه زه په داسې خلکو تېر شوم |
| بُطُونُهُمْ كَالْبُيُوتِ فِيهَا الْحَيَّاتُ |
| چې دهغوی خیټې د کورونو پشان (غټې غټې) وې او د هغوی خیټې د مارانو نه ډک کړی شوي وې |
| تُرَى مِنْ خَارِجِ بُطُونِهِمْ |
| چې هغه د خیټونه هم بهر ښکاره کیدل ما (چې ولیدل نو ډیر حیرانتیا سره مې د جبرائیل علیه السلام نه) |
| فَقُلْتُ مَنْ هَؤُلَاءِ يَا جِبْرِيلُ؟ قَالَ: هَؤُلَاءِ أَكَلَةُ الرِّبَا". (۱) |
| پوښتنه وکړه چې "جبرائیل دا خلک څوک دي؟ هغه وویل چې دا سود خواره دي. |

## په سود خور باندې نبي کریم صلی الله علیه وسلم لعنت وایي

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ |
| د حضرت علي رضی الله عنه باره کې نقل دي چې دوي اوریدلي د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه چې لعنت فرمایلي |
| آكِلَ الرِّبَا وَمُوكِلَهُ وَكَاتِبَهُ وَمَانِعَ الصَّدَقَةِ |
| نبي علیه السلام د سود په اخیستونکې، سود ورکونکې، د سود حساب لیکونکي او د صدقي نه منع کونکې |
| وَكَانَ يَنْهَى عَنِ النَّوْحِ. (۲) |
| باندې همدغه شان یې په مړي باندې په چیغو ژړا کولو نه منع وفرمایله. |

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۷۶۳/۲، رقم الحديث: ۲۲۷۳.

(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۴۷/۸، رقم الحديث. ۵۱۰۳.

**توضيح**:مانع الصدقة: يعنې هېڅ قسمه خيرات نه برداشت کولو والا ، بلکې د هغې منع کولو والا يعنې داسې سړی چې خپله صدقه نه کوي او نه بل صدقه کولو ته پرېږدي. (المرقات ٦/٦٧)

**النوح**: په مړي باندې بېن کولو والا ، د مړي اوصاف بيانول او په چيغو چيغو ژړونکې ته نائح وايي او د دې عمل نوم "نوحه" دی. چې ناجائز دی او حرام دی. (المرقات ٦/٦٧)

تر درې (۳) ورځو پورې غم کول په مړي باندې جائز دی. د درې ورځو نه دير غم کول جائز ندی. خو غم او د سترګو نه اوخکې غورځيدل يو بېل شي دی چې جائز دی. خو دا ده چې د ښځو لپاره د خپل مېړه په مرګ باندې څلور مياشتې او لس ورځو پورې غم کول يعنې د زينت پرېښودل جائز دي.

## حضرت عمر رضي الله عنه د ربا قانون بيان کړی دی

| |
|---|
| ﴿۲٤﴾ وَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ إِنَّ آخِرَ مَا نَزَلَتْ |
| عمربن الخطاب رضي الله عنه نه نقل دی چې آخري چې کوم شي نازل شوی دی (يعنې قرآن کريم کې) هغه |
| آيَةُ الرِّبَا وَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قُبِضَ وَ لَمْ يُفَسِّرْهَا لَنَا |
| د ربا آيت دی او رسول الله صلى الله عليه وسلم د دې دنيا نه (په داسې حالت کې) لاړو چې د دې تفصيل يې بيان نه |
| فَدَعُوا الرِّبَا وَ الرِّيبَةَ .[1] |
| کړو. لهذا سو هم پرېږدئ او په کوم يو شي کې چې د سود شک وشبه وي هغه هم پرېږدئ. |

**توضيح**:ولم يفسرها: د دې مطلب دا نه دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د سود سره تړلي قواعد يې نه دي بيان کړي بلکې مطلب دا دی چې په نبي کريم صلى الله عليه وسلم باندې د ربا حکم په آخري عمر کې نازل شو نبي کريم صلى الله عليه وسلم خو د هغې قواعد خو بيان کړي خو د هغې تفصيلات يې تر اوسه پورې بيان کړي نه وو چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د دنيا نه لاړو لهذا سود هم پرېږدئ او چرته چې د سود شک او احتمال وي هغه صورت هم پرېږدئ. نو د قانون په توګه نبي کريم صلى الله عليه وسلم په شپږ شيانو کې د سود ذکر فرمايلی چې په هغې سره يوې قاعدې ته اشاره وکړی شوه د دې اشاري تفصيلات ائمه مجتهدينو د خپل اجتهاد په ذريعې سره بيان کړی دی. اوس هر طرف د دې قاعدې کليه د لاندې راغلی. لهذا چرته چې د سود قاعده جاري شي نو د دينه به ځان ساتل په کار وي. د حضرت

[1] أخرجه ابن ماجه في السنن ٢/٧٦٤ رقم الحديث ٢٢٧٦

عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د قول همدغه مطلب دی. ملحدينو چې د دې قول نه د سود د تلخيص كوم مطلب راويستلی دی هغه د الحاد او زنديقيت دی چې د هغوی خپله ورثه ده. (المرقات ٦/٦٧)

## چاته په قرض وركولو سره د هغې نه ګټه اخيستل حرام دي

﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِذَا أَقْرَضَ أَحَدُكُمْ قَرْضًا

انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې كله په تاسو كې يو كس (چاته) قرض وركړو

فَأَهْدَى إِلَيْهِ أَوْ حَمَلَهُ عَلَى الدَّابَّةِ

او بيا قرض اخستونكی هغه (قرض وركونكې) ته څه تحفه راولېږي يا د سپرلۍ لپاره ښاروی وركړي

فَلَا يَرْكَبْهُ وَلَا يَقْبَلْهَا إِلَّا أَنْ

نو هغه (قرض وركونكی) دې نه په دې ښاروي سپور شي او نه دې دغه تحفه قبوله كړي، خو كه د دې

يَكُونَ جَرَى بَيْنَهُ وَ بَيْنَهُ قَبْلَ ذَلِكَ .[1]

دواړو په مېنځ كې د تحفې يا د سورلۍ د ښاروا خستل او وركول روان وي د مخكې نه (نو بيا څه باک نشته)

**توضيح**: يعنې د قرض وركولو په وجه چې قرضوا خستونكی هغه قرض وركونكی سره كوم د نرمۍ معامله كوي هغه د سود په قسم كې راځي ځكه قرض وركونكې ته د خپل قرض په وجه د دغه ګټه ترلاسه شوه. او "**كل قرض جر نفعا فهو ربا**" د علماؤ متفقه قاعده ده چې هغه يو حقيقت دی خو كه د قرض د دې لين دين نه مخكې د قرض اخسونكی د هغه قرض وركونكی سره تحفې او د هدې معامله كوله نو د قرض نه وروسته هم جائز دي. امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ د خپل قرض اخستونكی د كور د سورې لاندې ونه دريد و حال دا چې سختې ګرمی هغه تنګ كړی ؤ. دا د دې وېرې نه چې چرته قرض اخستونكی د قرض په وجې سره څه ګټه حاصله نشي. د دينه معلومه شوه چې په نن سبا دور كې د قرض داري كور ته ځي. د قرضو لپاره شپې تيروي. او د قرضداري د كور نه دوډۍ او نور څه خوري. دا ټول ناجائز او حرام دي. خو كه د مخكې نه روابط وو نو هغه بېله خبره ده. (المرقات ٦/٦٨)

## قرض وركونكی دې د قرض اخستونكی نه هديه نه قبلوي

﴿۲۶﴾ وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : إِذَا أَقْرَضَ الرَّجُلُ الرَّجُلَ

انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل څوک چې چاته قرض وركړي نو هغه دې د

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۸۱۳/۲ رقم الحديث :۲۴۳۲

| فَلَا يَأْخُذُ هَدِيَّةً . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ فِي تَارِيخه هَكَذَا فِي الْمُنْتَقى |
|---|
| خپل قرض داري نه د تحفې په توګه هېڅ شي نه قبلوي. |

## په قرض ور کولو سره د قرض داري نه هېڅ ګټه مه اخلئ

| ﴿۲۷﴾ وَ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ أَبِي مُوسَى قَالَ : قَدِمْتُ الْمَدِينَةَ |
|---|
| ابو برده ابن موسى رَحِمَهُ اللَّهُ (تابعي) وايي چې كله زه مدينې ته راغلم او ملاؤ شوم د عبدالله بن سلام |
| فَلَقِيتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ سَلَامٍ فَقَالَ : إِنَّك بِأَرْضٍ فِيهَا الرِّبَا فَاش |
| رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (صحابي) سره نو هغه وويل چې ته په يو داسې زمكه باندې يې چرته چې د سود ډير رواج دی. |
| إِذَا كَانَ لَكَ عَلَى رَجُلٍ حَقٌّ فَأَهْدَى إِلَيْكَ |
| لهذا كه په چا باندې ستا حق وی (يعني څوک ستا قرضداري وي) نو او هغه تا ته په تحفه كې دركړي |
| حِمْلَ تِبْنٍ أَوْ حِمْلَ شعيرٍ أَوْ حَبْلَ قَتٍّ فَلَا تَأْخُذْهُ فَإِنَّهُ رِبًا.[1] |
| د بوسو يا د وربشو او يا د وښو يو پنډ نو ته هغه مه قبلوه، ځكه دا د سود حكم لري. |

**توضيح: الربافاش:** يعني پدې زمكه كې ربا او سود ډير عام دی. (المرقات ۶/۶۸)

**حمل تبن:** تبن بوسو ته وايي . او حمل د محمول په معنى كې دی "اى قدر مايحمله حمارا او بغل" يعني كه قرض داری د خر او يا د خچر د بوج برابر بوس درله دركړي. (المرقات ۶/۶۹)

**او حبل قت: قت** يو خائسته قسمه وابنه دي. چې هغه تازه او شين وي، رطبه هم ورته وايي . مراد ترينه ښه وابنه دي. چې څاروی يې ډير په شوق سره خوري. حبل د محبول په معنى كيدی. د ښو وښو تړلې شوی ګېډی مراد دی. (المرقات ۶/۶۹)

**فانه ربا:** يعني د قرض په دباوو كې چې كوم ګټه هم ترلاسه شي هغه د سود په ډول كې راځي. خو كه دا مخكيني دود او رواج په مطابق وي. او د مرستي او د احسان د لاندې وي. نو په هغې كې هـ څه باك نشته دی. او كوم خلک چې قرض وركړي د ګټې شرط پكې كېږدي. د دې په حرام كېدلو كې هيڅ شرط نشته دی. (المرقات ۶/۶۹)

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲۹/۷ رقم الحديث : ۳۸۱٤

# باب المنهی عنها من البیوع

## د ممنوعه بیوعاتو بیان :

دا چې اسلام یو ژوندی او پایدار مذهب دی. او دا پوره او کامل بلکې اکمل ضابطهٔ حیات دی. ځکه پدې کې د انساني ژوند ټول اړخونو ضرورتونه او مشکلاتو حل شته دی. په دغه سلسله کې اسلام د هرانسان د لین دین او اخستلو او د خرڅولو هره زاویه د نظر لاندې ساتلي ده. او هر وخت انسان ته لاربښودنه کوي. چې داسې وکړه پدې کې ګټه ده او داسې مه کوه پدې کې تاوان دی. نو په بیوعاتو کې د نه کولو چې منع کړی شوي صورتونه دي. په شریعت کې د هغې ښه وضاحت شوی دی. ځینې صورتونه هغه دي چې د هغې ممانعت د حرامو په توګه دي. او ځینې ممانعت د کراهت په توګه دي. همدغه زیر بحث باب کې بیانېږي.

دلته پدې خبره هم پوهیدل پکار دي چې په عباداتو کې لفظ باطل او لفظ فاسد چې کله استعمال شي نو پدې کې هیڅ فرق نشته دی. دواړه الفاظ غیر مقبول او ناجائزو لپاره استعمالېږي. خو د بیوعاتو او معاملاتو معامله بله ده. دا الفاظ چې کله په بیوعاتو کې راځي نو باطل او فاسد کې فرق کېږي. نو بیع فاسده هغه وي چې اصلاً صحیح وي. مګر وصفًا صحیح نه وي. او بیع باطل هغه وي چې نه اصلاً صحیح وي او نه وصفاق صحیح وي. په نورو الفاظو کې داسی وګڼی. چې بیع فاسد کې خرڅ وشی شي قبض کولو نه وروسته د مشتري په ملکیت کې راشي. اګر که حرام وي خو په بیع باطل کې په هیڅ صورت کې خرڅ کړی شوی شي د مشتري په ملکیت کې نه راځي. په ممنوعه بیوعاتو کې دا هم دي چې کوم شی مال نه وي نو د هغې بیع صحیح نه ده. کوم شی چې د چا په لاس کې نه وي د هغې بیع صحیح نده. کومه بیع چې نزع (جنجال) او جهګړه پیدا کوي هغه جائز نه دی. په معاملاتو کې د دروغو دهوکه او وعده خلافي او کنزلي هم حلال مال خرابوي. لهذا د دینه هم ځان ساتل پکار دي. همدغه شان په بیوعاتو کې د عقد بیع منافي شرطونه لګول هم باطل دي.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## د بیع مزابنه تعریف او ممانعت

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَنِ الْمُزَابَنَةِ : |
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د مزابنت نه منع فرمایلي ده او مزابنت دا دی چې |

| أَنْ يَّبِيعَ تَمْرَ حَائِطِهِ إِنْ كَانَ نَخْلًا بِتَمْرٍ كَيْلًا |
|---|
| يو سړي خرڅه کړي د خپل باغ (تازه) ميوه اګر که هغه کهجوره وي د وچو کهجورو په بدل کې د پيماني |
| په ذريعې (يعنې ديو سړي په باغ کې تازه کهجوري وي او د بل سړي سره وچې کهجوري وي نو د باغ |
| والا سړي به د هغه بل سړي نه لس پيمانې ډکې وچې کهجوري واخلي او د دې په عوض د خپل بوټي |
| وَ إِنْ كَانَ كَرْماً |
| تازه کهجوري په همدغه پيمانه مطابق اندازه کړي او خرڅ يې کړي) او که ميوه انګور وي نو هغه به |
| أَنْ يَبِيعَه زَبِيبٍ كَيْلًا |
| د وچو انګورو په بدل کې د پيمانه په ذريعې سره خرڅ کړي (حاصل دا چې بيع مزابنت دا مطلب دی |
| چې په بوټي باندې زوړنده ميوه اګر که هغه کهجوري وي يا نوره ميوه د ايخودلې شوي وچې ميوي |
| أَوْ كَانَ وَ عِنْدَ مُسْلِمٍ وَ إِنْ كَانَ زَرْعًا |
| په عوض خرڅول) او په مسلم کې هم همدغه روايت دی چې که پټی وي (پدې بيع کې مزابن شکل دا |
| أَنْ يَبِيعَهُ بِكَيْلٍ طَعَامٍ |
| دی چې) دا غله د پيماني په ذريعې خرڅه کړي (يعنې په پټي کې ولاړه غله د پرتې غلې په عوض خرڅه |
| کړي مثلاً ديو سړي په پټي کې وربشې ولاړې دي او ديو بل سړي سره غنم پراته دي نو اولنی سړی به |
| په خپل پټي کې ولاړي وربشې اندازه وکړي او په هغه بل سړي په لاس به يې خرڅ کړي. او د هغې په |
| عوض کې به هغه سړی نه پراته غنم د خپلې اندازې مطابق په ډکه پيمانه واخلي) نو نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ |
| نَهَى عَنْ ذٰلِكَ كُلِّه.[1] |
| منع فرمايلې ده د دې ټولو بيعو نه. |
| وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا: نَهَى عَنِ الْمُزَابَنَةِ قَالَ: وَالْمُزَابَنَةُ: أَنْ يُبَاعَ مَا فِي رُؤُوسِ النَّخْلِ بِتَمْرٍ بِكَيْلٍ مُسَمًّى إِنْ زَادَ فَعَلِيَّ وَإِنْ نَقَصَ فَعَلِيَّ |

**توضيح**: المزابنة: دا لفظ د زبن نه دی. د ختمولو په معنی دی. ځکه پدې عقد کې چې کوم سړی دهوکه وخوړله نو هغه د خبريدلو نه وروسته د عقد د ختمولو او د فسخ کول وغواړې. د دې اصطلاحي تعريف دا دی. چې په ونه باندې زوړندې ميوي اګر که هغه عامه ميوه وي يا خاص ميوه

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٤٠٣/٤ رقم الحديث: ٢٢٠٥، ومسلم في صحيحه ١١٧٢/٣ رقم الحديث ٧٦ ١٥٤٢.

وي يا خاص کهجوري وي د همد غي جنس د وچي ميوي په عوض خرڅولو نوم مزابنه دی. د دينه لګ لنډ تعريف داسې دی. په بوټو باندې زوړندي ميوي د هغې همغه راشکېدلو ميو. په بدل کې د خرڅولو نوم مزابنه دی. (المرقات ٦٩/٦)

بهر حال په ونو باندې لګيدلې هغه که ميورې وي او که فصل يا نور شيان په ټولا، باندې مزابنه صادق راځي، کله د مزابنه اطلاق په محاقله باندې هم کيږي، د مزابنه د ممانعت وجه داده چې په دې کې په ونو باندې لګيدلې ميوې ملعومې نه دي په دې کې جهالت دی صرف په اندازې سره ورکولې شي او هره هغه بيع په کومه کې چې مبيعه يا ثمن مجهول وي هغه بيع مفضي الى النزاع وي او مفضي الى النزاع بيع جائز نه ده، لهذا مزابنه جائز نه ده د محاقلې د ممانعت وجه هم دغه ده. د مزابنې او محاقلې تعريف په خپله په حديث کې ذکر دی، لهذا هم دغه کتل به کافي وي.

## د بيع محاقله ممانعت

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُخَابَرَةِ وَالْمُحَاقَلَةِ وَالْمُزَابَنَةِ وَ |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نهي فرمايلي ده د مخابرت، محاقلت او مزابنت نه او |
| الْمُحَاقَلَةُ : أَنْ يَبِيعَ الرَّجُلُ الزَّرْعَ بِمِائَةِ فَرَقٍ حِنطةً وَ الْمُزَابَنَةُ : أَنْ |
| محاقلت دادی چې يو سړی خپل پټی په سل فَرَق غنمو په بدل کې خرڅ کړي او مزابنت دا دی چې يو |
| يبيعَ التمْرَ فِي رؤوسِ النَّخْلِ بِمِائَةِ فَرَقٍ وَ الْمُخَابَرَةُ: |
| سړی په بوټي کې زوړندي کهجوري په سل فَرَق پرتو کهجورو په بدل کې خرڅ کړي او مخابرت دا دی |
| كِرَاءُ الْأَرْضِ بِالثُّلُثِ وَ الرُّبُعِ .[1] |
| چې يو سړی خپله زمکه په يو معين برښه لکه نيمه يا څلورمه باندې په کرونده باندې ورکړي. |

**توضيح:والمحاقلة**: د باب **مفاعله** نه دی. حقل زرخيزي زمکې ته هم وايي او حقل مزارعت او کاشتکاري ته هم وايي. دلته په کرهنه کې معامله مراد ده. د دی اصطلاحي تعريف داسې دی. کهڑی هوئی فصل اسی جنس کی بدلی نکلی خوئی غله کی بدله میں بیچنے کا نام محاقله هی. نو د سود احتمال، د جنجال امکان او د جهالت مبيع په وجي سره دا بيع ناجائزه ده.

**فرق**: را باندې زبر دی دا يوه پيمانه ده چې په هغې کې شپاړس رطل يعنې اته (۸) سيره غله راځي

---

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ١١٧٤/٣ رقم الحديث ١٥٣٦/٨١

په دي کې یو لفظ د را د سکون سره هم دی. دا د هغه پیماني نوم دی چې په هغې کې ۱۲۰ رطل غله راځي. پدې حدیث کې د سل فرق ذکر د مثال په توګه دی. څه تحدید او تعین پکې نشته دی. مخابره: مزارعه ته وايي. تفصیل راتلونکی دی. (المرقات ۷۱/۶)

## د څو کلونو لپاره باغونه په قرارداد باندې ورکول منع دي

| ﴿۳﴾ وَعَنْهُ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَنِ الْمُحَاقَلَةِ وَالْمُزَابَنَةِ وَالْمُخَابَرَةِ |
| --- |
| جابر رضي الله عنه راوي دي وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم منع فرمايلي د محاقلت، مزابنت، مخابرت. |
| وَ الْمُعَاوَمَةِ وَ عَنِ الثُّنْيَا وَ رَخَّصَ فِي الْعَرَايَا. [1] |
| معاومت او د ثنيا نه خو نبي کريم صلی الله علیه وسلم د عرايا اجازت ورکړی دی. |

**توضیح: والمعاومة**: د محاقله، مزابنه او د مخابره معناګاني مخکې بیان شوي دي. دلته پدې حدیث د "معاومه" لفظ راغلی دی. دا د باب مفاعلي نه دی. د دې په ماده کې لفظ "عام" پروت دی. چې د کال په معنی دی. لکه په مشاهره کې د "شهر" لفظ پروت دی. علامه ابن اثیر په نهایه کې لیکلي دي چې کهجوري او داسې نورشیان په بوټو کې د میووو د دووو (۲) کالو یا د درې (۳) کالو یا د دینه ډیرو کالونو لپاره خرڅول نوم معاومه دی. دا بیع ناجائزه ده. ځکه چې د مبیع وجود نشته دی. او معدوم کې بیع ناجائزه ده. ځکه دا مفضي الی النزاع ده. نن سبا قراردادیان خلک باغانه د درې، څلورو کالونو لپاره په قرارداد واخلي. او روپۍ اول ورکړي. کله په کال کې میوه راشي کله روپۍ ضائع شي. دا ناجائز او حرام دي. د دې اسانه او جائزه صورت دا دی چې زمکه په دي په اجاره واخستلی شي. د معاومه دویم نوم بیع السنین هم دی. چې راروانو حدیثونو کې به یې ذکر دی. (المرقات ۷۲/۶)

**الثنیا**: ثا باندې پیش دی او لون ساکن دی. دا د استثناء په معنی دی. د دې مطلب دا دی چې په بوټو باندې شته میوه خرڅه کړي شي خو په هغې کې د غیر معین مقدار مستثنی کړی شي مثلاً که داسې وویلی شي ما دا باغ په تا خرڅ کړی دی مګر یو څو بوټي نا. نو پدې بیع کې جهالت راغلو چې باعثِ نزع دی. لهذا دا بیع فاسده ده.

**العرایا**: دا د عرة جمع ده چې د خیرات په معنی دی. تفصیل په راتلونکې حدیث کې راوران دی.

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۱۷۲ رقم الحديث ۸۵/۱۵۳۶

## د بيع عرايا حكم

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بيعِ التمرِ |
| سهل بن ابي حثمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع فرمايلي ده د خرڅولو د بوټي كهجوري |
| بالتمرِ إِلَّا أَنَّهُ رَخَّصَ فِي الْعَرِيَّةِ |
| په بدل د وچو كهجورو كې خو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د عريه (يو محتاجه ته وركړى شوي بوټي) په اړه دا اجازت |
| أَنْ تُبَاعَ بِخَرْصِهَا تَمْرًا |
| وركړو په هغې كې د شته ميوو د هغې تر وچيدو (نه وروسته د مقدار) اندازه كړى او خرڅ يې كړى (يعنې |
| اندازه دې وكړى شي چې پدې بوټي كې تازه كهجوري به د وچيدو نه وروسته څو مره پاتې كيږي او بيا په |
| همغه مقدار دې وچې كهجوري هغه محتاج ته وركړى شي او هغه د بوټي كهجوري دې واخيستلى شي) |
| يَأْكُلُهَا أَهْلُهَا رُطَبًا.[1] |
| همدغه شان دې د دې مالک د هغه بوټي تازه ميوه وخوري. |

**توضيح**: العرايا: دا جمع ده د دې مفرد **عرية** دى چې پدې حديث كې ذكر شوى دى. په نورو حديثونو كې د جمعي صيغه راغلي ده. **العرية والعرايا الاضحية والضحايا او المطية والمطايا** پشان دى عريه د تعرى نه ده. چې بربندلو او د خالي كولو په معنى دى. دا چې د باغ مالک د څو كهجور نه لاس راكاږي او خالي يې كړي. نو ځكه ديته په لغوي توګه عريه ويل شوي دي. (المرقات ۶/۷۲)

**د العرايا تفسير او تعريف**: پدې د ټولو فقهاؤ اتفاق دى چې عريا جائز دى. خو د عرايا توضيح او تشريح او د دې تفسير او عكس كې د فقهاؤ اختلاف شوى دى.

**د شوافعو او حنابلوو په نز د عرايا تفسير**: امام شافعي وايي چې اصل كې عريه د هغه محتاج خلكو لپاره وو. چې د هغوى سره به نه باغ وو، نه به روپۍ وې. خو د هغوى سره به وچې كهجوري وې. كله به چې د كهجورو موسم راغلو نو د هغوى به د رطب د خوړلو شوق كولو. د اخستلو وس په نه لرو وجې به هغوى نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته خاست وكړو چې د وچو كهجورو په بدل كې مونږ ته رطب ملاوو شي. نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورله اجازت وركړلو او دا شرط يې كيخودلو چې د وچو كهجورو وزن معلوم وي. كيل معلوم وي او دا معامله پنځه وسق كې به وو. دا چې د ضرورت د

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۸۷/٤ رقم الحديث: ۲۱۹۱، ومسلم في صحيحه ۱۱۷۰/۳ رقم الحديث: ۱۵٤۰ . ۷

لاندې اجازت وو. لهذا د ضرورت د نظر لاندې دغه بیع مزابنه نه مستثنیٰ وګڼلې شوه. ګینې په حقیقت دا مزابنه ده. ګینې مزابنه په دوه قسمه ده. یوه مزابنه ناجائز ده او دویمه مزابنه جائز ده. چې د هغې نوم عریه دی. (المرقات ۶/۷۲)

**د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ په نز د عرایا تفسیر**: د امام مالک نه د عریه دوه تفسیرونه منقول دي. اولنی تفسر او تصویر دا دی چې د عریه صورت داسې وو چې مثلاً د یو سړي به غټ باغ وو. په غټ باغ کې یو بل سړي ته د ملکیت په توګه د کهجورو څو بوټي ورکول شو. د عربو دستور وو. چې د میووو د راشکولو په موسم کې به هغه د خپل اهل وعیال سره به خپلو باغونو ته راغلل او خیمې به یې ولګوي. نو دا مشکل به راتللو چې په به هغه سړی هم تللو راتللو چې یو څو بوټي به د هغې په ملکیت کې وو. د دې په وجه به د غټ باغ والا ته تکلیف وو. نو ځکه به هغه سړي وچې کهجوري ورکړي او دهغوی نه به یې بوټي اخستل.دا چې دا خالصه مجبوري وه نو ځکه نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوی ته اجازت ورکړلو ګویا کې دا د مزابنه یو صورت وو. خو د مجبورۍ د نظر لاندې دا د مزابنه نه مستثنی وګڼلی شو.

**د امام مالک نه د عریه دویم تفسیر چې احنافو اخستی دی**: امام مالک د عریه دویم تفسیر داسې کړي ده چې هغه وخت مثلاً د باغ مالک به خپل باغ کې یو سړي ته د هبه او عطیه په توګه یو څو د کهجورو بوټي ورکول. بیا به موهوب له د سړي تللو راتللو سره د باغ مالک ته تکلیف وو. نو ځکه به د باغ مالک د خپل کور نه هغې ته وچې کهجوري ورکړي او هغه به یې فارغ کړلو. د دې مجبورۍ په وجه نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مزابنه په دې صورت کې اجازت وکړلو. د احنافو ائموو د عریه همدغه تفسیر خپل کړی دی. خو د مالکیو او د احنافو په تنقیح او تخریج کې لګ شان فرق دی. هغه دا چې مالکیه دیته بیع جدید وایي. او دا بالکل مزابنه ګڼي مګ د ضرورت په وجه دا د مزابنه نه مستثنی ګڼي. خو د احنافو ائمه دا د هبه یا د عطیه په توګه ګڼي چې دلته یو هبه د بلې هبې سره تبادله شوي ده. نو دا استرداد الهبة بالهبة دی. اګر چې د بیع صورت دی. مګر حقیقت کې عطیه ده. دلته د مزابنې پوښتنه د سره پیدا کېږي او به حدیث کې مزابنه نه د عرایا استثناء منقطع ده. لهذا عرایا یا مزابنه کې بالکل داخل ندی. ځکه د مزابنې ممانعت په ډیرو احادیثو کې راغلی دی. د امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ د تفسیر مطابق د عریه په مزابنه کې د داخلیدلو شبه پیدا کېږي او مزابنه ربوا ده. نو څنګه چې ربوا حرامه ده نو د هغې شبه هم ناجائزه او حرامه ده. لهذا هغه تفسیر ښه ندي. صاحب قاموس متشدد شافعي دی. هغوی د عریه تعریف د عطیه نه کړي دی. چې عریه عطیه ده.

علامه ابن منظور په لسان العرب کې لیکلي دي: اَعْرَاهُ النَّخْلَةَ وَهَبَ لَهُ ثَمَرَةَ عَامِهَا یعنې د ټول کال

لپاره د میوي عطیه کولو نوم عریه دی. یو شاعر د عریا باره کې وایي:

لیست بسنهاً ولا رجبیة ❁ ولکن عرایا فی السنین الجوائح

سنها هغه بوټي ته وایي چې یو کال میوه ورکړي او بل کال یې نه ورکوي او رجبیه هغه بوټي ته وایي چې د هغې د څانګو نه ګیر چاپیره ازغي جمع شوي وي د دې لپاره چې غل دا غوټ نکړی شي.
جوائح د جائحة جمع ده. اسماني مصیبت او قحط ته وایي. یعنې د ممدوح ورکړی شوی بوټي نه غیر میوه دار دی او ازغن دی. بلکې د قحط په کالونو کې خالصه عطیه ده.
امام لغت ابو عبید رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي العریة امام لغت ازهري رَحِمَهُ اللّٰهُ هم دغه شان تفسیر کوي. ابن سیده هم عریه ته عطیه ویلي دي او چې شنه وي هم یې ورته عریه ویلي دي. په صحاحو کې هم دغه شان قول منقول دی. امام طحاوي یو حدیث نقل کړی دی. چې په هغې کې په واضحه توګه د عریه تصویر عطیه دی وایي رخص في العرایا في النخلة والنخلتین توهبان للرجل بیعهما بخرصهما تمرًا.
احنافو د امام مالک تفسیر ځکه اخستی دی چې امام مالک د مدینې په لغت د ټولو نه ښه پوهیدو او د مدینې په خلکو کې د عریه هم دغه تفسیر شائع شوی ؤ. لهذا د دې اخستل د ټولو نه غوره دي.
**سوال:** دلته دا سوال شوي دي چې د احنافو د تفسیر مطابق هبه نه رجوع کول لازمېږي چې د باغ مالک اول بوټي هبه کړلي، بیا یې رجوع وکړه او وچي کهجوري یې ورکړلي. دا څنګه جائز شو؟
**جواب:** د دې جواب دا دی چې دلته اول د هبه نه رجوع نه ده شوي بلکې دا فسخ کړی شوي ده. ځکه تر وسه پورې د دې قبضه نه وه شوي. نو دا استرداد الهبة ده. د یو عطیه په بدل کې یې بله عطیه ورکړله. په دې کې هیڅ باک نشته دی.
د دې حدیث نه وروسته حدیث کې د پنځه وسق نه کم کې د عریه حکم کړی شوی دی. دا چې عریه د احتیاج او ضرورت د نظر لاندې جائز کړی شوي دی او ضرورت به هغه وخت پوره کېدلو. نو ځکه د دې ذکر کړی شوی دي. یو وسق شپېته (۶۰) صاع وي. او په یو صاع کې د انګریزي سیر په حساب سره درنیم (۳.۵) سیره غله راځي. او پنځه وسق کې شپګیش (۲۶) منه غله راځي.

| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ : أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْخَصَ فِي بَيْعِ الْعَرَايَا |
|---|
| ابو هریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجازت ورکړو په بیع د عرایا کې (محتاجه ته عاریتا |
| دو رکړی شوي بوټو میوو د وچو کهجورو سره اندازه کولو او د خرڅولو یعنې که په عرایا کې کهجوري |
| بِخَرْصِهَا |
| په وچو کهجورو سره بدلول وي نو اول ده) اندازه کړی شي چې د تازه کهجورو د وچیدلو نه وروسته |

| |
|---|
| مِنَ التَّمْرِ |
| څو مره پاتې کېږي. بیا په همغه مقدار کې وچې کهجورې به اخستلو سره دې تازه کهجورې ورکړي |
| فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوسق أَوْ خَمْسَةِ أَوسق |
| شي مګر د اجازت تعلق د دې صورت سره دی) خو که د پنځه وسق نه کم وي یا پنځه وسق وي دا حدیث |
| شكَّ دَاوُد ابْن الحصين.[1] |
| دیو راوي داؤد ابن حصین رَحِمَهُ اللّٰهُ شک دی (چې د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ارشاد کې د پنځه وسق |
| نه کمه تذکره وه او که د پنځه وسق تذکره وه). |

## د پخیدو نه مخکی د میوو خرڅول منع دي

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الثِّمَارِ |
| عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د میوو خرڅول تر هغه پورې منع کړي دي. |
| حَتَّى يَبْدُوَ صَلَاحُهَا نَهَى الْبَائِعَ وَ الْمُشْتَرِي.[2] |
| چې تر څو پورې د هغې پخیدل ښکاره نه شي دا ممانعت د خرڅونکي او اخستونکې دواړو لپاره دي. |
| وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: نَهَى عَنْ بَيْعِ النَّخْلِ حَتَّى تَزْهُوَ وَعَنِ السنبل حَتَّى يبيض ويأمن العاهة. |

**توضیح: یبدو صلاحها:** یعنې تر څو پورې چې په بوټي کې پوخوالی ښکاره نشي د هغې نه مخکې د هغې خرڅول حرام دي. **بُدُوِّالصَّلَاحِ:** د دې تفسیر د شوافعو په نزد دا دی چې میوه پخیدل شروع شي. احنافو دا تفسیر کړی دی چې میوه د عام مصیبت او د تباهی نه بچ شي. پدې حدیث کې د یبد لصلاح لفظ راغلی دی. په نورو روایاتو کې نور الفاظ راغلي دي مثلاً ۱: **حتی یزهو** ۲: **حتی یبیض** ۳: **حتی تزهی** ۴: **حتی تحمر** ۵: **حتی یحمار** ۶: **حتی یشتد** ۷: **حتی یسود.**

د دې ټولو احادیثو او ټولو الفاظونه نه هم یو بیان کول مقصود دی. هغه دا چې بُدُوِّالصَّلَاحِ نه مخکې بیع کول مه کوی یعنې تر کومې پورې چې میوه د مصیبت نه بچ نه وي. نو دا مه خرڅوی او د راتلونکې مصیبت لپاره بیلابیل علامات دي. ځینې میوي او پتې په سپینیدلو سره د مصیبت نه

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۸۷/٤ رقم الحديث: ۲۱۹۰، ومسلم في صحيحه ۱۱۷۱/۳ رقم الحديث: ۱ ۱۵٤۱/۷.
(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۹٤/٤ رقم الحديث: ۲۱۹٤، ومسلم في صحيحه ۱۱٦۵/۳ رقم الحديث: ۱۵۳٤/٤۹.

محفوظي ښي. ځينې په سره کېدلو سره، ځينې په توريدلو سره او ځينې په زيړيدلو سره محفوظي شي. د دې ښلا ښل الفاظو نه همدغه ښلا ښل حقائقو اړخ ته اشاره کړې شوې ده.

د ونو او د ميووو د خرڅولو دوه صورتونه وي ۱: بيع مخکې د بدوالصلاح ۲: بيع وروسته د بدوالصلاح. بيا په دواړه صوروتونو کې درې درې صورتونه دي. ۱: يعنې بيع بشرط اقطع چې بائع شرط ولګوي چې ميوه فوراً د بوټې نه غوڅ کړې شي ۲: بيع بشرط الترک يعنې په عقد کې دا شرز وي چې بوټې باندې دا ميوه به د فلانې وخته وي. ۳ک بيع بازلاق يعنې په عقد کې نه د قطع ثمر ذکر وي او نه د ترک ثمر ذکر وي. همدغه شان ټول شپز صورتونه جوړ شول. درې مخکې د بدوالصلاح نه او درې وروسته د بدوالصلاح نه، په دې مسئله کې هم د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاو اختلاف**: د شوافعو او د حنابلو په نز د بعد بدوالصلح درې صورتونه جائز دي او د قبل بدوالاصلح درې صورتونه ناجائز دي. خو د قبل بدوالصلاح يو صورت عقلاً مستثنیٰ ګڼلی شوی دی. يعنې د شرط القطع ځکه په دې کې د جنجال امکان نه وي. د ماليکيو په اقوالو کې انضباط نشته دی. ځکه هغه وو نه ليکلی شو. د احنافو په نز د قطع ثمر او ترک ثمر بنياد په ثمر باندې دي. که چري بيع په شرز د قطع الثمر وي نو قبل بدواللاح هم جائز ده او بعد بدوالصلاح هم جائز ده او که بيع په شرط ترک الثمر وي نو قبل بدو الصلاح هم ناجائز ده او بعد بدو والصلاح هم ناجائز ده. د فقهاؤ اختلاف اصل کې په شرط د ترک الثمر کې دی.

**دلائل**: شوافع او حنابله وايي چې زمونږ دليل يو حديث دی چې په هغې کې دا الفاظ دي **نهی** رسول الله ﷺ **عن بيع وشرط** دا معروف حديث دی. په دې کې صلب عقد کې د شرط لګولو نه ممانعت راغلی دی. دا شرط د عقد بيع منافي دی او په دې کې مشتري لپاره ګټه ده. ځکه هغه وايي چې زه ميوه اخلم خو پدی شرط چې دومره وخت پوءې به ميوه په بوټې کې وي. دغه شان بيع او شرط ناجائز دی.

**جواب**: د زيربحث حديث اړه په شرط د ابقاء الثمر نه ده او دا ناجائز دی. د نورو صورتونو نه نه دی. امام طحاوی دا حديث په بيع سلم باندې حمل کړی دی. ځکه سلم کې بدوصلاح بالا تفاق ضروري دی.

## په باغ کې چې کله ميوه وشي نو بيا يې خرڅوی

| ﴿۷﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الثِّمَارِ |
| --- |
| انس رضی الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ د ميوو (په بوټو کې) ترهغه پورې د خرڅولو نه منع کړې |

| |
|---|
| حَتَّى تَزْهَى قِيلَ : وَمَا تَزْهَى ؟ |
| ده چې تر څو پورې هغه خوش رنګ نه شي. عرض وکړې شو چې د خوش رنګ کېدلو څه مطلب دی؟ |
| قَالَ : حَتَّى تخمر " وَ قَالَ : |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل چې تر کومې پورې هغه سرې نه شي یعني پخې نشي او بیا یې وفرمایل هم تاسو |
| أَرَأَيْتَ إِذَا مَنَعَ اللهُ الثَّمَرَةَ بِمَ يَأْخُذ أحدكم مَال أَخِيه ؟.[1] |
| ووایې چې الله تعالی میوې حصارې کړې نو په تاسو کې څوک ولې د خپل ورو مال به واخلي. |

## د څو کلونو پورې د باغ میوه خرڅول منع دي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ السِّنِينَ |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایې چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د څو کالونو میوه د خرڅولو نه منع کړېده (یعني یو کال یا |
| دوه کاله یا درې کاله او یا د دینه د ډیرو کالونو لپاره د بوټې میوې پیشګی خرڅول ندي پکار) |
| وَ أَمَرَ بوضْع الجوائح.[2] |
| همدغه شان نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مصیبت شوي سره د رعایت حکم کړی دی. |

**توضیح: بوضع الوائح:** پدې حدیث کې دوه حکمونه ذکر دي: یو دا چې میوې او باغونه د څو کالو لپاره پیشګی خرڅول جائز ندي. ځکه که میوه نه ده راغلي نو مالک او بائع که د کوم اصول لاندې کې د مشتري روپۍ وخوړلې نو دا ناجائزه ده. دویم حکم وامر بوضع الجوائح: کې بیان کړلی شوی دی. وضع کمولو او پرېښودلو ته وایي . او جوائح د جائحة جمع ده. په ونې او میوه باندې اسماني راتلونکی مصیبت او نقصان ته وایي. د حدیث مطلب دا شو چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې که یو سړی مثلاً د چانه باغ واخستلو او په هغې میوه هم راشي مګر په څه وجې باندې هغه د حادثې ښکار شو او بائع د مشتري نه تر وسه پورې روپۍ ندي اخستې او مال تباه شو. نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بائع ته د اخلاقو ډاډګیرنه ورکړې ده وس د مشتري د پیسو نه څه کمي کړه. ځکه د دې په لاس هېڅ رانه غلل. دا حکم هم د ښو اخلاقو او د ښه روش او توافق بنیاد دی. ګیني د قانون مطابق به مشتري ته هېڅ نه ملاوېږي. ځکه مبیع د مشتري په لاس کې د قبضې نه وروسته ضایع

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۹۸/٤ رقم الحديث :۲۱۹۸، ومسلم في صحيحه ۱۱۹۰/۳ رقم الحديث: ۱۵۵۵/۱۵.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۱۷۸/۳ رقم الحديث: ۱۰۱-۱۵۳٦

شوی دی. نو د دې مسئوولیت هم د هغه په ذمه باندې دی. ځکه د شریعت عام قانون دی چې "الغنم بالغرم والخراج بالضمان" یعنې تاوان به همغه کس ورکوي چې ګټې حقدار وي. (المرقات ۶/۷۵)

اول رجب ۱٤۱۰ھ

## د ضایع شوي مبیعې ذمه‌وار څوک؟

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَوْ بِعْتَ مِنْ أَخِيكَ |
| جابر رضی الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل که تا دیو مسلمان ورور په لاس میوه خرڅه کړه |
| ثَمَرًا فَأَصَابَتْهُ جَائِحَةٌ فَلَا يَحِلُّ لَكَ أَنْ تَأْخُذَ مِنْهُ شَيْئًا |
| او یو داسې آفت راغلو چې هغه میوه ضایع شو نو ستا لپاره دهغې نه هیڅ اخستل حلال ندي (ته خپله |
| بِمَ تَأْخُذُ مَالَ أَخِيكَ بِغَيْرِ حَقٍّ؟.[1] |
| سوچ وکړه چې په داسې صورت کې) د یو ورو مال به په ناحقه سره څنګه اخلې. |

**توضیح: فلایحل لك:** یعنې که یو سړی په بل سړی باندې میوه یا پټی خرڅ کړي مګر د مشتري قبضې ته ورتللو نه مخکې د بائع په لاس کې هلاک شي. پدغه صورت کې د دې حدیث حکم بالکل واضحه دی. د څه تاویل ضرورت نشته دی چې د بائع نه مشتري مبیع په قبضه کې اخستې ده او بیا د هغې په لاس کې هلاک شو نو د احنافو او د شوافعو په نز مشتري ذمه وار دی چې بائع ته نرخ ورکړي. د دې دلیل د مسلم جلد ۲ ص ۱۶ د حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم مشتري ذمه وار ګرځولی دی او د خلکو نه یې د هغې لپاره د صدقې کولو غوښتنه کړې ده. لهذا زیر بحث حدیث کې به همدغه تاویل کول وي چې د دینه مخکې حدیث کې شوی دی چې د حدیث تعلق د تقوی او احسان، ښه اخلاق او د توافق سره دی چې د اخلاقو او توافق تقاضا دا ده چې بائع د مشتري نه هیڅ وانخلي ځکه د مشتري په لاس کې هیڅ ندي راغلي. اګر که ضابطې او د قانون د لاندې د دې نرخ اخستل کیدی شي. امام مالک رحمه الله وایي چې که چرې د باغ د نیمې ډیر نقصان شوی دي نو بیا د نقصان ذمه وار بائع دی او که د نیمې نه کم نقصان شوی وي نو بیا د نقصان ذمه وار مشتري دی. همدغه شان په ټولو احادیثو کې تطبیق راشي چې د ډیر نقصان والا روایاتو

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۱۹۰/۳ رقم الحديث: ۱۵۵٤/۱٤

تعلق د بائع سره دی چې هغه ذمه وار دی او د کم نقصان والا روایاتو تعلق د مشتري سره دی چې هغه یې ذمه وار دی. (المرقات ٦/٧٦)

## په منقوله شیانو کې د قبضې نه مخکې بله بیع جائز نه ده

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : كَانُوا يَبْتَاعُونَ الطَّعَامَ فِي أَعْلَى السُّوقِ |
| ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې د بازار په هغه برښه کې په اوچته باندې واقع وو. خلکو به غله اخستله او |
| فَيَبِيعُوْنَهُ فِي مَكَانِهِ فَنَهَاهُمْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| بیا به یې هغه په همغه ځای (د قبضه کولو نه مخکې) خرڅه کړه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغوی د دې خبرې نه منع |
| عَنْ بَيْعِهِ فِي مَكَانِهِ حَتَّى يَنْقُلُوهُ.[۲] |
| کړل چې ترڅو (د اخیستونه وروسته) د هغه ځای نه بدل نه شي نو هغه دې په هغه ځای کې خرڅ نکړی شي |

**توضیح: حتی ینقلوه:** د مبیع د بدلولو مطلب دا چې ترڅو هغه مشتري په خپله قبضه کې نه وي اخستی نو د هغې خرڅول جائز ندي د مبیع قبل القبض تفصیلات او جائز و ناجائز کېدو کې د فقهاؤ اختلاف دی

**د فقهاؤ اخلاف:** پدې باندې خو د ټولو فقهاؤ اتفاق دی چې که چرې مبیع غله او طعام دی نو قبل القبض د هغې خرڅول جائز ندي. او که چرته مبیع د غلې او د طعام نه بغیر بل څه شی دی نو پدې کې د فقهاؤ اختلاف دی. امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ او امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې څنګه چې د غلې او د طعام قبل القبض نه مخکې خرڅول جائز ندي نو همدغه شان نور شیان زمکه او کور او داسې نور شیانو خرڅول هم د قبضې نه مخکې خرڅول جائز ندي. د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ په نز غله او طعامو نه بغیر د ټولو شیانو خرڅول قبل القبض جائز دي. امام ابو حنیفه، امام ابو یوسف او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ په نز د منقوله شیانو خرڅول قبل القبض ناجائز دي خو غیر منقوله شیان لکه زمکه او کور او داسې د نورو شیانو خرڅول د قبضې نه مخکې جائز دي.

**دلائل:** شوافعو حضراتو زیر بحث حدیث نه استدلال کړی دی. همدغه شان په راروان حدیث نمبر ۱۱ کې هم "**حتی یستوفیه اورحتی یکتاله**" الفاظ راغلي دي او په حدیث کې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې "**ولااحسب کل شئ الا مثله**" یعنې د ټولو شیانو همدغه حکم دی. د دې ټولو روایاتو نه شوافع استدلال کوي. امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ زیر بحث حدیث نه استدلال کړی دی او دا حکم یې فقط

---

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ٤/٣٧٥ رقم الحديث :٢١٦٧، ومسلم في صحيحه ٣/١١٦٠ رقم الحديث: ١٥٢٧/٣٣.

په غله او طعام باندې منحصر کړی دی. په نورو شیانو کې پابندي نشته دی. ائمه احناف او حنابله وايي چې زیربحث حدیث کې چې د کومې غلی او طعام ذکر شوی. دا د منقله شیانو اړه ته اشاره ده. لهذا د ټولو منقوله شیانو قبل القبض بیع ناجائز ده. دا حضرات وايي چې پدې حدیث کې ممانعت کې اصل علت د وېرې او د هلاکت د مبیع دی. او دا علت په منقوله شیانو کې په ناڅاپي توګه باندې دی. نو حکم وشو چې اول قبضه وکړئ او بیا یې خرڅ کړی او په منقوله شیانو کې د ناڅاپي هلاکت ویره نشته دی. لهذا د دې د قبضه کولو نه مخکې د خرڅول جائز دي. احناف هم دغه وايي چې د هر یو شی د قبضه کولو خپل صورت وي. په ځینو شیانو کې فقط په کتلو سره قبضه راځي. د هغې ځای بدلو امکان نه لري لکه زمکه او داسې نور شیان او په ځینو کې ځای بدلولو ته قبضه ویل کېږي. په ځینو کې تلل یا ناپ کول ته قبضه ویل کېږي. نو ځکه احنافو د منقوله او د غیر منقوله لپاره قاعده جوړه کړله او حکم یې عام کړو چې د حدیث په ټولو صورتونو باندې عمل وکړی شي. شوافعو فقط یو صورت خپل کړی دی. حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ چې څنګه حکم د منقوله غیر منقوله ټولو شیانو لپاره عام منلی دی. دا د هغې خپله رائی او اجتهاد دی چې هغې په غلی باندې غیر غله قیاس کړې ده. احنافو د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ رائی ته ترجیح ورکړې ده. هغه وايي چې بیع قبل القبض کې د ممانعت علت ربح فیما لم یضمن دی چې هغه ناجائز دی. ځکه هغه ګټه ده او نقصان نه دی بهرحال که مبیع د مشتري په مخامخ وزن کړی شي یا ناپ کړی شي نو د مشتري لپاره دوه ځله وزن کول او ناپ یا کیل کولو ضرورت نشته دی که څوک یې وکړي نو استحبابي حکم دی.

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنِ ابْتَاعَ طَعَامًا |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "کوم سړی چې غله واخلي نو هغه دې تر |
| فَلَا يَبِيعهُ حَتَّى يَسْتَوْفِيه . وَ فِى رِوَايَةِ ابْنِ عَبَّاسٍ : |
| هغه پورې نه خرڅوي چې تر څو یې هغه اخیستی نه وي. او د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ په روایت کې دا |
| حَتَّى يكْتَالَه .[1] |
| الفاظ دي چې تر څو پورې هغه ناپ نه کړی شي. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٤/٣٤٤ رقم الحديث: ٢١٢٦، ومسلم في صحيحه ٣/ ١١٦٠ رقم الحديث: ١٥٢٦/٣٢.

| |
|---|
| ﴿١٢﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : أَمَّا الَّذِي نَهَى عَنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهُوَ الطَّعَامُ |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم چې د کوم شي نه منع کړې ده هغه غله ده چې داد |
| أَنْ يُبَاعَ حَتَّى يُقْبَضَ . قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ : وَلَا أَحْسِبُ |
| قبض کولو نه مخکې خرڅول منع دي ابن عباس رضي الله عنه وايي چې زما ګمان دی چې (د دې باره کې) |
| كُلَّ شَيْءٍ إِلَّا مِثْلَهُ.[1] |
| هر شی د غلې پشان دی. |

## د بيع مُصَرات مسئله

| |
|---|
| ﴿١٣﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَا تَلَقَّوُا الرُّكْبَانَ |
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دي وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل تاسې مه يو ځای کيږئ د قافلې |
| لِبَيْعٍ وَلَا يَبِعْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَيْعِ بَعْضٍ وَلَا تَنَاجَشُوا |
| سره داخيستلو او خرڅولو لپاره او په تاسو کې ديو سړی د هيڅ بيع باندې بيع نه کوي او نجش مه کوئ |
| وَلَا يَبِعْ حَاضِرٌ لِبَادٍ وَلَا تُصَرُّوا الْإِبِلَ وَ الْغَنَمَ |
| کوي او د ښار سړی ديو باندې چې مال نه خرڅوي او داوښانو او ديزو په تئينو کې پئ مه جمع کوی او که |
| فَمَنِ ابْتَاعَهَا بَعْدَ ذَلِكَ |
| يو ګس داسې څاروی واخلې چې دهغه په تئينو کې پئ جمع کړی شوي وي نو دپئيو لوشلو نه وروسته |
| فَهُوَ بِخَيْرِ النَّظَرَيْنِ بَعْدَ أَنْ يَحْلُبَهَا : إِنْ رَضِيَهَا |
| به د دغه څاروي د ځان سره کولو او يا بېرته ورکولو اختيار به وي. که يې خوښه وي نو دغه څاروی به |
| أَمْسَكَهَا وَ إِنْ سَخِطَهَا رَدَّهَا وَ صَاعًا |
| د ځان سره کړي او که خوښه يې نه وي نو بېرته به ورکړي او د هغې سره به يو صاع (درې نيم سيره) |

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٣٤٩/٤ رقم الحديث: ٢١٣٥، ومسلم في صحيحه ١١٥٩/٣ رقم الحديث: ١٥٢٥/٣٠.

| مِنْ تَمْرٍ ".[1] |
|---|
| کهجوري ورکړي. |
| وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: "مَنِ اشْتَرَى شَاةً مُصَرَّاةً فَهُوَ بِالْخِيَارِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ: فَإِنْ رَدَّهَا رَدَّ مَعَهَا صَاعًا مِنْ طَعَامٍ لَا سمراء |

**توضيح:لاتلقوا الركبان**:په دې حديث کې پنځه مهم مسائل ذکر شوی چې په هغې د ټولو نه مهم او تفصيلي طلب مسئله د بيع مُصَرّات ده. مګر د دې د تفصيل نه مخکې د څلورو (۴) مسائلو څه تذکره ضروری ده:

**اوله مسئله: تلقى الركبان**:رکبان قافلي ته وايي او تلقى ملاويدو او ملاقات ته وايي يعنې د اخستلو او خرڅولو په غرض د قافلې سره ملاقات کول. دې فعل ته تلقى بيوع او تلقى السلع او تلقى جلب هم وايي. مطلب دا دی چې مثلاً که تاجرانو ته معلومه شي چې د ښار منډيانو اړه ته د بهرون نه يوه تجارتي قافله غله راوړي. منډيې ته رارسيدلو نه مخکې د ښار يو تاجر بهرون وځي او سودا وکړي او ټوله غله واخلي. اسلام دغه منع کړې ده. او د منع کولو يوه وجه ده چې د دې ښار والاوو ته نقصان رسيدلی شي. د غلي نرخ به لوړ شي. ځکه مال د کولاوي منډيې په ځای به يو سړی ته لاړ شي. د ممانع دويمه وجه دا ده چې په دغه صورت کې خپله د قافلې والا ته هم د نقصان رسيدلو خطر دی. ځکه هغې د ښار د نرخ معلومات به نه وي. او د ښار تاجر به دغې غلي نرخ اووايي او غله به واخلي. نو ځکه نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دغې طريقې نه منع کړې ده. د دې دووو حکمتونو د نظر لاندې د دې عمل مکروه کېدلو باندې د ټولو فقهاؤ اتفاق دی. ائمه احناف هم دا مکروه ګڼي. خو پاس دوه حکمتونه ذکر دي. د دې نظر لاندې امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې که چرې ښار والاوو ته نقصان نه وي او هم دغه شان قافلي والاوو ته هم نقصان نه وي. نو بيا په دغه طريقه کې کراهت نشته دی. امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ تلقى رکبان ته کله هم جائز ندی ويلی. خو په حديث کې چې د ممانعت کوم علت ذکر دی چې هغه ضرر الناس دی. که هغه علت نه وي نو بيا به ممانعت نه وي. بهرحال د مسلم شريف په روايت کې دي چې که چرې د قافلې والاوو سره دهوکه وکړلی شوه. نو هغه ښار ته راتللی شي او د سودا د بېرته فسخ کولو اختيار هم لري. لکه څنګه چې په حديث نمبر ۱۴ کې راروان دي. جمهور فقهاء وايي چې چرې د غبن فاحش په درجه کې خساره (تاوان) شوی وي نو د قافلې والا سودا ختمولی شي امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې اخلاقًا او مروةً او ديانةً حکم همدغه دی

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۶۱/۴ رقم الحديث :۲۱۵۰، ومسلم في صحيحه ۱۱۵۵/۳ رقم الحديث: ۱۵۱۵/۱۱.

کوم چې په حدیث کې ذکر دی. خو د قضاء په توګه به هغوی ته د سودا د فسخ کولو حق نه وي. هغوی ښه په هوش او هواس کې سودا کړې ده. چې لازمه شوي دا. همغه په شریعت کې د بېوعاتو لپاره عامه ظابطه ده.

**دوهمه مسئله**: **بیع علی بیع بعض**: مثلاً که دوه سړي په خپل مینځ کې سودا کوي. ثمن متعین شوی دی. فقط اخستل او ورکول پاتې دي چې دریم سړی راشي او بائع یا مشتري ته لالچ ورکړي او د سودا د خرابولو کوښښ کوي. نو دا عمل مکروه دی. ځکه پدې سره د بغض او د عداوت دروازې کولاو ېږي. خو که چرې د بائع او د مشتري په سودا باندې اتفاق ونشو نو وس دریم سړی خپله خبره رامخکې کولی شي. د نکاح د پیغام حکم هم دغه شان دی.

**دریمه مسئله**: **تناجش**: **النجش**: نون باندې فتح ده. او جیم ساکن دی او فتح هم جائز ده. په لغت کې نجش معنی "**اثار الصید من مکان الی مکان**" دی. یعنې ښکار هلته او دلته په منډه کولو باندې پاروي. ځېنو علماؤ د نجش لغوي معنی دهوکه ویلې ده. ځېنو علماؤ مدح کول لیکلي ده.

مصنف د نجش اصطلاحي تعریف داسې کړی دی "**هوان یزید في الثمن لالرغبة بل لیخدع غیره**".

یعنې نجش دیته وایي چې یو داسې سړی دسودا نرخ په مشتري باندې لوړ کړي چې خپله یې نه اخلي، خو دا چې بل په اخستلو باندې د دهوکې په توګه وپاروي. پدې عمل کې مشتري د سودا په اخستلو باندې پارول هم دي. د هغې سره دهوکه هم ده او بې ځایه د سامان تعریف هم دی او دا درې واړه مفهوم نجش د لغوي معنی کې هم دي او اصطلاحي تعریف کې هم دي.

په عامه توګه باندې نجش کې دهوکه مشتري ته ورکولی کېږي. د فقهاؤ په نز بالاتفاق نجش حرام دی. که بائع او د ناجش دواړه په څه توافق سره دا عمل وي نو دواړه به ګهنګار وي. ګیني فقط به ناجش ګهنګار وي. علماؤ لیکلي دي چې د ناجش لپاره ملاترې ناشوني ده.

**د بیع نجش حکم**: د نجش په نتیجه کې د دې بیع حکم دا دی چې احنافو او د شوافعو په نز نفس بیع صحیح او جائز ده. مګر دا عمل مکروه او ګناه ده. خو د حنابلو او مالیکیو او د اهل ظواهرو په ... بیع باطله ده. او مشتري له د بیع د فسخ کولو اختیار دی. احناف او شوافع وایي چې قانوناً فسخ حق نه دی خو دیانةً او اخلاقاً دی. بهرحال د غرر او دهوکې دوه قسمونه دي. یو غرر فعلي دې دویم غ . قولي دی. په غرر فعلي کې بیع دیانةً فسخ کېږي او په غرر قولي کې قضاء فسخ کېږي. دلته غرر فعلي دی. لهذا دا فسخ د..انةً ده.

**څلورمه مسئله**: **بیع حاضر لباد**: یعنې یو.. اري سړی د یو ناجاړه باندې چې لپاره د هغې مال خرڅوي. د ناجائزه ده. علماؤ د دې بیع دوه تفسیرونه لیکلي دي. اولنی تفسیر او مطلب دا دی چې مثلاً یو

ښاري سړی خپل ځان باندې دا خبره لازمه کړي چې هغه مال ارځانه ملاویدلو د غرض نه به همیشه فقط د باڼچي ده سودا اخلي چې ګټه یې ډېره وي. صاحب هدایه هم دغه تعریف لیکلی دی. پدغه صورت کې د دغي بیع ممانع به هغه وخت وي کله چې د ښار والاړ ته د مال سخت ضرورت وي یا په ښار کې قحط وي. د دې بیع دویم تفسیر او دویم مطلب عامو محدثینو او فقهاؤ دا بیان کړی چې مثلاً یو ښاري سړی یو باڼچي ته وایي چې ته خپله او داسې نور شیان زما سره کیده. زه به یې ښه په مهارت سره په ګټور حالاتو کې په اطمینان سره ستا لپاره خرڅ کړم. وس دا ښاري سړی ګویا کې د باڼچي لپاره وکیل شو. په حدیث کې هم دغي ته دلال او وکیل و سمسار نوم سره کړی شو. د حدیث دا تفسیر او دا مطلب واضحه او راجحه دی. او په خاصه توګه چې کله "لِبَادٍ" کې لام نو کیل باندې دلالت کوي. شمس الائمه حلواني رَحِمَهُ اللَّهُ او ابن همام او ابن نجیم د صاحب هدایه دا قول مرجوح ګڼلي دی. دا بیع او دا عمل د جمهورو په نز مطلقاً مکروه دی. خو که چا دا عمل وکړو او خرڅ یې کړو نو بیع خو به صحیح وي. خو دا ده چې دا سړی به ګهنګار وي. مګر امام احمد بن حنبل او د اهل ظواهرو په نز به دا بیع باطله او واجب الفسخ وي. جمهور وایي چې د قضاء په توګه به بیع صحیح وي. د دیانت په توګه فسخ کیدلی شي. دفقهاؤ په نز دا ضابطه ده چې د غرردهوکې دوه قسمه دي. یو غررفعلي دی او دویم غررقولي دی. غرر فعلي کې بیع دیانةً فسخ کیدلی شي او په غرر قولي کې قضاءً فسخ کېږي. دلته غرر فعلي مراد دی.

**پنځمه مسئله: بيعُ الْمُصَرَّاتِ** : پدې حدیث کې چې کومه مهمه او د تفصیل طلب مسئله ده هغه د مصرات مسئله ده. **مصرات** د باب **تفعیل** نه د اسم مفعول صیغه ده. **صَرّیٰ یُصَرِّ تَصْرِیَةً وَمُصَرَّاةً** د کوم شي ودرولو او د بند کول ته وایي **یقال صریت الماء في الحوض ای حبسة** ددې اصطلاحي تعریف داسې دی "**هو حبس اللبن في الصرع لیغتر به المتشری**". یعني د یو څاروي شوده د یوی (۱) یا دووو (۲) ورځو پورې د هغې په تیې کې بند ساتل چې کله مشتري دا وګوري نو هغه وګڼي چې دا خو د شودو خځانه ده. دې عمل ته تحفیل هم وایي. و داسې څاروي ته مصراة او محفلة وایي . مصراة صفت دی. د دې موصوف ناقة مصراة دی یا بقرم مصراة دی یا شاة مصراة دی. د تصریة د دې عمل نه مشتري ته دهوکه ورکولی کېږي. نو ځکه اسلام دا منع کړله. او دغه عمل یې حرام وګڼلو. د حدیث مطلب او خلاصه داسې ده چې نصریم ناجائز او حرامه ده خو که یو سړی داسې عمل وکړي او وروسته مشتري ته معلومه شي چې پدې کې د تصریه عمل کړلی شوی دی. نو مشتري ته د دووو خبرو اختیار دی یا خو دې همدغه شان عیب داره څاروي د ځان سره کېږدي. ځکه چې سودا خو شوې دا. او یا دې څاروی بېرو ته ورکړي او یو صاع کهجوري دې ورسره بېرته بائع ته

ورکړي. دا د حدیث مطلب دی. وس بحث دا دی چې دهوکه شوي مشتري ته د فسخ اختیار دی یا نا او که اختیار دی نو آیا څاروی بېرته ورکولو سره څه نور شیان ورکول هم ضروري دي یا نا. پدې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاو اختلاف:** امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ، امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ، امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ امام ابویوسف رَحِمَهُ اللَّهُ یعنې جمهور وایي چې مشتري ته د خیار شرط ساتلو نه وروسته دا حق حاصل دی چې هغه بیع فسخ کړی ځکه تصریه عیب دی او د عیب معلومیدلو باندې مشتري واکمن شي. چې یا مبیع خپل ځان سره کېږدي یا یې بېرته ورکړي. خو دا چې مشتري د څور ورڅو راهیسې د څاروي شوده څکلي دي نو ځکه به د دې په بدل کې په د څاروي د بېرته ورکولو سره یو صاع کهجوري هم ورکوي. امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ او امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې څاروي د بائع له اړخ بېرته ورکولو په صورت کې دا فقط اقاله ده. د مشتري له اړخ په بائع باندې نه څه جبر کیدلی شي، نه هغې ته د فسخ اختیار دی او نه څه جرمانه ده، نه صاع دی نه تمرو سمراء ده. جمهورو زیر بحث ظاهرې حدیث اخستی دی. او بیا یې د ډېرې غصې اظهار کړی دي چې احنافو صریح حدیث پرېښودلو او قیاس یې خپل کړی دی. احنافو د بیوعاتو قواعد کلیه اصولیه شرعیه ته کتلي دي او په دې باندې یې عمل کړی دی. او به جزئیاتو کې یې تاویل کړی دي. قرآن عظیم کې یوه ضابطه دا ده ﴿فمن اعتدیٰ علیکم فاعتدوا علیه بمثل ما اعتدیٰ علیکم﴾ یوه ضابطه دا ده ﴿وجزاء سیئة سیئة بمثلها﴾ یوه ضابطه دا ده ﴿فان عوقبتم فعاقبوا بمثل ما عوقبتم به﴾.

پدې ټولو ایاتونو کې د څه نقصان په صورت کې تاوان ورکولو کې مثل او مساوات لازم ګڼلی شوی دي. اګره که هغه مثل صوری وي یا معنوی وي. دلته مسئله په مصرات کې د څارووو د شودو په مقابله کې یو صاع کهجورو د بېرته ورکولو نه مثل صوری دی او نه معنوی دی ځکه شوده د ذوات امثال نه دی. نو د کجهورو په ځای په همغه شوده ورکوي. او که چرې کهجوري واپس ورکوي نو د شوده په نرخ کهجوري ورکول په کار دی. د یو صاع متعین کول د بیوعاتو د اصولو خلاف دي. ځکه شوده کله کمیدی شي کله ډېریدی شي. مثلاً مشتري د دوه سوه (۲۰۰) روپو شوده څکلي دي یا یې د شلو (۲۰) روپو څکلي دي او بیا یو صاع کهجوري بېرته ورکړلي. نه خو دا مثل صوری دی او نه مثل معنوی یعنې نرخ دی. همدغه شان پدې داسې ناآشنا صورت هم راتللی شي چې مثلاً یوه کمزورې بېزه وي او د هغې نرخ د یو صاع کهجورو برابر وي. چې کله بېزه بېرته ورکړلی شوه او یو صاع کهجوري هم ورکړلی شوي نو پدې کې بدل او د مبدل منه په اجتماع سره د یو سړی په لاس کې راغلو چې ناجائز دی او د بیوعاتو د اصولو خلاف دی.

د احنافو ائمو د دې حدیث نه استدلال کړی چې د ضابطي په توګه ټولو ائمو قبول کړی دی.

حدیث دا دی. "**الخراج بالضمان**". د دې حدیث مطلب دا دی چې ګټه د هغه سړی حق دی په چا چې تاوان راځي. د مصراة په صورت کې که بېزه مړه شوله نو تاوان به مشتري راځي. لهذا د دې بېزي ګټه چې هغه شوده دي هغه هم د مشتري حق دی. بیا د دې په بدل کې کهجوري د تاوان په توګه ورکول د دې حدیث د ضابطي خلاف دي. د احنافو ائمو د دې حدیث نه هم استدلال کړی دی

"**الغنم بالغرم**" د دې مطلب همدغه دی چې د ګټي تعلق د تاوان سره وي. کوم سړی چې د تاوان ذمه وار وي هغه د ګټي هم حقدار دی. د بحث لاندې مسئله کې تاوان ذمه وار مشتري دی. لهذا د بیوع د قواعدو لاندې پدې باندې د شودو ځلکه بدله ورکول لازمه نه ده. جواب د احنافو ائمو د حدیث مصراة په څو وجوهاتو سره بیان کړی دی :

۱: دا حکم د دیانت په توګه دی. د عدالت او د قضاء په توګه نه دی. محقق ابن همام یوه ضابطه لیکلي ده وايي چې د غرر او دهوکې دوه قسمه دي یو غررقولي دی دویم غرر فعلي دی د غرر قولي د وجي نه مشتري بائع باندې مبیع د قضاءً د عدالت په زور واپس کولی شي او غرر فعلي کې هغه بائع باندې مبیع دیانةً واپس کولی شي. خو جبراً او قضاءً یې نشي واپس کولی. ګویا کې دلته د نبي کریم صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمان دیانةً د اصول لاندې دی.

۲: دا حکم اخلاقاً د حسن اخلاق د قبیل نه دی او پدې باندې تر درې (۳) ورځو پورې د خیار والا روایت دلیل دی ځکه خیار عیب تر درې ورځو پورې محدود ندی. ګویا کې دا استحبابي حکم دی.

۳: د مصراة دا حکم د حرمت نه مخکیني دی. کله چې ربوا حرامه شوه نو مصرات هم حرام شو.

۴: دا حدیث د بیوعاتو د اصولي قواعدو سره معارض دی. لهذا متروک الظاهر دی.

۵: د دې روایت په الفاظو کې اضطراب دی چرته د **صاع من تمر** الفاظ دي چرته د **صاع من طعام لاسمراء** دي چرته د **مثل لبنها قمحاً** الفاظ دي چرته **مثلی لنبها قمحاً** الفاظ دي.

۶: دا د صلحی یو صورت دی. خلاصه دا چې نبي کریم صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خلکو ته د دې دهوکې والا عمل نه منع کېدلو لپاره د حکمت د لاندې استثنائي په توګه دغه شان فیصله فرمایلي ده. او دا د خلکو د حالاتو عین مطابق ده. او نن هم د دې دهوکې نه د بچ کېدو لپاره د دې فیصلي نه غوره بله هیڅ فیصله نه شي کیدی. نور اصول چې په کومو کتابونو کې لیکلی شوي دي چې د دې حدیث راوي ابوهریره غیر فقیه دی او د غیر فقیه راوي که چرې د قیاس سره معارض وي نو قیاس مقدم وي. دا قول د احنافو د مسلک خلاف دی. د احنافو ائمه خو د صحابي قول هم په قیاس باندې مقدم

مني. چه جائیکه مرفوع حدیث وي، د احنافو په مسلک کې په لویې ائمو کې هېڅ یو داسې خبره نده کړي. فقط د امام محمد شاګرد عیسی بن ابان اړخ ته دا قول منسوب دی. او دا نسبت هم غلط دی. لهذا مونږ توبه کوو او د الله تعالی نه پناه غواړو چې مونږ د حضرت ابوهریره رضي الله عنه پشان فقیه بلکې د صحابوو مفتي ته غیر فقیه ووایو. **نعوذبالله من ذٰلك.**

| |
|---|
| ﴿۱٤﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَا تَلَقَّوُا |
| ابوهریره رضي الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل تاسو مه یوځای کیږئ د غله او نورشیانو |
| الْجَلَبَ فَمَنْ تَلَقَّاهُ فَاشْتَرَى مِنْهُ |
| راوړونکو قافلو سره په مخکې ورتلو سره، که څوک لاړو او ملاؤ شو او سامان یې واخیستو او بیا د |
| فَإِذَا أَتَى سَيِّدُهُ السُّوقَ فَهُوَ بِالْخِيَارِ.[1] |
| سامانو مالک بازار ته راغلو نو هغه ته به اختیار وي (چې وغواړي نو بیع به قائمه کړي او که وغواړي |
| نو فسخ به یې کړي). |

**توضیح:** د دې حدیث توضیح او تشریح حدیث نمبر ۱۳ لاندې شوي ده.

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا تَلَقَّوُا السِّلَعَ |
| ابن عمر رضي الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: تاسو مه ملاویږئ سامان (راوړونکي) |
| سره ښار ته د رسیدو نه مخکې (په لاره کې) (او تر هغه وخت پورې د هغې سره څه معامله مه کوئ) |
| حَتّٰى يُهْبَطَ بِهَا إِلَى السُّوْقِ.[2] |
| چې تر څو پورې (د هغې) سامان بازار ته راکښته نه شي. |

## د چاپه معامله کې خپې مه وهئ

| |
|---|
| ﴿۱٦﴾ وَ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَا يَبِيعِ الرَّجُلُ |
| ابن عمر رضي الله عنهما وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل هیڅ یو سړی دې بیع نه کوي د خپل مسلمان |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۱۵۷/۳ رقم الحديث: ۱۵۱۹/۱۷.
(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۷۳/٤ رقم الحديث: ۲۱٦۵، ومسلم في صحيحه ۱۱۵٦/۳ رقم الحديث: ۱۵۱۷/۱٤.

| عَلَى | بَيْعِ | أَخِيهِ | وَلَا | يَخْطِبُ | عَلَى | خِطْبَةِ | أَخِيهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وروړ په بیع باندې او مه دې لیږي کوم سړی د خپل (مسلمان) وروړ د نکاح پیغام باندې خپل پیغام | | | | | | | |
| إِلَّا | أَنْ | يَأْذَنَ | لَهُ.[1] | | | | |
| خو مګر دا چې هغه ته اجازت ورکړی شي. | | | | | | | |

**توضیح**: ولا یخطب: یعني یو سړی مثلاً یوې ښځې ته د نکاح پیغام استولی دی نو چې ترکومه پورې فیصله نوې شوې نو د بل سړی لپاره جائز نده چې د هغې په مینځ خپې ووهي. د دینه بغض، عداوت و حسد او عداوت پیدا کیږي. د بیع حکم هم د غه شان دی. تفصیل مخکې تیر شوی دی.

| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا يَسُمِ الرَّجُلُ |
|---|
| ابو هریره رضی الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل: سودا دې نه کوي هیڅ یو مسلمان د خپل |
| عَلَى سَوْمِ أَخِيهِ الْمُسْلِمِ.[2] |
| مسلمان وروړ په سودا باندې (یعني که د چا سره د اخستلو او د خرڅولو معامله روانه وي نو په هغې |
| کې دخل مه کوی او د یو شي ډیر نرخ مه لګوی). |

| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَبِعْ حَاضِرٌ لِبَادٍ |
|---|
| جابر رضی الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل "ښاری سړی دې د باندې چې مال نه خرڅوي. |
| دَعُوا النَّاسَ يَرْزُقُ اللهُ بَعْضَهُمْ مِنْ بَعْضٍ.[3] |
| خلک د هغوی په حال پریږدی چې الله تعالی د چا په ذریعې سره چا ته رزق رسوي. |

## د جاهلیت د یو څو ممنوعه بیوعاتو ذکر

| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لِبْسَتَيْنِ وَعَنْ بَيْعَتَيْنِ |
|---|
| ابو سعید خدري رضی الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د دوه قسمه لباس او د دوه قسمه بیع نه منع کړې |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۹۸/۹ رقم الحديث: ۵۱۴۲، ومسلم في صحيحه ۱۱۵۴/۳ رقم الحديث: ۱۴۱۲/۸.
(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۱۵۴/۳ رقم الحديث: ۱۵۱۵/۹.
(۳) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۱۵۷/۳ رقم الحديث: ۱۵۲۲/۲۰.

| |
|---|
| نَهَى عَنِ الْمُلَامَسَةِ وَ الْمُنَابَذَةِ فِي الْبَيْعِ وَ الْمُلَامَسَةُ : لَمْسُ الرَّجُلِ ثَوْبَ الْآخَرِ بِيَدِهِ |
| هغه ملامست او منابذت دي ملامست دا چې اخستونکی دتاجر جامې (چې اغوندي يې) لاس وروړي |
| بِاللَّيْلِ أَوْ بِالنَّهَارِ وَلَا يَقْلِبُه إِلَّا بِذَٰلِكَ وَ الْمُنَابَذَةُ : |
| په ورځ کې يا په شپه کې او وي نه ګوري او دهغه لاس لګول د بيع لپاره وي. او منابذت دا دي چې |
| أَنْ يَنْبِذَ الرَّجُلُ إِلَى الرَّجُلِ بِثَوْبِهِ وَيَنْبِذَ الْآخَرُ ثَوْبَهُ وَيَكُونُ ذَٰلِكَ بَيْعَهُمَا عَنْ غَيْرِ نَظَرٍ وَلَا تَرَاضٍ |
| په معامله کونکو کې هر يو خپلې جامې د بل اړخ ته ورګوزارې کړي او بغير د کتلو او رضامندۍ نه بيع |
| وَ اللِّبْسَتَيْنِ : اشْتِمَالُ الصَّمَّاءِ |
| وشي او چې د کوم دوه قسمه لباس نه يې منع کړې په هغې کې يو قسمه جامه د صماء په طور اغوستل |
| وَ الصَّمَّاءُ : أَنْ يَجْعَلَ ثَوْبَهُ عَلَى أَحَدِ عَاتِقَيْهِ |
| دي او د صماء طريقه دا ده چې يو سړی په خپلو اوږو داسې ټوټه واچوي چې دده په بل طرف ټوټه نه وي |
| فَيَبْدُوَ أَحَدُ شِقَّيْهِ لَيْسَ عَلَيْهِ ثَوْبٌ وَ اللِّبْسَةُ الْأُخْرَى : احْتِبَاؤُهُ |
| ښکاره او بربنډه پاتې شي او بل قسم لباس (چې د هغې نه منع شوي) دا دی چې تاؤ کړي د خپل ځان نه |
| بِثَوْبِهِ وَ هُوَ جَالِسٌ لَيْسَ عَلَى فَرْجِهِ مِنْهُ شَيْءٌ.[1] |
| ګير چاپيره داسې ټوټه چې کله هغه کيني نو شرمګاه يې په هغه ټوټه کې بالکل خالي وي. |

**توضيح:والملامسة:** د جاهليت په زمانه کې دا رواج ؤ چې که مثلاً د دووو سړو په مينځ کې به د سودا خبره روانه وه نو يو فريق به د مبيع لاس ونيولو. نو وس به داسې وګڼلې شوه چې اوس بيع لازم شو. وس به يې بل فريق مني. هغه که خوشحاله وي او خفه وي. د دواړو له اړخه به غير اختياري بلکې جبراً بيع به شوله. نبي کريم ﷺ د دينه منع وفرمايله. (المرقات ۶/۸۱)

**المنابذة:** د منابذه خو به يو صورت همدغه وو چې پدې حديث کې ذکر شوی دی. چې يو فريق به خپل ټوټه د بل فريق اړخ ته وګوزاره کړله. او هغې به د دې اړخ ته ټوټه راګوزاره کړله. نو پدی سره به بيع وشو. مخکې د کتلو او پلټنو اجازت به وو، د منابذې دويم صورت به دا وو چې سړی به د چا سامان يا ټوټه باندې کاڼي وويشتل. پدې سره بيع لازمه شوه. دا چې پدې بيع کې د جانبينو

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۲۷۸ رقم الحديث: ۵۸۲۰، ومسلم في صحيحه ۳/۱۱۵۲ رقم الحديث: ۳/۱۵۱۲.

رضامندي مفقود ده. نه دا بيع تعاطی ده، نه پدې کې ایجاب د، نه قبول دی، نه پدې کې خیار شرط دی، نه خیار رؤیت دی. نو ځکه نبي کريم صلی الله علیه وسلم دا منع کړیده. (المرقات ۶/۸۱)

**اشتمال الصماء**: د دې خو يو تفسير خپله په حديث کې ذکر دی. د دې دويم تفسير دا دی چې يو سړی تا په يو څادر يا کمبل کې داسې راتاوو کړي چې د هغې لاس او خپې ټولې بندي شي. او سړی مفلوج پاتې شي. که دښمن راغلی او وي زورور نو هغه بې وسه وي. نو ځکه نبي کريم صلی الله علیه وسلم دا منع کړل. دا تفسير ډير واضحه ده. (المرقات ۶/۸۱)

**احتباء**: دا داسې ناسي ته وايي لکه مثلاً يو سړی په ګونډو باندې ودرېږي او په کوناټو باندې کيني او پاس برښه باندې څادر واچوي او لاندنی برښه پرانيزي نو دهغې ستر به ښکاري. نو ځکه منع کړلی شو. (المرقات ۶/۸۱)

## د بیع حصاة او د بیع غرر ممانعت

﴿۲۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْحَصَاةِ وَعَنْ بَيْعِ الْغَرَرِ[1]

ابو هريره رضي الله عنه وايي چې: نبي کريم صلی الله علیه وسلم د بيع حصاة او د بيع غرر نه منع فرمايلي ده.

**توضیح**: **حصاة**: حصاة کاڼي ته وايي. د بيع حصاة دا صورت وي چې مثلاً اخستونکی دکاندار ته ووايي چې زه کله ستا پدې مال باندې کاڼي وولم نو پوهه شه چې د دې بيع وشه. يا دکاندار اخستونکې ته ووايي چې زه به د خپل مال نه هغه شي په تا باندې خرڅ کړو چې په هغې ستا ويشتلی شوی کاڼي راوغورزېږي يا ما د خپلې زمکې هغه برښه په تا باندې خرڅه کړله چې تر کوم ځای پورې ستا کاڼی هلته ولوېږي. دا د جاهليت بيع وه. نبي کريم صلی الله علیه وسلم منع کړله. بيع منابذه او بيع حصاة تقريباً يو شی دی. (المرقات ۶/۸۱)

**بیع الغرر**: دا هغه بيع وي چې په هغې مبيع مجهول وي يا د بائع په قبضه کې نه وي لکه به سمندر کې د ماهيانو خرڅول، په هوا کې مرغانو خرڅول په اول قسم کې جهالت دی. دويم قسم د قدرت نه بېرون دی، پدې بيع کې دهوکه ده. ځکه منع ده. د غرر نه لويه دهوکه مراد ده. وړې او معمولي غرر نه خو څوک بچ کيدلی نشي. خو دا لويه غرر **مفضی الی النزاع** ده. وړه نده. (المرقات ۶/۸۲)

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۱۵۳/۳ رقم الحديث: ۱۵۱۳/۴.

## د بیع حبل الحبله حکم

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ حَبَلِ الْحَبَلَةِ |
| ابن عمر رضی الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم منع فرمایلې ده د خرڅولو د بیع حبل الحبلة (یعني |
| وَ كَانَ بَيْعًا يَتَبَايَعُهُ أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ |
| د څارو د حمل حمل) نه (ابن عمر رضی الله عنه) وایي چې بیع حبل الحبله د جاهلیت په ورځو کې یو بیعه وه |
| كَانَ الرَّجُلُ يَبْتَاعُ الْجَزُورَ إِلَى أَنْ |
| چې صورت به یې دا ؤ چې یو سړی به د هغه وخت دوعدي پورې اوښه اخیسته چې ترڅو به د دې په خیټه |
| تُنْتَجَ النَّاقَةُ ثُمَّ تُنْتَجُ الَّتِي فِي بَطْنِهَا.[1] |
| کې بچې پیدا شو او بیا د هغې د بچې د خیټې نه بچې پیدا شو (یعني په دې وعده به یې اوښه اخیسته |
| چې د دې اوښې د خیټې نه پیدا کیدونکې بچې د خیټې نه بچې پیدا شي نو هله به د دې نرخ ادا کوم). |

**توضیح: حبل الحبلة:** حا باندې زبر دی او با باندې هم زبر دی. سکون ویل غلط دي. حبل او حمل د خیټې دننه علوق او بچې ته وایي. په لغوي توګه حبل د ښځو لپاره استعمالیږي. او لفظ حمل د ښځو او د څاروو دواړو لپاره استعمالیږي. (المرقات ۶/۸۲)

**حبل الحبلة:** د دې بیع به دوه صورتونه وو: اول صورت به دا وو چې کوم سړی به خپل یو شی خرڅولو او روپۍ وصولو لپاره به یې وخت داسې مقرره ولو چې کله د اوښې بچې پیدا شي او د هغې بچې بچې پیدا شي. نو هغه وخت روپۍ ادا کول وي. امام شافعي رحمه الله او امام مالک رحمه الله همدغه تشریح خوښه کړې ده. او د حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه دغه تفسیر منقول دی. دا د جاهلیت د بیوعاتو نه یوه بیع وه. نبي کریم صلی الله علیه وسلم ځکه د دینه منع کړیده. چې په دې کې اجل (وخت) مجهول دی. چې مفضی الی النزاع دی. د حبل الحبله دویم تفسیر داسې دی چې د اوښې په خیټه کې چې کوم حمل دی او هغې په خیټه کې به چې کوم حمل وي. دا که څوک خرڅوي نو دا بیع ناجائز ده. ځکه په دې کې مبیع مجهول دی. څه معلومه ده چې بچې پیدا کېږي یا نا. او د دې د خیټې نه بچې پیدا کېږي یا نه دا جهالت د پاسه جهالت دی ځکه منع کړی شو. امام احمد بن حنبل رحمه الله

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۵۶/۴ رقم الحديث: ۲۱۴۳، ومسلم في صحيحه ۱۱۵۳/۳ رقم الحديث: ۱۵۱۴/۵.

همدغه تفسير خوښ کړيدی. او امام ترمذي همدغه راجح ګڼلی دی او د حديث ظاهره الفاظ هم د دغي تائيد کوي. (المرقات ۶/۸۲)

بهرحال د ممانعت وجه یې یا **جهالة الاجل في الثمن** دی یا **جهالة المبيع** دی.

## نر په ښځينه پسي د پرېښودلو اجرت اخستل منع دی

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَنْ عَسْبِ الْفَحْلِ.[۱] |
| ابن عمر رضي الله عنه وایي چې نبي علیه الصلاة والسلام نر په ښځينه پسي د پرېښودو باندې د اجرت نه منع کړیده |

**توضیح:** **عسب الفحل:** او ضراب الفحل یو شی دی. فحل نر ته وايي. نر که اوښ وي، که غويا وي که ميښه وي که بېزه وي هغه په نر پسي پرېښودلو په بدل کې روپۍ اخستل منع دي. ځکه دلته په څو ځایونو کې معامله محمول ده. کله څاروی جفت کېږي کله نه، کله په ښځينه کې حمل پاتې کېږي کله نه، نو ځکه منع دی. همدغه شان دا یو خسیس او ذلیله بیوپاري هم دی چې د مسلمان د شان خلاف ده. نن سبا د نسل د ډېره ولو په غرض دا معامله کېږي. بهرحال که کوم سړی خپل غويا او یا ميښه د رعايت په توګه ورکوي او خلک د عزت په توګه هغې له څه ورکوي نو دا جائز دي لکه حديث نمبر ۳۲ کې به راشي. (المرقات ۶/۸۳)

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ جَابِرٍ : قَالَ : نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَنْ بَيْعِ ضِرَابِ الْجَمَلِ |
| جابر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم منع فرمايلي ده په کرايه ورکولو د اوښ د جفتي کولو لپاره |
| وَ عَنْ بَيْعِ الْمَاءِ وَ الْأَرْضِ لِتُحْرَثَ.[۲] |
| او د اوبو او زمکې د ګر لپاره د خرڅولو نه. |

**توضیح:** **عسب الفحل** او **ضراب الجمل** یو شی دی. او د **بيع الماء والارض** صورت دا دی چې یو سړی د زمکې مالک دی. اوبه هم د هغې په زمکه کې دي. دا سړی اوبه او زمکه محنت او د ګر په بدل کې بل دویم سړی ته ورکوي او معامله په دې باندې کوي چې دومره برخه زما او دومره به ستا وي. دا په حقیقت کې مزارعت او مخابرت دی. چې تفصیل یې مخکې راروان دی. (المرقات ۶/۸۳)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٤/٤٦١ رقم الحديث :٢٢٨٤.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ٣/١١٩٧ رقم الحديث: ١٥٦٥/٣٥

## قدرتي اوبه د خدای د مخلوق نه بندول منع دي

| ﴿۲٤﴾ وَ عنهُ قَالَ : نَهٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَنْ بَيْعِ فَضْلِ الْمَاءِ . [1] |
|---|
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل ضرورت نه زياتي اوبو خرخولو نه منع فرمايلي ده |

**توضيح**: يعنې که د يو سړي په واک کې دومره اوبه دي چې هغه دده د ضرورت نه ډېرې دي او اوبه هم د قدرتي چينې په صورت کې وي او خلک د هغې څکلو او څاروي هم د څکلو سخت محتاجه وي نو په دغه صورت ابه منع کول او په خلکو باندې خرڅول سخت منع دي. ځکه ابه داسې شی چې پدې کې ټول مخلوقات برابرشريک دي او ددې کوهي اوبه يو سړی خپل پټي او باغ کې استعمالول غواړي نو په هغې معاوضه اخستل صحيح دي. همدغه شان په لوښو کې جمع کړی شوي ابه خرڅول هم جائز دي. (المرقات ۶/۸۲)

## حيله کول او اوبه خرڅول منع دي

| ﴿۲٥﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَا يُبَاعُ فَضْلُ الْمَاءِ |
|---|
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د خپل ضرورت نه ډېرې اوبه مه خرڅوئ |
| لِيُبَاعَ بِهِ الْكَلَاءُ . [1] |
| چې د دې په وجې سره واښه خرڅول لازم نه شي. |

**توضيح**:ليباع به الكلا : الكلاء وښو ته وايي. د خپله راخښتلي وښو خرڅول منع دي. نو ځکه خلک حيلې کوي او خرڅ يې کړي. دلته په هغه حيلو کې د يوې حيلې ممانعت راغلی دی. مثلاً يو سړی دی. هغه خپلو څاروو د بل سړي د کوېې سره د وښو د څرولو لپاره راولي. وس ظاهره ده چې وښو کې د څريدلو نه وروسته به ابه څکوي خو د ابو مالک واي چې ماله د ابو معاوضه راکړه. نو هغه په مجبوری سره د ابو نرخ ادا کړي. مګر په حقيقت کې هغه د ابو نرخ دی. همدغه شان هغې زياتي ابه خرڅي کړلي، په حقيقت کې يې واښه خرڅ کړل. (المرقات ۶/۸۳)
او د وښو خرڅول منع دي. علماؤ دغه ممانعت کراهت تنزيهی باندې حمل کړی دی.

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۱۹۷/۳ رقم الحديث: ۱۵۶۵/۳٤.
(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۱/۵ رقم الحديث :۲۳۵۳، ومسلم في صحيحه ۱۱۹۸/۳ رقم الحديث: ۱۵۶۶/۳۸.

## په اخیستلو او خرڅولو کې دهوکه کوونکي د امت نه خارج دی

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَرَّ عَلَى صُبْرَةِ طَعَامٍ فَأَدْخَلَ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي (یو ځل) نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غلی یو ډهیري سره تېرېدو او ورېې کړو خپل |
| يَدَهُ فِيهَا فَنَالَتْ أَصَابِعُهُ بَلَلًا فَقَالَ : مَا هٰذَا |
| لاس په ډهیري کې نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَام کو تو ته څه لوند والی محسوس شو نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمایل دا ولې |
| يَا صَاحِبَ الطَّعَامِ ؟ |
| ای د غلی مالکه! لمدي دی؟ (یعنې په غله کې دالوندوالی د کوم ځای نه راورسیدو او تا غله ولې لمده |
| قَالَ : أَصَابَتْهُ السَّمَاءُ يَا رَسُولَ اللهِ |
| کړې ده؟) هغه وویل چې یا رسول الله! دیته د باران او به رسیدلي (د هغې په وجه د غلی څه برخي ته |
| قَالَ : أَفَلَا جَعَلْتَهُ فَوْقَ الطَّعَامِ حَتَّى يَرَاهُ النَّاسُ ؟ |
| او به ورسیدی ما قصداً نه دي لمدي کړي) نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمایل نو بیا تا لمده غله د پاسه ولی نده ایخودي |
| مَنْ غَشَّ |
| چې خلک داویني (او په کومه دهوکه کې نه وی اخته شوی (یا دو ساته) کوم سړی چې دهوکه کوي |
| فَلَيْسَ مِنِّي. [۱] |
| هغه زما نه، نه دی (یعنې زما په طریقه نه دی). |

**توضیح: فلیس مني:** یعنې کوم سړی چې په اخستلو او خرڅولو کې دهوکه کوي هغه زما نه ندی. هر مسلمان او تاجر لپاره په کار دی چې دلته په معمولي خبره باندې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څومره سخت وعید اوروِلی دی او څومره غټې غټې دهوکې خلکو ته ورکوو. مال لانډې په کراچۍ کې جوړه شوې وي او مونږ د هغې د پاسه د جاپان نوم ولیکلو. په هر شي کې دویم نمبر مال د اول نمبر مال په نوم خرڅوو. په دې کې تاوان د پاسه تاوان دی. (المرقات ۶/۸۴)

**سوال:** دلته دا سوال کېږي چې **فلیس مني** هغه زما نه، نه دی. د دې مطلب خو په ظاهره همدعه دی

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۹۹/۱ رقم الحديث: ۱۰۲/۱٦٤.

چې دا سړی د اسلام نه خارج شو، حال دا چې داسې حکم نه دی؟

**جواب**: د دې سوال دوه جوابه دي: اولنی جواب دا دی چې نبي کریم ﷺ دا حکم د اسلوب حکیم په انداز کې فرمایلی دی ځکه د یو امتی لپاره نبي کریم ﷺ د ځان نه هم محبوب دی. چې نبي کریم ﷺ داسې ووایي چې د دې سړی زما سره هیڅ تعلق نشته نو هغه سړی به په زړه کې پښیمانه شي او هغه ګناه به بالکل پرېږدي. او همدغه مقصود وي.

**دویم جواب**: دا چې د **فلیس منا** مطلب دادی چې فقط په دغه خاص کار او خاصه شعبه کې هغه زما نه، نه دی او زما د امت سره د هغې هیڅ تعلق نشته دی. ځکه هغه په دغه کار کې د غیرو په طرز باندې قدم اخلی دا مطلب نه دی چې هغه په پوره اسلام کې زمونږ سره نشته دی او د اسلام نه خارج شو.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د بیع ثُنیا ممانعت

| ﴿۲۷﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ نَهٰى عَنِ الثُّنْيَا إِلَّا |
|---|
| جابر رضي الله عنه وایي چې نبي کریم ﷺ د بیع ثنیا یعني استثناء کولو نه منع فرمایلي ده مګر دا چې |
| أَنْ يُعْلَمَ.[1] |
| مقدار یې متعین کړی شي. |

**توضیح**: **الثنیا**: د استثناء په معنی ده مثلاً یو سړی یو شی خرڅ کړي او وایي چې ما دا شی په تا خرڅ کړی دی مګر یوه برخه مي نده خرڅه کړي په مبیع کې همدغې استثناء ته **ثُنیا** ویل شوي ده په دې سره په بیع کې جهالت راځي. چې مفضی الی النزاع دی نو ځکه ممنوع دی. خو که د مبیع نه بائع څه شی متعین استثناء کړي او ووایي چې دا شی زه په تا باندې خرڅوم خو لس کیلو نه خرڅوم یا یو ګز نه خرڅوم نو داسې کول جائز دي.

| ﴿۲۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: نَهٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْعِنَبِ حَتّٰى |
|---|
| انس رضي الله عنه وایي چې نبي کریم ﷺ تر هغه وخت پورې انګور د خرڅولو نه منع کړېدي تر کومې |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵۸۵/۳ رقم الحديث: ۱۲۹۰

| حَتّٰی | الْحَبِّ | بَيْعِ | عَنْ | وَ | يَسْوَدَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| پورې هغه تور نه شي (پاښه شي) همدغه شان نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ منع کړې ده د غلې خرڅولو نه ترڅو چې | | | | | |
| يَشْتَدَّ .[1] | | | | | |
| هغه کلکه نه شي (يعني د انتقال جوګه نه شي) | | | | | |

هٰكَذَا وَالزِّيَادَةُ الَّتِي فِي الْمَصَابِيحِ وَهُوَ قَوْلُهُ: نَهَى عَنْ بَيْعِ التَّمْرِ حَتّٰى تَزْهُوَ إِنَّمَا ثَبَتَ فِي رِوَايَتِهِمَا: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: نَهَى عَنْ بَيْعِ النَّخْلِ حَتّٰى تَزْهُوَ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

## د بيع الكالئ بالكالئ ممانعت

﴿۲۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ بَيْعِ الْكَالِئِ بِالْكَالِئِ.[2]

ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دي وايي چې نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قرض په قرض خرڅولو سره منع کړيده.

**توضيح: الكالئ** : همزې سره هم لوستلی کېږي او بغير د همزې نه هم صحيح دی دا د قرض په معنی دی مطلب دا دی چې قرض د قرض سره خرڅول منع دی. د دې دا صورت وي چې مثلاً يو سړی د چانه په قرض باندې ټوپک واخستلو او سودا وشوه مګر ټوپک يې قبضه کړی نه دی او د روپو د ورکولو لپاره يې يو تاريخ مقرر کړو مګر په هغه تاريخ يې روپۍ ورنه کړی شوې او بائع ته يې وويل چې تر يوې مودې پورې دا ټوپک بيا په ما خرڅ کړه زه به ډيرروپۍ درکړم دا بيع ناجائز ده. ځکه پدې کې نه دی مبيع قبضه شوی ده او نه د ثمن قبضه شوې ده. يو د قرضو معامله د قبضه کولو نه مخکې په بلې قرض معاملې باندې خرڅېږي. چې ناجائزه ده. (المرقات ۶/۸۶)

## سائی يا د بيعانی ورکولو مسئله

﴿۳۰﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

عمرو بن شعيب رَحِمَهُ اللّٰهُ خپل پلار او هغه د خپل نيکه نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړې

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۶۶۸ رقم الحديث: ۳۳۷۱

(۲) أخرجه الدار القطني ۳/۲۱۸، رقم الحديث ۳۱۰۵.

| عَنْ بَيْعِ الْعُرْبَانِ. [1] |
|---|
| د بیع عربان نه. |

**توضيح**: العُربَان: عين باندې پېښ دی را ساکن دی. دې لفظ ته عربون او اربون هم ويل شوی دی. او عربان واربان هم ويل شوی دی. دا په دور جاهليت کې عربو يو بيع وو. او نن سبا په جاهليت جديد کې هم دا بيع روان دی. که چرې په نرخ ورکړی شو او سودا پوره شوه نو دا به په اصل رقم کې شمیرل کېږي او که چرې سودا پوره ونشوه نو دا رقم به په مفتو کې د بائع سره پاتې کېږي. ديته په نن سبا په اصطلاح کې سائی يا بيعانه وايي. د جمهور فقهاؤ په نز دا بيع منع ده. ځکه په دې کې شرط فاسد ايخودلی شوی دی. همدغه شان په دې کې په باطلی طريقی سره د بل د مال غصب کول دی. او ﴿وَلَا تَأْكُلُوٓا۟ أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ﴾ آيت دا منع کوي. خو امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د يو قول په وجه د دغې بيع د جواز قول څه دی. (المرقات ٦/٨٦)

د احنافو په نزد هم دا بيع مطلقاً منع ده لکه څنګه چې د جمهورو فقهاؤ قول دی خو که د بائع او مشتري دا ربنه داوضاحت کړی شوی وي چې د سودا د نه پوره کېدو په صورت کې به سائی او بيعانه مشتري ته ملاوېږي نو بيا دا معامله جائز ده.

## د بيع مضطر حكم

| ﴿۳۱﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْمُضْطَرِّ وَعَنْ بَيْعِ الْغَرَرِ |
|---|
| حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع فرمايلي ده د بيع مضطر نه، د بيع غرر نه |
| وَعَنْ بَيْعِ الثَّمَرَةِ قَبْلَ أَنْ تُدْرِكَ. [2] |
| او د ميوې د خرڅولو مخکې د پخيدو نه. |

**توضيح**: بيع المضطر: يعنې د مجبورۍ بيع ناجائز ده. د دې دوه مطلبه دي: اول مطلب دا چې د چانه په جبر د هغې اخيستل منع دی مثلاً هغه يې خرڅول نه غواړي او بل سړی په هغې باندې جبر کوي او په خرڅولو يې مجبوروي. د دې لپاره چې هغه يې خپله واخلي نو دا حرام دی. او دا بيع فاسد او نهی تحريمی دی. دويم مطلب دا چې مثلاً يو سړی مجبوره او مضطر دی. په هغې باندې او قرض

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ٧٦٨/٣ رقم الحديث: ٣٥٠٢

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ٦٧٦/٣ رقم الحديث: ٣٣٨٢

او د مصيبتونو انبار لګيدلى دى. وس هغه خپل قيمته شيان په ډير ارخانه نرخ باندې د مجبورى په وجه خرڅوي او بل سړى د هغې د مجبورى نه ناجائزه ګټه اخلي. نو د دېنه نبي كريم ﷺ منع كړيده بلكې دا تعليم وركول مقصود دى چې دې مجبوره سړى سره همدردي وكړئ او ديته قرض وركړى. د هغې شى په همغه قيمت باندې واخلى. كوم چې په منډې كې اخستلى كېږي. كه پدې صورت كې د دې مجبور سړى نه چا مال په ارزان نرخ واخستلو. نو بيع اګرچه صحيح ده خو علماؤ دا مكروه ګڼلي ده. دلته نهى د حرمت د پاره نه بلكې د كراهت لپاره ده. (المرقات ٦/٨٦)

| |
|---|
| ﴿٣٢﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ : أَنَّ رَجُلًا مِنْ كِلَابٍ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَنْ |
| انس رضي الله عنه وايي چې يو سړي د كلاب قبيلې تپوس وكړو د نبي كريم ﷺ نه د اجرت باره كې |
| عَسْبِ الْفَحْلِ فَنَهَاهُ فَقَالَ : |
| په ښځينه باندې د نر د پرېښودو، نو نبي عليه السلام هغه منع كړو (چې اجرت ما اخله) بيا هغه وويل چې |
| يَا رَسُولَ اللّٰهِ ! إِنَّا نُطْرِقُ الْفَحْلَ فَنُكْرَمُ |
| يا رسول الله! مونږ ته نر عارية راكوي او مونږ ته په دغه سلسله كې د انعام په توګه څه راكولى كېږي |
| (يعنې مونږ په اجرت مقرر ولو سره خپل څاروى نه بو ځو بلكې عارية يې راكوي مګر د څاروي بو تلونكى |
| بغير د غوښتنې مونږ ته د انعام په توګه چې څه راكوي آيا مونږ هغه هم وانخلو) نو نبي ﷺ |
| فَرَخَّصَ لَهُ فِي الْكَرَامَةِ.[1] |
| هغه ته د انعام د اخيستلو اجازت وركړو. |

**توضيح:** د دې حديث وضاحت د دېنه مخكې په حديث نمبر ٢٢ كې شوى دى.

## چې كوم شى درسره نه وي د هغې بيع ناجائزه ده

| |
|---|
| ﴿٣٣﴾ وَ عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَ : نَهَانِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنْ أَبِيعَ |
| حكيم بن حزام رضي الله عنه وايي چې نبي كريم ﷺ زه د دېنه منع كړى يم چې زه هغه شى خرڅ كړم |
| مَا لَيْسَ عِنْدِي.[2] |
| كوم چې د ما سره نه وي. |

(١) أخرجه الترمذي في السنن ٣/٥٧٣ رقم الحديث :١٢٧٤

(٢) أخرجه النسائي في السنن ٧/٢٨٩ رقم الحديث :٤٦١٣

وَلِأَبِي دَاوُدَ وَالنَّسَائِيِّ: قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ يَأْتِينِي الرَّجُلُ فَيُرِيدُ مِنِّي الْبَيْعَ وَلَيْسَ عِنْدِي فَأَبْتَاعُ لَهُ مِنَ السُّوقِ قَالَ: لَا تَبِعْ مَا لَيْسَ عِنْدَكَ

**توضیح: مالیس عندك:** ددې نه هغه ټول بیوعات مراد دي چې دا هغې سپارلو باندې سړی قادر نه وي. ځکه د صحت بیع لپاره ضروري ده چې سړی کوم شی خرڅوي نو هغه مشتري ته هم سپارلی شي. که چرې بائع د مبیع د سپارولو نه عاجز دی نو هغه د هغه شی نرخ څنګه اخستلی شي. لهذا داسې صورت ناجائز دی. (المرقات ۶/۸۷)

## په يو بيع کې دوه بيع کول منع دي

﴿۳۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعَتَيْنِ فِي بيعةٍ.[1]

ابو هریره رضی الله عنه وايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم په يو بيع کې د دووو (۲) بيع کولو نه منع کړيده.

**توضیح: في بیعة:** یعنې په یو بیع کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د دویمې بیع نه منع کړیده. د دې بیع صورت دا دی چې مثلاً یو سړی بل سړی ته وایي چې زه خپله مینبه د زر (۱۰۰۰) روپو په عوض کې ستا په لاس خرڅوم. خو پدې کې شرط دا دی چې ته به خپله غوا زما په لاس د پنځه سوه (۵۰۰) روپو په عوض خرڅوي. دا بیع ځکه ناجائزه ده چې پدې کې د عقد منافی شرطونه ایخودلی شوي دي. نن سبا خلک په داسې بیع و شراء کې سود کاروبار هم کوي. هغه داسې چې یو غریب سړی د یو مالداره سړی نه قرض روپۍ اخستل غواړي. هغه وایي چې زه قرض روپۍ درکرم خو د دې لپاره شرط دا دی چې ته به زما غوا په لس زره (۱۰۰۰۰) روپۍ باندې اخلي. حال دا چې هغه غوا د پنځه زره (۵۰۰۰) روپو وي. دا سود او حرام دی. (المرقات ۶/۸۸)

**بیعتین في بیعة:** د دې دویم صورت دا وي چې مثلاً یو سړی بل سړی ته وایي چې زه به تا باندې دا توته په نغدو باندې په لس زره درهمو خرڅوم او په قرض باندې په شل زره درهمو خرڅوم. هغه سړی د یو بیع تعین نه کوي بلکې وایي چې زه یې اخلم. پدې ثمن کې جهالت راغلو او دا معلوم نه کړی شو چې دې مشتري کوم صورت قبول کړی دی. لهذا دا هم ناجائز دی. خو که چرې معامله وشي او معامله پاکه شي چې مشتري د نغدو والا صورت خوښ کړلو یا د قرضو والا صورت خوښ کړو نو بیا دا معامله جائز ده. د راتلونکې حدیث تشریح هم دغه شان ده. (المرقات ۶/۸۸)

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۷۳۸ رقم الحدیث: ۳۴۶۱

﴿۳۵﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ :

عمرو بن شعیب رحمه الله خپل پلار (شعیب رحمه الله) او هغه د خپل نیکه (عبد الله بن عمر رضی الله عنه) نه نقل

نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعَتَيْنِ فِي صَفْقَةٍ وَاحِدَةٍ.[1]

کوي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم په یوه معامله کې د دووو بیع کولو نه منع کړې ده.

## قرض روپۍ ورکول او سوداګري کول منع دي

﴿۳۶﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا يَحِلُّ سَلَفٌ وَ بَيْعٌ

عمرو بن شعیب رحمه الله ناقل دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل حلال نه دي قرض او بیع (دیو بل

وَلَا شَرْطَانِ فِي بَيْعٍ وَلَا رِبْحُ

سره متعلق کول) په بیع کې دوه شرطونه لګول صحیح نه دي د هغه شي ګټه اخستل صحیح نه دي چې

مَا لَمْ يُضْمَنْ وَلَا بَيْعُ مَا لَيْسَ عِنْدَكَ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ[2]

تر اوسه خپل ضمان (قبضه) کې نه وي راغلي، او هغه شي خرڅول جائز نه دی کوم چې تا سره نه وي

(یعني ستا په واک کې نه وي).

**توضیح:سلف وبیع:** یعني قرض او بیع حلال نه دی ددې مطلب دا دی چې قرض ورکول او بیع کول جدا جدا معامله ده. دا د یو بل سره تړل جائز نه دی مثلاً یو سړی چا ته قرض ورکوي او وایي چې ته به ماته خپله غوا د پنځه زره (۵۰۰۰) روپو په عوض راکوي حال دا چې غوا د لس زره (۱۰۰۰۰) روپو وي یا دا وایي چې ته به ماته فلانی کار کوي او سل (۱۰۰) روپۍ دیاړي به اخلي. حال دا چې ورځنۍ دیاړي دوه سوه روپۍ ده. یا دا وایي چې ته به زما فلانۍ غوا په لس زره (۱۰۰۰۰) روپۍ اخلي حال دا هغه غوا د پنځه زره روپو وي. دا ټول صورتونه نن سبا په پاکستان کې رائج دي. او دا خالص ربوا او سود دی. ځکه دا سړی د قرضو په ګرفت کې سوداګري کوي او ګټه کوي. او "کل قرض جر نفعاً فهوا بوا" په ضد کې راځي. یعنې کوم قرض چې کومه ګټه د مالک اړخ ته راوړله نو هغه سود او ربوا ده. (المرقات ۶/۸۸)

(۱) أخرجه شرح السنة ۱٤٤/۸، رقم الحديث : ۲۱۱۲.

(۲) أخرجه ابوداؤد في السنن ۷۷۵/۳ رقم الحديث : ۳۵۰٤

**د عقد منافي شرط مفسده بيع ده** : **ولا شرطان في بيع** : په عقد کې شرط په دوه قسمه وي. يو هغه شرط چې د عقد سره سم او مناسب وي. د دې علامت او پېژندنه دا وي چې په شرط لګولو يا په نه لګولو سره په عقد باندې څه اثر نه کوي. په عقد کې دغه قسمه شرط که څوک ولګوي نو منع نه دی. اګر که يو شرط وي يا لس وي. دويم قسم شرط هغه دی چې د مقتضائی عقد منافي وي او په هڅ بائع يا د مشتري څه ګټه وي هغه شان عقد بيع فاسده وي. خو پدې کې د فقهاؤ اختلاف دی. (المرقات ۶/۸۹)

**د فقهاؤ اختلاف**: د امام مالک رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد که په عقد کې دوه شرطونه ولګولی شي نو عقد به باطل وي خو که يو شرط ولګولی شي نو جائز دی مثلاً چا د دکاندار نه ټوټه اخستلو وخت کې وويل چې ټوټه راکړه خو پدې شرط چې په وينځلو سره به يې ګنډې هم دا باطل دی او که يې داوويل چې ټوټه راکړه او وينځه او را اوړه نو دا جائزده ځکه يو شرط دی (المرقات ۶/۸۹)

داحنافو او شوافعو په نزد صلب عقد کې منافی يو شرط هم مفسده بيع ده او د دووو نه ډېر شرطونه هم مفسده بيع ده. د مليکيو او د حنابلو د زير بحث حديث په مفهوم مخالف استدلال کړی دی. چې دوه شرطونه مفسد دې لهذا يو مفسد نه دی خو دې حضراتو د حضرت جابر رضي الله عنه د اوښ خرڅولو او تر مدينې پورې د سپوريدلو نه هم استدلال کړی دی. دا حديث راتلونکی دی. احنافو او شوافعو ددې حديث نه استدلال کړی دی "**ان النبي صلى الله عليه وسلم نهى عن بيع وشرط**". (اعلاء السنن) (المرقات ۶/۸۹)

احنافو او شوافعو د زير بحث حديث نه دا جواب کړی دی چې دلته د شرطونو قيد اتفاقی دی. احترازي ندی خو د مفهوم مخالف نه استدلال احناف قطعا نه مني. د حضرت جابر رضي الله عنه د واقعي تفصيل او صورت حال بيان راروان دی. هلته به جواب کېږي.

**په بيوعاتو کې بنيادي ضابطه او قاعده کليه** : **ولا ربح ما لم يضمن**: يعنې کوم شی چې د چا په ضمان کې نه رازي، د هغې هغه ګټه نشي اخستلی مثلاً يو سړی د چانه څاروی واخستلو خو تر وسه پورې يې په خپلې قبضه کې ندی راوستی او د بائع نه د هغې شوده يا د سورلۍ کرايه غواړي نو جائزه نده. ځکه تر وسه دا څاروی د هغه مشتري په ضمان کې ندی راغلی دی. که دا څاروی مړ شو نو د بائع نقصان به وي. په مشتري باندې به هيڅ نه رازي. لهذا چې کله په هغې باندې تاوان نه رازي نو د هغې ګټه به هم هغې ته نه ملاوېږي. (المرقات ۶/۸۹)

د حديث دا جمله د ټولو بيوعاتو لپاره يو ضابطه او قاعده کليه ده. چې ائمه احنافو خپله کړې ده او د دې خلاف يې ټولو جزئياتو کې تاويل کړی دی. چې د ضابطې حفاظت وشي. بيع مصراة کې

تاویل هم د دغي قاعدي په وجه کړلی شوی ده. همدغه شان دویمه قاعده "الغنم بالغرم" دی او الخراج بالضمان هم مضبوطه قاعده ده. (المرقات ۶/۹۰)

## د نرخ په ادا کولو کې د سکې بدلول جائز دي

| |
|---|
| ﴿۳۷﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : كُنْتُ أَبِيعُ الْإِبِلَ بِالنقيع بِالدَّنَانِيرِ |
| ابن عمر رضي الله عنه وایي چې ما به اوښان خرڅول په نقیع کې (چې د مدینې سره یو ځای دی) د دینارو په |
| فَآخُذُ مَكَانَهَا الدَّرَاهِمَ وَ أَبِيعُ بِالدَّرَاهِمِ |
| عوض او د دینارو په بدل به مونږ درهم اخستل همدغه شان به مو چې کله اوښان د درهمو په عوض خرڅ |
| فَآخُذُ مَكَانَهَا الدَّنَانِيرَ فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| کړل نو د درهمو په بدل کې به مو دینارا اخستل بیا (چې کله) زه نبي کریم صلی الله علیه وسلم خوا ته راغلم نو ما |
| فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ : لَا بَأْسَ |
| نبي علیه السلام ته د دې ذکرو کړو نبي علیه السلام وفرمایل چې پدې کې هیڅ باک نشته دی (چې ته د دینارو |
| أَنْ تَأْخُذَهَا بِسِعْرِ يَوْمِهَا |
| په بدل کې درهم او د درهمو په بدل کې دینارو اخلي) او نرخ د هغه ورځې مطابق وي او تاسو دواړه دیو |
| مَا لَمْ تَفْتَرِقَا وَ بَيْنَكُمَا شَيْءٌ.[1] |
| بل نه په داسې حال کې جدا شئ چې ستاسو په مینځ کې هیڅ شی نه وي. |

**توضیح**: د مدینې منورې سره نزدې د یو ځای نوم نقیع دی. هغه ځای کې به د ځارو منډې لګیدلې. درهم د سپینو زرو یوه سکه ده. او دینار د سروزرو سکه ده. نن سبا په کویت کې دینار چلېږي. او په دبی کې د درهمو رواج دی. د حدیث مطلب دا دی چې که یو سړی مثلاً که یو شی د درهمو په عوض کې واخلي او بیا په نرخ کې دینار ورکړي یا د هغې عکس ورکړي نو دا جائز دی. (المرقات ۶/۹۰)

بسعریومها: یعنې چې نرخ د هغه ورځې مطابق وي، دا حکم استحبابي دی. ګېنې جائز هم دی. چې په کوم نرخ سره اخستل غواړي اخستلی شي.

**بینکماشيء**: دا جمله د مالم یفترقا نه حال واقع دی. یعنې په کوم مجلس کې د اخستلو او خرڅولو

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۶۵۰ رقم الحديث : ۳۳۵۴

معامله شوي وي. او د سکې د بدلو په صورت ییښنه شوی وي نو د دې لپاره دا شرط دی چې په همغه مجلس کې به فریقین خپل خپل شي باندې قبضه وکړي چې د مجلس نه د جدا کیدو په وخت کې د نغدو بیع د قرضو سره لازم را نه شي چې هغه ربوا ده. لهذا په مجلس کې په بیع او په نرخ باندې قبضه کول ضروري ده. علامه ابن همام رَحِمَهُ اللهُ لیکلي دي چې درهم او دینار دا چې غیر معین سکه ده نو څکه یو درهم یا یدنا یا روپۍ یا مثلاً ق ریال په ځای بل درهم یا دینا یا روپۍ ورکول جائز دي. خو پدې شرط چې خپلو کې مالیت برابر وي. (المرقات ۶/۹۰)

## د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د یو بیع ذکر

| |
|---|
| ﴿۳۸﴾ وَ عَنِ الْعَدَّاءِ بْنِ خَالِدِ بْنِ هَوْذَةَ أَخْرَجَ كِتَابًا : |
| عداء ابن خالد بن هوذه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې نقل دي چې ده یو خط راوویستو چې په هغې کې لیکل شوي وو |
| هَذَا مَا اشْتَرَى الْعَدَّاءُ بْنُ خَالِدِ بْنِ هَوْذَةَ مِنْ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| چې دا بیع نامه ده چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د عداء بن خالد بن هوذه دا خستلو متعلق ده. عداء د |
| اِشْتَرَىٰ مِنْهُ عَبْداً أَوْ أَمَةً لَا دَاءَ وَلَا غَائِلَةَ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه یو غلام یا وینزه واخیسته چې په هغې کې هیڅ ناروغي نشته دی، څه بدي نشته دی، |
| وَلَا خِبْثَةَ بَيْعَ الْمُسْلِمِ الْمُسْلِمَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
| څه کمی نشته دی عداء دا د غه شان اخستي دا چې څنګه یو مسلمان یو مسلمان اخلي. |

**توضیح: العَدَّاء**: عین باندې فتح دال باندې شد او آخر کې **همزه** ده دا دکم روایت بیانولو والاصحابي ؤ دبصرې د اطرافو اوسیدونکې ؤ د غزوه حنین نه وروسته یې ایمان راوړی ؤ (المرقات ۶/۹۱)

**عبدًا او امة**: دلته راوي ته شک دی چې سودا د وینځې شوي وه او که د غلام وه. (المرقات ۶/۹۱)

**لاداء**: یعني څه لیونتوب او جذام او برص او یا داسې نورو مریضتیاګاني پدې کې نشته دی. مراد دا چې داسې عیب نشته چې موجب للخیار وي. (المرقات ۶/۹۱)

**ولا غائلة**: یعني څه داسی عیب نشته دی چې د مشتري مال تباه کړي. غله غل کیدل، زناکار کیدل، شرابي کیدل او یا تختیدل. (المرقات ۶/۹۱)

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحیح ۳۰۹/۴ معلقا في کتاب البیوع.

**ولاخبثة:** یعني د اصل نسل د اعتبار نه پدې کې هیڅ خباثت نشته دی چې په هغې سره قبیح افعالو کېدلو احتمال وي یعني فاسق او نه، ولد الزنا نه او جوارګر نه. (المرقات ۶/۹۱)

دا د مسلمان سره د یو مسلمان معامله ده. نو ځکه پدې کې شریعت تېولو تقاضو ته پام لرنه کړې ده. خلاصه دا چې غلام ښه دی. پدې کې څه عیب نشته او فریقینو د یو بل سره دهوکه نده کړې.

## د نیلام په توګه بیع جائز ده

| |
|---|
| ﴿۳۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَاعَ حِلْسًا وَ قَدَحًا فَقَالَ : مَنْ |
| انس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم کله يو ټاټ او يوه پياله خرڅوله نو وي فرمايل چې څوک |
| يَشْتَرِي هٰذَا الْحِلْس وَ الْقَدَح ؟ فَقَالَ رَجُلٌ : |
| اخلي دا ټاټ او دا پيالې؟ (يعني چې څوک يې اخلي نو هغه دې نرخ ولګوي) يو سړي وويل چې زه دا |
| آخُذُهُمَا بِدِرْهَمٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَنْ يَزِيدُ عَلَى دِرْهَمٍ ؟ |
| دواړه شيان د يو درهم په بدل کې اخلم نبي عليه السلام وفرمايل چې د يو درهم نه زيات څوک اخلي نو يو کس |
| فَأَعْطَاهُ رَجُلٌ دِرْهَمَيْنِ فَبَاعَهُمَا مِنْهُ. (۱) |
| نبي عليه السلام ته دوه درهمه پيش کړل او نبي عليه السلام دا دواړه شيان په هغه سړي په دوه درهمه خرڅ کړل |

**توضیح: من یزید:** یعني د یو درهم نه ډیر نرخ څوک راکوي ددې حدیث پس منظر دا دی چې یو سړی د غریبۍ دوجې نه د نبي کریم صلى الله عليه وسلم نه سوال وکړو نو نبي کریم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمایل چې آیا تا سره څه سامان شته دی. هغې وویل چې یو د ټاټ ټوټه دا یوه پیله ده. نبي کریم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمایل چې هغه دواړه شیان خرڅ کړه او که د هغې وروسته مجبوره شوې نو هله سوال وکړه. هغه سړي دواړه شیان راوړل او نبي کریم صلى الله عليه وسلم د نیلام په توګه هغه خرڅ کړل. چې هغې ته د فقهاؤ په اصطلاح کې بیع من یزید وایي. دا حدیث د دې خبرې دلیل دی چې د نیلام په توګه شی خرڅول جائز دی. دا لاټرۍ صورت ندی، نه انعامي بانډ دی. هغه ناجائز دي. (المرقات ۶/۹۲)

**سوال:** دلته سوال دا دی چې د یو سړي په سودا باندې د بل سړي سودا کول جائز نه ده چې هغې ته **بیع علی سوم الغیر** وایي. دلته څنګه جائزه شوه؟

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۲/۲۹۲ رقم الحديث: ۱۶۴۱

**جواب**: د دې جواب دا دی چې دلته د یو سړی په سودا باندې د بل سړی د سودا صورت ندی بلکې دلته د اول نه بائع پدې ارادې سره مال پیش کوي چې کوم سړی ډیر نرخ ورکوي نو هغه ته به یې ورکوم. دلته څه داسې سړی خبره نه ده شوي بلکې د ټولې مجمعې مخې ته مبیع ایخودلی شوی او د ډیر نرخ ورکونکې سره معامله ده. چې هغې ته **بیع بالمزایدة** او **بیع من یزید** وایي. د دې په جواز کې هیڅ څه شک نشته دی. بیع علی سوم الشراء هغه وي چې بائع او مشتري راضي شوي وي او دریم سړی راشي او د سودا کولو کوښښ موي. هغه منع دی. (المرقات ۶/۹۲)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### د عیب داره شي خرڅولو باندې سخت وعید

| |
|---|
| ﴿۴۰﴾ عَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: مَنْ بَاعَ |
| واثله بن اسقع رضي الله عنه وایي چې ما اوریدلي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به فرمایل چې چا خرڅ کړل یو |
| عَيْبًا لَمْ يُنَبِّهْهُ لَمْ يَزَلْ فِي مَقْتِ اللهِ |
| عیب لرونکی شی داسې چې په دې عیب باندې اخستونکی خبر نه کړي نو دا به همیشه د الله په غضب |
| أَوْ لَمْ تَزَلِ الْمَلَائِكَةُ تَلْعَنُهُ.[1] |
| کې وي یا یې دا وفرمایل چې په هغې باندې د فرښتې همیشه لعنت رالیږي. |

**توضیح**: که په یو شي کې عیب وي او څوک یې خرڅول غواړي نو په هغې باندې لازمه ده چې د هغې د عیب تذکره د مشتري مخې ته وکړي. که عیب ویلو نه بغیر بائع په مشتري باندې څه شی خرڅ کړي نو دا بائع همیشه د الله تعالی په غضب کې او د فرښتو په لعنت کې به وي. مسلمان تاجرانو ته په هوش کې راتلل په کار دي په هغې اکثر په دې وعید کې راځي.



(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۷۵۵ رقم الحديث ۲۲۴۷

جلد ۵

# باب في البيوع المشروط

## د مشروطه بيوعاتو بيان

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### د ميوه داره بوټي د بيع مسئله

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنِ ابْتَاعَ نَخْلًا بَعْدَ أَنْ تُؤَبَّرَ |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل که چا تابير شوي کهجوري بوټي واخيستو |
| فَثَمَرَتُهَا لِلْبَائِعِ إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ وَ مَنِ ابْتَاعَ عَبْدًا |
| نو دا ميوې خرڅونکي دی مګر دا چې اخستونکې مشروط کړي همدا شان که چا داسې غلام واخيستو |
| وَلَهُ مَالٌ فَمَالُهُ لِلْبَائِعِ إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ. وروى البُخَارِيّ الْمَعْنى الأول وَحده[1] |
| چې د هغه سره مال وي نو د هغې هغه مال د خرڅونکې دی خو مګر دا چې اخستونکی مشروط وي. |

**توضيح: تأبير:** د باب **تفعيل** نه مستعمل دی او په مجرد کې د **نصر ينصر** نه هم راځي. د اصلاح او پيوند کارۍ په معنی دی. د عرب د خلکو دا عادت ؤ چې د کهجورو په باغ کې د نر بوټي ګل به يې د ښځينه بوټي په ګلانو او غوټو کې پيوند کولو. چې په هغې سره به فصل ډېريدلو. په کهجورو کې د انسانانو پشان نر او ښځينه بوټي وي. که په ټول باغ کې د نر کهجوري يو بوټي هم نه وي نو د باغ فصل خرابېږي. اوس مسئله دا راځي چې که چا په بوټو کې پيوند کاري وکړه او د تابېر نه وروسته يا مخکې يې بوټي خرڅ کړو نو آيا په هغه بوټو کې راتلونکې ميوه د باغ د مالک د بائع وي او که د اخستونکې مشتري به وي. پدې کې د فقهاؤ اختلاف دی. (المرقات ۶/۹۳)

**د فقهاؤ اختلاف:** د جمهورو فقهاؤ په نزد که نخل (د کهجوري بوټي) په مؤبر باندې خرڅ کړی شو نو په بوټي باندې به شته ميوه د بائع حق وي خو که مشتري شرط ايخی وي چې د بوټي سره به ميوه هم زما وي نو بيا به د هغې وي. او که د باغ مالک نخل غير مؤبر خرڅ کړی وي او ميوه پکې وي نو دا ميوه بيا د مشتري حق دی خو که چرې بائع شرط ايخی وي چې ميوه به زما وي نو بيا به د هغې وي. ياد وساتئ چې په کومه ميوه کې اختلاف دی دا همغه ميوه ده چې په بوټو کې د بيع په وخت کې شتون

لري دجمهورو فقهاؤ په نزد که دا شته ميوه دتابېر په نتيجه کې راغلي وي نو دا دبائع ده او که دتابير نه بغير راغلي وي نو دا د مشتري ده خو که مشتري شرط ولګوي نو هغه جدا خبره ده. (المرقات ۶/۹۴)
احناف په دې کې فرق نه کوي بلکې وايي چې که تابېر وي او که نه وي، شتونه ميوه دا بائع حق دی. خو که مشتري شرط ولګوي نو بېله خبره ده.

**دلائل**: جمهور فقهاء د زير بحث حديث نه استدلال کوي او د استدلال مهفو په مخالفه توګه دی. که تابېر شوی نخل وي نو ميوه د بائع ده. د دې مخالف مفهوم دا دی چې که تابېر شوی نخل نه وي نو ميوه به د بائع نه وي بلکې د مشتري ده. د احنافو ائمو د يو حديث نه استدلال کړی دی چې په موطاامام محمد کې ذکر ده. الفاظ دا دي: "**عن النبي صلى الله عليه وسلم قال من اشترى ارضاً فيها نخل فالثمر للبائع الا ان يشترط المبتاع**". پدې حديث کې د تابېر هيڅ قيد نشته دی.

**جواب**: مونږ بيا بيا ويلي چې زمونږ په نزد مفهوم مخالف حجت ندی نو ددې نه استدلال معتبر ندی خو چې په بوټو کې کومه ميوه ده په هغې کې اتصال قرار نه دی بلکې دا اتصال انفصال او قطع لپاره دی.

**وله مال**: د عبد د طرفه د مال نسبت د تمليک لپاره نه دی. بلکې د قبضې لپاره د مجاز په توګه دی. ځکه کوم غلام د څه مال مالک نشي کېدلی. د عبد سره کومې جامې. بوټان او داسې نور شيان دي هغه د خرڅيدلو په وخت کې د هغې د مالک دی. خو که مبتاع يعنې مشتري د هغې د اخستلو شرط کېږدي نو بيا به د هغې وي. (المرقات ۶/۹۴)

## د مشروط بيع حکم

﴿۲﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ : أَنَّهُ كَانَ يَسِيرُ عَلَى جَمَلٍ لَهُ

د جابر رضي الله عنه باره کې مروی دی چې دا روان ؤ په خپل اوښ باندې (د يو سفر په دوران چې کله دا مدينې

قَدْ أَعْيِي فَمَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِهِ

ته راتللو) او دا (دومره) ستړی شو (چې د تللو نه معذوره شو) نو تيريدلو نبي کريم صلی الله عليه وسلم د جابر

رضي الله عنه په خوا کې نو نبي عليه السلام د هغې اوښ (لرږي يا چابق سره چې د نبي عليه السلام په لاس کې ؤ)

فَضَرَبَهُ فَسَارَ سَيْرًا

ووهلو بيا خو هغه (د نبي کريم صلی الله عليه وسلم د لاس مبارک په برکت سره) دومره تيز رفتاری سره روان

لَيْسَ يَسِيرُ مِثْلَهُ ثُمَّ قَالَ :

شو چې مخکې دومره په تيزه نه وو تلی. بيا د هغې نه وروسته نبي عليه السلام جابر رضي الله عنه ته و فرمايل

| |
|---|
| بِغُنِيهِ بِوُقِيَّةٍ قَالَ : فَبِعْتُهُ |
| چې ته دااوښ په ما باندې دو قيه په عوض خرڅ کړه جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې ما دااوښ په تاباندې خرڅ |
| فَاسْتَثْنَيْتُ حُمْلَانَهُ |
| کړو خو زه تر خپل کوره پورې پدې باندې سورلی مستثنی کوم (يعنې زه پدې شرط سره دا خرڅومه |
| إِلَى أَهْلِي فَلَمَّا قَدِمْتُ |
| چې تر خپل کوره پورې به په همدغه اوښ سپور شم او زم به)نو (جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي )چې کله زه راغلم |
| الْمَدِينَةَ أَتَيْتُهُ بِالْجَمَلِ وَ |
| مدينې ته نو هغه اوښ مې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر کړو او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ما ته د |
| نَقَدَنِي ثَمَنَهُ وَ فِي رِوَايَةٍ فَأَعْطَانِي ثَمَنَهُ وَ رَدَّهُ عَلَيَّ.[1] |
| هغه نرخ اداکړو ،يوبل روايت داسې دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ماته نرخ راکړو او اوښ يې بېرته راکړو (يعنې |
| وَ فِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ أَنَّهُ قَالَ |
| نرخ يې هم راکړو او اوښ يې هم بېرته راکړو )دبخاري ديو روايت الفاظ دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل |
| لِبِلَالٍ : اقْضِهِ وَ زِدْهُ |
| بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته چې جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د اوښ نرخ ورکړه او څه ډير هم ورکړه، نو بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته د |
| فَأَعْطَاهُ وَ زَادَهُ قِيرَاطًا .(مُتَّفَق عَلَيْهِ) |
| اوښ نرخ هم ورکړو او يو قيراط يې (چې د درهم شپږمه برخه وي) هم ډير ورکړو. |

**توضيح:اعي**: د سفر او د بې وسۍ په وجې سره چې کله څاروی ستړی شي او د تللو نه عاجز شي نو هغه د اعی په لفظ سره يادېږي. وقی: هغې ته وقية هم وايي . د څلويښتو درهمو مقدار ته يو اوقيم وايي. (المرقات ۶/۹۵)

**فاستثنيت حملانه**: يعنې تر مدينې پورې سپوريدل ما د بيع نه مستثنیٰ کړو يعنې اوښ مې پدې شرط خرڅ کړو چې تر مدينې پورې به حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پدې باندې سپورېږي. د حديث د ظاهر

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵/۳۱۴ رقم الحديث :۲۷۱۸، ومسلمٌ في صحيحه ۳/۱۲۲۱ رقم الحديث: ۱۰۹/۷۱۵

نه معلومه شوه چې چې یو سړی خپل سورلۍ اګر که هغه څاروی وي یا ګاړی وي پدې شرط باندې خرڅوي چې تر فلانی وخت پورې به دا خرڅ شوی شی زما په استعمال کې وي. دا شرط جائز دی. د فقهاؤ د دې باره کې داسې اختلاف دی. (المرقات ۶/۹۵)

**د فقهاو اختلاف**: د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد مسافه کمه وي نو داسې بیع جائز ده لکه دلته تر مدینې پورې مسافه کمه وه او که مسافه ډېره وی نو بیا ناجائزه ده. د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ په نز داسې مشروط بیع مطلقاً جائز دی. (المرقات ۶/۹۵)

د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد داسې مشروط بیع مطلقاً ناجائز ده.

**دلائل**: امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ د بحث د لاندې حدیث نه استدلال کړی دی چې هغه په خپله مدعا باندې په واضحه توګه دلالت کوي. د مالکیو هم دغه مستدل دی. احنافو او شوافعو د هغه مشهور حدیث نه استدلال کړی دی چې دهغې الفاظ دي **نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم عن بیع و شرط**. (المرقات ۶/۹۶)

**جواب**: د جمهور فقهاؤ په نزد د زیر بحث حدیث څو جوابونه دي:

**اولنی جواب**: دا دی چې دا شرط صلب عقد کې نه وو. بلکې د عقد کېدو نه وروسته حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تر مدینه پورې د سورېدو اجازت غوښتی ؤ. نو حضور رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اجازت ورکړو. د حدیث الفاظ هم پدې دلالت کوي "**فبعته فأستثنیت حملانه**".

**دویم جواب**: دا چې دا شرط حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه وو یخی بلکې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل اړخ نه هغې سره رعایت کړی وو. ددې حدیث په څېنو طرق کې دا الفاظ راغلي دی: "**قد اعرتك ظهره الی المدینة**". **دریم جواب**: دا چې حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مدیون خسته حال ؤ نوی واده یې هم کړی ؤ نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وغوښتل چې څه مرسته ورسره وکړي خو د هغې د عزت نفس خیال یې وساتلو او صورة بیع شکل جوړ شو او بیا اوښ او روپۍ واپس ورکړي نو دا د حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خصوصیت یو خصوصي جزئی واقعه ده. د دینه د بیوعاتو د قواعدو کلیه نشي متاثر کولی. څېنو دا جواب هم ورکړی دی چې دا واقعه په بیع کې د شرط د حرمت نه د مخکې زمانه ده. (المرقات ۶/۹۶)

## حق ولاء آزاد کونکو ته حاصلیږي

| ﴿۳﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : جَاءَتْ بَرِيرَةُ فَقَالَتْ : إِنِّي كَاتَبْتُ عَلَى تِسْعِ أَوَاقٍ |
|---|
| عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وایي چې (یو ورځ) بریره ماته راغله او وي ویل چې ما مکاتبت کړې وو په نهه اوقیه |

فِي كُلِّ عَامٍ وُقِيَّةٌ فَأَعِينِينِي فَقَالَتْ عَائِشَةُ :

باندې پدې شرط چې هر كال به يو اوقيه ادا كومه لهذا ته زمامدد وكړه عائشه رضي الله عنها (وايي ما چې

إِنْ أَحَبَّ أَهْلُكِ أَنْ أَعُدَّهَا لَهُمْ عُدَّةً وَاحِدَةً

داواوريدل) نو ومې ويل چې ستا د مالكانو خوښه ده چې ټول په ټوله اوقيئې په يو ځل هغه ته وركړه او

وَ أُعْتِقَكِ فَعَلْتُ وَ يَكُونُ وَلَاءُكِ لِيْ

بيا به تا آزاده كړې، ته داسې كولې شې خو پدې صورت كې حق ولاء به ما ته حاصل شي بريره (په اوريدو

فَذَهَبَتْ إِلَى أَهْلِهَا فَأَبَوْا

سره) خپل مالكانو ته لاړه (او هغوي ته يې دا صورت كيخودو) خو هغوي دا نامنظوره كړو او وي ويل

إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْوَلَاءُ لَهُمْ

چې مونږ به فقط پدې شرط سره (تا ته) خرڅولې شي چې حق ولاء مونږ ته حاصل وي، نبي عليه السلام (ته

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : خُذِيهَا وَ أَعْتِقِيهَا

چې كله د دې علم وشو نو نبي عليه السلام) عائشې رضي الله عنها ته وفرمايل چې ته دا آزاد كړه (د دې حق ولاء

ثُمَّ قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي النَّاسِ فَحَمِدَ اللهَ وَ أَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ :

به تا ته حاصل وي) بيا هغې خلكو ته خطبه وركړه او د الله تعالى د حمد وثناء نه وروسته و فرمايل چې

أَمَّا فَمَا بَالُ رِجَالٍ يَشْتَرِطُونَ شُرُوطًا لَيْسَتْ فِي كِتَابِ اللهِ

په خلكو څه شوي دي چې هغوي داسې شرطونه ږدي چې په كتاب الله كې نه وي (يعني نامشروع دي)

مَا كَانَ مِنْ شَرْطٍ لَيْسَ فِي كِتَابِ اللهِ فَهُوَ بَاطِلٌ وَ إِنْ كَانَ مِائَةَ شَرْطٍ

چې كوم شرط په كتاب الله كې نشته دی هغه باطل دی اګر كه دوه سو (۲۰۰) شرطونه وي او د خداى

فَقَضَاءُ اللهِ أَحَقُّ وَ شَرْطُ اللهِ أَوْثَقُ

حكم د ټولو نه د دې لائق دی چې په هغې باندې عمل وشي. او د الله تعالى د ټولو نه مضبوط دی

| وَ | إِنَّمَا | الْوَلَاءُ | لِمَنْ | أَعْتَقَ .[1] |
|---|---|---|---|---|
| پو هه شئ! حق ولاء د هغه سړی ده چې کوم یې ازاد کړي. | | | | |

**توضیح**: **بریرة**: د حضرت عائشې رَضِيَاللَّهُعَنهَا د یوې وینځې نوم بریره وه. دا یوه یهودنه وینځه وه. ددېنه بریره رَضِيَاللَّهُعَنهَا د ۹ اوقیه په بدل کې بدل کتابت اخستې وو. خو وروسته بدل کتابت د ورکولو نه عاجزه شوه. د همدغې تذکره حضرت عائشې رَضِيَاللَّهُعَنهَا نبي کریم صَلَّىاللَّهُعَلَيهِوَسَلَّمَ ته وکړه چې هغه د دې مرسته وکړي. حضرت عائشې رَضِيَاللَّهُعَنهَا وفرمایل چې زه یکمشت (په یو ځل) ستا بدل کتابت دا کړم او تابه ازاده هم کوم. که ستا مالک خبره ومنله. بریره رَضِيَاللَّهُعَنهَا خپل مالک یهودي تا د هغې تذکره وکړه نو یهودي دا شرط کیخودو چې بریره رَضِيَاللَّهُعَنهَا د مړه کېدو نه وروسته به د هغې د ولاء حق ماته راکړې کېږي دا ټوله قیصه د مشکوة په جلد دویم کتاب النکاح په باالمباشرة کې ذکر ده. او توضیحات ج۴ کې ص ۱۳۰ باندې مالیکلې دی. (المرقات ٦/٩٦)

ولاء: د هغه حق نوم دی چې مثلاً یو غلام چا ازاد کړو او د هغې نه وروسته هغه غلام مړ شو. او د هغې څه مال پاتې شو د هغې عصبه شتون نه لري نو د هغې ټول مال به د هغې ازادونکي ته ملاوېږي همدغه حق ولاء ده. مکاتب چې بدل کتابت د ادا کولو نه عاجز شي نو د هغې مالک لپاره د هغې خرڅول جائز دی.

## د حق ولاء خرڅول یا هبه کول منع دی

| ﴿٤﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْوَلَاءِ وَعَنْ هِبَتِهِ.[2] |
|---|
| ابن عمر رَضِيَاللَّهُعَنهُ وایي چې نبي کریم صَلَّىاللَّهُعَلَيهِوَسَلَّمَ حق ولاء خرڅول یا هغه هبه کولو نه منع کړیده. |

**توضیح**: **بیع الولاء**: د ولاء خرڅول داسې وي چې مثلاً یو سړی خپل غلام ازاد کړو چې د هغې په وجه د هغې د ولاء حق د هغې لپاره ثابت شو. اوس دا سړی دا حق ولاء په بل چاباندې خرڅول غواړي چې ماله دومره روپۍ راکړه او چې کله دا ازاد شوی غلام مړ شي نو د دې حق ولاء ته واخله. دا سودا ناجائز ده. همدغه شان د ولاء هبه کول هم ناجائز ده. ځکه ولاء څه داسې مال ندی چې د هغې په خارج کې څه وجود وي چې هغه هبه یا خرڅ کړی شي.

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٤/٢٧٦ رقم الحديث :٢١٦٨، ومسلم في صحيحه ٢/١١٤١ رقم الحديث.٦ ١٥٠٤.
(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ٥/١٦٧ رقم الحديث :٢٥٣٥، ومسلم في صحيحه ٢ ١١٤٥ رقم الحديث ١٦/١٥٠٦.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## كوم سړى چې د نقصان ذمه وار دى همغه د ګټې ذمه وار هم دى

| |
|---|
| ﴿۵﴾ عَنْ مَخْلَدِ بْنِ خُفَافٍ قَالَ : ابْتَعْتُ غُلَامًا فَاسْتَغْلَلْتُهُ |
| مخلد بن خفاف وايي چې ما يو غلام واخيستلو چې د هغه عايد به ما اخيستو بيا ما ته د يو (داسې) |
| ثُمَّ ظَهَرْتُ مِنْهُ عَلَى عَيْبٍ |
| عيب علم وشو (چې هغه پدې كې دا خيستو نه مخكې ؤ او خرڅونكي زه د هغې نه خبر كړى نه وم) نو |
| فَخَاصَمْتُ فِيهِ إِلَى عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ |
| د دغه غلام معامله ما عمربن عبد العزيز رَحِمَهُ اللهُ (د وخت خليفه) په خدمت كې پيش كړه هغوى ما ته |
| فَقَضَى لِي بِرَدِّهِ وَ قَضَى عَلَيَّ بِرَدِّ غَلَّتِهِ |
| دا فيصله واوروله چې غلام دې بېرته وركړى شي او د دې سره دې د دې عايد هم بېرته وركړى شي. |
| فَأَتَيْتُ عُرْوَةَ |
| بيا زه د عروه ابن زبير رَحِمَهُ اللهُ په خدمت كې حاضر شوم (چې يو جليل القدر تابعي او د فقهاؤ نه ؤ) او |
| فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ : أَرُوحُ إِلَيْهِ الْعَشِيَّةَ |
| د عمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ اللهُ د فيصلې نه مې هغه خبر كړو. عروه رَحِمَهُ اللهُ وويل چې زه به لاړشم ما ښام |
| فَأُخْبِرُهُ أَنَّ عَائِشَةَ أَخْبَرَتْنِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ |
| عمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ اللهُ ته او هغه ته به ووايم چې عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ما ته دا خبر راكړى چې رسول الله |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَضَى فِي مِثْلِ هَذَا : أَنَّ الْخَرَاجَ بِالضَّمَانِ |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په همدغه قسمه يوه معامله كې داسې فيصله وركړې وه چې منفعت ضمان (يعني تاوان) |
| فَرَاحَ إِلَيْهِ عُرْوَةُ |
| سره دى نو عروه رَحِمَهُ اللهُ د عمربن عبد العزيز رَحِمَهُ اللهُ خوا ته ورغلو (او هغه يې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د ارشاد |
| فَقَضَى لِي أَنْ آخُذَ الْخَرَاجَ مِنَ الَّذِي قَضَى |
| مبارك نه خبر كړو) عمربن عبد العزيز (د دې ارشاد مبارك اوريدلو نه وروسته) بيا ما ته حكم راكړو |

| |
|---|
| بِهِ عَلَيَّ لَهُ . رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ[1] |
| چې زه د غلام عايد د هغې نه واخلم چې د كوم د اخستلو لپاره ماته حكم راكړى شوى ؤ. |

**توضيح**: دا ضابطه د دينه مخكښې څو ځله بيان شوې ده چې ۱: **الغنم بالغرم** ۲: **والخراج بالضمان** ۳: **ولا يحل نفع مالم يضمن**.

## د بائع او د مشتري د نزاع په صورت به د چا قول معتبر وي؟

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِذَا اخْتَلَفَ |
| عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه راوي دى چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل كله چې اختلاف پيدا شي د |
| الْبَيِّعَانِ فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْبَائِعِ وَ الْمُبْتَاعُ |
| اخستونكي او خرڅونكي په مينځ كې نو په دې صورت كې به د خرڅونكي قول معتبر وي او اخستونكي |
| بِالْخِيَارِ .[2] |
| ته به (د بيع د فسخ كولو يا د پاتې ساتلو) اختيار حاصل وي. |
| وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيِّ قَالَ: الْبَيِّعَانِ إِذَا اخْتَلَفَا وَالْمَبِيعُ قَائِمٌ بِعَيْنِهِ وَلَيْسَ بَيْنَهُمَا بَيِّنَةٌ فَالْقَوْلُ مَا قَالَ الْبَائِعُ أَوْ يَتَرَادَانِ الْبَيْعَ. |

**توضيح**: د بائع او د مشتري په مينځ كې جنجالونه كېږي مثلاً بائع وايي چې ما خپل مال د سلو (۱۰۰) روپو په بدل كې خرڅ كړى ؤ. مشتري وايي چې تا د پنځوسو (۵۰) روپو په بدل كې خرڅ كړى ؤ. كله د خيار شرط ساتلو يا نه ساتلو او كله په موده كې جنجال وي. امام شافعي رحمه الله وايي چې پدې صورت كې به د بائع قول معتبر وي. خو پدې شرط هغه قسم هم وكړي. بيا د مشتري اختيار دى چې بيع نافذه تسليم كړي يا هغه هم په حق كې قسم وخوري. كه چرې هغې قسم وكړو نو قاضي به د دواړو بيع فسخ كړي اګر كه هغه بيع قائمه وي يا قائمه نه وي. بهرحال امام شافعي په قيدونو سره د بائع قول معتبر منلى دى. خو د امام ابوحنيفه رحمه الله او د امام مالك رحمه الله په نز كه چرې مبيع قائم نه وي بو بيا به د مشتري قول معتبر وي. خو پدې شرط چې هغه قسم وكړي. پدې حديث كې دا مسئله مختصره ذكر ده. صاحب هدايه دا بنه په تفصيل سره بيان كړيده. هدايې ته رجوع ضروري

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۷۷۹ رقم الحديث ۳۵۰۹

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۷۸۰ رقم الحديث ۳۵۱۱

ده. (المرقات ۶/۱۰۱)

## د بيع اقالې لوي فضيلت دی

﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَقَالَ مُسْلِمًا

ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل چې کوم سړی د مسلمان بيع بيرته ورکوي

أَقَالَهُ اللهُ عَثْرَتَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. وَفِي شَرْحِ السُّنَّةِ بِلَفْظِ الْمَصَابِيحِ عَنْ شُرَيْحِ الشَّامِيِّ مُرْسَلًا[1]

الله تعالی به د قيامت په ورځ د هغې گناهونه وبخي".

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## يوه عبرتناکه واقعه

﴿۸﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اِشْتَرَى رَجُلٌ مِمَّنْ كَانَ

ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم (دا واقعه بيان) کړه چې واخيسته يو سړي تاسو نه

قَبْلَكُمْ عَقَارًا مِنْ رَجُلٍ

په مخکې زمانه کې د بل سړی نه د زمکې يوه ټوټه او (هغه يې په خپل تصرف کې راوسته نو اتفاقا

فَوَجَدَ الَّذِي اشْتَرَى الْعَقَارَ فِي عَقَارِهِ جَرَّةً

چې) کوم سړی زمکه اخستې وه هغه په خپلې هغه (اخستلی شوي) زمکه کې يو داسې کنده پيدا کړه

فِيهَا ذَهَبٌ فَقَالَ لَهُ الَّذِي اشْتَرَى الْعَقَارَ: خُذْ ذَهَبَكَ عَنِّي إِنَّمَا

چې هغه د سرو زرو نه ډکه وه. ده د زمکې خرڅونکي ته وويل چې ته دا خپل سره زر واخله ځکه ما خو

اشْتَرَيْتُ الْعَقَارَ فَقَطْ وَلَمْ أَبْتَعْ مِنْكَ الذَّهَبَ. فَقَالَ بَائِعُ الْأَرْضِ: إِنَّمَا بِعْتُكَ الْأَرْضَ

زمکه اخستې وه دا سره زر ما نه ؤ اخستي خرڅونکي وويل چې ما په تا باندې فقط زمکه نه وه خرڅه

وَمَا فِيهَا

کړي بلکې هر هغه شی مې خرڅ کړی ؤ چې پدې زمکه کې ؤ (يعني دا سره زر هم ستا دي، همته يې د

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۷۳۸ رقم الحديث: ۳۴۶۰

| فَتَحَاكَمَا إِلَى رَجُلٍ |
|---|
| ځان سره کېده مګر اخستونکې دې ته تيار نشو) تردې چې دوی خپلې معاملې يو دريم کس ته ويوړه |
| فَقَالَ الَّذِي تَحَاكَمَا إِلَيْهِ : أَلَكُمَا وَلَدٌ ؟ |
| هغه کس (واقعي تفصيل اوريدو سره) دواړو نه پوښتنه وکړه چې ستاسو د دواړو اولاد شته دی؟ په |
| فَقَالَ أَحَدُهُمَا : لِيْ غُلَامٌ وَ قَالَ الآخر : لِيْ جَارِيَةٌ . فَقَالَ : |
| دوی کې يو وويل چې زما يو هلک دی او بل وويل چې زما يو لورده دې اوريدو سره دې کس ورته وويل |
| أَنْكِحُوا الْغُلَامَ الْجَارِيَةَ وَ أَنْفِقُوا عَلَيْهِمَا |
| چې د هغه هلک نکاح د دې جينۍ سره وکړئ او دا سره زر په دغه دواړو باندې مصرف کړئ او بيا |
| مِنْهُ وَ تَصَدَّقُوا .[1] |
| چې څه پاتې شي نو هغه د الله په لاره کې مصرف کړئ . |

**توضيح: قبلكم:** يعنې د مخکينې امتونو د يو سړي قصه ده. چې د عبرت او د ديانت نه ډکه ده. چې د دې فيصلې اورولو اختيار حضرت داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ ته ورکړی شوی ؤ. او حضرت داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ دومره په حکيمانه، صحالحانه انداز سره فيصله وکړه چې ډير په اعلى ذهانت باندې مبنى ده. علامه نووي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې دا حديث د بائع او د مشتري په مينځ کې د جنجال حل کولو فضيلت باندې دلالت کوي. زه وايم چې کله ديانت او شرافت په انسانانو کې راشي. نو د يو بل لپاره رحمت جوړ شي. دلته وګورئ چې هر يو بل له د سرو زرو خځانه ورکوي او بل يې د اخستلو نه انکار کوي. دا د اسلام او ايمان درس او د خدای د وېرې کرشمه ده. چې د اسماني کتابونو نه حاصلېږي. چېد هغې لپاره په وس وخت کې قرآن عظيم متعين شوی دی. او ديني مدارس او علماء او محصيلين د دې ژوندی مثال دی. دغه ديانت او شرافت د مغرب او د اروپا په لوفر ځوانانو او دپلت دولت حريصو بوډاګانو او دهغوې په خرابو او بېکاره تعليمي ادارو کې موندل ناممکنه دي. (المرقات ٦/١٠٣)

ومن رام العلى من غير كد اضاع في طلب المحال

(تعليم المتعلم ص ٣٦)

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٦/٥١٢٠ رقم الحديث :٣٤٧٢، ومسلم في صحيحه ٣ ١٣٤٥ رقم الحديث: ٢١ ١٧٢١

# باب السلم والرهن
# د بيع سلم او د رهن بيان

قال الله تعالیٰ: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنتُم بِدَيْنٍ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوهُ﴾ (بقرة آيت: ۲۸۲)

وقال الله تعالیٰ ﴿فَرِهَانٌ مَّقْبُوضَةٌ﴾ (سورت بقره آيت: ۲۸۳)

سلم په لغت کې د تسليم نه د سپارلو په معنی دی او په اصطلاح کې السلم هو بيع الأجل بالعاجل اجل د قرض په معنی دی. چې بيع ترينه مراد دی. او عاجل په معنی د نغد دی. چې ترينه ثمن مراد دی. سلم ته سلف هم وايي. په اردو کې ديته بدهنی هم وايي . پدې بيع کې اخستونکی يعنې مشتري ته رب سلم وايي او بائع ته مسلم اليه وايي. مبيع ته مسلم فيه وايي. او ثمن ته رأس المال وايي. بيع سلم د قرآن و حديث نه ثابت دی. او پاس ذکر آيت د قرآن د ټولو اوږد آيت د بيع سلم باره کې نازل شوی دی. دا چې په بيع سلم کې مبيع غائب وي. نو ځکه د بيوعاتو د اصولو او قواعدو دا خلاف دی. خو د انسانانو د سختي مجبورۍ د نظر په وجه دا جائز ګڼلی شوی دی. همدغه وجه ده چې د بيع جهالت کمولو لپاره په سلم کې څو شرطونه ايخودلی شوي دی. چې ورکه مبيع شتون ولرې . ټول شپاړس (۱۶) شرطونه دي. چې په هغې کې د شپږو تعلق د رأس المال يعنې نرخ سره دی. او د دې تعلق مسلم فيه يعنې د مبيع سره دی. د رأس المال يعنې نرخ سره متعلق شپږ شرطونه دا دي. ۱: د ثمن د جنس بيانول چې درهم دی که دينار دی او روپۍ ده. ۲: قِسم (نوع) بيانول يعنې دا ويل چې دا روپۍ دا سپينو زرو دی او ګلټ دي او نوټ دی. ۳: صفت بيانول چې روپۍ کهره دي که کوټه ۴: مقدار بيانول يعنې دا واضحه کول چې دا روپۍ سل (۱۰۰) دي او که دوه سوه (۲۰۰) دي. ۵: دا شرط چې روپۍ به نغدي ورکول وي، قرض به نه وي. ۶: په مجلسِ عقد کې د بائع به ثمن باندې قبضه کول. مسلم فيه يعنې د مبيع سره متعلق يو څو شرطونه دا دی :۱: د مبيع جنس بيانول مثلاً دا بيانول چې غنم دی که ورجي دي که جوار دي. ۲: نوع بيانول يعنې دا ويل چې فلانی قسم يا د فلاني ځای دي. جوار د فلانی قسم زيړ يا ډوګر يا کاغانی دي. د مبيع مقدار بيانول چې لس منه غنم دی يا پنځه منه غنم دي. ۴: د مودی بيانول چې د دومره وخت نه وروسته به په فلاني تاريخ ورکول وي مګر د يوي مياشتي کمه مدوه مقررول جائز ندي. ۵: د مبيع د سپارلو ځای ټاکل خو پدې شرط چې مبيع وزن داره او بارداره شی وي چې د هغې پيتی وي. ۶: د عقد د وخت نه تر ادا کولو وخت پورې هغه شی په بازارونو کې شتون ولرې ، معدوم نه وي. رهن په لغت کې حبس الشئ

ته وايي او په اصطلاح کې رهن "جعل الشئ محبوسا بحق يمكن استيفائه منه" رهن ګاڼې ته وايي.
دا د قرآن نه ثابته ده. لکه ﴿فَرِهَانٌ مَّقْبُوضَةٌ﴾

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّل

## د بیع سلم درې شرطونه

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَدِمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ الْمَدِينَةَ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (کله د مکې نه هجرت کولو) مدينې ته راغلو نو |
| وَ هُمْ يُسْلِفُونَ فِي الثِّمَارِ السَّنَةَ وَ السَّنَتَيْنِ وَ الثَّلَاثِ |
| د مدينې خلکو په ميوو کې يو کال، دوه کاله، درې کاله بيع سلم کولو (يعنې د پيشکې نرخ به يې ورکړو |
| فَقَالَ : |
| او ويل به يې چې د يو کال يا دوه کاله يا درې کاله نه وروسته ميوه راوړسوه) نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل |
| مَنْ سَلَفَ فِي شَيْءٍ فَلْيُسْلِفْ فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ وَ وَزْنٍ مَعْلُومٍ |
| چې کوم سړی د يو شي بيع سلم وکړي هغه ته پکار ده چې سلم وکړي په معلومه پيمانه، معلوم وزن او |
| إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ.[1] |
| په معينې مودې سره. |

**توضيح:** **اجل معلوم:** د دې حديث نه معلومه شوه چې په بيع سلم کې د وزن او دکيل او د مودې تعين ضروري دي. د جمهورو علماؤ په نز د سلم لپاره دا شرطونه ضروري دي خو امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په سلم کې اجل يعنې د مودې تعين د شرط په توګه شرط نه مني. اسلف يسلف، اسلاف بيع سلم ته وايي

## کفارو د ذميانو سره د لين دين معامله څنګه ده؟

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: اشْتَرَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا مِنْ يَهُودِيٍّ إِلَى أَجَلٍ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې واخيسته نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يهودي نه څه غله د يوې معلومې مودې لپاره |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٤/٤١ رقم الحديث: ٢٢٣٩، ومسلم في صحيحه ٣/١٢٢٧ رقم الحديث: ١٢٧/١٦٠٤.

| وَ رَهَنَهُ دِرْعًا لَهُ مِنْ حَدِيْدٍ.[۱] |
|---|
| په ترضو او خپل د اوسپني زغره يې ورسره ګاڼې کړه. |

**توضيح: ورهنه درعاله:** د دې حديث نه يو څو مسائل معلوم شو. يوه مسئله دا چې د يو چانه يو شی په قرضو اخستل او بيا د هغې په بدل کې خپل يو شی د ګاڼې په توګه ايخودل جائز دي. دويمه مسئله دا ثابته شوه چې د ګاڼې معامله چې څنګه په سفر کې مشروعه شوه نو په حضر هم جائز ده. په قرآن کې د ﴿وَإِن كُنتُمْ عَلَىٰ سَفَرٍ﴾ قيد اتفاقي دی. دريمه مسئله دا ثابته شوه چې د ذميانو سره په لين دين کې معاملات کول جائز دي. خو پدې شرط چې د هغوی سره کوم مال دی هغه حلال وي. خو حربيانو سره په لين دين کې د علماؤ اختلاف دی. چې په هغوی باندې وسله خرڅول بلکې خامه (کچه) وسپنه خرڅول هم ناجائز دي. علماؤ دا هم ليکلي دي چې مطلقاً په کافر باندې يو داسې شی خرڅول جائز ندي چې په هغې د هغوی مذهب ته تقويت ورکړی کېږي. نن سبا تيل په دنيا کې د ټولو نه غټه اسلحه ده. د ټولو اسلحو بنياد په تيلو باندې دی. لهذا په کفارو باندې خرڅول هم د دې اصول د لاندې ناجائز دي. نبي کريم ﷺ د يهودي سره معامله يا د دې لپاره وکړه چې د مسلمانانو سره غله نه وه. يهوديان د مدينې په غله قابض وو. يا نبي کريم ﷺ د بيان جواز لپاره د دې يهودي سره معامله کړې وه.

| ﴿۳﴾ وَ عَنْهَا قَالَتْ : تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ دِرْعُهُ |
|---|
| عائشه رضي الله عنها وايي چې د نبي کريم ﷺ وصال په داسې حال کې وشو چې زغره يې ايښودل |
| مَرْهُوْنَةٌ عِنْدَ يَهُوْدِيٍّ بِثَلَاثِيْنَ صَاعاً مِنْ شَعِيْرٍ.[۲] |
| شوې وه په ګاڼه کې د يو يهودي سره د ديرشو صاع جوارو په بدل کې. |

## د شئ مرهون نه فايده اخستل څنګه دي؟

| ﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : الظَّهْرُ يُرْكَبُ |
|---|
| ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل په سورلۍ باندې سوريږي په بدل د هغه |
| بِنَفَقَتِهِ إِذَا كَانَ مَرْهُوْنًا وَ لَبَنُ الدَّرِّ |
| څه کې چې په دې سورلۍ مصرفيږي که د سپرلۍ څاروی ګاڼه وي او که د شودو والا څاروی ګاڼه شوې |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۰۲/٤ رقم الحديث :۲۰٦۸، ومسلم في صحيحه ۱۲۲٦/۳ رقم الحديث:۱٦۲/۱٦۰۳.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۹۹/٦ رقم الحديث :٤٤٦۷.

| يُشْرَبُ | بِنَفَقَتِهِ | إِذَا | كَانَ | مَرْهُونًا |
|---|---|---|---|---|
| وي نو په هغې چې څه شي مصرف کړی شي. نو د هغې بدل کې د هغې شوده وڅکلی شي او چې کوم | | | | |
| وَ عَلَى الَّذِي يَرْكَبُ وَ يَشْرَبُ النَّفَقَةُ .[1] | | | | |
| ګس سورلی وکړي او شوده وڅکې، همغه د دې د مصارفو ذمه وار دی. | | | | |

**توضيح**: **الظهر**: ظهر ملا ته وايي. مراد ترينه د څاروي ملا ده. او د څاروي د ملا نه په هغې باندې سوريدل مراد دي. لکه د اوښ سورلی وي "يركب" نه د همدغي حقيقت اظهار مقصود دی.

**بنفقته**: "با" سببيت لپاره دی مطلب دا چې که کوم سړی خپل څاروی د ګانړې په توګه کېږدي نو د هغه څاروي مصارف او خرچ دا چې د ګانړه ايخودونکې په ذمه وي نو ځکه هغه د دې څاروي نه د مال ورو او سپرلی کار اخستلی شي. ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ د دې حديث همدغه مطلب بيان کړی دی. او همدغه د امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ، امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ مسلک دی شيخ عبدالحق محدث دهلوي رَحِمَهُ اللهُ د دې حديث دوه مطلبه بيان کړي دي هغه وايي که چرې په ګانړه کې د ايخودلی شوي څاروي باندې نفقه او مصرف راهن کوي نو د دينه د سورلی او يا داسې نوره فايده اخستلی شي دا مطلب خو هغه دی چې کوم پاس جمهورو فقهاؤ بيان کړی دی. دويم مطلب دا دی چې که چرې راهن پدې څاروي باندې مصرف او نفقه کوي نو هغه هم د دې مرهون شي نه فايده اخستلی شي. د زير بحث حديث نه دا مطلب هم اخستل کيدی شي خو انتفاع بالمرهون کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف**: د امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ او د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد مهون شي نه مطلقاً فايده اخستل د مرتهن لپاره ناجائز ده. د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او د اسحاق بن راهويه په نزد د څاروي د شودو او په هغې باندې سورلی تر حده پورې مرتهم فايده اخستلی شي. د دينه بغير تولې فايدې اخستل جائز نه دي.

**دلائل**: جمهورو فقهاؤ دې پسې د متصل راتلونکې حديث نمبر ۵ نه استدلال کړی دی. چې د هغې مطلب دا چې راهن د مرهون شي مالک دی. همغه د دې د ګټې او د تاوان ذمه وار دی. معلومه شوه چې د مرتهن دا کارندی جمهورو فقهاؤ د دې مشهور حديث نه هم استدلال کړی چې په هغې کې راغلي دي "**کل قرض جر نفعاً فهو ربا**" نبکاره خبره ده چې راهن مرتهن ته قرض ورکړی. او راهن دوثيقه په توګه

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۴۳/۵ رقم الحديث: ۲۵۱۲

خپل څه شی د مرتهن سره ایخی دی که مرتهن فایده اخلی نو دا د خپل قرض نه فایده شوه چې حرامه ده. امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ د زیر بحث حدیث نه استدلال کړی دی اګر که دلیل محتمل دی.

**جواب**: زیربحث حدیث کې د مرتهن سره معامله مرادده هغه داسې چې مرتهن چې څومره شوده حاصلوي د هغې معاوضه به د هغه نه اخیستل کیږي او دده د قرض نه به منها کېږي دا معامله جائز ده.

**دویم جواب**: دا چې زیر بحث حدیث هغه وخت باندې محمول دی چې کله د ربا حکم نه وو راغلی. چې کله د ربا د حرمت حکم راغلی نو انتفاع مرهون هم حرام وګڼلی شو. لهٰذا د راتلونکې روایت نه او د حرمت ربوا نه دا حدیث منسوخ شوی دی.

**سوال**: په هدایه او داسې نورو کتابونو کې لیکل شوي چې، که چېرې راهن مرتهن ته دانتفاع بالمرهون اجازت ورکړي نو بیا به دا ګټه د چا وي؟ **جواب**: فقهاؤ دااصل لیکلي چې "**المعروف کالمشروط**" لهذا چې په کومو ملکونو کې د رهن معامله د مرهون نه انتفاع لپاره وکړی شي. نو هلته د مرهون نه د انتفاع څه ګنجائش نشته دی. لکه څنګه چې زمونږ په مانسهره او بټګرام ولسوالو کې کېږي. دا انتفاع ناجائزه ده. څوک که چاله اجازت ورکړي او که نا خو چې په کومو ملکونو کې د مرهون انتفاع تصور هم نه وي، هلته که راهن مرتهن ته اجازت ورکړي چې د مرهون نه ګټه واخلي نو په دغه صورت کې جائز کیدلی شي. کیدی شي د هدایه د عبارت هم دغه مقصد وي. (المرقات ۶/۱۰۶)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### شيئ مرهونه د راهن په ملکیت شئ مرهون د راهن ملکیت کې وي

﴿۵﴾ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : لَا يَغْلَقُ الرَّهْنُ

سعید بن مسیب رَحِمَهُ اللهُ (تابعی) وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: نه شي منع کولې ګانه کې

الرَّهْنَ مِنْ صَاحِبِهِ الَّذِي رَهَنَهُ

یو شی کیخودل مالک (د ملکیت نه) (یعنې شی په ګانه کیخودلو سره د راهن د ملکیت نه، نه ختمیږي)

لَهُ غُنْمُهُ وَ عَلَيْهِ غُرْمُهُ .

ځکه د ګانه شوي د هرې ګټې او د ډیروالي حقدار راهن دی او همغه د هغې د نقصان ذمه وار دی.

رَوَاهُ الشَّافِعِي مُرْسلا وَ رُوِيَ مثله

دا روایت امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ د ارسال په طریقی سره نقل کړی دی) او د غه شان یو بل حدیث (یعنې

| أَوْ مِثْلَ مَعْنَاهُ لَا يُخَالِف عَنهُ عَن أَبِي هُرَيْرَة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
|---|
| هم معنی هم او لفظ هم) د سعید بن مسیب نه روایت کړی شوی لکه څنګه چې سعید بن مسیب د ابو هریره |
| مُتَّصِلا [1] |
| رضي الله عنه نه د روایت بطریق اتصال نقل کړي یا هغه هم معنی دی (او د هغې الفاظ جدا دی) مګر د |
| الفاظو د ا اختلاف داسې نه دی چې د دې د هم معنی کېدو منافي وي. |

**توضیح**: **لایغلق**: د منع کول او بندولو په معنی دی. (المرقات ۶/۱۰۷)

الرهن: رهن اول په مصدري معنی کیدی. د دینه عقد رهن مرادی دی. او دا د یغلق فاعل دی. (المرقات ۶/۱۰۷)

**الرهن**: د دې رهن ثاني د لفظ نه مرهون شیئ مراد دی. کن صاحبه: د دینه راهن مرادی دی. یعنې د ګانه ساتلو په وجه مرهونه شي نه د راهن د ملکیت ازاله نه کېږي. بلکې راهن وس هم د مرهوني نه ګټه اخستلی شي. غنمة: د دینه ګټه مراد ده. غرمه: د دینه مراد تاوان او ضمان دی. (المرقات ۶/۱۰۷)

## په حقوق شرعیه کې د کوم وزن او د کومې پېښیماني اعتبار دی؟

| ﴿۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: الْمِكْيَالُ مِكْيَالُ أَهْلِ الْمَدِينَةِ |
|---|
| ابن عمر رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې پیمانه د مدینې د خلکو معتبره ده |
| وَ الْمِيزَانُ مِيزَانُ أَهْلِ مَكَّةَ. [2] |
| او وزن د مکې د خلکو معتبر دی. |

**توضیح**: یعنې په پیمانه کې د مدینې د خلکو پیماني اعتبار دی. او په وزن کې د مکې د خلکو د وزن اعتبار دی. د مکې او د مدینې په پیمانه او وزن کې څه تفاوت او اختلاف وو. چې د هغې په وجی سره شاید چې په صدقاتو او فطرو کې څه جنجال پیدا کېدلو. نو ځکه نبي کریم صلی الله علیه وسلم دا حکم وکړو چې په وزن کې به د مکې د خلکو د وزن اعتبار وي. ځکه د مکې خلک اکثر تاجران وو. او د وزن استعمال به ډېر د تجارت په مالونو په سرو او سپینو زرو کې کېدلو. او د مدینې خلک به اکثرو

---

(۱) أخرجه الدار قطني في السنن ۳ ۳۳ رقم الحديث ۱۳۳۰ من كتاب البيوع.

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۳ ۶۳۳ رقم الحديث : ۳۳۴۰

د زراعت د کسب خلک وو. او په زراعت کې د پیمانې استعمال ډېر کېږي. لهذا په وزن کې نبي کریم ﷺ د مکې د خلکو اعتبار وکړو. او په پیمانه کې یې د مدینې د خلکو اعتبار وکړو. خلکو دا شیان پېژندل. (المرقات ۶/۱۰۸)

## په ناپ تول کمي کونکې سړی تباه دی

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَصْحَابِ الْكَيْلِ وَالْمِيزَانِ: |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي کریم ﷺ په ناپ تول کې کمي کونکو ته وفرمایل چې ستاسو |
| إِنَّكُمْ قَدْ وُلِّيتُمْ أَمْرَيْنِ هَلَكَتْ فِيهِمَا الْأُمَمُ السَّابِقَةُ قَبْلَكُمْ. (۱) |
| په ذمه داسې دوه کارونه دي (ناپ کول او تلل) چې د دې په وجه ستاسو نه مخکني امتونه هلاک شوي |

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## دسلم مبیع د قبضه کولو نه مخکې خرڅول منع دي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَسْلَفَ فِي شَيْءٍ |
| ابو سعید خدري رضي الله عنه وايي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل کوم کس چې معامله وکړي دیو شي |
| فَلَا يَصْرِفْهُ إِلَى غَيْرِهِ قَبْلَ أَنْ يَقْبِضَهُ. (۲) |
| لپاره دسلم بیع نو هغه شی د قبضه کولو نه مخکې د بل سړي اړخ ته مه انتقالوی. |

**توضیح: فلا یصرفه:** د دې مطلب دا چې په بیع سلم کې چې ترڅو پورې مبیع لاس ته نه وي راغلی نو په بل سړي باندې د هغې خرڅول جائز ندي. نه هبه کول جائز دي یا چې په کوم شي کې سلم شوی وي هغه شی د بل شي په بدل کې مه بدلوی. بلکې چې په کوم شي کې معامله شوې وي نو د معاملې مطابق همغه شي اخستل او ورکول پکار دی. د دواړو مطلب مراد کېدی شي. (المرقات ۶/۱۰۹)

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵۲۱/۳ رقم الحديث: ۱۲۱۷

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۷۴۴/۳ رقم الحديث: ۳۴۶۸

# باب الاحتكار
## د مال ذخیره کولو بیان

**د احتکار لغوي او اصطلاحي مفهوم** : په لغوي توګه باندې احتکار د حکر نه دی. چې د منع کولو په معنی دی. د احتکار اصطلاحی تعریف ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللهُ داسې کړی دی "**الاحتكار هو حبس الطعام حين احتياج الناس به حتى يغلو**". (المرقات ۶/۱۰۹)
یعنې د خلکو د احتیاج په وخت غله د دې لپاره ذخیره کول چې ګرانه شي. دا اصطلاحی احتکار دی. لږ په تفصیل سره داسې پوهه شی چې هر یو داسې شي د ګران خرڅولو لپاره ځان سره ساتل چې د انسان یا د څارویو د خوراک د ضرورت پکار راځي. نن سبا په اصطلاح کې دا د ناجائزه ذخیره اندوزی په نوم یادولی کېږي.
**د احتکار حکم** : شریعت احتکار او ذخیره اندوزي حرامه کړې ده. خو دا حرمت په څو شرطونو سره مشروط دی: ۱: اولنی شرط دا دی چې د احتکار په خوراکې اجناسو کې وي په نورو شیانو کې احتکار د جمهورو په نز حرام ندی. خو د څاروو په وښو کې احتکار مکروه دی. د امام مالک په پانهو کې احتکار منع دی. ۲: دویم شرط دا دی چې په کوم مال کې ذخیره اندوزي یو سړی کوي او هغه مال هغه سړی اخستی وي. او که هغه مال یې نه وي اخستی بلکې د خپلې زمکې غله ده یا د باغونو میوه ده نو په هغې کې احتکار منع نه دی. ۳: دریم شرط دا دی چې ذخیره شوي غله د همغه ښار وي. که د بل ښار نه راوړی شوی وی نو پدې کې احتکار د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد جائز ده د امام ابو یوسف رَحِمَهُ اللهُ په نز مکروه ده. امام محمد رَحِمَهُ اللهُ وایي چې چېرې دا غله عموماً همدغه ښار ته راځي ځای نزدې دی نو بیا ناجائزه ده که داسې نه وي نو بیا جائزه ده. ۴: څلورم شرط دا دی چې د هغې په ذخیره کولو سره د ښار خلکو ته ضرر رسېږي، تنګي راځي. که داسې نه وي نو بیا جائزه ده.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ مَعْمَرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنِ احْتَكَرَ فَهُوَ خَاطِئٌ.[1] |
| معمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې کوم سړی احتکار وکړي هغه ګنهګار دی. |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۲۲۷/۳ رقم الحديث: ۱۶۰۵/۱۲۹.

وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَتْ أَمْوَالُ بَنِي النَّضِيرِ فِي بَابِ الْفَيْءِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى

**توضیح**: په خوراکي شیانو کې احتکار د گناه سبب دی. د جمهورو علماوو په نز د احتکار حکم د طعام سره خاص دی. امام مالک رَحِمَهُ اللهُ وایي چې څنګه د انساني خوراکي شیانو کې احتکار منع دی. همدغه شان د څارو و په وښو او پاڼو کې هم احتکار منع دی. (المرقات ۶/۱۱۰)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## ذخیره کونکی ملعون دی

| |
|---|
| ﴿۲﴾ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : اَلْجَالِبُ مَرْزُوقٌ |
| حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي وايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "تاجر ته رزق ورکړی کېږي |
| وَ الْمُحْتَكِرُ مَلْعُوْنٌ .(۱) |
| او احتکار (ذخیره) کونکې ملعون دی. |

**توضیح**: **الجالب**: یعني یو سړی د تجارت په غرض او خلکو ته د خدمت او د آسانتیا په نیت د بهر نه غله راوړي او مروج نرخ باندې یې خرڅوي او د خلکو د مجبوریو نه غلطه فایده نه اخلي. نو الله تعالی د هغې په رزق کې برکت اچوي او هغه سړی ته رزق ورکړی کېږي. خو که یو سړی د خلکو د مجبورو نه غلطه فایده اخلي مثلاً په کې چې څومره مال دی هغه واخلي او د گران خرڅولو په نیت ذخیره کړي. نو دا سړی ملعون دی. د قیامت په ورځ به د الله د رحمت نه لري وي او دنیا کې به پې هم خلک لعنت وایي . (المرقات ۶/۱۱۰)

## په دولتي توګه د منډيې نرخ ټاکل

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : غَلَا السِّعْرُ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالُوا : |
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي (یو ځل) د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې غله ډېره ګرانه شوه نو صحابو وویل |
| يَا رَسُولَ اللهِ سَعِّرْ لَنَا |
| چې یا رسول الله! زمونږ لپاره نرخ مقرر کړه یعني تاجرانو ته حکم وکړه چې هغه په دې نرخ سره غله خرڅوي |

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۷۲۸/۲ رقم الحديث :۲۱۵۳

| فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِنَّ اللهَ هُوَ الْمُسَعِّرُ الْقَابِضُ الْبَاسِطُ |
|---|
| نبي کريم ﷺ و فرمايل چې الله نرخ مقررونکی دی الله د تنګۍ پيدا کونکی دی. الله فراخي |
| الرَّازِقُ وَ إِنِّي لَأَرْجُو أَنْ أَلْقَى |
| ورکونکی دی او الله تعالی رزق ورکونکی دی زه ددې خبرې اميدلرونکی او ارمانجن يم چې زه ملاؤ |
| رَبِّي وَ لَيْسَ أَحَدٌ مِنْكُمْ يَطْلُبُنِي بِمَظْلَمَةٍ بِدَمٍ وَلَا مَالٍ .[1] |
| شم د الله تعالی سره په داسې حال کې چې په ما په تاسو کې د چا د وينې او د مال هيڅ مطالبه نه وي. |

**توضيح**: د دې حديث حاصل دا دی چې يو ځله په مدينه منوره کې په بازارونو کې نرخ لوړ شو. نو صحابو رضي الله عنهم نبي کريم ﷺ ته عرض وکړو چې تاسو نرخ مقرر کړې. نبي کريم ﷺ و فرمايل چې د نرخونو کمونکی او ډېره ونکی الله تعالی دی هغه کله په خلکو باندې تنګي راولي او کله فراخي راولي. لهذا پدې کارونو کې د الله تعالی طرف ته رجوع کول پکار دی. زه غواړم چې د خلکو په معاملاتو کې دخل ونه کړم چې د قيامت په ورځ د خپل رب سره په داسې حال کې ملاوو شم چې خلکو د مال او نفس باره کې زمانه څه شکايت نه وي.

بهر حال علماء ليکي چې تسعير يعني نرخونه په بازار کې مقرر مناسب ندي. دا چې په کولاوو بازارونو کې طبعي نظام د لاندې يو دستور وتاکل شي او خلک د دې نظام د لاندې پاتې شي او په ازاده توګه تجارت وکړي. خو که خلکو پدې نظام کې ګړبړ شروع کړو او په بازار کې هر سړی خپله خوښه شروع کړله نو بيا به د مجبورۍ او د ضرورت په قدر دولت له پکار دي چې قيمتونه مقرر کړي. په سعودي عرب کې د نرخونو يو مثالي نظام چې په هغې کې استحکام دی او په پاکستان کې مثالي بدنظمي ده. (المرقات ۶/۱۱۱)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### مال ذخيره کولو باندې د خدای مخلوق د پريشانه کولو سخت وعيد

| ﴿٤﴾ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَنِ احْتَكَرَ عَلَى |
|---|
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې ما اوريدلي چې نبي کريم ﷺ به فرمايل چې کوم کس چې غله جمع |

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۷۳۱ رقم الحديث: ۳۴۵۱

| |
|---|
| الْمُسْلِمِينَ طَعَامَهُمْ ضَرَبَهُ اللهُ بِالْجُذَامِ وَ الْإِفْلَاسِ .[1] |
| کړي او په مسلمان باندې يې په ګران نرخ خرڅوي نو الله تعالى دې دا په جذام او افلاس مرض اخته کړي |
| ﴿۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنِ احْتَكَرَ طَعَامًا أَرْبَعِينَ يَوْمًا |
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې "کوم سړی چې غله وساتي څلویښت |
| يُرِيدُ بِهِ الْغَلَاءَ فَقَدْ بَرِئَ مِنَ اللهِ وَ بَرِئَ اللهُ مِنْهُ . رَوَاهُ رَزِينٌ |
| ورځې د ګرانۍ په خيال ګويا چې داد خدای نه بېزاره دی او خدای دده نه بېزاره دی. |
| ﴿۶﴾ وَعَنْ مُعَاذٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "بِئْسَ الْعَبْدُ الْمُحْتَكِرُ: |
| معاذ رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل بد دی هغه انسان چې جمع کوي غله او نور |
| إِنْ أَرْخَصَ اللهُ الْأَسْعَارَ حَزِنَ وَ إِنْ أَغْلَاهَا |
| شيان په ناجائزې طريقې سره ، که نرخونه ارزانه شي نو داخفه وي او که نرخونو کې ګراني راشي نو |
| فَرِحَ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ وَرَزِينٌ فِي كِتَابِهِ |
| دا خوشحاله وي. |
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنِ احْتَكَرَ طَعَامًا أَرْبَعِينَ يَوْمًا |
| ابوامامه رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل "چې کوم سړی جمع کړي غله څلویښت |
| ثُمَّ تَصَدَّقَ بِهِ لَمْ يَكُنْ لَهُ كَفَّارَةً . رَوَاهُ رَزِينٌ |
| ورځې د ګرانۍ په نيت سره او بيا يې د الله په لاره کې خيرات کړي نو دا به دده لپاره کفاره نه وي. |



(۱) أخرجه سنن ابن ماجه ۷۲۹/۲، رقم الحديث : ۲۱۵۵، شعب الإيمان ۵۱۳/۱۳، رقم الحديث : ۱۰۷۰۵.

# باب الافلاس والانظار

## د تنګدستئ او د مهلت بيان

**قال الله تعالى:** ﴿وَإِن كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَىٰ مَيْسَرَةٍ﴾ (سورت بقره آيت: ۲۸۰)

**افلاس** دباب **افعال** نه دى چې د سلب مأخذ لپاره استعمال شوى دى. چې د هغې معنى سلب الفلوس ده. يعنې نشتوالى د روپو او د مال. تلفيس د مفلسى په معنى دى. دلته د افلاس نه مراد دا دى چې د قضا په محكمه كې قاضي د سړي باره كې دا فيصله وكړي چې دا سړى مفلس او ديواليه دى. د دې سره مال نشته دى. پدې باندې درنې قرضې دى. او د ادا كولو ورسره هيڅ صورت نشته دى. لهذا قرض وركونكې دا دا سړى نه تنګوي. تر هغه چې د دې سره مال رانشي. ګويا كې قاضي ديته د مال ګټلو يو مهلت وركوي. د افلاس دويم صورت دا دى چې سړى د مشتري نه مثلاً سودا وكړه مګر د ثمن د وركولو نه مخكې هغه ديواليه راوتلو. وس مبيع د دې په لاس كيدى. او روپۍ ورسره نشته دى. دا مفلس شو. د افلاس دريم صورت دا دى چې مثلاً يو سړى سودا سلف كړله او هغه يې په قبضه كې كړلو خو د ثمن وركولو نه مخكې مخكې هغه خپله مړ شو. وس سامان د هغې سره دى مګر روپۍ ورسره نشته دى بلكې مفلس دى. بهرحال مال د ديوالونو د سيوري او د لاسونو د خيرو پشان ختميدونكى دى. لهذا د قدرت د طرفه چې كله يو انسان باندې داسې حالت راشي نو اسلام نورو انسانانو ته د هغې مدد كولو او د هغې دسنبالولو حكم وركوى. د باب په احاديثو كې همدغه حقيقت بيان شوى دى.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### د مفلس په باره كې يو حكم

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيُّمَا رَجُلٍ أَفْلَسَ |
| ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې يو سړى مفلس شي او هغه سړى (چې چا |
| فَأَدْرَكَ رَجُلٌ مَالَهُ بِعَيْنِهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ مِنْ غَيْرِهِ.[1] |
| په ده مال خرڅ كړى وو د ده سره) خپل مال بعينه ومومى نو هغه د بل چا په مقابل د دې مال ډير حقدار دى |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۶۲/۵ رقم الحديث: ۲۴۰۲، ومسلم في صحيحه ۱۱۹۴/۳.

**توضیح:فهوا حق به:** یعنې یو کس د بل سړی نه سودا په قرضو واخستله او لا تراوسه یې روپۍ نه وې ورکړې چې قاضي هغه دیوالیه وګڼلو. اوس دغه سودا د هغه مفلس همغه شان شتون لرې. چې په دغه کې د هغه مفلس قرضداري راغلل او پدې هغه سړی هم راغلو چاچې مفلس ته سودا مال ورکړی وو. اوس په هغه سودا فسخ کولو سره هغه سړی خپل مال اخستلی شي یا نشي اخستلی. پدې د فقهاؤ اختلاف دی. (المرقات :۶/۱۱۴)

**د فقهاؤ اختلاف** : ائمه ثلاثه وایي چې دا سړی خپل مال بېرته اخستلی شي. عقد دې فسخ کړې او خپل مال دې ویسې او د نورو غرماء د هغې په مال کې هېڅ حق نشته دی. دا سړی احق بماله دی.
امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې دا سړی خپل مبیع بېرته نشي اخستلی بلکې اوس دا د غریم پاتې غرماء سره په مطالبه کې برابر شریک دی. اوس به دا مال خرڅولی کېږي او روپۍ به راوړلی شي او په ټولو قرضدارانو به تقسیم کړی شي. د صاحبینو امام زهري حسن بصري او عمر بن عبدالعزیز مسلک هم دغه دی. (المرقات :۶/۱۱۴)

د جمهورو دلائل د زیر بحث حدیث نه استدلال کړی دی چې په خپله مدعا باندې واضحه دلیل دی.
د احنافو ائمه وایي د همدغي حدیث د الفاظو نه معلومېږي چې دلته د بیع و شراء نده. بلکې مسئله څه بل څه ده. ځکه د بیع و شراء نه وروسته دا مال د مالک د لاس نه ووتلو. وس د دې مالک مشتري دی چې مفلس دی. اوس پدې مال کې د دې مخکني مالک او غریم د نورو غرماء سره به برابر شریک وي. پدې سلسله کې احنافو د امام طحاوي د یو روایت نه استدلال کړی دی. الفاظ دا دي:
**عن سمرة قال قال رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من سرق له متاع او ضاع له متاع فوجده في يد رجل بعينه فهوا حق به ويرجع المشتري على البائع بالثمن**". همدغه روایت په ابن ماجه کې په دغه الفاظو سره ذکر دی "**اذا ضاع للرجل متاع أو سرق له متاع فوجده في يد رجل يبيعه فهو أحق به فيرجع المشتري على البائع بالثمن**". د احنافو ائمه د حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د قول نه هم استدلال کوي چې د هغې الفاظ دا دي: "**هواسوة للغرماء اذا وجده بعينها**"
د دې روایاتو همدغه مطلب دی چې که چا د غله مال پټ کړو او خرڅ یې کړلو او مالک د مشتري په لاس خپل مال وموندلو نو د هغه مشتري دا مالک خپل مال اخستلی شي. پدې کې دا د ټولو نه ډیر حقدار دی. چې خپل مال بېرته واخلي او نور دائنین د هغې سره شریک نه وي. بیا به مشتري خپلې روپۍ بائع ته ورکړي چاچې مال پټ کړی وو. او پدې باندې یې خرڅ کړی وو.
**جواب:** جمهورو فقهاؤ چې د کوم حدیث نه استدلال کړی دی د احنافو ائمو هغه عاریت یا د مال

مرهو یا د مال مغصوب یا په مال مسروق حمل کړی دی.

**دوهم جواب**: دا چې دا حدیث بیع الخیار باندې محمول دی چې د خیار په دوران کې بائع ته پته ولیګیدله چې مشتري مفلس شوی دی. نو هغه خپل خرڅ کړلی شوی مال بېرته اخستلی شي. ګویا کې د دې حدیث د خیار فسخ البیع سره تعلق دی. بهرحال دا یو تاویل دی.

## د مفلس د مرستې حکم

﴿۲﴾ وَ عَنْ أَبِي سعيد قَالَ : أُصِيبَ رَجُلٌ فِي عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي ثِمَارٍ

ابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې یو سړی په میوو کې سخت نقصان کې اخته

ابْتَاعَهَا فَكَثُرَ دينه فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :

شو کوم چې اخستی یې وې د هغې په وجه ډیر قرضداری شو (د ده دې حالت لیدو سره) نبي عَلَيْهِ السَّلَام وویل

تَصَدَّقُوا عَلَيْهِ

خلکو ته وویل چې د صدقې په ذریعې سره د دې مرسته وکړې (چې دا د دې قرض د بوج نه سپک شي)

فَتَصَدَّقَ النَّاسُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَبْلُغْ ذٰلِكَ

خلکو د صدقې په ذریعې سره د هغې مرسته وکړه، مګر د خلکو مرسته هم د هغې د قرضو نو دا اکولو لپاره

وَفَاءَ دينه فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لِغُرَمَائِهِ خُذُوا مَا وَجَدْتُمْ

بس نشو د هغې نه و رسته نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې قرضدارانو ته وویل چې تاسو ته د دینه څه ملاو

وَ لَيْسَ لَكُمْ إِلَّا ذٰلِكَ .[1]

شول بس هغه واخلئ، د دینه بغیر به تاسو نور هیڅ درکولی کېږي.

## د قرض په وصولو کې د نرمۍ کولو ثواب

﴿۳﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : " كَانَ رَجُلٌ يُدَايِنُ النَّاسَ

ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل یو سړی وُ چې د خلکو سره یې د قرضو معامله

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۱۹۱ رقم الحديث: ۱۸/۱۵۵۲

فَكَانَ يَقُولُ لِفَتَاهُ : إِذَا أَتَيْتَ مُعْسِرًا

کوله (یعني خلکو ته به یې قرض ورکولو) او خپل کارندی ته یې دا ویلي وو چې کله یو تنګدسته

تَجَاوَزْ عَنْهُ لَعَلَّ اللهَ أَنْ يَتَجَاوَزَ عَنَّا

(د قرض اخستلو لپاره ورشي) نو هغه ته بخښنه کوه کیدی شي چې الله تعالی مونږ ته بخښنه وکړي.

قَالَ : فَلَقِيَ اللهَ

نو نبي کریم ﷺ وفرمایل چې کله یې د الله سره ملاقات وکړو (یعني دا مړ شو) نو الله تعالی

فَتَجَاوَزَ عَنْهُ ".[1]

دا وبخښلو (او د هغې په ګناهونو یې هغه راګیر نه کړو).

﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ سَرَّهُ أَنْ يُنْجِيَهُ اللهُ مِنْ

ابو قتاده وایي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل چې څوک دا خوښوي چې الله تعالی یې وساتي د

كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ فَلْيُنَفِّسْ عَنْ

قیامت دورځې د مشکلاتو نه نو ورته په کار ده چې دا تاخیر وکړي د مفلس او تنګدسته سړي سره د خپل

مُعْسِرٍ أَوْ يَضَعْ عَنْهُ .[2]

قرض په اخیستلو کې یا ورته هغه وبخښي (یعني خپل ټول قرض یا چې څومره امکان لري وبخښي)

﴿٥﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : مَنْ

ابو قتاده رضي الله عنه وایي چې ما اوریدلي چې نبي کریم ﷺ به فرمایل کوم سړی چې (د خپلې

أَنْظَرَ مُعْسِرًا أَوْ وَضَعَ عَنْهُ

مطالبې په اخیستو کې) مفلس ته مهلت ورکړي یا ورته (ټوله مطالبه یا د هغې څه برخه) معاف کړي

أَنْجَاهُ اللهُ مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ . رَوَاهُ مُسلم

نو الله تعالی به ده ته د قیامت د ورځې د مشکلاتو نه خلاصی ورکوي.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۰۸/٤ رقم الحديث: ۲۰۷۸، ومسلم في صحيحه ۱۱۹٦/۳ رقم الحديث: ۱۵٦۲/۳۱.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۱۹٦/۳ رقم الحديث: ۱۵٦۳/۳۲.

﴿٦﴾ وَعَنْ أَبِي الْيَسَرِ قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَنْ أَنْظَرَ مُعْسِرًا

ابو اليسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما اوريدلي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به فرمايل كوم سړى چې مهلت وركوي

أَوْ وَضَعَ عَنْهُ أَظَلَّهُ اللهُ فِي ظِلِّهِ.[1]

تنګدست ته يا هغه بخښي نو الله تعالى به ده ته د خپل رحمت د سيوري دلاندې ځاى وركوى (يعني د قيامت په ورځ به هغه د ګرمۍ د تپ او د هغه ورځ د سختيو نه محفوظ ساتي).

## په ښه والي سره د قرض وركولو فضيلت

﴿٧﴾ وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ قَالَ: اسْتَسْلَفَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَكْرًا

ابو رافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يو ځل) نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو ځوان اوښ په قرض واخستلو او بيا نبي كريم

فَجَاءَتْهُ إِبِلٌ مِنَ الصَّدَقَةِ قَالَ: أَبُو رَافِعٍ فَأَمَرَنِي

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د زكوة اوښان راغلل نو ابو رافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته حكم وكړو

أَنْ أَقْضِيَ الرَّجُلَ بَكْرَهُ

چې زه هغه سړي ته چې د هغې نه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوښ قرض اخستى وو همغه شان اوښ وركړم.

فَقُلْتُ: لَا أَجِدُ إِلَّا جَمَلًا خِيَارًا

ما عرض وكړو چې ماته داسې اوښ په نظر نه راځي خو دا يو اوښ دى چې ددې اوښ نه ښه دى او په

رَبَاعِيًا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

اوم (٧) كال كې داخل دى (لهذا زه ددې اوښ نه ښه اوښ څنګه وركړم) نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل هغه ته

أَعْطِهِ إِيَّاهُ فَإِنَّ خَيْرَ النَّاسِ أَحْسَنُهُمْ قَضَاءً.[2]

ښه اوښ وركړه ځكه په خلكو كې بهترين سړى هغه دى چې د قرض په وركولو كې د ټولو نه ښه وي.

---

(١) أخرجه مسلم في صحيحه ٤/٢٣٠٢ رقم الحديث: ٣٠٠٦/٧٤.

(٢) أخرجه مسلم في صحيحه ٣/١٢٢٤ رقم الحديث: ١١٨/١٦٠٠.

## قرض ور کونکی د سخت کلامۍ حق لري

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَجُلًا تَقَاضَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې يو سړی د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه (د هغه اوښ) تقاضا وكړه (چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| فَأَغْلَظَ لَهُ |
| د هغه نه د قرض په توګه اخستی وو) او تقاضا يې په سخت كلامۍ سره وكړه د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| فَهَمَّ أَصْحَابُهُ |
| صحابو چې كله ددې سړی (سخت كلامۍ او آداب نبوت خلاف حركت باندې) سزا وركول وغوښتل نو |
| فَقَالَ : دَعُوهُ فَإِنَّ لِصَاحِبِ الْحَقِّ مَقَالًا |
| نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې ده ته هيڅ مه وايې، ځكه چې د چا حق دی د هغې د ويلو اختيار دی |
| وَ اشْتَرُوا لَهُ بَعِيرًا فَأَعْطُوهُ إِيَّاهُ قَالُوا : |
| خود و مره وكړئ چې اوښ واخلئ او ده ته يې وركړئ (چې دده مطالبه پوره شي او بيا ده ته د ويلو حق |
| لَا نَجِدُ إِلَّا أَفْضَلَ مِنْ سِنِّهِ |
| پاتې نشي) صحابو وويل چې ددې د عمر هيڅ اوښ نه ملاوېږي بلكې د دينه د ډېر عمر والا ملاوېږي |
| (يعنې دده اوښ كم عمره او بېكاره وو او مونږ ته چې كوم ملاوېږي هغه دده د اوښ نه غټ او ښه دی) |
| قَالَ : اشْتَرُوهُ |
| نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمايل چې هغه اوښ واخلئ (اګر كه هغه دده د اوښ په مقابل كې ښه او غټ دی) او |
| فَأَعْطُوهُ إِيَّاهُ فَإِنَّ خَيْرَكُمْ أحسنكم قضاء [1] |
| هغه ته يې وركړئ او ياد وساتئ په تاسو كې غوره هغه سړی دی چې هغه په قرض وركول كې ښه وي. |

## قرض ادا كولو كې د مالداره سره ټال مټول كول ظلم دی

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : مَطْلُ الْغَنِيِّ |
| ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل تاخير كول د استعداد لرونكې (په اداء قرض) |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۸۳/٤ رقم الحديث: ۲۳۰٦، ومسلم في صحيحه ۲۲۵/۳ رقم الحديث: ۱۲۰/۱٦۰۱.

| ظُلْمٌ | فَإِذَا | أُتْبِعَ | أَحدُكُم | عَلَى | مَلِيءٍ | فَلْيَتْبَعْ .(۱) |
|---|---|---|---|---|---|---|
| کې ظلم دی او چې کله په تاسو کې څوک صاحب استطاعت ته حواله کړې شي نو هغه حواله قبلول پکار دي | | | | | | |

**توضیح: مطل الغنی:** مطل د یمطل مطلاً نصر ینصر نه د قرض بېرته ورکولو کې چلبازۍ ته وايي. مطلب دا دی چې سړی دا چا مقروض وي او قرض ورکولو استعداد هم لري. د استعداد لرو باوجود هم قرض نه ورکول ظلم دی. د دې په جرم کې هغه قید کولی هم شی. علماوو لیکلي دی چې کوم د قرض د ادا کولو استعداد لرو باوجود هم چل ول کوي. هغه فاسق شي او د هغې ګواهي به رد کېږي. (المرقات :۶/۱۱۹)

**اتبع:** اتباع د حواله کولو په معنی دی چې مدیون قرض خواه ته د چا حواله ورکړه. چې کوم قرض په ما باندې دی هغه د فلاني سړي نه وصول کړه. ځکه زما په هغې باندې قرض دی. هغې قرض خواه له پکار دي چې هغه حواله قبوله کړي او د هغه مالدار نه خپل قرض وصول کړي. مګر پدې کې د علماؤ کلام دی چې آیا حوالا قبلول واجب دي یا مستحب دي. ځېنو ورته واجب ویل دي. ځېني یې په استحباب باندې حمل کوي. تفصیل د فقه په کتابونو کې کتل پکار دي. (المرقات :۶/۱۱۹)

**ملئ:** دا د کریم په وزن دی. مالدارۍ ته وايي.

**فليتبع:** د سکون سره مشهور دی. ځېنو مشدد ویلی دی. (المرقات :۶/۱۱۹)

## دائن او د مدیون جنجال ختمول په کار دي

| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّهُ تَقَاضَى ابْنَ أَبِي حَدْرَدٍ دَيْنًا لَهُ عَلَيْهِ فِي |
|---|
| د کعب بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې نقل دي چې ده تقاضا وکړه د ابن ابي حدرد نه د قرض بیرته اخیستو د |
| عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ فَارْتَفَعَتْ أَصْوَاتُهُمَا |
| نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې مسجد نبوي کې تردې چې د دواړو اوازونه اوچت شوا و نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| حَتَّى سَمِعَهَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ هُوَ فِي بَيْتِهِ |
| چې هغه وخت په خپله حجره کې ناست ؤ چې د دې دواړو اوازونه یې واوریدل نو رابهر شو دې دواړو |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٤/٤٦٤ رقم الحديث :٢٢٨٧، ومسلم في صحيحه ٣/١١٩٧ رقم الحديث: ٣٣/١٥٦٤.

| |
|---|
| فَخَرَجَ إِلَيْهِمَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى كَشَفَ سِجْفَ حُجْرَتِهِ وَنَادَى كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ |
| ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام د خپلي حجري پرده او چته کړه او آواز يې وکړو کعب بن مالک |
| قَالَ : يَا كَعْبُ قَالَ : لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللهِ فَأَشَارَ |
| رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته : يا کعب! کعب بن مالک وويل: چې يارسول الله! حاضر يم نبي عَلَيْهِ السَّلَام ورته اشاره وکړه |
| بِيَدِهِ أَنْ ضَعِ الشَّطْرَ مِنْ دَيْنِكَ قَالَ كَعْبٌ : قَدْ فَعَلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ |
| د خپل لاس په ذريعي سره چې د قرض نيمه برخه معاف کړه کعب وويل چې يارسول الله! مامعاف کړو |
| قَالَ : قُمْ فَاقْضِهِ.[1] |
| ددې نه وروسته نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابن ابي حدرد ته وفرمايل چې اوس پاسيږه او پاتې قرض اداکړه |

**توضيح: تقاضى**: دا د طلب په معنى دى. معلومه شوه چې په جومات کې د قرض مطالبه کول جائز ده. مطالبه کونکې حضرت ابن کعب وو او **مديون** ابن ابي حدرد وو. (المرقات: ۶/۱۲۰)

**سجف**: په سين باندې فتحه ده او کسره هم جائز ده. **جيم** ساکن دى او **فا** باندې فتحه ده. د دروازى پردې ته وايي. (المرقات: ۶/۱۲۰)

**فأشار**: ددې نه معلومه شوه چې د لاس اشاره د ژبې د کلام قائم مقام کيدلى شي. (المرقات ۶/۱۲۰)

**فاقضه**: يعنې حضرت کعب چې کله نيم قرض معاف کړو. نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت ابن حدرد ته وفرمايل چې اوس لاړ شه او پاتې برخه زر ادا کړه، د دې حديث نه معلومه شوه چې د جنجال په صورت کې د مشرانو فيصله کول پکار دي. او د يو اړه نه سفارش هم جائز دى. او د اصلاح هر کوښښ د ثواب سبب دى. (المرقات: ۶/۱۲۰)

## نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مديون جنازه ونه کړه

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ: كُنَّا جُلُوسًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ أُتِيَ بِجَنَازَةٍ |
| سلمه بن اکوع وايي چې مونږ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مجلس کې حاضر وو. يوه جنازه راوړى شوه |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۵۱/۱ رقم الحديث: ۴۵۷، ومسلم في صحيحه ۱۱۹۲/۳ رقم الحديث: ۲۰/۱۵۵۸.

فَقَالُوا : صَلِّ عَلَيْهَا فَقَالَ : هَلْ عَلَيْهِ دَيْنٌ ؟

صحابو و نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وويل چې د جنازې لمونځ پرې وکړه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې په ده

قَالُوا : لَا فَصَلَّى عَلَيْهَا ثُمَّ أُتِيَ بِجِنَازَةٍ أُخْرَى

خو قرض نشته؟ صحابو وويل چې نه نو بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د ده د جنازې لمونځ وکړو بيا يوه بله جنازه راوړې

فَقَالَ : هَلْ عَلَيْهِ دَيْنٌ ؟ قَالُوا : نَعَمْ

شوه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې په ده خو قرض نشته ؟ وويل شو چې آو ! شته. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل

فَقَالَ : فَهَلْ تَرَكَ شَيْئًا ؟ قَالُوا : ثَلَاثَةَ دَنَانِيرَ

چې ده څه پرېښې او که نه؟ صحابو وويل چې درې دينارې پرېښې دي (دې او ريدو سره) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

فَصَلَّى عَلَيْهَا ثُمَّ أُتِيَ بِالثَّالِثَةِ فَقَالَ : هَلْ عَلَيْهِ دَيْنٌ ؟

د ده جنازه وکړه. بيا دريمه جنازه راوړې شوه، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ پوښتنه وکړه چې په دې خو قرض نشته ؟

قَالُوا: ثَلَاثَةُ دَنَانِيرَ قَالَ : هَلْ تَرَكَ شَيْئًا ؟

صحابو وويل چې "آو درې دينار پرې قرض دي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل ده څه پرېښې او که

قَالُوا : لَا قَالَ : صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ

نه؟ صحابو وويل چې نه. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل "نو بيا تاسو د خپل ملګري د جنازې لمونځ وکړئ

قَالَ أَبُو قَتَادَةَ : صَلِّ عَلَيْهِ يَا رَسُولَ اللهِ

ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (چې کله دا واوريدل) نو ويې ويل چې يا رسول الله! ته د ده د جنازې لمونځ وکړه د ده

وَ عَلَيَّ دَيْنُهُ فَصَلَّى عَلَيْهِ.[1]

قرض به زه ادا کړم. نو هله نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ده د جنازې لمونځ وکړو.

**توضيح: بجنازة:** امکان لري چې درې واړه جنازې په يو مجلس کې حاضرې کړې شوې وي. او دا هم امکان لري چې په جداجدا ورځو کې او جداجدا وختونو کې راوړې شوې وي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مديون د جنازې د لمونځ کولو نه يا خو پدې وجه انکار وکړو چې عامو خلکو لپاره

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٤/٤٦٦ رقم الحديث :٢٢٨٩

عبرت شي او هغه د قرض اخستلو نه پرهيز وکړو او که د مجبورۍ په وجه قرض اخستل هم شي نو د هغې په ادا کولو کې کوتاهي مه کوی يا نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنازې د لمونځ نه ځکه معذرت وکړو چې يو اړخ نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مړي لپاره د مغفرت دعا وکړي، شفاعت به کېږي او دويم اړخ ته به د حقوق العباد په وجه دعا نه قبلېږي. د دې حديث نه دا خبره هم واضحه شوه چې د مړي له اړخ نه ضامن کيدل هم جائز دي او د جمهورو صاحبېنو همدغه مسلک دی. امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې د مړي دطرف نه ضامن کيدل جائز ندي. هغه د زير بحث حديث همدا مطلب اخلي چې ابو قتاده رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ضمانت او کفالت نهٔ کړی بلکې د احسان په توګه د مړي د قرض د ادا کولو وعده کړې وه لکه څنګه چې په حديث نمبر ۱۵ کې ذکر دي. بهرحال دادهغه وخت خبره ده چې کله نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د غنيمت مالونه،نه وو راغلي کله چې غنيمتونه راغلل او نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د مال وسعت شو نو نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعلان وکړو چې کوم مړي ميراث پرېښودی دی هغه د همغې د ورثو دی او چاچې کوم مال بوج پرېښودی دی دهغه ذمه واري په ماده (المرقات: ٦/١٢١)

## کوم سړی چې قرض ادا کول غواړي الله تعالی د هغې مدد کوي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : مَنْ أَخَذَ أَمْوَالَ النَّاسِ |
| ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم سړی |
| يُرِيدُ أَدَاءَهَا |
| چې دخلکو مال واخلي او د ادا کولو اراده يې لري (يعنې د څه ضرورت يا احتياج په بنياد قرض واخلي |
| أَدَّى اللّٰهُ عَنْهُ |
| او بيا د قرض د ادا کولو اراده لري او د هغې کوښښ هم کوی) نو الله تعالی په ده سره هغه مال ادا کړی |
| (يعنې د قرض ادا اراده کونکې سره الله تعالی مرسته کوی پدې توګه چې په دنيا کې د قرض ادا کولو |
| وَ مَنْ أَخَذَ يُرِيدُ إِتْلَافَهَا |
| استعداد ورکړي يا به په آخرت حقدار راضي کړي) او کوم سړی چې د خلکو مال واخلي او هغه ضايع |
| أَتْلَفَهُ اللّٰهُ عَلَيْهِ .⁽¹⁾ |
| کولو اراده لري نو الله تعالی د ده مال ضايع کوي (يعنې کوم سړی چې قرض واخلي او هغه قرض ادا نه |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٥/٥٣ رقم الحديث :٢٣٨٧.

کړي او نه دا اداکولو نیت ساتي نو الله دده سره په قرض اداکولو کې مرسته نه کوي او په رزق کې وسعت
او فراخي هم نه ورکوي بلکې دده مال ضائع کوي ځکه هغه دیو مسلمان د ضایع کولو نیت هم ساتي)

**توضیح**:د تجربې نه ثابته ده او مشاهده هم ده. چې کوم خلک پدې نیت سره اخلی چې نه به یې ورکوي نو په ریښتیا هم هغې ته د قرض د ادا کولو توفیق نه ورکوي او کوم خلک چې د مجبورۍ په وجه قرض واخلي او شپه او ورځ د هغې د ادا کولو په فکر کې اخته وي نو الله تعالی یقیناً د هغې سره مرسته کوي او قرض خلاص شي. مسلمانانو له پکار ده چې د قرض اخستلو شوق ونکړي او که د مجبورۍ نه یې واخلي نو د هغې د ادا کولو فکر کول پکار دي. چې د حدیث د وعید نه بچ شي.

## الله تعالی حقوق العباد نه بخښي

﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ : قَالَ رَجُلٌ : يَا رَسُولَ اللهِ أَرَأَيْتَ إِنْ قُتِلْتُ فِي سَبِيلِ اللهِ

ابو قتاده رضي الله عنه وایي چې یو سړی وویل چې یا رسول الله! ماته ووایه چې که زه د الله په لاره کې ووژل

صَابِرًا مُحْتَسِبًا مُقبلا

شم او حال دا چې زه صبر کونکې او د ثواب طلبگار یم (یعني د خودلو او رولو په غرض نه بلکې خالص د الله د رضا په خاطر او د ثواب گټلو په طلب کې جهاد وکړم) او داسې جهاد وکړم چې په میدان جنگ

غَيْرُ مُدبر

کې دښمن ته شا نکړم بلکې د هغوی مخې ته ثابت قدم و دریږم (تردې چې په مړ کړی شم) نو ایا الله

يُكَفِر اللهُ عَنِّي خَطَايَايَ ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : نَعَمْ . فَلَمَّا

تعالی به زما گناهونه وبخښي؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم جواب ورکړو چې آو بیا چې کله دې سړی (د تپوس

أَدْبَرَ نَادَاهُ فَقَالَ : نَعَمْ

جواب وموندو) بیرته راغلو نو نبي علیه السلام هغه ته آواز وکړو او وې فرمایل چې آو (الله تعالی به یقینا

إِلَّا الدَّيْنَ كَذَلِكَ قَالَ جِبْرِيلُ .[1]

ستا گناهونه وبخښي) مگر قرض به نه معاف کوي. ماته جبرائیل همدغه شان ویلي دي.

**توضیح**:د شهید لوي مقام دی خو د قرض او دین معامله دومره سخته ده چې د شهید ټول گناهونه

---

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۰۲/۳ رقم الحديث: ۱۸۸۶/۱۱۹

چې د حقوق الله سره تعلق لري معاف کېږي. مګر کوم چې د بنده ګانو حقوق دي هغه الله تعالی نه معاف کوي. او په يو بل حديث کې هم راغلي چې الله تعالی د شهيد ټول ګناهونه بخښي خو نه قرض نه بغير او دا حکم په خاصه توګه باندې جبريل امين راوړی وو. چې ترينه معلومه شوه چې وحی متلو چې د قرآن په صورت کې به راتلله د دينه بغير وحی غير متلو به هم جبريل امين راوړله. په يو بل حديث کې راغلي دي چې الله تعالی به د قيامت په ورځ د شهيد سره دا نرمې وکړي چې قرض خواه ته د خپل اړخ نه بدله ورکړي او د شهيد مغفرت پرې وکړي. بهرحال چې د قرض په وجه د يو شهيد دغه حال دی نو د غير شهيدانو معامله به ځومره سخته وي. د شهداو باره کې په ابن ماجه کې يو روايت داسې هم دی چې کوم شهداء په سمندري جنګ کې شهيد شي نو دهغوی هر قسمه ګناهونه بخښلی کيږي. هغه که د حقوق الله په اړه او که د حقوق العباد په اړه وي. (المرقات: ۶/۱۲۳)

**ارئيت:** دا د اخبرني يعني ماته خبر راکړه په دې معنی دی.

## د شهيد ټول ګناهونه بخښلی کيږي

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: يُغْفَرُ لِلشَّهِيدِ كُلُّ ذَنْبٍ |
| عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمايل د شهيد ټول (واړه او غټ) ګناهونه بښلی |
| إِلَّا الدَّيْنَ .[1] |
| کېږي مګر دين (يعني حقوق العباد) نه بخښلی کېږي. |

**توضيح:** الا الدين: د دين نه مراد همغه حقوق العباد دي چې د هغې تفصيل پاس حديث نمبر ۱۳ کې شوی دی.

## په امت باندې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شفقت

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُؤْتَى بِالرَّجُلِ الْمُتَوَفَّى |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې کله به د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته يوه داسې جنازه راوړی شوه چې په |
| عَلَيْهِ الدَّيْنُ فَيَسْأَلُ : هَلْ تَرَكَ لِدَيْنِهِ قَضَاءً ؟ |
| هغه باندې به قرض ؤ نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به اول تپوس وکړو چې آيا ده پريښي دي د قرض ادا کولو |

| فَإِنْ حُدِّثَ أَنَّهُ تَرَكَ وَفَاءً |
|---|
| د پاره څه شي ؟ که دا به وویلی شو چې دومره مال یې پرېښي او مړشو چې په هغې سره د دې قرض ادا |
| صَلَّى وَ إِلَّا |
| کېږي. نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به یې جنازه وکړه او که (دا به معلومه شوه) چې هېڅ یې ندي پرخي |
| قَالَ لِلْمُسْلِمِينَ: |
| او مړشو نو بیا به یې (نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې جنازه خپله نه کوله) مسلمانانو ته وویل چې د دې |
| صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ . فَلَمَّا فَتَحَ اللهُ عَلَيْهِ الْفُتُوحَ |
| خپل ملګري جنازه وکړئ بیا چې کله الله تعالی دفتوحاتو دروازې پرانستلې او دمشرکینو او د کفارو |
| سره به د جنګ نه وروسته د غنیمت په صورت کې کوم مال او زر په صورت وسعت او فراخي نصیب شوه) |
| قَامَ فَقَالَ : |
| نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (یوه ورځ) خطبې لپاره اودریدو او (مسلمانانو ته یې خطبه ورکوله او وې فرمایل چې |
| أَنَا أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ فَمَنْ |
| زه د دین په ټولو کارونو کې) مسلمانانو باندې د هغوی د ځانونو نه ډېر حق لرم لهذا کوم مسلمان چې |
| تُوُفِّيَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ فَتَرَكَ دَيْنًا |
| پدې حالت کې مړشي چې په هغه باندې قرض وي (او هغه دومره مال نه وي پرېښی چې په هغې سره |
| فَعَلَيَّ قَضَاؤُهُ وَ مَنْ تَرَكَ فَهُوَ |
| یې قرض اداشي نو د هغه د قرض د ادا کولو زه ذمه واریم. او کوم مسلمان چې مال پرېږدي او مړشي |
| لِوَرَثَتِهِ .[1] |
| (نو دهغه مال نه به د هغې قرض د ادا کولو نه وروسته چې کوم مال پاتې شي) هغه دده دوارثانو دی. |

**توضیح**: اولی بالمؤمنین: د دې جملې نه قرآن آیت ته اشاره ده ﴿ النَّبِيُّ أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ وَأَزْوَاجُهُ أُمَّهَاتُهُمْ ﴾ (سورة احزاب آیت:۶) پدې آیت کې په واضحه توګه باندې مسلمانانو ته حکم

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴/۴۷۷ رقم الحديث :۲۲۹۸، ومسلم في صحيحه ۳/۱۲۳۷ رقم الحديث: ۴/۱۶۱۹.

کړې شوی دی چې د نبي کريم ﷺ ذات سره محبت د خپلو ځانونو نه ډير پکار دی. په هر مسلمان باندې دا واجب دي او هغه د خپلو ځانونو نه ډير محبت د نبي کريم ﷺ د ذات سره وکړي او په خپلو خواهشاتو او تقاضو باندې د نبي کريم ﷺ حکم او اطاعت مخکې کړي.
د دې تفصيل په توضيحات جلد اول کتاب الايمان کې تېر شوی دی. (المرقات: ۶/۱۲۴)
زيربحث حديث کې د نبي کريم ﷺ د هغه محبت کولو ذکر دی چې کوم د نبي کريم ﷺ د خپل امت سره وو؛ نو نبي کريم ﷺ اعلان وکړو چې کوم سړی مړ شي، که هغه غريب وي تو د تجهيز او تکفين او د هغې ټولې قرضې په ما باندې دي او که هغه مالداره وي او ميراث پرېږدي نو د هغې د ورثاوو دی. علماؤ ليکلي دي چې نبي کريم ﷺ به د خپل ذاتي مالونو نه د هغې انتظام کولو. ځينو علماؤ ليکلي دي چې د بيت المال نه به د هغې انتظام کېدلو. د مړي د طرف نه د قرض دا ادا کول په نبي کريم ﷺ باندې خو يا واجب وو او يا نبي کريم ﷺ د احسان په توګه په خپله ذمه کې اخستلی وو.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د ديواليه حکم

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ عَنْ أَبِي خَلْدَةَ الزُّرَقِيِّ قَالَ : جِئْنَا أَبَا هُرَيْرَةَ فِي صَاحِبٍ لَنَا قَدْ أَفْلَسَ |
| ابي خلده زرقی وايي چې مونږ ابو هريرهؓ ته د خپل يو ملګري معامله يوړه چې هغه مفلس شوی |
| وُ (خو دده سره د خلکو هغه سامانوُ چې د هغې نرخ هغې نه وُ ادا کړی) مونږ د ابو هريرهؓ نه |
| فَقَالَ : هٰذَا الَّذِي |
| تپوس وکړو چې د دې باره کې څه حکم دی؟ ابو هريرهؓ وويل چې د دې سړي معامله بالکل د |
| قَضَى فِيهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَيُّمَا رَجُلٍ مَاتَ |
| هغه سړي پشان ده چې د هغه باره کې نبي کريم ﷺ دا سې فيصله کړې وه چې کوم سړی مړ شي يا |
| أَوْ أَفْلَسَ فَصَاحِبُ الْمَتَاعِ |
| تنګدسته شي (او د هغې په ذمه باندې د خلکو غوښتنې وي) نو د کوم سړي مال چې د دې سره دی. |

| أَحَقُّ بِمَتَاعِهِ إِذَا وَجَدَهُ بِعَيْنِه .[1] |
|---|
| هغه د دې د مال ډير حقدار دی. خو پدې شرط چې مال همغه شان شتون ولري . |

توضیح: د دې حدیث تشریح او توضیح د دې باب په اول حدیث نمبر ۱ کې تېره شوې ده.

## د مدیون او د مقروض روح د قرض د ادا کولو پورې زوړندوي

| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نَفْسُ الْمُؤْمِنِ مُعَلَّقَةٌ بِدَيْنِهِ |
|---|
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: د مؤمن روح د از وړند وي د خپل قرض په |
| حَتَّى يُقْضَى عَنْهُ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[2] |
| وجه تر دې چې د هغې نه هغه قرض ادا کړی شي. |

**توضیح: بدینه:** کوم خلک چې د قرض اخستلو شوقین وي او د قرض مالونه په خپلو فضولیاتو او واهیاتو کې بې دریغه مصرفه وي او قرضخواهانو هیڅ خیال نساتي او همدغه شان قرض داري مړ شي. نو د هغې روح د جنت د نعمتونو او د مومنانو د روحونو سره د ملاویدلو نه زوړند وي. دا د دې سزا ده. که د خیټې په خاطر د مجبورۍ په وجه قرض اخستلی شوي وي او د ادا کولو نه یې عاجزه شو او بیا مړ شو. نو د دغه شان مجبوره خلکو سره به د نرمۍ معامله کیږي. بیا هم د وخت په حاکم او په مالداره خلکو باندې لازمه ده چې د هغې د قرض انتظام وکړي.

| ﴿۱۸﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: صَاحِبُ الدَّيْنِ مَأْسُورٌ بِدَيْنِهِ |
|---|
| براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل قرضدار به د خپل قرض په وجه محبوس |
| کړی شي (یعنې جنت ته داخلیدو او نیکانو خلکو سره به د صحبت ته رسیدلو نه منع کړی شي) نو دا |
| يَشْكُو إِلَى رَبِّهِ الْوَحْدَةَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . رَوَاهُ فِي شرح السنة وَ رُوِيَ أَنَّ مُعَاذًا |
| به د قیامت په ورځ خپل پروردګار ته خپل سخت شکایت وکړي. شرح السنه منقول دی چې معاذ بن |
| كَانَ يَدَّانُ فَأَتَى غُرَمَاؤُهُ |
| جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به قرض اخستلو (یو ځل) راغلل قرض خواهان (د خپل قرض د وصولۍ په سلسله کې) |

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۷۹۳ رقم الحديث ۳۵۲۳

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۳۸۹م الحديث :۱۰۷۸.

إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَاعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَالَهُ كُلَّهُ فِي دَيْنِهِ

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خرڅ كړل ټول مال او اسباب د معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د قرض ادا

حَتَّى قَامَ مُعَاذٌ بِغَيْرِ شَيْءٍ . هٰذَا لَفْظُ مُرْسَلٌ

كولو په سلسله كې چې د هغې نتيجه دا شوه چې معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ غريب شو. دا حديث مرسل دى او دا الفاظ

الْمَصَابِيحِ . وَ لَمْ أَجِدْهُ فِي الْأُصُولِ

د مصابيح نه نقل كړى شوي دى. (د مشكوة مؤلف وايي) چې دا روايت نه دي ملاؤ شوې په اصولو

إِلَّا فِي الْمُنْتَقَى

يعني په صحاح سته او داسې نورو كتابونو كې. دا روايت په متقى كې ملاؤ شوى دى. او هغه هم

وَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ : كَانَ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ شَابًّا سَخِيًّا

داسې دى چې عبد الرحمن بن كعب بن مالك رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سخى ځوان ؤ

وَ كَانَ لَا يُمْسِكُ شَيْئًا

او (د خپل سخاوت د وجې نه) نه به يې د خپل ځان سره مال او اسباب نه ساتل (ځكه د ه سره به چې څه

فَلَمْ يَزَلْ يُدَانُ حَتَّى أَغْرَقَ مَالَهُ كُلَّهُ

هم وو هغه به يې نورو ته وركول) د دې وجې نه به يې هر وخت قرض كولو تر دې چې خپل ټول مال او اسباب

فِي الدَّيْنِ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

يې په قرض باندې نذر كړو بيا يو ورځ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت كې حاضر شو (او د دې خبرې

فَكَلَّمَهُ

خواهش يې وكړو) چې ته هغوى ته د قرضو لپاره سفارش وكړه (چې هغوى ټول قرض يا څه برخه معاف

لِيُكَلِّمَ غُرَمَاءَهُ فَلَوْ تَرَكُوا لِأَحَدٍ

كړي) نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د ده قرضدارانو سره پدې سلسله كې خبرې وكړې مگر هغوى هېڅ معاف نه كړل

لَتَرَكُوا لِمُعَاذٍ لِأَجْلِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

كه هغوى د چا قرض معاف كول شوى نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په وجه به يې د معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قرض ضرور معاف

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَبَاعَ | رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَ | سَلَّمَ |
| کړی وی (لهذا چې هغوی د قرض معاف کولو نه پاک انکار وکړو) نو خرڅ کړو نبي کریم ﷺ | | | | | | | |
| مَالَهُ | حَقَّي | قَامَ | مُعَاذٌ | بِغَيْرِ | شَيْءٍ . | | |
| د معاذ بن جبل رضي الله عنه ټول مال او اسباب د قرض ادا کولو لپاره چې دد ې وجې نه معاذ رضي الله عنه مفلس شو | | | | | | | |
| رَوَاهُ | سعيد | فِي | سُنَنه | مُرْسلا . | | | |
| سعید رحمه الله دا روایت په سنن کې د ارسال په طریقه نقل کړی دی. | | | | | | | |

**توضیح: الوحدة:** یعنې خپل پروردګار ته به د خپل ډیر سخت حالت شکایت کوي. مطلب دا دی چې نیکان خلک به راجمع کړی شي او جنت ته به داخل شي. دا سړی خو به نه جنت ته تللی او نه به ورته د نیکو خلکو ملګرتیا حاصله شي او نه به د دې کوم سفارش کونکی دیته رانزدې کېږي. او د بې یارو و مددګارۍ باندې به د الله تعالیٰ نه ډیر سخت خف او د ناقرارۍ په حالت کې به د الله تعالی نه ګله وکړي. ګویا کې دا به د دی مقرض د یوې سزا صورت وی. (المرقات: ٦/١٢٦)

**یدان:** د قرض اخستلو په معنی دی حضرت معاذ رضي الله عنه یو سخي ځوان ؤ د خپل نیک مقصد لپاره به یې قرض اخستلو تر دې چې په قرضونو کې ډوب شو. قرض خواهانو به خپل قرض غوښتلو. هغې نبي کریم ﷺ ته خبره وکړه چې زما قرض خواهانو ته سفارش وکړه چې څه قرض معاف کړي. خو مال عجیب شی دی. هیچا معاف نکړو. نو هله نبي کریم ﷺ د هغې ټوله اثاثه خرڅه کړله او حضرت معاذ رضي الله عنه خپل قرض ورکړلو او تش لاس پاسیدلو او لاړو. د دینه معلومه شوه چې د قرض معامله ډیر حساسه ده. ځکه نبي کریم ﷺ د حضرت معاذ رضي الله عنه د قرض ادا کولو لپاره د هغې ټوله اثاثه خرڅه کړله. نبي کریم ﷺ فقط د قرض خواهانو ته سفارش کړی وو. که حکم وی نو بیا به منل لازمي وو. (المرقات: ٦/١٢٦)

**فِي الاصول:** یعنې د راوي نه مخکې تر مرسل پورې چې کوم الفاظ دي. صاحب مشکوة وایي چې ماته دا روایت د اصولو په کتابو کې ندی ملاؤ شوی. اصولي کتابونه هغه دي چې په هغې حدیثونه په سند سره بیانیږي. صاحب مشکوة نو دا هم ویلي دي چې دا ده چې د حدیث په کتاب منتقی کې ماته دا حدیث ملاو وو شوي. چې د هغې نه معلومیږي چې منتقی به د اصول د کتابونو نه دا روایت نقل کړی وي. که هلته نه وي نو منتقی کې به هغې نه نقل کوو. منتقی د علامه تیم رحمه الله کتاب دی. (المرقات: ٦/١٢٧)

## بغير د عذره قرض نه ادا كولو باندې مديون ته سزا وركول كيدې شي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَ عَنِ الشَّرِيدِ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَيُّ الْوَاجِدِ |
| شريد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل د استعداد لرونكې سړي (په قرض ادا كولو كې) |
| يُحِلُّ عِرْضَهُ وَ عُقُوبَتَهُ قَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ : |
| تاخير كول د هغه بې عزتي او هغه ته سزا وركول حلالوي. ابن مبارك رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د داسې سړي د |
| يُحِلُّ عِرْضَهُ : يُغَلَّظُ لَهُ . وَ عُقُوبَتَهُ : يُحْبَسُ لَهُ .[1] |
| بې عزتي حلال كيدل دا دي چې دا ملامت كړى شي او د هغه سزا دا ده چې هغه قيد كړى شي. |

**توضيح:** **لي الواجد:** د واجد نه مراد استعداد لرونكى سړى دى. **ليّ** چلبازي او په قرض وركولو كې تاخير ځانرا خكنه او ګردن كشى ته وايي. (المرقات: ۶/۱۲۷)

**يحل عرضة:** يعنې هغې ته د سخت سست ويلو حق قرض خواه ته حاصل دى. (المرقات: ۶/۱۲۷)

**عقوبته:** يعنې د شرعى عدالت په ذريعى سره هغه په قيد بامشقت كې ساتل جائز دي ځكه د استعداد لرلو سره هم قرض نه ادا كول هم يو قسم جرم دى او ظالم مستحق د تعزير دى. (المرقات ۶/۱۲۹)

## د قرضداري سره مرسته كول لوى ثواب دى

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ : أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِجِنَازَةٍ |
| ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يوه ورځ) نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته يوه جنازه راوړى شوه چې |
| لِيُصَلِّيَ عَلَيْهَا فَقَالَ : هَلْ عَلَى صَاحِبِكُمْ |
| جنازه پرې وكړى نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د جنازې راوړونكو نه) تپوس وكړه چې آيا ستاسو پدې ملګري |
| دَيْنٌ ؟ قَالُوا : نَعَمْ قَالَ : هَلْ تَرَكَ |
| څه قرض شته دى؟ خلكو جواب وركړو چې آو! نبي عَلَيْهِ السَّلَام بيا تپوس وكړو چې آيا دې سړي پريښي د |
| لَهُ مِنْ وَفَاءٍ ؟ قَالُوا : لَا قَالَ : |
| خپل قرض (د ادا كولو لپاره) مال؟ جواب وركړى شو چې نه. نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل نو بيا تاسو دده د |

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۵ رقم الحديث: ۳۶۲۸

| |
|---|
| صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ قَالَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ : عَلَيَّ |
| جنازې لمونځ وکړئ (زه یې نه کوم) حضرت علي رضي الله عنه (چې دا اوریدل) وې ویل چې زه یې ذمه واري |
| دَيْنُهُ يَا رَسُولَ اللهِ فَتَقَدَّمَ فَصَلَّى عَلَيْهِ . |
| اخلم دده د قرض یارسول الله! د دې نه ورسته نبي علیه السلام مخکې شو او د جنازې لمونځ یې وکړو. او |
| وَ فِي رِوَايَةٍ مَعْنَاهُ |
| په یو روایت کې د دې مضمون منقول دی (مګر د دې الفاظ د دینه جدا دی) دا الفاظ هم نقل شوي چې |
| وَ قَالَ : فَكَّ اللهُ رِهَانَكَ مِنَ النَّارِ |
| نبي علیه السلام (حضرت علي رضي الله عنه ته) وفرمایل چې الله دې ستا سو نفس ته نجات ورکړي دا ور د دوزخ |
| كَمَا فَكَكْتَ رِهَانَ أَخِيكَ الْمُسْلِمِ |
| نه داسې نجات څنګه چې تا سو د یو مسلمان نفس (د قرض د بوج نه) نجات ورکړو (یا د ساتي) چې کوم |
| لَيْسَ مِنْ عَبْدٍ مُسْلِمٍ يَقْضِي عَنْ أَخِيهِ دَيْنَهُ إِلَّا فَكَّ اللهُ رِهَانَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ .[1] |
| مسلمان بنده د خپل مسلمان ورور قرض اداکوي الله تعالی د قیامت په ورځ د هغه نفس ته نجات ورکوي |

**توضیح: فك الله:** نصر ينصر خلاصولو ته وايي **الرهان:** د انسان بدن او څښتن ته وايي (المرقات ۶/۱۲۹) رهان رهین ومرهوم مقید و محبوس په معنی دی. چې تا د خپل مسلمان ورو نفس د خلکو د قرضونو نه خلاص کړو همدغه شان به الله تعالی ستا نفس د دوزخ د اور نه خلاص کړي. دا جزا بمثل ماعمل په قبیل د دعاء ده.

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَ عَنْ ثَوْبَانَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ مَاتَ وَ هُوَ |
| ثوبان رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمایل چې کوم سړی په داسې حالت کې مړ شي چې |
| بَرِيءٌ مِنَ الْكِبْرِ وَ الْغُلُولِ وَ الدَّيْنِ دَخَلَ الْجَنَّةَ .[2] |
| هغه تکبر، خیانت او د قرض نه پاک وي نو هغه (د قبول شوي بنده ګانو سره) به جنت ته داخلیږي. |

(۱) أخرجه البغوي في شرح السنة ۲۱۳/۸ رقم الحديث :۲۱۵۵.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۱۱۷/٤ رقم الحديث ۱۵۷۲.

## د قرض سره مړ کیدل گناه ده

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَ عَنْ أَبِي مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : إِنَّ أَعْظَمَ الذُّنُوبِ |
| ابو موسى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل لويه گناه |
| عِنْدَ اللهِ أَنْ يَلْقَاهُ بِهَا |
| چې د هغې نه الله منع کړيده د الله په نزد د دينه وروسته لويه گناه چې د هغې مرتکب وي او د الله سره مخ |
| عَبْدٌ بَعْدَ الْكَبَائِرِ الَّتِي نَهَى اللهُ عَنْهَا أَنْ يَمُوتَ رَجُلٌ وَ عَلَيْهِ دَيْنٌ |
| شي داده چې يو سړى په داسې حالت کې مړشي چې په هغې باندې د قرض بوج وي او دومره مال يې |
| لَا يَدَعُ لَهُ قَضَاءً .(۱) |
| نه وي پريخى چې په هغې سره دده قرض ادا شي. |

**توضيح**: د فضولياتو او د خواهشاتو د پوره کولو لپاره چې کوم سړى قرض اخلي او بيا د هغې د ادا کولو خيال نه ساتي او مړشي او د قرض د ادا کولو لپاره څه مال هم پرې نه ږدي نو په داسې صورت کې دا سړى لوي گناهگار دى. ځکه هغې د خلکو مال ضايع کړو. د مجبورۍ په حالت کې چې کوم قرض اخستلى کېږي هغه بېل صورت دى. خو د لويو گناهونو نه مراد هغه لويه گناه ده چې هغه غټيدلو کې مشهور دى يعنې شرک او زنا او داسې نور گناهونه، نو د داسې گناهونو نه وروسته چې کومه گناه ده نو په هغه گناهونو کې به قرض لويه گناه شميرل کېږي. مطلقاً لويه گناه نه ده. (المرقات: ۶/۱۳۰)

## په حرام شيانو باندې صلح ناجائز ده

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ الْمُزَنِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : |
| عمرو بن عوف مزني رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| الصُّلْحُ جَائِزٌ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ إِلَّا صُلْحًا حَرَّمَ حَلَالًا أَوْ أَحَلَّ حَرَامًا |
| د مسلمانانو په مينځ کې صلح جائزده خو هغه صلح جائز نده چې هغه حلال شى حرام او حرام شى حلال |

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳ ۶۳۱ رقم الحديث: ۳۳۴۲

| وَ | الْمُسْلِمُوْنَ | عَلٰى | شُرُوْطِهِمْ |
|---|---|---|---|
| کړي او مسلمانان په خپلو شرطونو باندې دي (يعنې مسلمانان په صلح او جنګ يا د دينه بغير په نورو | | | |
| معاملاتو کې په خپل مينځ کې چې کوم شرطونه يعنې عهد و پيمان کوي د هغې خيال ساتل ضروري | | | |
| إِلَّا شَرْطًا حَرَّمَ حَلَالًا أَوْ أَحَلَّ حَرَامًا.[1] | | | |
| دي) خو د هغه شرط پابندي جائز نه ده چې حلال حرام کړي او يا حلال حرام کړي. | | | |

**توضيح: الاصلحاً**: يعنې هره صلح په اسلام کې جائزه ده خو هغه صلح ناجائزه ده چې هغه د يو حلال شي په حرام کولو باندې وشي. مثلاً په دوه ښځو کې جګړه وشوه او خاوند په بدې باندې صلح وکړه چې د يوي ښځي سره به جماع نه کوم. نو دغه شان دا صلح هم ناجائزه ده. چې د کوم حرام شي په حلال کولو باندې وشي مثلاً يو سړى پدې خبره باندې صلح کوي چې زه شراب څکم يا به د خنزير غوښه خورم دا صلح ناجائزه ده. (المرقات: ۶/۱۳۱)

**الاسرطاً**: يعنې د مسلمانانو په خپل مينځ کې داسې شرط لګول منع دي چې په هغې سره د حلال شي حرامه ول لازم راځي لکه خاوند د خپلې ښځي سره دا شرط ولګوي چې که ته راضي شه پدې شرط باندې چې زه به د خپل ورور سره خبرې نه کومه. (المرقات: ۶/۱۳۱)

**أو احلّل حراماً**: مثلاً ميره خاوند ته وايي چې ته راضي شه پدې شرط باندې چې زه به شراب څکم، ميره به خريم او ګدا به کوم. (المرقات: ۶/۱۳۱)

**سوال**: دلته دا سوال دى چې د افلاس او د ابواب بيوع سره د دې حديث څه تعلق دى. که تعلق نشته دى نو دا يې دلته ولې ذکر کړو؟

**جواب**: چې کله سړى په بيوعاتو کې مشغول شي نو په هغې جنجالونه پيدا کېږي او د جنجالونو په وخت کې د صلحې ضرورت وي. کيدى شي د دې ذکر ځکه دلته راغلى وي چې کله سړى مفلس او ديواليه شي نو اکثر د صلحي او د شرطونو وخت راشي. لهذا د دې حديث تعلق د همدغې صلحې سره دى.

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۱۹/۴ رقم الحديث: ۳۵۹۴

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پرتوګ واغستلو او خوښ یې کړو

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ عَنْ سُوَيْد بن قيس قَالَ : جَلَبْتُ أَنَا وَ مَخْرَفَةُ الْعَبْدِيُّ بَزًّا مِنْ هَجَرٍ |
| سويد بن قيس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې واخيستله ما او مخرفه عبدي ته د خرخولو دپاره د مقام هجرى نه |
| فَأَتَيْنَا بِهِ مَكَّةَ فَجَاءَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَمْشِي |
| (چې د مديني سره پيوسته دى) او هغه مو مکې ته راوړه نو راغي مونږ ته نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پياده |
| فَسَاوَمَنَا بِسَرَاوِيلَ |
| (چې کله ورته معلومه شوه چې مونږ د خرخولو لپاره ته مکې ته راوړي ده) مونږ يوه پاجامه واخيسته |
| فَبِعْنَاهُ |
| او هغه پاجامه مو په نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې خرڅه کړه نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه سړي چې |
| وَ ثَمَّ رجل يزن بِالْأَجْرِ فَقَالَ لَهُ رَسُول الله : |
| دې ځاى ته يې په اجرت د خلکو سامانونه راوړل، وي فرمايل چې ته (زما د سپينو زرو دا تکړه) وتله |
| زِنْ وَ أَرْجِحْ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ[1] |
| (چې د دې پاجامې د نرخ په توګه يې ورکړم) او (چې څو مره د تکړې خبره شوي ده د هغې نه) څه ډير وتله |

**توضيح: بزا:** شارحينو د دې لفظ ترجمه ثياب او جامې کړې ده. اګر که "بزا" ريښم ته هم وايي. امام محمد رَحِمَهُ اللهُ ويلي چې کوفي والا و په لغت کې بزسوت او د کتان ټوټو ته وايي (المرقات : ۶/۱۳۱)

**هجر:** د مدينې منورې سره نزدې د يو ځاى نوم دى. (المرقات : ۶/۱۳۱)

**بسراويل:** پرتوګ او جامې ته سراويل وايي . د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تواضع وو چې خپله پيدل بازار ته راغلو او د پرتوګ سودا يې وکړه. بيا د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سخاوت وو چې د اصل نرخ نه يې څه ډير ورکړو. ځکه هغې د سپينو زرو وزنکونکي ته وفرمايل چې راجح وزن يعنې په وزن کې د تلې هغه درجه خکته کړه چې په هغې کې د نرخ سپين زر يخودلى شوي دي. چې په نرخ کې اضافه

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۶۳۱/۲ رقم الحديث :۳۳۳۶

وشي. علامه ابن حجر وايي چې د نبي كريم ﷺ په پرتوګ اغوستلو يا نه اغوستلو کې د علماوو اختلاف دی. ځينو ويلي دي چې د نبي كريم ﷺ د پرتوګ اغوستل ثابت ندي خو اخستل يې جائز دي. ابن قيم رحمه الله وايي چې ښكاره خبره ده چې نبي كريم ﷺ پرتوګ اغوستلی دی او هغه وخت به خلكو پرتوګ اغوستلو. بهرحال پرتوګ او قميص په شته زمانه کې د ټولو جامونو نه باپرده هم دی او په استعمال کې اسان هم دی. او د انسانانو د ټولو احوالو سره موفاق هم دی. که پاسيدل که و دريدل وي او كه ختل او كوځيدل وي. (المرقات: ٦/١٣١)

| |
|---|
| ﴿٢٥﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: كَانَ لِي عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ دَيْنٌ فَقَضَانِي |
| جابر رضي الله عنه وايي چې نبي كريم ﷺ باندې زما څه قرض ؤ نو نبي عليه السلام ماته هغه قرض راکړو |
| وَ زَادَنِي.[1] |
| او يو څه ډير يې راكړو. |

**توضيح:** وزادني: كه يو سړی د يو سړي قرض ادا كړي او څه ډير وركړي نو دا جائز ده. دا د سود په زمره کې نه راځي. ځكه دا فقط يو احسان دی. چاپكې څه شرط ندی يخی. سود هغه وخت جوړيږي چې دائن د مدينون نه د ډيرو اخستلو شرط كيدي او دا خبره مطرح كړي چې دومره ډېرې به راكوي

او هغه كل قرض جر نفعا ربا كې راځي. (المرقات: ٦/١٣٢)

## د احسان بدله احسان وي

| |
|---|
| ﴿٢٦﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي رَبِيعَةَ قَالَ: اسْتَقْرَضَ مِنِّي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| عبد الله بن ابي ربيعه رضي الله عنه وايي چې قرض اخيستې ؤ ما نه نبي كريم ﷺ په يوه موقع |
| أَرْبَعِينَ أَلْفًا فَجَاءَهُ مَالٌ |
| څلويښت زره (۴۰۰۰۰) درهمه نو بيا چې نبي كريم ﷺ ته د مال يو لوي مقدار لاس ته ورغلو |
| فَدَفَعَهُ إِلَيَّ وَ قَالَ: |
| نو نبي كريم ﷺ ماته (هغه مال يا د هغه مال نه زما د قرض هومره) راكړو او وي فرمايل |

---

(١) أخرجه ابوداود في السنن ٦٤٢/٣ رقم الحديث: ٣٣٤٧.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بَارَكَ | اللهُ | تَعَالَى | فِي | أَهْلِكَ | وَ | مَالِكَ | إِنَّمَا | جَزَاءُ | السَّلَفِ |

چې الله تعالى دې ستا په مال او اولاد کې برکت واچوي. د قرض بدله د دينه بغير بل هيڅ نه کېږي

الْحَمْدُ وَ الْأَدَاءُ .[1]

چې (کله قرض ملاؤ شي) شکر او ثنا وکړی شي او (ژر تر ژره) د دې د ادا کولو انتظام وکړی شي.

## مديون ته په مهلت ورکولو کې ثواب

﴿۲۷﴾ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ كَانَ لَهُ عَلَى رَجُلٍ

عمران بن حصين رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې د کوم سړي په يو کس باندې

حَقٌّ فَمَنْ أَخَّرَهُ

څه حق (يعنې قرض وغيره) وي او دهغې (په وصولولو کې) کې تاخير وکړي (يعنې قرضدار ته مهلت

كَانَ لَهُ بِكُلِّ يَوْمٍ صَدَقَةٌ .[2]

ورکړي) د هرې ورځې په بدل کې به ثواب ورکولې کېږي.

## د ميراث په تقسيم باندې قرض مقدم دی

﴿۲۸﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ الْأَطْوَلِ قَالَ: مَاتَ أَخِي وَتَرَكَ ثَلَاثَمِائَةِ دِينَارٍ وَتَرَكَ وَلَدًا صِغَارًا

سعد بن اطول رضي الله عنه وايي چې کله زما ورور مړ شو نو هغه درې سوه ديناره او واړه واړه ماشومان پريخي

فَأَرَدْتُ أَنْ أُنْفِقَ عَلَيْهِمْ

وو نو ما وغوښتل چې دغه درې سوه دينار په دې هلکانو باندې مصرف کړم (او د هغه قرض ادا نه

فَقَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ أَخَاكَ مَحْبُوسٌ بِدَيْنِهِ

کړم) خو نبي کريم صلى الله عليه وسلم ماته وفرمايل چې ستا ورور د خپل قرض په وجه محبوس شوی دی

(په عالم برزخ کې چې د هغې په وجه هغه د هغه ځای نعمتونو او صالحينو د صحبت نه محروم دی)

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۲۱٤/۷ رقم الحديث :٤٦٨٣

(۲) أخرجه احمد في المسند ٤٤٢/٤.

فَاقْضِ عَنْهُ . قَالَ : فَذَهَبْتُ

لهذا ته دهغه قرض ادا كړه سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (دې اوريدو سره) زه (كور) ته راغلم او د خپل ورور

فَقَضَيْتُ عَنْهُ ثُمَّ جِئْتُ فَقُلْتُ

قرض مي خلاص كړو. بيا د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كې حاضر شوم او عرض مي وكړو چې

يَا رَسُوْلَ اللهِ قَدْ قَضَيْتُ عَنْهُ وَ لَمْ تَبْقَ إِلَّا امْرَأَةٌ

يارسول الله! ماد خپل ورور قرض خلاص كړى او س د هيڅا مطالبه نده پاتې خو يوه ښځه پاتې شوي

تَدَّعِي دِيْنَارَيْنِ وَ لَيْسَتْ لَهَا بَيِّنَةٌ قَالَ :

ده چې هغه د دووو (۲) دينارو دعوى كوي خو دهغې سره هيڅ گواه نشته دى نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

أَعْطِهَا فَإِنَّهَا صَادِقَةٌ .[1]

وفرمايل چې هغې ته هم دوه (۲) دينار وركړه هغه رېښتني ده.

**توضيح:فانها صادقة:** قانون خو دا دى چې سړى به په د خپل حق ثابتولو لپاره گواه ساتي. خو كه قاضي او حاكم د خپل معلوماتو په بنياد باندې فيصله صادره كړي نو دا هم جائزه ده. دلته نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې دعوى كونكې ښځې د دووو دينارو وركولو فيصله په هم دغه بنياد باندې كوي. يا نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د وحي په ذريعې سره معلومه شوې وه چې دا ښځه رښتيا وايي. د دې حديث نه دا خبره معلومه شوه چې د خلكو قرض مقدم دى او تقسيم د ميراث وروسته دى. كه څه مال پاتې شو نو تقسيم يې كړى گيني د ورثاوو حق به پاتې نشي. (المرقات: ۶/۱۳۳)

﴿۲۹﴾ وَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَحْشٍ قَالَ : كُنَّا جُلُوْسًا بِفِنَاءِ الْمَسْجِدِ

محمد بن عبد الله بن جحش رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو ورځ مونږ ناست وو د مسجد نبوي سره نږدې په يو صحن

حَيْثُ يُوضَعُ الْجَنَائِزُ وَ رَسُول الله جَالِسٌ بَيْنَ ظَهْرَيْنَا

كې چرته به چې جنازې كيخودل كيدلې ، زمونږ په مينځ كې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ناست وُ ، ناڅاپه

(۱) أخرجه احمد في المسند ۱۳۶/۴.

فَرَفَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بَصَرَهُ قِبَلَ السَّمَاء فَنَظَرَ ثُمَّ طَأْطَأَ بَصَرَهُ

نبي كريم صلى الله عليه وسلم د اسمان اړخ ته نظر اوچت كړو او هلته يې وكتل. بيا يې خپل نظر راكښته كړو

وَ وَضَعَ يَدَهُ عَلَى جَبْهَتِهِ قَالَ : سُبْحَانَ اللهِ سُبْحَانَ اللهِ

او خپل لاس يې په تندي باندې كيخودو (په تعجب سره يې) وفرمايل چې سبحان الله! سبحان الله!

مَا نَزَلَ مِنَ التَّشْدِيدِ ؟ قَالَ : فَسَكَتْنَا

څومره سختي رانازله شوه. راوي وايي چې مونږ چپ شو (يعني مونږ د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه هيڅ

يَوْمَنَا وَ لَيْلَتَنَا فَلَمْ نَرَ

تپوس ونه كړو) تردې چې هغه ټوله ورځ او ټوله شپه تېره شوه او مونږ ته هيڅ سخته خبره ښكاره نه شوه

إِلَّا خَيْرًا

د بنه والي نه بغير (يعني صحابوو د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د ارشاد نه داسې پوهه شول چې كيدى شي

همدغه وخت څه عذاب نازليدونكى دى يا بل څه سخت مصيبت راتلونكى دى. مگر هغه ټوله ورځ

حَتَّى أَصْبَحْنَا

او ټوله شپه تېره شوه نه څه عذاب او نه سخت مصيبت نازل شو) تردې چې سحر شو. د حديث راوي

قَالَ مُحَمَّدٌ : فَسَأَلْتُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :

محمد ابن عبدالله صلى الله عليه وسلم وايي چې د دينه وروسته ما د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وكړه

مَا التَّشْدِيدُ الَّذِي نَزَلَ ؟

چې هغه كومه سختي ده چې نازله شوې ده" (چې د هغې اظهار نبي كريم صلى الله عليه وسلم پرون دومره په

قَالَ : فِي الدَّيْنِ

تعجب فرمايلي وو) نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل "دين (يعني قرض او داسې نور شيان) باره كې

وَ الَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ

هغه سختي نازله شوې ده. قسم دى په هغه ذات چې د چا په قبضه كې د محمد صلى الله عليه وسلم ساه ده

لَوْ أَنَّ رَجُلًا قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللهِ ثُمَّ عَاشَ ثُمَّ قُتِلَ

كه يو سړى د الله په لاره كې (يعني په جهاد كولو) كې شهيد شي او بيا ژوندى شي او بيا شهيد شي

| |
|---|
| فِي سَبِيلِ اللهِ ثُمَّ عَاشَ ثُمَّ قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللهِ ثُمَّ عَاشَ وَ عَلَيْهِ |
| د الله په لاره کې او بیا ژوندی شي او بیا شهید شي د الله په لاره کې او بیا ژوندی شي او په ده باندې |
| دَيْنٌ مَا دَخَلَ الْجَنَّةَ حَتَّى يُقْضَى دَيْنُهُ . وَفِي شَرْحِ السُّنَّةِ نَحْوَهُ[1] |
| قرض وي نو تر هغه وخت پورې جنت ته نشي داخلیدلی تر څو چې دده قرض ادا نکړی شي (یعنې که |
| یو قرضداری بیا بیا د الله په لاره کې ووژل شي نو دا بیا بیا شهادت هم د هغه د قرض کفاره نشي کیدلی) |

**توضیح: طأطأ**: یعني اسمان ته د کتلو نه وروسته نبي کریم ﷺ بیا خپل نظر راخکته کړو او په تعجب سره یې تندي باندې لاس کیخوده.

**قال محمد**: یعني د دې راوي محمد بن عبد الله صحابي د نبي کریم ﷺ نه پوښتنه وکړه. (المرقات : ۶/۱۳۴)

**ثم عاش**: یعني که یو سړی بیا بیا شهید شي نو بیا یې هم قرض نه معاف کېږي. د قرض د معافی لپاره د قرض ادا کول ضروري دي. اګر که شهادت ډېره لویه درجه ده. (المرقات : ۶/۱۳۴)



---

[1] أخرجه احمد في المسند ۲۸۹/۵.

# باب الشركة والوكالة

## د شركت او وكالت بيان

قال الله تعالىٰ: ﴿وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْخُلَطَاءِ لَيَبْغِي بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ﴾ (سورة ص آيت:۲٤)

وقال الله تعالىٰ: ﴿فَابْعَثُوا أَحَدَكُم بِوَرِقِكُمْ هَٰذِهِ إِلَى الْمَدِينَةِ﴾ (سورة كهف ايت:۱۹)

وقال الله تعالىٰ: ﴿فَهُمْ شُرَكَاءُ فِي الثُّلُثِ﴾ (سورة نساء آيت:۱۱)

شرکت په لغت کې ملاولو ته وايي او په اصطلاح کې د دووو سړو په مينځ کې هغه عقد او معامله ته شرکت وايي چې په هغې کې د دواړو اصل او نفع کې شريک وي.

**د شرکت دوه قسمونه**: ۱: شرکت ملک ۲: شرکت عقد: اول قسم يعنې شرکت ملک هغه دی چې د دوه يا د ډيرو سړو په ذريعی سره د اخستلو او خرڅولو يا د هبه په ذريعی سره يا ميراث د يو مالک شي يا مشترکه توګه باندې دوه سړي يو ښکار حاصل کړي او هغه د ښکار مالک شي. يا د دوه سړو د يو جنس بېل بېل مال د يو بل سره داسې ګډ وډ کول چې په دواړو کې تفاوت کول ګران شي مثلاً د يو سړي شودو د بل سړي شودو سره ګډ وډ شول. دا ټول د شرکت صورتونه دی.

د دې شرکت شرعی حکم دا دی چې که د دواړو په مالونو کې امتياز وي نو دا دواړه شرکان د يو بل لپاره نااشنا دي. يعنې د يو بل د اجازت نه بغير په خپل ملکيت کې تصرف کولی شي. خو چرته چې امتياز نه وي لکه د ذکر شوې شودو والا صورت دی. نو پدې کې يو ملګری د بل ملګري د اجازت نه بغير تصرف نه شي کولی. د دواړو اجازت ضروری دی.

دويم قسم يعنې شرکت عقد هغه دی چې ما خپل فلانی قلانی مال او فلاني فلاني حقوق ستا سره شريک کړل او بل ملګری يې ووايي چې ما دا قبول کړو او ما هم خپل مال او حقوق ستا سره شريک کړل. پدې شرکت کې منافي شرکت هيڅ يو شرط عائد کول دهغ عقد فاسده وی. لهذا دا قسمه شرط لګول د جا لپاره جائز نه دی.

د شرکت عقد څلور قسمه دي ۱: شرکت مفاوضه ۲: شرکت عنان ۳: شرکت صنائع و التقبل ۴: شرکت الوجوه.

**الوکالة**: د خپل حقوق او مالونو په تصرف کې بل څوک په خپل ځای خوړولو نوم وکالت دی. د کالت تفصيلی مسائل په فقه کې کتل پکار دي.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## د دعاء لوی اثروي

﴿١﴾ عَنْ زُهْرَةَ بْنِ مَعْبَدٍ : أَنَّهُ كَانَ يَخْرُجُ بِهِ جَدُّهُ عَبْدُ اللهِ بْنُ هِشَامٍ إِلَى السُّوقِ
زهره ابن معبد رَحِمَهُ اللّٰهُ (تابعي) باره کې منقول دي چې ده بو تللو نيکه عبد الله ابن هشام رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بازار

فَيَشْتَرِي الطَّعَامَ فَيَلْقَاهُ
ته چرته به چې هغې غله اخستله. نو (کله به چې هغې غله واخستله نو) نو هلته به هغې سره ملاو يدل

ابْنُ عُمَرَ وَ ابْنُ الزُّبَيْرِ فَيَقُولَانِ لَهُ : أَشْرِكْنَا فَإِنَّ
ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او ابن زبير رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او هغه دواړو به هغه ته ويل چې مونږ د ځان سره شريک کړه ځکه

النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَدْ دَعَا لَكَ بِالْبَرَكَةِ فَيُشْرِكُهُمْ
نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ستا لپاره د برکت دعا کړي ده (زهره رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي) زما نيکه به هغوی شريک

فَرُبَّمَا أَصَابَ الرَّاحِلَةَ
کول او (د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د دعا برکت وُ چې) هغوی ته بغير د نقصان او خسارې د يو اوښ د بوج برابر

كَمَا هِيَ فَيَبْعَثُ بِهَا إِلَى الْمَنْزِلِ
غله ګټه کيده چې هغه به يې خپل کور ته ليږله او (د هغې په حق د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د دعا واقعه دا ده چې)

وَ كَانَ عَبْدُ اللهِ بْنُ هِشَامٍ ذَهَبَتْ بِهِ أُمُّهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ
د عبد الله ابن هشام رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مور هغه د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت ته يوړو او نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَمَسَحَ رَأْسَهُ وَ دَعَا لَهُ بِالْبَرَكَةِ.[1]
د ده په سر خپل لاس مبارک تېر کړو او د ده لپاره يې د برکت دعا وکړه.

**توضيح**: اصاب الراحلة: يعنې د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دعا په برکت سره د زهره بن معبد نيکه عبد الله بن هشام ته به اکثر وخت په ګټه کې د يو اوښ د پوره بوج برابر غله ملاويدله او هغه به يې کور ته ليګله. دا د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دعا برکت وو. ځکه د هغې مور په ماشوم توب کې عبد

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ١٣٦/٥ رقم الحديث: ٢٥٠١

الله بن هشام نبي کريم ﷺ ته وړی وو. هغه وخت نبي کريم ﷺ د هغې په سر لاس راخکلو او د برکت دعا يې ورته وکړه. د دې حديث نه معلومه شوا چې په عقود او د مالونو په تجارت کې شرکت جائز دی. (المرقات: ۶/۱۳۶)

## د انصارو په مالونو کې د مهاجرينو شرکت

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَتِ الْأَنْصَارُ |
| ابو هريره رضي الله عنه وايي چې (کله د مکي نه مهاجرين مديني ته راغلل نو) خواست وکړو انصارو (يعنې |
| لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : اقْسِمْ بَيْنَنَا وَ بَيْنَ إِخْوَانِنَا النَّخِيلَ |
| د مديني خلکو) نبي کريم ﷺ ته چې تقسيم کړه زمونږ او د مهاجرينو په مينځ کې د کهجورو |
| قَالَ : لَا تَكْفُونَنَا الْمَؤُوْنَةَ |
| بوټي نبي عليه السلام وفرمايل چې زه بوټي نه تقسيموم تاسو زمونږ (يعنې د مهاجرينو) له وجې محنت کوی |
| وَ نُشْرِكُكُمْ فِي الثَّمَرَةِ. قَالُوا : سَمِعْنَا وَ أَطَعْنَا. [1] |
| مونږ به په پيداوار کې ستاسو سره شريک يو. انصارو وويل چې مونږ ستاسو خبره په سرسترګو قبلوو |

**توضيح:** الانصار: د مکې مکرمي نه چې کومو صحابو مدينې ته هجرت کړی ؤ. هغې ته مهاجرين ويل کېږي او په مدينه کې چې کومو مسلمانانو مدد کړی وو. هغوی ته انصار ويل کېږي. نبي کريم ﷺ د مهاجرينو او د انصارو په ميځ کې د ورورولۍ روابط جوړ کړل. همدغه شان مهاجرين د انصارو په مالونو کې شريک شول. انصارو په غټې قربانۍ سره د مهاجرينو بخير راغلی وکړو. بدغه موقع باندې انصارو دا غوښتنه وکړه چې زمونږ زمکې د ملکيت په توګه په مهاجرينو باندې تقسی کړه چې خپله برخه او مهاجرين خپله برخه وساتي. نبي کريم ﷺ وفرمايل چې داسې نه بلکې تاسو محنت او مشقت کوي او کله چې غله تياره شوه نو مونږ له تياره غله راکړي. پدې فيصله کې دوه حکمتونه وو. اول دا چې مهاجرينو مکه مکرمه د دې لپاره نه وه پرخې چې هغوی مديني ته لاړ شي او هلته زراعت شروع کړي. بلکې هغوی د جهاد لپاره هجرت کړی وو. او هجرت د تخنيد ونوم ندی بلکې راتاويدل او په دښمن باندې د حملې کولو نوم دی. د نبي کريم ﷺ خيال دا ؤ چې مهاجرين په پوره توګه د جهاد لپاره فارغ شي. که چرې په هغوی باندې يې زمکې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵/۸ رقم الحديث: ۲۳۲۵.

تقسيم كړي وي نو هغوی به د جهاد نه پاتې شوي وي. دويم حكمت دا وو چې نبي كريم ﷺ فقط د ګټې تقسيم وفرمايل چې اصل جايداد او اصل باغونه د انصارو د ملكيت نه خارج نشي. كه تقسيم شوي وی نو د انصارو زمكې او بوټي به د مهاجرينو په ملكيت كې راغلي وي. سبحان الله د نبوت رڼا څومره تيزه وي. (المرقات: ۶/۱۳۶)

**قال لا:** اى لااقسمها بينكم وبينهم، دا جدا كلمه ده او **تكفوننا** جدا صيغه ده چې خبر بمعنى امر دی يعني ته زمنږ لپاره بس يې. **المؤنة:** محنت او مشقت كولو ته وايي. (المرقات: ۶/۱۳۶)

## په تجارتي معاملو كې وكالت جائز دی

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ عُرْوَةَ بن أَبِي الْجَعْدِ الْبَارِقِي: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْطَاهُ دِينَارًا |
| عروه بن ابي الجعد بارقي رضي الله عنه باره كې منقول دي چې نبي كريم ﷺ ورته يو دينار وركړو چې |
| لِيَشْتَرِيَ بِهِ شَاةً فَاشْتَرَى لَهُ شَاتَيْنِ |
| هغه د نبي كريم ﷺ لپاره يوه بېزه واخلي. نو هغې په يو دينار باندې دوه بېزې واخستلې او |
| فَبَاعَ إِحْدَاهُمَا بِدِينَارٍ |
| بيا يې په هغې كې يوه بېزه د يو دينار په عوض (د چا په لاس) خرڅه كړه. او نبي كريم ﷺ ته |
| وَ أَتَاهُ بِشَاةٍ وَ دِينَارٍ |
| يې يوه بېزه وركړه او يو دينار يې هم وركړو. نبي كريم ﷺ (دده د ذهانت نه خوشحاله شو) |
| فَدَعَا لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي بَيْعِهِ بِالْبَرَكَةِ فَكَانَ لَوِ اشْتَرَى تُرَابًا |
| د هغې په اخستلو او خرڅولو معاملاتو كې د بركت دعا وكړه چې د هغې اثر دا ؤ چې كه هغې به خاوره |
| لَرَبِحَ فِيهِ.[1] |
| واخيستله نو په هغې كې به هم هغې ته فايده كيده. |

**توضيح:** د دې حديث نه يوه خبره معلومه شوه چې په تجارتي معاملاتو كې وكالت جائز دی. همدغه شان هره هغه معامله چې په هغې نيابت چلېږي. هلته وكالت هم چلېږي. د دې حديث نه دا خبره هم معلومه شوه چې كه يو سړی د چا مال د ګټې په غرض سره خرڅ كړي نو هغه بيع منعقد هو جاے گی.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۶۳۲ رقم الحديث: ۳۶۴۲

يعنې فضولی کی بيع جائز ده. خو دا ده چې د مالک د اجازت بوري به بيع موقوف پاتې وي. دا د احنافو مسلک دی. او ذکر شوی حديث د هغوی دليل دی. خو د شوافعو حضراتو په نزد دغه شان تصرف کول او بيع کولو سره بيع نه صحيح کېږی اګر که مالک اجازت هم ورکړی. بهرحال نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه صحابي په حق کې د برکت دعا وکړه نو هغې ته په خاوره کې هم فايده کيدله. (المرقات: ۶/۱۳۷)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### د ديانتداره شريکانو ساتونکی الله تعالی دی

| |
|---|
| ﴿٤﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَفَعَهُ قَالَ : " إِنَّ اللهَ عَزَّ وَ جَلَّ يَقُولُ : |
| ابو هريره رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا حديث بيانوي چې نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ وفرمايل الله تعالی وايي |
| أَنَا ثَالِثُ الشَّرِيكَيْنِ مَا لَمْ يَخُنْ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ |
| چې زه د دوو شريکانو په مينځ دريم (محافظ) يم چې تر کومې پورې په هغې کې خيانت ونه کړي د هغه |
| فَإِذَا خَانَهُ خَرَجْتُ مِنْ بَيْنِهِمَا " . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَزَادَ رزين: وَجَاءَ الشَّيْطَانُ[1] |
| بل شريک سره او چې کله په خيانت او بد دیانتی کې راشي نو زه د هغوی د مينځ نه وزم. |

**توضيح: اناثالث:** يعنې په تجارت کې چې تر څو پورې شريکان په ديانت او امانت سره کار کوي نو د الله تعالی د اوښه به د هغه شريکانو مالونه او ګټه محفوظه وي. هيڅ مصيبت او تباهی به هغوی نه راځي. او الله تعالی په هغه مال کې برکت اچوي. خو چې کله په شرکاوو کې خيانت او دهوکې او بد دیانتي شروع شي نو د الله تعالی د حفاظت سیوری لاړ شي او په مينځ کې شيطان راشي. بيا په مالونو کې نقصان او تباهي شروع شي. د دې وجه دا ده چې يو شريک د بل شريک په خيرخواهی کې لګی وي او د الله تعالی مدد شامل حال وي لکه څنګه چې په حديث کې دي. چې تر کومې پورې بنده د خپل ورو په مدد کې لګی وي نو تر هغه وخت پورې الله تعالی د هغې په مدد کوي. (المرقات: ۶/۱۳۸)

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۶۷۷ رقم الحديث: ۳۳۸۳

## په هر حالت کې د خیانت نه بچ شی

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : أَدِّ الْأَمَانَةَ إِلَى مَنِ |
| ابو هریره رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ د نبي کریم صَلَّیاللّٰهُعَلَیْهِوَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَیْهِالسَّلَامُ وفرمايل ورسوه امانت هغه چا |
| ائْتَمَنَكَ وَلَا تَخُنْ مَنْ خَانَكَ .[1] |
| ته چاچې ته امين جوړ کړې يې او څوک چې تاسره خيانت وکړي ته د هغه سره خيانت مه کوه . |

## په خیبر کې د نبي کريم صَلَّیاللّٰهُعَلَیْهِوَسَلَّمَ وکیل

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : أَرَدْتُ الْخُرُوجَ إِلَى خَيْبَرَ فَأَتَيْتُ |
| جابر رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ وايي چې (يوه ورځ) ما خيبر ته د تللو اراده وکړه نو زه راغلم (د رخصتيدو په ارادې سره) |
| النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ وَ قُلْتُ : إِنِّي أَرَدْتُ الْخُرُوجَ إِلَى خَيْبَرَ |
| نبي کريم صَلَّیاللّٰهُعَلَیْهِوَسَلَّمَ ته. ما نبي عَلَیْهِالسَّلَامُ ته سلام وکړو او ومې ويل چې ما اراده کړې خيبر ته د تللو |
| فَقَالَ : إِذَا أَتَيْتَ وَكِيلِي فَخُذْ مِنْهُ خَمْسَةَ عَشَرَ وَسْقًا |
| نبي عَلَیْهِالسَّلَامُ وفرمايل چې "کله ته خيبر کې زما وکيل ته لاړ شې نو ته واخله د هغه نه پنځلس وسقه |
| فَإِنِ ابْتَغَى مِنْكَ آيَةً فَضَعْ يَدَكَ عَلَى تَرْقُوَتِهِ .[2] |
| (کهجوري) او که هغه ستانه څه نښاني وغواړې نو خپل لاس د هغه په مرئ باندې کيږده. |

**توضیح: ترقوته**: يعني خپل لاس د هغه په حلق او د مرئ په هډوکي باندې کيږده. نو هغه به بوهه شي نو په رېښتيا د هغې موکل يعنې د نبي کريم صَلَّیاللّٰهُعَلَیْهِوَسَلَّمَ له اوبنه راغلی يې. پخوانۍ زمانه کې به د قاصد د تصديق لپاره خلکو خپل خاص شی مثلاً څادر، ګوتمه، خولۍ يا تسبيح يا داسې نور شی ورکولو. چې د قاصد دصديق وشي. نبي کريم صَلَّیاللّٰهُعَلَیْهِوَسَلَّمَ هغې ته د وکيل جوړولو نه مخکې ويلي وو چې ستا او زما په مينځ کې نښاني دا ده چې قاصد به ستا د مرئ په هډوکي باندې لاس کيږدي نو هغه به زما له طرفه رالیږل شوی وي. بدي حديث کې نبي کريم صَلَّیاللّٰهُعَلَیْهِوَسَلَّمَ دي قاصد ته د دغه شان معاملې ترتيب ويلی دی. (المرقات: ۶/۱۳۹)

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۸۰۵/۳ رقم الحديث: ۳۵۳۵

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۴۷/۴ رقم الحديث: ۳۶۳۲

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د بېمي د شرکت ثبوت او برکت

| ﴿۷﴾ عَنْ صُهَيْبٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : ثَلَاثٌ فِيهِنَّ الْبَرَكَةُ : |
|---|
| صهيب رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل درې شيان داسې دي چې برکت ترې حاصلېږي |
| الْبَيْعُ إِلَى أَجَلٍ وَ الْمُقَارَضَةُ |
| ۱ : په وعده باندې خرڅول يعني اخستونکي ته د قيمت په ادا کولو کې مهلت ورکول ۲ : مضاربت. |
| و إِخْلَاطُ الْبُرِّ بِالشَّعِيرِ لِلْبَيْتِ لَا لِلْبَيْعِ .(۱) |
| ۳ : په غنمو کې وربشې ګډول د کور د خرڅ د پاره نه د خرڅولو لپاره . |

**توضيح:ثلاث**: اى خصال **ثلاث البيع الى اجل** يعنې مشتري ته د ثمن په ادا کولو کط مهلت ورکول چې هغه په اسنې سره روپۍ ادا کړي.

**المقارضه**: بېمي ته مقارضه ويل شوی دي. د دې حديث نه د مضاربت شراکت ثابت شو او د دې د برکت ثبوت هم ملاوو شو. په مضاربت کې د يو سړی مال وي او محنت د بل سړی وي. او په دواړو کې ګټه شريکه وي. نن سبا د پاکستان په بېنکونو کې سودي کاروبار روان دی چې د ملک لپاره تباهي ده که د دې په ځای مضاريت وی چې ګټه او نقصان کې به دواړه شريک وي نو پدې به ثواب او برکت هم وی او د سود د لعنت نه به ملک هم ازاد وې. (المرقات ۶/۱۳۹)

**اخلاط البر**: يعنې د غنمو سره جوار ګډول پدې کې برکت دی کوم د غنمو اوړه چې ارزان وي دغه شان به تر ډېره وخته پورې چلېږي. خو دا صورت د کورونو د استعمال لپاره دی. په اخستلو او خرڅولو کې داسې ملاوټ د لعنت سبب دی. ځکه په هغې کې خيانت دی. (المرقات : ۶/۱۴۰)

## په تجارت کې د برکت يوه واقعه

| ﴿۸﴾ وَ عَنْ حَكِيمِ بن حزَام أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بَعَثَ مَعَهُ بِدِينَارٍ |
|---|
| حکيم بن حزام رضي الله عنه باره کې منقول دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم هغه ته دينار ورکړو چې هغه په |

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۷۶۸ رقم الحديث ۲۲۸۹

| لِيَشْتَرِيَ | لَهُ | بِهِ | أُضْحِيَةً | فَاشْتَرَى | كَبْشًا | بِدِينَارٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دې دینار نبي کریم ﷺ ته د قرباني څاروی واخلي. نو هغې په دې دینار یو ګډ واخستو او | | | | | | |
| وَ بَاعَهُ | بِدِينَارَيْنِ | فَرَجَعَ | فَاشْتَرَى | أُضْحِيَةً | بِدِينَار | |
| بیا یې هغه په دوه دینارو خرڅ کړو. د دې نه د فارغیدو نه وروسته هغه د قرباني څاروی په یو دینار | | | | | | |
| فَجَاءَ | بِهَا | وَ | بِالدِّينَارِ | الَّذِي | | |
| واخیستلو او هغه څاروي سره یې یو دینار هم راوړو او نبي کریم ﷺ ته یې ورکړو کوم (چې | | | | | | |
| اسْتَفْضَلَ مِنَ الْأُخْرَى فَتصدق رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِالدِّينَارِ | | | | | | |
| یې اول اخستی ؤ د څاروي د وصول شوي نرخ نه) پاتې شوی وو نبي کریم ﷺ هغه دینار صدقه | | | | | | |
| فَدَعَا لَهُ أَنْ يُبَارَكَ لَهُ فِي تِجَارَته .[1] | | | | | | |
| کړو او د حکیم بن حزام رضي الله عنه په حق کې یې دا دعا وکړه چې خدایه د دې په تجارت کې برکت واچوي | | | | | | |

**توضیح**: بدینار: د دې صحابي هوښیار توب او عقلمندۍ ته خو وګورۍ او د تجارت مهارت یې وګورۍ چې نبي کریم ﷺ د قربانۍ د څاروي د اخستلو لپاره هغې ته یو دینار ورکړی وو نو هغې د یو دینار په بدل کې ګډ واخیستو او بیا یې په همغه منډي کې هغه په دوه دیناره خرڅ کړو او بیا یې د یو دینار په بدل کې بل ګډ واخیستو او یو دینار یې بچت راوړو. نبي کریم ﷺ د هغې په تجارت کې برکت دعا وکړه او د هغه دینار د صدقه کولو حکم یې وکړو. ځکه دا ګټه د یو داسې څاروي په واسطې سره وه چې د قربانۍ لپاره اخستلی شوی وو. او د قربانۍ د څاروي ټولې ګټې هم په صدقه کې داخل دي. د دې په مقابل کې د دېنه مخکې حدیث نمبر ۳ کې هم دغه شان واقع راغلي ده. هلته بنی کریم ﷺ دینار خپله اخستی دی. ځکه هلته د قربانۍ صورت نه وو. د دې ځای نه د فقهاوو دا مسئله راوتلي ده چې د قربانۍ د څاروي ګټه به صدقه کېږي. د دې حدیث نه دا خبره بالکل واضحه شوه چې په تجارت کې برکت وي. د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چې د فضولی عقد صحیح کېږي. خو مالک په اجازت باندې موقوف دی. شوافع د فضولي بیع نه ناجائز وایي. تفصیل مخکې تېر شوی دی. (المرقات: ۶/۱۴۰)

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۶۷۹/۳ رقم الحديث ۳۳۸۶

# باب الغصب والعارية

## د غصب او عاریت بیان

قال الله تعالى: ﴿وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُم بَيْنَكُم بِالْبَاطِلِ﴾(سورة بقره آیت:۱۸۸)

وقال الله تعالى: ﴿فَمَنِ اعْتَدَى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَى عَلَيْكُمْ﴾(سورة بقره آیت:۱۹۶)

وقال الله تعالى: ﴿وَيَمْنَعُونَ الْمَاعُونَ﴾(سورة ماعون آیت:۷)

**غصب**: په لغت کې یو څیز په زور اخیستو ته وایي. او په اصطلاح کې د ظلم او د جبر په توګه د چا د مال پټولو نوم غصب دی. پدې کې پټونکې غاصب وي. د چانه چې پټ کړی شوی وي هغې مغصوب منه وي. او غصب کړی شوي مال ته مغصوب وایي.

**عاریت**: د عاریت معنی ده غوښتلی شوی څیز. په اصطلاح کې د عاریت تعریف دادی: چې یو سړی ته د عوض نه بغیر د خپل مال د ګټې مالک جوړولو ته عاریت وایي. علامه تورپشتی وایي چې دا لفظ عار ته منسوب دی. ځکه په داسې غوښتلو کې شرم محسوسیږي. (المرقات: ۶/۱۴۱)

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### د غاصب لپاره سخت وعید

| ﴿۱﴾ عَن سَعِيد بنِ زَيْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَخَذَ شِبْرًا |
|---|
| سعید بن زید رضي الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل کوم سړی چې واخیسته یوه لویشت |
| مِنَ الْأَرْضِ ظُلْمًا فَإِنَّهُ يُطَوَّقُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ سَبْعِ أَرَضِينَ.[1] |
| زمکه د چا په ظلم نو وابه چولی شي دده په غاړه کې د قیامت په ورځ د اوو زمکو نه همدومره اندازه زمکه |

**توضیح**: سبع ارضین: یعنې په اوو زمکو کې به هماغه اندازه زمکه د هغه غاصب په غاړه کې د طوق په توګه واچولی شي. د دې جملې دوه مطلبه دي: اول دا چې په د اوو زمکونه به د غصب شوي زمکې په مقدار زمکه غوڅ کړی شي او د هغې په غاړه کې به طوق په توګه واچولی شي.

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۹۳/۶ رقم الحديث :۳۱۹۸، ومسلم في صحيحه ۳ ۱۲۳۱ رقم الحديث: ۱۴۰/۱۶۱۰.

دويم مفهوم دا دى چې غاصب به د غصب کړې شوي زمکه کې د اومې (۷) زمکې تر لاندې پورې ومونډلى شي نو هغه غصب کړې شوي برخه به د هغې غاړې طوق شي. او هغه به مضبوط وتړلى شي. او مطلب دا هم دى چې غاصب به د زمکې په اوچتولو باندې مجبوره کړې شي. د دې حديث نه مسلمانانو ته دا تعليم ورکړې کېږي. چې غصب يو سخت جرم دى. اسلام د امن او آتشى دين دى. په اسلام کې د هر سړي د مال او د ځان حفاظت دى. لهٰذا پدې کې د غصب هيڅ تصور نشته دى. (المرقات: ۶/۱۴۱)

## په تئينو کې شوده د مالک حق دى

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَحْلُبَنَّ أَحَدٌ مَاشِيَةَ امْرِئٍ | | | | | | | |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: نه دې لوشي يو کس د بل سړي د څاروي شوده | | | | | | | |
| بِغَيْرِ | إِذْنِهِ | أَيُحِبُّ | أَحَدُكُمْ | أَنْ | يُؤْتَى | مَشْرَبَتُهُ | |
| دده د اجازت (دده د حکم او د رضا) نه بغير آيا څوک په تاسو کې دا خوښوي چې راشي د هغه خزانې | | | | | | | |
| فَتُكْسَرَ | خِزَانَتُهُ | فَيُنْتَقَلَ | طَعَامُهُ | | | | |
| (يعنې د هغې د غلې ګودام) ته او د هغې خزانه (ګودام) خلاص کړي تر دې چې د هغې غله يوسي؟ | | | | | | | |
| وَ | إِنَّمَا | يَخْزُنُ | لَهُمْ | ضُرُوعُ | مَوَاشِيهِمْ | أَطْعِمَاتِهِمْ.[۲] | |
| همدغه شان (پوهه شه) د بل د څارو غولانځې دهغوي د غذائى ضرورت (شودو) حفاظت کړي. | | | | | | | |

**توضيح:** **مشربته:** په **ميم** باندې فتحه ده. را باندې ضمه ده او فتحه هم ده. د ګودام کمرې ته وايي. ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ وايي اى **غرفته وهي بيت فوقاني يوضع فيه المتاع.** مطلب دا دى چې د څارو په غولانځو کې چې کوم شوده دي. دا د مالک ملکيت دى. غولانځې په شان د ګودام يا خزانه ده. د مالک د اجازت نه بغير د دينه څه اخستل منع دي. که کوم سړي د خپل ذاتي ګودام يا خځانه کې د چا دخول نه خوښوي نو همدغه شان د څارو مالک د هغې غولانځو نه د هغې د اجازت نه بغير شوده راويستل نه خوښوي. خو که يو سړ د مخمصه په حالت کې وي نو د ځان د ساتلو حد پورې دې شوده وڅکې او بيا دې د هغې نرخ ادا کړي. (المرقات: ۶/۱۴۲)

---

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۸۸/۵ رقم الحديث: ۲۴۳۵، ومسلم في صحيحه ۱۳۵۲/۳ رقم الحديث: ۱۳/۱۷۲۰.

علماوو ليکلي دي چې که اجازت دلالةً وي نو بيا جائز دي لکه څښني د ړيړو مالکان په لاره کې د تېرودونکو ښېزو شوده د خلکو لپاره عام کړي او خلک ترينه شوده راوباسي. او که اجازت نه دلالةً وي نه صراحةً وي خو سړی په اضطراري حالت کې وي نو بيا هم سړی د ځان د بچ کولو حد پورې فقط څکل ضروري دي. کور ته وړل جائز نه دي او چې څه يې وڅکل د هغې نرخ به ورکړي.

**يخزن** فعل دی **ضروع** د دې فاعل دی او **اطعماتهم** مفعول به دی. (المرقات: ٦/١٤٢)

## د کاسي په بدل کې کاسه، واقعه

﴿۳﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عِنْدَ بَعْضِ نِسَائِهِ

انس رضي الله عنه وايي چې (يو ورځ) نبي کريم صلى الله عليه وسلم قيام کولو د خپلې يوې بي بي (عائشې رضي الله عنها)

فَأَرْسَلَتْ إِحْدَى أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ

سره نو ورولېږله يوې بي بي په ازواج مطهراتو کې (زينب رضي الله عنها يا صفيه رضي الله عنها او يا ام سلمه رضي الله عنها)

بِصَحْفَةٍ فِيهَا طَعَامٌ فَضَرَبَتِ الَّتِي

يو کاسه چې په هغې کې د خوراک څه شي ؤ. (د دې په ليدو سره) د خادم لاس ووهلو هغه بي بي چې

النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَيْتِهَا يَدَ الْخَادِمِ فَسَقَطَتِ الصَّحْفَةُ فَانْفَلَقَتْ فَجَمَعَ

د نبي کريم صلى الله عليه وسلم سره يې قيام کولو چې په وهلو سره دا کاسه ګوزار شوه او ماته شوه. نو راجمع

النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِلَقَ الصَّحْفَةِ ثُمَّ جَعَلَ يَجْمَعُ فِيهَا الطَّعَامَ

کړي نبي کريم صلى الله عليه وسلم د کاسې هغه ټوټې (د مات شوي) او بيا يې راجمع کړل هغه شيان د خوراک

الَّذِي كَانَ فِي الصَّحْفَةِ وَ يَقُولُ : غَارَتْ أُمُّكُمْ

چې په هغه کاسه کې وو. نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې "ستا مور ته غيرت راغلی ؤ. بهرحال

ثُمَّ حَبَسَ الْخَادِمَ حَتَّى أُتِيَ بِصَحْفَةٍ مِنْ عِنْدِ الَّتِي

نبي کريم صلى الله عليه وسلم (څه ساعت) خادم حصار کړو تر دې چې کاسه يې راوړې د هغه بي بي د کور نه

هُوَ فِي بَيْتِهَا

چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم په کې قيام کولو (يعني عائشې رضي الله عنها) او بيا نبي کريم صلى الله عليه وسلم د (همغه

| فَدَفَعَ الصَّحفَةَ الصَّحِيحَةَ إِلَى الَّتِي كُسِرَتْ صَحْفَتُهَا |
|---|
| خادم په ذريعې سره) دهغې زوجې مطهرې چې دچا كاسه مات شوي وه هغه روغه كاسه وليږله او |
| وَ أَمْسَكَ الْمَكْسُورَةَ فِي بَيْتِ الَّتِي كَسَرَتْ.[1] |
| ماته شوي كاسه يې هغه زوجې مطهرې په كور كې كيخودله چا چې هغه ماته كړې وه. |

**توضيح: بعض نسائه**: د دينه مراد ام المؤمنين حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ده. (المرقات: ۶/۱۴۳)

**يد الخادم**: د خادم لفظ د غلام او د وينزې دواړو لپاره استعمالېږي. دلته د خادم نه مراد وينځه ده.

**صحفة**: كاسه او ركابي ته وايي. مخكې زمانه كې به د لرګو نه جوړ شوي لوخي وو.

**فانفلقت**: چې چندا چندا شي هغې ته انفلاق وايي. **فلق**: د **فلقة** جمع ده. مات شوي لوخي ته وايي (المرقات: ۶/۱۴۳)

**غارت أمكم**: دا خطاب خو موجود خلكو ته دى او يا ټول امت ته دى. چې د امت په خلكو د چا په زړه او ماغزو كې د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا لپاره څه كركه پيدا نشي. نو ځكه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا له طرفه عذر بيان كړو چې په بنو كې داسې كېږي. دا يوه انساني تقاضا ده. حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا پدې كې معذوره ده. (المرقات: ۶/۱۴۳)

**سوال**: د دې حديث د غصب يا د غارت سره هيڅ تعلق نشته دى بيا دې دا ولې دلته راوړى دى؟

**جواب**: قاضي عياض رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د بل ضايع كول او تباه كول يو قسم ته غصب دى. يا دا وويلې شي چې په ركابۍ كې خوراک تحفه وه خو خپله ركابۍ د عاريت په توګه وو.

**سوال**: دلته دا سوال دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ماتې شوي پيالې په بدل كې روغه پياله وركړه حال دا چې پياله خو د ذوات القيم نه ده. نرخ ېې ته وركول پكار وو. د ذوات الامثال نه نه وه.

**جواب**: د دې سوال جواب دا دى چې په حقيقت كې دا دواړه لوخي د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ملكيت كې وو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د توافق په توګه داسې وكړل، نه دا چې د ضمان په توګه وو.

**دويم جواب**: دا چې ځېنې لوخي د ذوات الامثال د قبيل نه وي لكه ځنګه چې ځېنې عدديات د ذوات الامثال نه وي. لكه هګۍ. (المرقات: ۶/۱۴۳)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۳۲۰ رقم الحديث: ۵۲۲۵

## د يو مسلمان مال لوټل حرام دی

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ يَزِيْد عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَنَّهُ نَهَى عَنِ |
| عبد الله بن يزيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل كوي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ منع كړې ده د |
| النُّهْبَةِ وَ الْمُثْلَةِ.[1] |
| لوټلو او مثله كولو نه. |

**توضيح**: مال لوټل عام دي كه د مسلمان وي او د كافر وي او يا د ذمي كافر وي ټول حرام دي؛

**مثله**: لاس، ښپې او غوږونه او پوزه غوڅول او بدن ورانولو ته وايي. دا هم په اسلام كې منع ده. په ابتداء د اسلام كې داسې څه واقعات شوي وو. بيا د هميشه لپاره حرام كړى شو. د دينه معلومه شوه چې د طب محصلين چې د قبرونو نه مړي راوباسي او بيا په هغې باندې تجربې كوي ټول حرام دي. انسان الله تعالى د احترام قابل جوړ كړى دى. (المرقات: ۶/۱۴۴)

## د حاجيانو د سامان پټونكو حشر

| |
|---|
| ﴿٥﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَوْمَ مَاتَ |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې تو رشو لمر په زمانه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كې په هغه ورځ چې كله وفات شو |
| إِبْرَاهِيمُ بْنُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَصَلَّى بِالنَّاسِ |
| د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځوي حضرت ابراهيم. نو مونځ وكړو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خلكو ته (د لمر د خسوف) |
| سِتَّ رَكَعَاتٍ بِأَرْبَعِ سَجَدَاتٍ |
| شپږ ركوع او څلور سجدو سره (يعنې څلور ركعته او په هر ركعت كې درې ركوع او دوه دوه سجدې |
| فَانْصَرَفَ وَ قَدْ آضَتِ الشَّمْسُ |
| وركړې) او كله چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لمونځ نه فارغ شو نو لمر د مخكيني پشان پړقيدلى وو. |
| وَ قَالَ : " مَا مِنْ شَيْءٍ تُوعَدُونَهُ |
| بيا نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې د كوم شي (يعنې جنت او دوزخ) چې تاسو سره وعده كېږي. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱۹/۵ رقم الحديث : ۲٤۷٤.

إِلَّا قَدْ رَأَيْتُهُ فِي صَلَاتِي هٰذِهٖ لَقَدْ جِيءَ بِالنَّارِ وَ ذٰلِكَ

هغه مانن ماپه خپل دي لمونځ کې وليدو هغه داچې دوزخ زمامخي ته راوړی شو اودا هغه وخت وو

حِينَ رَأَيْتُمُونِي تَأَخَّرْتُ مَخَافَةَ

کله(چې دلمونځ په دوران کې)تاسو زه په لمونځ کې په شاته کېدو وليدم اوددې وېرې نه شاته شوم

أَنْ يُصِيبَنِي مِنْ لَفْحِهَا

چې چيرې د دې ګرمي ماته راونرسيږي. ما (دا وخت) په دوزخ کې د خمدار لرګي والا (يعنې عمرو

وَ حَتّٰى رَأَيْتُ فِيهَا صَاحِبَ الْمِحْجَنِ يَجُرُّ قُصْبَهٗ فِي النَّارِ وَ كَانَ

ابن لحی) په داسې حال کې وليدو چې هغې په هغې خپلې کولمې راخکلې، دې سړی په خپل خمدار

يَسْرِقُ الْحَاجَّ بِمِحْجَنِهٖ

لرګي سره د حاجيانو نه سامان پټولو (چې د هغې طريقه به دا وه چې په تلو تلو کې به هغې په خپل

فَإِنْ فُطِنَ لَهٗ قَالَ : إِنَّمَا

خمدار لرګي کې سامان راتاو وهلو) که چابه د هغه دا حرکت وليدونو دابه يې ويل چې داشی (خپله

تَعَلَّقَ بِمِحْجَنِيْ وَ إِنْ غُفِلَ عَنْهُ ذَهَبَ بِهٖ وَ حَتّٰى

زما په لرګي کې ونختلو او که وبی. نه ليدونو هغه شی به يې پټ کړو همدغه شان مې هغه وخت په دوزخ

رَأَيْتُ فِيهَا صَاحِبَةَ الْهِرَّةِ الَّتِي رَبَطَتْهَا فَلَمْ تُطْعِمْهَا وَ لَمْ

کې هغه د پيشو والا ښځه هم وليده چې هغه يوه پيشو تړلې وه چې په هغې به يې هيڅ نه خوړل او نه به يې

تَدَعْهَا تَأْكُلُ مِنْ خَشَاشِ الْأَرْضِ حَتّٰى مَاتَتْ جُوعًا ثُمَّ

پرېښوده چې هغه حشرات الارض (يعنې مکې وغيره) وخوری تردې چې هغه پيشو مړه شوه. بيا (زما

جِيءَ بِالْجَنَّةِ وَ ذٰلِكَ حِينَ رَأَيْتُمُونِي تَقَدَّمْتُ حَتّٰى

مخي) ته جنت راوړی شو. او دا همغه وخت ؤ چې تاسو زه په مخکې تللو باندې وليدلم. خو زه بيا په

قُمْتُ فِي مَقَامِي وَ لَقَدْ مَدَدْتُ يَدِي وَ أَنَا أُرِيدُ أَنْ أَتَنَاوَلَ مِنْ ثَمَرَتِهَا لِتَنْظُرُوا إِلَيْهِ

خپل ځای ودريدم او ما خپل لاس مخکې کړو چې زه د هغې ميوې راوشکوم چې هغه تاسو وګوری خو

| ثُمَّ بَدَا لِي أَنْ لَا أَفْعَلَ ".[1] |
|---|
| ماسوچ وکړو چې ماته داسې کول ندي پکار (چې ستاسو په ایمان بالغیب کې ګډوډي رانه شي). |

**توضیح: ست رکعات:** د دینه رکوعګاني یعنې په لمونځ کې دننه رکوع مراد ده. (المرقات ۶/۱۴۵)

**آضت الشمس:** آض یئیض د نه لوټلو په معني دی. یعنې لمر رڼا شي او خپل اولني حالت ته راشي. (المرقات: ۶/۱۴۵)

**صاحب المحجن:** محجن خمدار لرګي ته وايي. هغه لرګي چې د هغې په سر کې تاوو شوي وسپنه کلکه کړی شوي وي. د صاحب نه مراد عمرو بن لحی دی. خو د دې خساست وګوری چې دا به تنګو لارو کې کیناستلو او خمدار لرړی به یې د خلکو په څادرونو کې تاوو کړو او پټولو به یې. که چاته به معلومه شوه نو څادر راخکلی شو دي به ویل چې دا خو په غلطی سره داسې وشو. او که چاته به پته ونه لګیدله نو هغه څادر او یا داسې نور شیان به یې پټ کړل. (المرقات: ۶/۱۴۵)

**قصبه:** کولمو ته وايي قاف باندې ضمه ده صاد ساکن دی. عرب وايي رأيت القصاب ينقى الا قصاب ما قصاب د کولمو پاکولو باندې ولیدو. د دې حدیث نه معلومه شوه چې جنت او دوزه موجود دی. او لږ عمل په لمونځ کې جائز دی. او په څاروو په رحم کولو سره الله تعالی خوشحالیږي. او په هغې باندې ظلم کولو سره ناراضه کیږي. (المرقات: ۶/۱۴۵)

## د سپرلۍ څاروی عارية غوښتل جائز دی

| ﴿٦﴾ وَعَنْ قَتَادَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَقُولُ: |
|---|
| قتاده رضي الله عنه وايي چې ما د انس رضي الله عنه نه اوریدلي دي چې هغه به ویل چې (یوه ورځ پدې خیال چې |
| كَانَ فَزَعٌ بِالْمَدِينَةِ |
| کفارو لښکر مدینې ته نزدې راغلی دی) په مدینه کې د وېري یوه فضا جوړه شوه (دي لیدو سره) |
| فَاسْتَعَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا مِنْ أَبِي طَلْحَةَ يُقَالُ لَهُ: الْمَنْدُوبُ |
| نبي کريم صلی الله علیه وسلم د طلحه رضي الله عنه اسپه چې هغې ته به مندوب (سسته) ویل کیده عارية وغوښته |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۶۲۳ رقم الحديث: ۱۰/۹۰۴.

| فَرَكِبَ | فَلَمَّا | رَجَعَ |
|---|---|---|
| او په هغې باندې سپور شو (د تحقيق حال لپاره د مدينې نه ووتلو). بيا چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام بېرته راغلو | | |

| قَالَ : مَا رَأَيْنَا مِنْ شَيْءٍ وَ إِن وَجَدْنَاهُ لَبَحْرًا .[1] |
|---|
| نووي فرمايل ما د وېرې هېڅ شي ونه ليدو خو ما دا اسپه د کولاؤ قدمونو (تيزې منډې والا) و موندله |

**توضيح**: د دې حديث نه معلومه شوه چې د سورلۍ لپاره عاريةً څاروی غوښتل جائز دی. او دا هم معلومه شوه چې د څاروي نوم ايخودل جائز دي. دلته د اسپې نوم مندوب کيخودلی شوی دی. د دې حديث نه دا هم معلومه شوه چې پيره کول مسنون دي. دا هم معلومه شوه چې د يو شي په کار باندې د هغې تعريف کيدلی شي او په تعريف کې مبالغه هم جائز ده. لکه څنګه چې اسپې ته تيزه منډه کې سمندر ويل شوي دي. او د دينه دا هم معلومه شوه چې مسلمانانو ته د خوشحالۍ خبر ورکول مستحب دي. (المرقات :۶/۱۴۷)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د شاړې زمکې آبادونکی د هغې مالک شي

| ﴿۷﴾ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ : مَنْ |
|---|
| سعيد بن يزيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل کوم سړی چې |
| أَحْيٰى أَرْضًا مَيْتَةً فَهِيَ لَهُ وَ لَيْسَ لِعِرْقٍ ظَالِمٍ حَقٌّ .[2] |
| شاړه زمکه آباده کړي نو هغه د همده ده او د ظالم د رګ په هغې کې هېڅ استحقاق نشته دی. |
| رَوَاهُ مَالِكٌ عَنْ عُرْوَةَ مُرْسَلًا. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ |

**توضيح**: **ارضاً ميتة**: شګنه، شاړه او غير ابادې زمکې ته مړه شوې زمکه وايي. (المرقات ۶/۱۴۷)

**فهي له**: پدې کې يو شرط دا دی چې هغه زمکه چې هغه د کوم مسلمان په ملکيت کې نه وي او د کلي يا د ښار په ضرورتونو کې نه وي نو هېڅ عوامي فايده د هغې سره تړلې شوي وي داسې شاملات چې دا چا آباد کړو نو هغه د همغې ده. امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې دا ملکيت به هغه

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵ /۲۴۰ رقم الحديث :۲۶۲۷، ومسلم في صحيحه ۱۸۰۳/۴ رقم الحديث. ۲۳۰۷/۴۹.

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۴۵۳/۳ رقم الحديث ۳۰۷۳

وخت وی چې کله وخت د حکومت له اړخه صراحتً يا دلالةً اجازت وي. امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او صاحبين وايي چې آبادول شرط دی د حکومت هيڅ اجازت ته ضرورت نشته. (المرقات ۶/۱۴۷)

**لعرق ظالم**: د ظالم د رګ دا مطلب دی چې يو سړی د بل سړي آبادي زمکې ته لاړ شي او بوټي نال کړي يا مات کړي. نو په دغه ظالمانه غصب سره هغه سړی د دې زمکې مالک نه شي کيدی. بلکې هغه ته به وويل شي چې دا خپل فصل دې وباسه او زمکه خالي کړه. (المرقات :۶/۱۴۸)

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْ أَبِي حُرَّةَ الرَّقَاشِي عَنْ عَمِّهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَلَا |
| ابوحره رقاشي رَحِمَهُ اللهُ (تابعی) د خپل تره نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "خبردار! |
| تَظْلِمُوا أَلَا لَا يَحِلُّ مَالُ امْرِئٍ إِلَّا بِطِيبِ نَفْسٍ مِنْهُ .[1] |
| په چا ظلم مه کوی، د بل هيڅ سړي مال (اخستل يا استعمالول) د هغه د رضا او خوښي نه بغير حلال ندی |

## په اسلام کې ډاکه حرامه ده

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ عِمرَان ابْن حُصَيْنٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ : لَا |
| عمران ابن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل نه |
| جَلَبَ وَلَا جَنَبَ وَلَا شِغَارَ فِي الْإِسْلَامِ وَ مَنِ انْتَهَبَ نُهْبَةً |
| جلب جائز دی. او نه جنب او شغار په اسلام کې (جائز) دی. او (ياد وساتئ) کوم سړی چې (بل) لوټي |
| فَلَيْسَ مِنَّا .[2] |
| هغه زمونږ نه، نه دی (يعني هغه زمونږ د ډلی نه ،نه دی يا زمونږ په طريقه باندې نه دی حاصل دا چې |
| اکثر وخت يو سړی د دې قابل نشي چې په اسلامي ورورولۍ يو فرد وګڼلی شي). |

**توضيح**: **لاجلب ولاجنب**: دا دوه اصطلاحی الفاظ دي په زکوة کې د دې جدا مطلب دی. چې کوم دلته ليکلی شوی او په اسپو په منډه کې د دې جدا مطلب دی چې هغې ته سباق وايي . دا هم ليکلی شوي او په بهوعاتو کې د دې جدا مطلب دی چې د دينه مخکې ليکلی شوی دی. خو دا ده چې په بهوعاتو کې جلب کېږي او جنب نه کېږي. (المرقات :۶/۱۴۹)

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الإيمان ۳۸۷/٤، رقم الحديث : ٥٤٩٢، سنن الدار القطني ۱۵۲/۳، رقم الحديث ٠ ۲۹۲٤.

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ٦٧/٣ رقم الحديث :۲۵۸۱

ولا شغار: په كتاب النكاح كې د شغار تفصيلاً ليكل شوى دى. (المرقات: ۶/۱۴۹)

## په ټوقه او خندا كې هم د چا شئ او چتول منع دي

| ﴿۱۰﴾ وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدَ عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : لَا يَأْخُذُ |
|---|
| سائب بن يزيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل پلار نه نقل كوي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: نه دي اخلي په |
| أَحَدُكُمْ عَصَا أَخِيهِ لَاعِبًا جَادًّا فَمَنْ |
| تاسو كې هېڅوك د خپل مسلمان ورور امسا په خندا او ټوقې سره چې هغه يې كېږدي كوم سړى چې |
| أَخَذَ عَصَا أَخِيهِ فَلْيَرُدَّهَا إِلَيْهِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَرِوَايَتُهُ إِلَى قَوْلِه: جادا [1] |
| د خپل مسلمان ورور امسا واخلي نو هغه دي بېرته كيږدي. |

**توضيح: عصا اخيه:** يعنې د خپل مسلمان ورور امسا او داسې نور شيان خو نه په رښتيا پټ كړى شي او نه دې په خندا او په ټوقه كې كوم شى د هغې واخستلى شي او نه دي پټ كړى شي. د دې صورت دا وي چې د يو بل ملګري نه مثلاً امسا يا قلم يا چپړه يا څادر او يا داسې بل څه په خنده او په ټوقه ترې پټ كړي شي چې په دې سره دا ملګري تنګوي او بيا هغه ښه پريشانه كړي او بېرته يې وركړي. په ښكاره خو اګر چې دا يوه خندا ده خو پدې كې ډېر لوي ضرر هم دى. هېڅ يو مسلمان پداسې طريق سره تنګول جائز نه دي او كه په رېښتيا يې پټ كړى نو بيا ښكاره خبره ده چې هغه حرام دي. (المرقات: ۶/۱۵۰).

**جادا:** هم دغه رښتياؤ دصورت طرف ته اشاره ده دچوكې او همسا ذكر په توګه دمبالغه دې مراد ترې نه يو حقير څيز دى. (المرقات: ۶/۱۵۰)

## كه د پټ كړى شوى مال مالک ووينې نو هغه يې اخيستلې شي

| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْ سَمُرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : مَنْ |
|---|
| سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل كوي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل كوم سړى چې |
| وَجَدَ عَيْنَ مَالِهِ عِنْدَ رَجُلٍ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ وَ يَتَّبِعُ |
| خپل مال په ښكاره د چا سره ووينې نو هغه (د هغې داخستلو) حقدار دى او ورپسې دې شي ددې |

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۵/۲۷۳ رقم الحديث ۵۰۰۳

## پټي ته د څاروو د نقصان رسولو مسئله

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَن حَرَامِ بْنِ سَعْدِ بْنِ مُحَيِّصَةَ: أَنَّ نَاقَةً لِلْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ دَخَلَتْ حَائِطًا |
| حرام بن سعد بن محیصه رضي الله عنه وايي چې (يو ورځ) د براء بن عازب رضي الله عنه اوښه يو باغ ته ننوتله او |
| فَأَفْسَدَتْ فَقَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| باغ يې خراب کړو چې کله معامله نبي عليه السلام ته راوړې شوه نو دا فيصله وکړه رسول الله صلى الله عليه وسلم |
| أَنَّ أَهْلِ الْحَوَائِطِ حِفْظَهَا بِالنَّهَارِ وَ أَنَّ مَا أَفْسَدَتِ الْمَوَاشِي |
| چې په ورځ کې د باغ حفاظت د باغ والا ذمه واري ده. او کوم څاروي چې د شپې باغونه خراب کړي |
| بِاللَّيْلِ ضَامِنٌ عَلَى أَهْلِهَا.[1] |
| نو د هغې ضمان يعني تاوان د څارو په مالکانو باندې دی. |

**توضيح: حائطاً:** حائط هغه لويې باغ ته وايي چې د هغې نه ګير چاپيره ديوال وي. دلته د باغ او د پټي مسئله يو شان ده. فقط نوم اخستلی شوی دی. مطلب دا دی چې که څاروو کوم فصل ته نقصان ورسولو نو کتلی به شي چا آيا دا نقصان په ورځ کې ورسول شوی دی. او که په شپه کې. نو پدې حديث کې دي چې که چرته څاروي په ورځ کې نقصان ورسولی وي نو د هغې تاوان به د څاروو په مالک نه وي. ځکه د ورځې وخت کې باغ او پټی د مالک په ذمه دی. چې هغه د خپل باغ حفاظت وکړي. دا کوتاهي د همغې ده. لهٰذا د څاروو په مالکانو به هيڅ تاوان نه راځي. او که چرې څاروو د شپې فصل ته نقصان رسولی وي نو د څاروو په مالک به تاوان راځي. ځکه چې د شپې وخت کې د څاروو حفاظت د څاروو د مالکانو په ذمه وو. هغې غفلت وکړو نو تاوان به په هغې راځي. دا د دې حديث مطلب دی او دا ټول تفصيل هغه وخت دی چې کله د څاروو سره مالک نه وي. او که مالک ورسره وي نو بيا خو به هر صورت کې تاوان په هغې راځي. شوافع او حنابله او ورځ او د شپې فرق کوي. لکه څنګه چې پدې حديث کې دی. خو احناف د ورځ او د شپې فرق نه کوي. بلکې د څاروی سره قائد او د سائق اعتبار کوي. که قائد او سائق نه وي نه تاوان به نه وي. ځکه مشهور حديث دی چې "العجماء جرحها جبار" چې کوم ورسره لاندې روايت دی. احناف د دواړو روايتونو نه استدلال

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۸۲۸/۳ رقم الحديث ۳۵۶۹.

کوي چې د څاروي نقصان معاف دی. که ورځ وي او شپه وي. او که راکب وي. نو بیا خو به ضمان راځي. بهرحال د جمهورو فقهاوو موقوف مضبوط دی. (المرقات :۶/۱۵۲)

## د غیر اختیاري اور د نقصان تاوان نشته دی

| |
|---|
| ﴿۱٤﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل د |
| الرِّجْلُ جُبَارٌ وَ النَّارُ جُبَارٌ .[1] |
| خپو دلاندې چقول شوی معاف دی همدغه شان نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمایل په اور (سوزیدلی) هم معاف دی |

**توضیح**: الرجل جبار: رِجل خپو ته وایي او د جبار په جیم باندې ضمه سره معاف او بې ځایه په معنی دی. مطلب دا چې مثلاً یو څاروی دی چې د هغې سره مالک نشته هغه د بنپو لاندې ژوبل کړو نو د هغې تاوان په هیچا نشته دی. ځکه دا د حیوان غیر مکلف فعل دی. (المرقات ۶/۱۵۲)

**والنار جبار**: یعنې په محفوظ ځای د یو نیک مقصد لپاره اور لګولې وو هوا هم په ارام وه. مګر بیا هم د یو ډکی په وښو یا په ګودام باندې ولګیدو او د هغې نه نقصان وشو. نو د دې تاوان په اور لګونکې باندې نشته دی. خو که چا د خطر په حالت کې اور ولګولو چې د هغې د نقصان ښه یقیني امکان وو مثلاً هوا چلیدله او د هغې نه ډکی ولګیدو او نقصان وشو نو په دې صورت کې په اور لګونکې باندې به تاوان وي. (المرقات :۶/۱۵۲)

## په اضطراري حالت کې د بل د څارو نه شوده څکل جائز دي

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنِ الْحسن عَن سَمُرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : إِذَا أَتَى أَحَدُكُمْ |
| حسن رَحِمَهُ اللهُ سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل کله چې راشي په تاسو کې |
| عَلَى مَاشِيَةٍ فَإِنْ كَانَ فِيهَا صَاحِبُهَا فَلْيَسْتَأْذِنْهُ |
| یو سړی (د شودو) څارو خواته که هلته د څاروُ مالک وي نو د هغه نه (پئیو څکلو) اجازت وغواړئ |
| وَ إِنْ لَمْ يَكُنْ فِيهَا فَلْيُصَوِّتْ ثَلَاثًا فَإِنْ |
| او که مالک نه وي نو هغه سړی ته پکار ده چې هغه درې ځله اواز وکړي (د هغې په اوریدلو سره) که |

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ٤/۷۱٤ رقم الحديث :٤٥۹۲

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَجَابَهُ | أَحَدٌ | فَلْيَسْتَأْذِنْهُ | وَ | إِنْ | لَمْ | يُجِبْهُ أَحَدٌ |
| چا جواب ورکړونو د هغې نه تپوس وکړئ او که څوک جواب درنکړي نو د ضرورت مطابق شوده | | | | | | |
| فَلْيَحْتَلِبْ وَ لْيَشْرَبْ وَلَا يَحْمِلْ .[1] | | | | | | |
| تري نه وڅکی. خو د ځان سره يې مه وړی. | | | | | | |

**توضيح: ماشية:** د بېزو او د نورو څاروو رمی ته وايي. (المرقات: ۶/۱۵۳)

**فليصوت:** يعنې داسې اواز وکړي چې دا څاروي د چا دي. د دې څاروو مالک څوک دی. ای شپونکيه ته چرته يې؟ که د اواز په جواب کې سړی ملاوو شو نو د هغې په اجازت سره شوده وڅکی. او که د درې اوازونو باوجود هم سړی ملاوو نشو نو دضرورت مطابق شوده وڅکی. خو کور ته مه وړی. د دی حديث تعلق د داسې اضطراري صورت سره دی چې په هغې د سړی مړ کيدولو خطر وي. په هغې شوده څکل او ځان بچ کول پکار دي. يا د دې حديث تعلق د داسې مقاماتو سره دی چې هلته په عامه توګه تېرودونکو مسافرو ته شوده لوشلو او د څکولو اجازت وي. هلته په داسې عمل شوده حاصلول پکار دي. (المرقات: ۶/۱۵۳)

## په اضطراري حالت کې د بل د باغ نه ميوه شکول جائز دي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۶﴾ وَ | عَنِ | ابْنِ | عُمَرَ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ | قَالَ | : | مَنْ |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم سړی چې | | | | | | | | | |
| دَخَلَ حَائِطًا فَلْيَأْكُلْ وَلَا يَتَّخِذْ خُبْنَةً . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[2] | | | | | | | | | |
| دچا باغ ته ورشي نو ده ته په کار دي چې د هلته نه ميوه وخوري او په جيب او لمن کې دي نه اچوي. | | | | | | | | | |

**توضيح: فليأكل:** د دې حديث دا مطلب نه دی چې هر سړی راشي او د يو چا باغ ته ننوځي او د هغې ميوه دې وخوري. بلکې د دې مطلب هم هغه دی چې د دينه مخکې حديث کې يې توضيح بيان شوي ده. چې په اضطراري حالت کې ځان د بچ کولو لپاره وړی شوی سړی د بل د باغ نه ميوه خوړلی شي. يا د دې حديث د محمل د داسې مقاماتو او داسې علاقي سره دی چرته چې د باغونو د ميووو د خوړلو عام اجازت وي. (المرقات: ۶/۱۵۳)

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۸۹ رقم الحديث: ۲۶۱۹

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۵۸۳ رقم الحديث: ۱۲۸۷

**خبنة:** خا باندې فتحه ده با ساکن دی نون باندې فتحه ده لمن او جیب ته وایي . مطلب دا دی چې جیب او لمن ډکه کړي او کور ته یې یوسي. فقط د ضرورت مطابق یې وخوره. (المرقات :۶/۱۵۳)

## مستعار اخیستلی شوی شئ د امانت په حکم کې دی

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَن أُمَيَّة بْنِ صَفْوَان عَنْ أَبِيهِ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَعَارَ مِنْهُ |
| امیه بن صفوان د خپل پلار (صفوان) نه نقل کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عاريتا اخيستې وې د ده |
| أَدْرَاعَهُ يَوْمَ حُنَيْنٍ فَقَالَ : أَغَصْبًا يَا مُحَمَّدَ ؟ |
| نه د حنین د جنګ په ورځ خو زغري هغوی تپوس وکړو چې ای محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! آیا ته دا زغري د غصب |
| قَالَ : بَلْ عَارِيَةً مَضْمُونَةً . [۱] |
| په توګه اخلي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل! چې (نا) بلکې عاریة یې اخلم چې بېرته به د رکړې کېږي. |

**توضیح: اغصباً یا محمد:** چې کله مکه مکرمه فتح شوه او د جنګ حنین آغاز وشو نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مناسبه وګڼله چې د هغه ځای د جنګیالو د مقابلې لپاره د اسلحي ضرورت دی. د دې مقصد لپاره نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صفوان بن امیه نه د عاریت په توګه یو څو زغري وغوښتلې. صفوان ورکړلي خو دا پوښتنه یې وکړه چې ای محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! آیا دا اسلحه دې زمانه په غصب په توګه واخستله؟ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته په جواب وفرمایل چې نا بلکې دا عاریت دی چې بېرته به درکړی کېږي. صفوان تر هغه وخت پورې مسلمان شوی نه وو بلکې وروسته مسلمان شو. (المرقات :۶/۱۵۴)

**مضمونة:** د دې جملي ظاهرې مطلب دا دی چې د ضمان په توګه دا عاریت دی چې ضایع شو تو ضمان به ادا کېږي. د دې ترجمي په وجه د فقهاوو اختلاف شوی دی چې آیا د عاریت د هلاکت په صورت کې به ضمان وي او که نا؟ یعنې عاریت امانت او که ضمانت. (المرقات :۶/۱۵۴)

**د فقهاوو اختلاف:** د اما شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ او د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ مسلک دا دی چې که چرته دا عاریت تلف شي نو مستعیر باندې به د دې بدل او ضمان راځي. دې حضراتو "**مضمونة**" ترجمه د تاوان او ضمان نه کړې ده. د احنافو د ائمو په نزد مستعار شی د مستعیر په لاس کې امانت وي. خپله د

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۸۲۲/۳ رقم الحديث :۳۵۶۲

تلف او هلاک کېدلو په صورت کې هیڅ ضمان او تاوان نه دی. خو که قصداً دا مستعیر ضایع کړي نو تاوان به وي. (المرقات: ۶/۱۵۵)

## مستعار شئ بيرته ورکول واجب دی

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: الْعَارِيَةُ مُؤَدَّاةٌ |
| ابو امامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې ما اوريدلي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به فرمايل مستعار شی بيرته ورکړی |
| شي (يعني يو شی په مستعار اخستونکي باندې واجب ده چې هغه شی د هغه مالک ته بېرته ورسوي) |
| وَ الْمِنْحَةُ مَرْدُودَةٌ وَ الدَّيْنُ مَقْضِيٌّ وَ |
| د منحه بېرته ورکول ضروري دی، قرض دې ادا کړی شي (يعني د قرض بېرته ورکول واجب دي) او |
| الزَّعِيمُ غَارِمٌ .[1] |
| ضامن په پوره ضمانت کولو باندې مجبور دی (يعني که څوک د چا د قرضو او يا د نورو څه ضامن |
| وي نو د هغې ادا کول په هغې باندې لازم دي). |

**توضيح: مؤداة:** يعني عاريت به بېرته ورکړی کېږي. که عين شتو لري نو هغه به بېرته ورکړی کېږي. ګينی د هلاکت په صورت کې به د هغې نرخ ادا کېږي. دا د شوافع د شوق تشريح ده. احناف وايي چې دا امانت دی بېرته به ورکړی کېږي. (المرقات: ۶/۱۵۵)

**المنحة:** د عرب خلکو به د شودو څاروي داسې خلکو ته د عاريت په توګه ورکول چې د هغې سره د شودو څاروي نه وو. همدغي ته منحه بمعنی عطيه ويل شوي دا. چې د شودو زمانه به تېره شوه نو هغه به يې مالک ته بېرته ورکولو. دغي ته ويل شوي دي چې منحه به بېرته ورکړی کېږی. الدين مقضی: يعنې که په چا باندې قرض دی نو د هغې ادا کول لازم دي. (المرقات: ۶/۱۵۵)

**الزعيم:** زعيم ليډر ته هم وايي. کيل ته هم وايي. دلته ضامن مراد دی. (المرقات: ۶/۱۵۵)

**غارم:** يعنې ضامن مجبور او مقروض دی. او ضامن باندې لازم دي چې ضمانت پوره کړي. دا د هغې ذمه واري ده.

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۸۲٤ رقم الحديث: ۳۵٦۵

## د بوټي نه غوړځيدلې ميوه هر څوک اوچتولی شي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَن رَافع بن عَمْرو الْغِفَارِيّ قَالَ : كُنْتُ غُلَامًا أَرْمِي نَخْلَ الْأَنْصَارِ |
| رافع بن عمرو غفاري رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي چې کله زه ماشوم وم نو ويشتلې به مې کهجورې د انصارو په کاڼو |
| فَأُتِيَ بِيَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : |
| (يو ورځ) انصاري زه ونيولم او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې بوتلم، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام ماته وفرمايل: |
| يَا غُلَامُ لِمَ تَرْمِي النَّخْلَ ؟ قُلْتُ : آكُلُ |
| ماشومه ته د کهجورو بوټې په کاڼو ولې ولې؟ ما وويل چې کهجورې خورم (يعنې د کهجورو خوړلو |
| قَالَ : فَلَا تَرْمِ |
| لپاره هغه په کاڼو ولم د بل کوم مقصد لپاره کاني نه ولم) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کاڼي مه وله |
| وَ كُلْ مِمَّا سَقَطَ فِي أَسْفَلِهَا ثُمَّ مَسَحَ رَأْسَهُ |
| کومې کهجورې چې د بوټو نه لوېږي نو هغه خوره بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَام زما په سر خپل لاس مبارک راښکلو |
| فَقَالَ: اللّٰهُمَّ أَشْبِعْ بَطْنَهُ . وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ فِي بَابِ اللُّقَطَةِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى[1] |
| او وې فرمايل: اى الله! ته دده خېټه مړه کړې. |

**توضيح:** فَأُتِيَ بِي: د مجهول صيغه ده. يعنې انصارو زه ونيولم او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې يوړلم.

**آكُلُ:** يعنې فقط د کهجورو خوړلو لپاره کاڼي ولم د بل هيڅ مقصد لپاره يې نه ولم. (المرقات ۶/۱۵۶)

**مما سقط:** يعنې د بوټو د پاس نه کهجورې مه خوره. عام عادت هم دغه دی چې د داسې لاندې راپرېوتي ميووو نه څوک منع کول نه کوي او خصوصاً ماشومان د دهغه شان ميووو په لټه کې وي. دا ماشوم په حالت مخمصه کې نه وو. ګيني نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ورته د بوټو نه د خوړلو اجازت ورکړی وو. (المرقات :۶/۱۵۶)

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۹۰، رقم الحديث :۲۶۲۲

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## دزمکې د غصب کولو جدا جدا سزاګانې

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ عَنْ سَالِم عَنْ أَبِيهِ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| سالم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل پلار نه نقل کوي چې هغې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا ارشاد مبارک بيان کړو |
| مَنْ أَخَذَ مِنَ الْأَرْضِ شَيْئًا بِغَيْرِ حَقِّهِ |
| چې کوم سړی د زمکې کومه برخه په ناحقه واخلي (يعنې د يوې يوه برخه په ظلم او په زوره واخلي) |
| خُسِفَ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى سَبْعِ أَرْضِيْنَ . (۱) |
| نو د قيامت په ورځ به هغه د زمکې تر اومې طبقه پورې ښخ کړی شي. |
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ يعلى بن مرّة قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَنْ أَخَذَ أَرْضًا |
| يعلى بن مرة وايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي چې کوم سړی واخلي د زمکې يوه برخه |
| بِغَيْرِ حَقِّهَا كُلِّفَ أَنْ |
| په ناحقه (په ظلم او زور سره) نو هغه به د قيامت په ورځ پدې خبره باندې مجبور کړی شي چې هغه |
| يَحْمِلَ تُرَابَهَا الْمَحْشَرَ . (۲) |
| دې زمکې (ټوله) خاوره په خپل سر باندې او چته کړي. |
| ﴿۲۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : أَيُّمَا رَجُلٍ |
| يعلى بن مرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې کوم سړی چې (د چا) |
| ظَلَمَ شِبْرًا مِنَ الْأَرْضِ كَلَّفَهُ اللهُ عَزَّ وَ جَلَّ |
| يو لويشت زمکه په ظلم سره واخلي. هغه به (په قبر کې) الله تعالى پدې خبره باندې مجبوره کړي |
| أَنْ يَحْفِرَهُ حَتَّى يَبْلُغَ آخِرَ سَبْعِ أَرَضِينَ ثُمَّ يُطَوَّقَهُ |
| چې هغه دا زمکه د زمکې اوم تل پورې وکني. بيا به هغه زمکه د هغې په غاړه کې د طوق په توګه |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰۳/۵ رقم الحديث ۵٤.

(۲) أخرجه احمد في المسند ۱۷۲/٤.

| إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ حَتَّى يُقْضَى بَيْنَ النَّاسِ .[۱] |
|---|
| واچولی شي او تر قيامته به پدې حال کې وي تردې (چې د قيامت ورځ) د خلکو حساب کتاب وشي |

**توضيح**:د زمکې د غصب کونکې بېلابېلي سزاګانو ذکر په بېلابېلو احاديثو کې ذکر دي. د دې باب په اول فصل کې ويل شوي دي چې د قيامت په ورځ به د زمکې غاصب په غاړه کې طوق واچولی شي. د دې تفصيل هملته ليکلی شوی دی.

دلته پاس حديث کې نمبر ۲۰ کې ويل شوي دي چې داسې سړی ته به غصب کړی شوی زمکه کې د اوومې زمکې پورې خښ کړی شي.

حديث نمبر ۲۱ کې دي چې غاصب به دې خبره باندې مکلف کړی شی چې هغه تر قيامت ورځې پورې د غصب شوي زمکې ټوله خاوره راوچته کړي او په محشر کې حاضر کړي.

دلته زير بحث حديث نمبر ۲۲ کې د داسې سزا بيان دی چې غاصب ته به غصب کړی شوي زمکه تر اوومې زمکې پورې به کنستلو باندې مجبور کړی شي. او د کنستلو نه وروسته به دغه زمکه د غاصب په غاړه کې د طوق په شان واچولې شي. نو معلومه شوه چې د زمکې د غصب کونکو به د قيامت په ورځ بېلابېلي سزاګاني وي. (المرقات :۶/۱۵۷)



(۱) أخرجه احمد في المسند ۱۷۳/٤.

# باب الشفع
## د شفعې بيان

شفعه په لغت کې ملاوولو او جفت جوړه ولو ته وايي. د فقه په اصطلاح کې ګاونډي توب اود شراکت په بنياد باندې د بل زمکه يا کور د خپلې زمکې يا کور سره ملاوولو ته د شفعې حق وايي. چې کوم سړي ته دا حق حاصل وي هغې ته شفيع وايي. او د دې حق نوم شفعه دى. اسلام يو پوره پوره بلکې اکمل دين دى. دا انساني ټولنې په هره اړه محيط دى. او د انسانانو د مسائلو پوره پوره حق بنودنه کوي. اسلام د امن او آشتي او محبت او توافق باندې يوه ولاړه ټولنه جوړوي. په کلي د خلکو ګاونډ د انساني ژوند د ټولو نه حساسه مسئله ده. که د ګاونډي نه چاته خطر وي نو هغه سړي نه کاروبار کولی شي نه وظيفه کولی شي بلکې د خپل کور څوګيدار شي او د هغې ټولنيز ژوند تباه شي. نو ځکه اسلام انسانانو ته که هغه مسلمان وي يا ذمي وي د شفعې حق ورکوي. چې د هغوی په ګاونډ کې د هغې د مزاج خلاف بل څوک سړی رانشي. دې ضرر د لرې کول په بنياد د امت بدې باندې اجماع ده چې شفعه يو جائز حق دى. خو د دې په تفصيلاتو کې د فقهاؤ څه اختلاف دى.

**د شفعې حق په کومو شيانو کې دى**: د احنافو اودشوافعواو د جمهورو فقهاؤ پدې خبره باندې اتفاق دى چې د شفعې حق فقط په غير منقوله شيانوکې وي په منقوله شيانو کې د شفعې حق نشته دى. دا حضرات دهغه ټولو شيانو نه استدلال کوي چې په هغې کې دارعقار او حائط په شان الفاظ راغي چې غير منقوله دى بلکې په ځينو رواياتو کې ددې نه بغير د نورو شيانو نفي ده لکه **لا شفعة الا في دار او عقار**. د ځينو حضراتو په نز په منقوله شيانو کې هم د شفعې حق شته دى. دې حضراتو د راتلونکى د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د روايت نه استدلال کړى دى چې په هغې دا الفاظ دي

"**الشفعة في كل شيء**".

جمهور د دې جواب همدغه ورکوي چې دا کل حقيقي افرادى نه دي. بلکې کل مجموعى اضافي دي. چې ترينه مراد غير منقوله شيان زمکه او داسې نور شيان دي.

**د شفعې په اقسامو کې د فقهاو اختلاف**: د امام مالک رحمه الله، امام شافعي رحمه الله او د امام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد د شفعې حق فقط **شريك في نفس البيع** ته وي. ګاونډي ته دا حق حاصل نه دى. (المرقات: ٦/١٥٨)

د ائمه احنافو په نزد د شفيع درې درجې وي يعنې درې قسمه خلکو ته د شفعې حق ورکړى کېږي. او شريک في نفس البيع ته د شفعې حق حاصل وي. يعنې په خرڅيدونکې زمکه يا کور کې دواړه

شریک وي. دویم شریک في مرافق المبیع ته د شفعی حق حاصل وي یعنې په خرڅیدونکی زمکه یا کور کې شریک خو نه وي خو د زمکې یا کور په لاره او اوبو او د نورو شیانو په حقوق او ګټو کې شریک وي. دریم حق الجار دی چې ګاونډي توب په وجه حق حاصلیږي. (المرقات: ۶/۱۵۸)

پدې درې واړو کې د شفعی ترتیب دا دی چې د ټولو نه مخکې به د شفعی حق نفس مبیع ته ورکړی کیږي. که هغه شفعه نه کوي نو بیا به په منافع مبیع کې چې څوک شریک وي هغې به د شفعی حق ملاویږي. که هغې هم ترینه لاس واخستلو نو بیا به ګاونډي ته د شفعی حق ملاویږي. احناف د ګاونډي د شفعی د حق قائل دي. جمهور ددې نه انکار کوي. د جمهورو دلائل په فصل اول کې د حضرت جابر رضي الله عنه د حدیث نه استدلال کړی چې کله شراکت ختم شي نو مشترکه شی به ختم شي. لاری به بیلې بیلې شي نو بیا شفعه نه یعنې د ګاونډي هیڅ اعتبار نشته دی، د ملکیت اعتبار دی.

د احنافو ائموو سره ډیر دلائل دي د دې باب د حدیث نمبر ۳ نه احنافو استدلال کړی دی. همدغه شان د فصل ثانی د حضرت جابر رضي الله عنه د حدیث نمبر ۷ هم احنافو استدلال کړی دی. دا واضحه احادیث دي. ځکه د جمهورو لپاره ګنجائش نشته دی چې دا د نظره وغورځوي. ترمذی شریف کې یو حدیث دی جار الدار احق بالدار. (ترمذي ج۱ص۲۵۳)

د جمهورو جواب چې د کوم حدیث نه استدلال کړی دی. احناف د هغوی په جواب کې فرمایې چې پدې حدیث کې حق الجار کې د شفعی حق نشته دی. مطلب دا دی چې تقسیم نه وروست نفس المبیع کې د شفعی حق ختم شي. د حق الجار د حق نفي نشته دی یعنې محدود نفي نه دا. مخکې حدیث وګوری. (المرقات: ۶/۱۵۹)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## د شفعې حق فقط په ګډه کې دی

| ﴿۱﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالشُّفْعَةِ فِي كُلِّ مَا |
|---|
| جابر رضي الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم فیصله کړې ده په شفعه کې په هر هغه (غیر منقوله) شي |
| لَمْ يُقْسَمْ فَإِذَا وَقَعَتِ الْحُدُودُ |
| کې چې (په شراکت کې وي) د نورو په مینځ کې تقسیم شوي نه وي لهذا کله چې حدود مقرر شي (یعنې |
| وَ صُرِفَتِ الطُّرُقُ |
| د مشترکه زمکې یا کور په خپل مینځ کې تقسیم وشي) او (د هرې برخې لپاره) لاره جدا جدا شي نو بیا |

| فَلَا شُفْعَةَ .[1] |
|---|
| شفعه نه پاتې کېږي (يعنې دا چې پدې صورت کې شرکت نه پاتې کېږي نو ځکه چا ته د شفعې حق هم |
| نه پاتې کېږي). |

**توضيح: فلا شفعة:** يعنې مثلاً که د يوې زمکې يا کور د يو نه ډير مالکان وي. نو چې پدې شريکانو کې کوم يو شريک خپله برخه خرڅوي. نو نورو شريکانو ته به د شفعې حق تر هغه وخت پورې حاصل وي چې تر څو پورې دا مشترکه زمکه تقسيم نشي. چې کله د دې تقسيم وشو او د لارې حدود متعين شول نو اوس به شريکانو ته د شفعې نه پاتې کېږي. معلومه شوه چې د ګاونډيتوب اعتبار نشته دی. همدغه شان دا حديث د جمهورو دليل دی. احنافو د دې دليل جواب ورکړی دی. چې ليکلی شوی دی. (المرقات: ۶/۱۵۸)

| ﴿۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالشُّفْعَةِ فِي كُلِّ شَرِكَةٍ |
|---|
| جابر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم دا حکم وکړو چې په هره داسې شريکه زمکه کې شفعه ثابت |
| لَمْ تُقْسَمْ رَبْعَةٍ أَوْ حَائِطٍ : |
| ده چې په نه وي تقسيم شوي. هغه که کور وي يا باغ وي. همدغه شان د داسې شريکي زمکې د هيڅ |
| لَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَبِيعَ حَتَّى يُؤْذِنَ شَرِيكَه |
| برخه دار لپاره خپله برخه خرڅول حلال نه دي تر هغه چې هغه خپل نورو شريکانو ته خبر ورنکړي (د |
| فَإِنْ شَاءَ أَخَذَ وَ إِنْ شَاءَ تَرَكَ |
| خبرولو نه وروسته) که هغه بل شريک وغواړي نو خپله به يې واخلي او که وغواړي نو پرې به يې اږدي |
| (يعنې په بل باندې دې د خرڅولو اجازت ورکړي) او که کوم شريک خپل بل شريک ته د خبر ورکولو |
| فَإِذَا بَاعَ وَ لَمْ يُؤْذِنْهُ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ .[2] |
| نه بغير خپله برخه خرڅه کړه نو هغه بل شريک د دې خبرې حقدار دی (چې هغه خرڅه شوي زمکه واخلي) |

**توضيح:** ربعة: دا لفظ د زمکې او د کور لپاره استعماليږي.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۰۷/۴ رقم الحديث: ۲۲۱۳.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۲۲۹/۳ رقم الحديث: ۱۳۴، ۱۶۰۸.

**اوحائط**: باغ ته وايي ربعة او حائط دواړه الفاظ د شرکت نه بدل دي. ځکه مجرور دي. يا د مبتدا محذوف خبر دی **ای هی ربعة الخ**. (المرقات: ۶/۱۶۰)

**يؤذن**: د ايذان نه دی د اطلاع او د اعلان په معنی دی. يعنې که يو ملګری خپله برخه خرڅول غواړي نو هغه ته پکار ده چې خپل ملګری ته خرڅولو نه خبر کړي. که خبر يې نکړو نو د هغې شريک د شفعې حق لري. که د خبرولو وخت کې ملګري ژر د شفعې دعوی ونکړله يا يې انکار وکړلو نو د شفعې حق ساقط شو. د پاکستان په حکومت تر شپږ مياشتو پورې مهلت دی. بيا د شفعې حق نشته دی. (المرقات: ۶/۱۶۱)

د دې حديث نه هم دا خبره ثابته شوه چې منقوله شيانو کې د شفعې حق نه وي. په غير منقوله يعنې زمکه او کور کې شفعه وي.

## ګاونډي ته د شفعې حق حاصل دی

| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلْجَارُ أَحَقُّ بِسَقَبِهِ. [1] |
|---|
| ابو رافع رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل ګاونډي د خپل نزديکت وپه وجه ډير حق لري |

**توضيح**: **بسقبه**: با باندې کسره ده او سين باندې زبر دی **قاف** باندې هم زبر دی د دينه وروسته با باندې کسره ده. په يو حديث کې د سين په ځای صاد دی هغه هم مفتوح دی. د دواړو يوه معنی ده. چې په معنی د نزدې دی. **ای الجار احق بسبب قربة للشفعة من غير الجار بسقبه من با سببيت** لپاره دی. (المرقات: ۶/۱۶۱)

د حديث دا مطلب دی چې ګاونډي د شفعې ډير حق لري د ګاونډي نه مراد هغه ګاونډي دی چې د ټولو نه ډير نزدې وي. د حديث صراحت سره بيان شوی دی. چې د ګاونډ په وجه هم د شفعې حق حاصل وي. او همدغه د احنافو مسلک دی. حديث نمبر ۷ کې هم د احنافو دليل دی.

## د ګاونډي يو حق

| ﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَمْنَعُ جَارٌ جَارَهُ |
|---|
| ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل نه دې منع کوي هيڅ يو ګاونډي د بل ګاونډي |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴/۴۳۷ رقم الحديث: ۲۲۵۸.

| أَنْ يَغْرِزَ خَشَبَةً فِي جِدَارِه.[1] |
| --- |
| په خپل دیوال کې د لرګي د ټک وهلو نه. |

**توضیح**: په څېنو کورونو کې د دووو (۲) ګاونډیانو یو دیوال وي. کله د مینځ دیوال د دواړو په مینځ کې شریک وي او کله د یو ګاونډي په ملکیت کې وي. په دغه صورت کې بل ګاونډي په خپل چت باندې لرګی کیخودل غواړي نو پدې حدیث کې حکم دی چې د دې دیوال مالک دې هغه نه منع کوي. علماوو لیکلي دي چې دا حکم هغه وخت دی چې دیوال او یا نور شیانو ته نقصان نه رسېږي. که چرې نقصان رسېږي نو بیايې منع کولی شي. د فقهاء کرامو نه امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او عام محدثین وایي چې د حدیث دا حکم د وجوب د پاره دی چې منع کول منع دی، لیکن امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ وایي چې دا حکم د استحباب په طور دی.(المرقات: ٦/١٦٢)

## په کلي کې د لارو او کوڅو لپاره هدایت

| ﴿٥﴾ وَ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: إِذَا اخْتَلَفْتُمْ فِي الطَّرِيقِ |
| --- |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کله چې د لارو باره په تاسو کې اختلاف پیدا |
| جُعِلَ عَرْضُهُ سَبْعَةَ أَذْرُعٍ.[2] |
| شي نو د هغې پلن والی اوه (۷) لاسه مقرروی. |

**توضیح**: **فاذا اختلفتم**: مطلب دا دی چې که د چا په کلي یا تشه علاقه کې د تعمیراتو کار شروع کېږي. په مینځ کې د لارې او سرک پرخودلو لپاره په خپلې مشوره او اتحاد سره لاره پرېږدی. خو که په خپل مینځ کې په مشوره باندې اختلاف راشي نو بیا به د ضابطې د لاندې هغه کېږي چې په دې حدیث کې دي او دا هغه حکم دی چې اوه (۷) ذراع لاره پرېښودل پکار دي. شرعي ذراع ډېر یو لاس برابر وي. چې د څنګل نه تر ګوتې پورې وي. شرعي ذراع د وی فټ نه ډېره وي. د حدیث نه د بنارونو د نقشو او د بلدیاتي ضابطو لپاره بنیاد کیخودلی کېږي. د اوو (۷) ذراع حدی یو ضابطه ده. د دې مطلب دا ندی چې که لاره ډېره وي نو څوک دې راشي او هغه دې قبضه کړي. دا سې قبضه کول جائز ندي. (المرقات: ٦/١٦٢)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱۰/۵ رقم الحديث: ۲٤٦٣، ومسلم في صحيحه ۱۲۳۰/۳ رقم الحديث: ۱٦۰۹/۳٦.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱۸/۵ رقم الحديث: ۲٤۷۳، ومسلم في صحيحه ۱۲۳۲/۳ رقم الحديث: ۱٦۱۳/۱٤۳.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### بغیر د ضرورت نه زمکه او کور مه خرڅوئ

| |
|---|
| ﴿۶﴾عَن سعید بن حُرَیْث قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَنْ بَاعَ مِنْكُمْ |
| سعید بن حریث رضي الله عنه وايي چې ما نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي چې څوک خرڅ کړي په تاسو |
| دَارًا أَوْ عَقَارًا قَمِنٌ أَنْ لَا يُبَارَكَ لَهُ إِلَّا |
| کې خپل کور یا زمکه نو مناسبه ده چې د هغې (قیمت) کې برکت نه وي خو مګر دا چې هغه (نرخ) هغه |
| أَنْ يَجْعَلَهُ فِي مِثْلِهِ.[1] |
| جایداد په اخستلو کې مصرف کړي. |

**توضیح: قمن:** قاف باندې فتحه ده میم باندې کسره ده او په لون باندې تنوین دی د لائق او مناسب معنی باندې دی. د حدیث مطلب دا دی چې که چرې یو سړی خپل کور یا زمکه خرڅه کړي نو هغه ته پکار دي چې هغې په نرخ باندې بل ځای کې زمکه واخلي. ځکه هغه نرخ هغه سړی په منقوله شي مصرف کړي نو د ضایع کېدلو خطر او امکان دی. او لائقه ده هلاک شي ځکه منقله شیان ځکه ضایع کېږي. د غیر منقوله جایدار په مقابل کې پدې کې هلاکت د امکان خطر ډیر دی. تجربه ګواه ده چې کومو خلکو په زمکو یا کور اخستی دی د هغې نه روپۍ هم رواني وي.

**الا ان یجعله:** مطلب دا دی چې رقم او نرخ نه بل یو کور اخستلی شوی دی نو بیا په هغې کې څه خبره نشته دی. (المرقات: ۶/۱۶۴)

### ګاونډي ته د شفعې حق دی

| |
|---|
| ﴿۷﴾وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: اَلْجَارُ أَحَقُّ بِشُفْعَتِهِ |
| جابر رضي الله عنه وايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل همسایه د خپل شفعې ډیر حقدار دی. که هغه |
| يُنْتَظَرُ لَهَا وَ إِنْ كَانَ غَائِبًا |
| موجود نه وی نو د هغې د شفعې دوجې نه د هغې انتظار و کړی شي (او ګاونډي د شفعې پدې صورت |

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۸۳۲ رقم الحدیث: ۲۴۹۰.

إِذَا كَانَ طَرِيقُهُمَا وَاحِدًا .(۱)

کې ډېر حقدار دی) چې د دواړو لاره یوه وي.

## شفعه په هر شئ کې ده

﴿۸﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ :

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل هغه سړي

الشَّرِيكُ شَفِيعٌ وَ الشُّفْعَةُ فِي كُلِّ شَيْءٍ .(۲)

چې (په خرڅیدونکې جایدادکې) شریک شي د شفعې حق لري او د شفعې تعلق هر (هغه) شي سره دی

(چې هغه غیر منقوله جایداد وي لکه زمکه او باغ او داسې نور شیان).

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ قَالَ: وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا وَهُوَ أَصَح

**توضیح: في كل شيء**: د دینه مراد هر هغه شی دی چې منقول نه وي بلکې غیر منقول وي لکه زمکه او کور او داسې نور شیان وي. (المرقات: ۶/۱۶۵)

## د بېري بوټي ماتولو باندې سخت وعید

﴿۹﴾ وَعَن عبد الله بن جحش قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَنْ قَطَعَ سِدْرَةً

عبد الله ابن جحش رَضِيَ اللهُ عَنهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کوم سړی چې د بېري بوټی ماتوي

صَوَّبَ اللهُ رَأْسَهُ فِي النَّارِ .(۳)

نو الله تعالی به هغه سرچپه (نسکور) دوزخ ته ګوزار کړي.

رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَقَالَ: هَذَا الْحَدِيثُ مُخْتَصَرٌ يَعْنِي: مَنْ قَطَعَ سِدْرَةً فِي فَلَاةٍ يَسْتَظِلُّ بِهَا ابْنُ السَّبِيلِ وَالْبَهَائِمُ غَشْمًا وَظُلْمًا بِغَيْرِ حَقٍّ يَكُونُ لَهُ فِيهَا صَوَّبَ اللهُ رَأْسَهُ فِي النَّارِ .

**توضیح: سدرة**: د بېري بوټي ته سدرة وایي د دې نه **سدرة المنتهى** ده. (المرقات: ۶/۱۶۶)

**صوب الله**: یعنې هغه به الله تعالی سرچپه دوزخ ته ګوزار کړي.

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۷۸۷ رقم الحديث :۳۵۱۸

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۶۵۴ رقم الحديث :۱۳۷۱

(۳) أخرجه ابوداود في السنن ۵/۴۰۴ رقم الحديث :۵۲۳۹

**سوال**: د بېري بوټي ماتولو باندې دومره سخت وعيد ولې؟
**جواب**: د دې پوښتني درې جوابونه دي. اول جواب خو همغه دی چې ابوداؤد رَحِمَهُ اللهُ وركړی دی. چې د هغې خلاصه دا ده چې په صحراء کې د هغه بېري د ماتولو باندې وعيد دی. چې کوم د سيوري والا وي او د هغې د سيوري د لاندې انسان او څاروي ارام کوي. او کوم ظالم راشي او بغير د څه فايدې نه هغه په ظالمانه توګه مات کړي نو د هغه سړی لپاره وعدی دی.
**دويم جواب**: دادی چې د دې نه مراد د مکې مراد د بېري بوټی دی. د حرم په وجه د دی ماتولو باندې وعيد دی. بېره ځکه خاص کړلی شوي ده چې د دې سيوری هم ډير وي او يخ هم وي ګيني د حرم خو د هر بوټي دغه حکم دی.
**دريم جواب**: دا دی چې د دينه د مدينې منوري خايسته د سيوري والا بوټی مراد دی. چې د د مدينې لپاره به زينت سبب وو. د دې د ماتولو باره کې يې فرمايلي ده. يا د دينه د بېري بوټي مراد دی. چې هغه په کوم ذاتي ملکيت کې وي. او يو سړی خاص په ظلم سره مات کړي او ځان سره يې ويسي. د دغه سړی لپاره سخت وعيد دی. د ابوداود په تشريح کې هم د غشماً لفظ دی. چې د ظلم په معنی دی. چې د هغې تفسير د ظلمات نه خستلی شوی دی. چې يا عطف تفسير دې يا تاکيد دی. او "بغير حق" نه مراد بغير د فايدې دی. يعنې هغه سړی ته نه د شفعی حق حاصل دی. او نه د ماتولو. دا مزيد د تقبيح لپاره دی. بغير د ضروت نه يې دا بوټی خامخا مات کړو. بغير حق د لفظ نه د دې حديث په مناسبت به باب شفعه سره واضح کېږي. چې پدې بوټي کې د هغه سړی هيڅ حق نشته دی. نه يې د شفعی حق شته دی او نه يې څه فايده شته دی. همدغه شان دا د بل حق د خپل سره د ظلم په توګه ملاووي. او د شفعی په تعريف کې هم تملك البقعة جبراً الفاظ موجود دي. (المرقات ٦/١٦٦)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### په ناقابل تقسيم او غير منقوله شيانو کې شفعه نشته دی

|  |
|---|
| ﴿۱۰﴾ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : إِذَا وَقَعَتِ الْحُدُودُ فِي الْأَرْضِ |
| عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې کله په زمکه کې حدونه قائم شي (يعنې شريکې زمکې په شريکانو |
| فَلَا شُفْعَةَ فِيهَا . وَلَا شُفْعَةَ فِي بِئْرٍ |
| کې تقسيم شي او د هر يو برخه بېله بېله شي) نو د (شراکت) شفعه نه پاتې کېږي او نه په کوهي کې |

| وَلَا فَحْلِ النَّخْلِ. (۱) |
| --- |
| د شفعې حق وي او نه د کهجوري په بوټي کې. |

**توضیح: بئر:** یعنې په کوهي کې د شفعې حق نشته دی. شوافع وایي چې په کویي د شفعې ځکه نشته دی چې دا د تقسیم قابل ندی. شفعه په قابل تقسیم شیانو کې وي. د احنافو په نز شفعه په هر غیر منقوله شي ک وي. هغه که د تقسیم قابل وي لکه کورونه او باغونه او یا که هغه د تقسیم قابل نه وي لکه میچن، حمام او کوهي. شوافعو د بحث د لاندې حدیث نه استدلال کړی دي. احنافو د **الشفعة في كل شيء** نه استدلال کړی دی.

**ولافحل النخل:** د دې لفظي ترجمه دا ده چې د کهجوري نَر بوټي او په مذکر کې شفعه نشته دی. مطلب دا دی چې مثلاً څه خلکو ته په میراث او داسې نورشیانو کې باغ لاس ته راشي. په هغې کې یو نَر بوټي هم وي چې د هغې نه خلک ګل ویسي او خپلو بوټو سره یې پیوسته کړي. او هغه ټولو خلکو هغه بوټی په خپل مینځ کې تقسیم کړو او د کهجوري نَر بوټی مشترکه پاتې شو. چې د هغې نه خلک ګل وړي او په خپلو بوټو باندې یې اچوي. اوس یو ګس خپل د کهجوري ټول بوټي خرڅ کړل او ورسره ورسره یې خپل دا حق هم خرڅ کړو چې په نَر بوټي کې د اشتراک په وجه وو. نو پدې حق کې په شریکانو کې هیچا د شفعه صحیح نه ده. ځکه د بوټی دا حق خو نه زمکه دا او نه د تقسیم قابل ده. (المرقات :۶/۱۶۶)



(۱) أخرجه مالك في الموطأ ۲/۷۱۷ رقم الحديث : ٤ من كتاب الشفعة.

# باب المساقاة والمزارعة

## د مزارعت بیان

**مساقات** د باب **مفاعله** مصدر دی. د دې مجرد سقی دی. خړوبولو ته وایي . په اصطلاح کې مساوات دیته وایي چې یو سړی د خپل باغ د سمبالولو لپاره یو چاته دا باغ د تهولو میووو په څلورمې یا د نیمي په عوض ورکوي. او په همدغه شان معامله باندې خپل زمکه د کرنې لپاره په بټائی باندې د ورکولو نوم مزارعت دی. مساقات او مزارعت یو شی دی. د دواړو فقهي حکم تقریباً یو شی دی. فقط دومره فرق دی چې د مساقاتو معامله په باغونو کې وي او د مزارعت معامله په پټو کې وي. مزارعت په پنځه قسمونو باندې دی. دوه د صورتو په جواز باندې اتفاق دی او دوهم په عدم جواز باندې اتفاق دی. او په یو صورت کې د فقهاوو اختلاف دی.

۱: اول صورت دا دی چې که د مزارعت اجرت نُقود یعنې نغدې روپۍ وي نو دا اتفاق جائز دی. ۲: دویم صورت دا دی چې که په اجرت او معاوضه کې طعام مضمون وي یعنې د کور نه د غلې د ورکولو وعده وي نو دا هم اتفاقاً جائز دی. ۳: دریم صورت دا دی چې که چرې ما خرج متعین ته اجرت مقرر کړو یعنې د پټي پیداوار نه مثلاً پنځه منه معاوضه کې یې مقرر کړو نو دا تفاقاً ناجائز دی. ۴: څلورم صورت دا دی چې که چرې معاوضه کې مزارعت والا زمکې متعینه برښه مقرره شوه نو دا صورت هم اتفاقاً ناجائز دی. ۵: پنځم صورت دا دی چې که چرې ما خرج جزء مشاع دی یعنې د پیداوار دریمه یا څلورمه برښه مقرره کړیده نو پدې کې د فقهاوو اختلاف دی:

**په مزارعت کې د فقهاو اختلاف** : د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ، امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد د مزارعت دا صورت هم ناجائز دی. امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ اللهُ او د امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په نز د مزارعت دا صورت جائز دی.

د جمهورو دلائلو د هغه ټولو روایاتو نه استدلال کړی دی چې په هغې په مزارعت باندې د زمکې د ورکول ممانعت وار وي. خصوصاً د حضرت رافع بن خدیج د روایت نمر۱۲ او روایت نمبر۴ نه استدلال کړی دی. جمهورو مزارعت ته قفیز الطحان باندې هم قیاس کړیدی. هغه منع دی نو مزارعت هم منع دی. **قفیز الطحان** په میچن کې د غلي پسائی باندې اجرت اخستلو ته وایي .

امام احمد او صاحبینو د فصل اول د اولني حدیث نه استدلال کړی دی. هغه فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خیبر د یهودو سره چې کومه معامله کړي وه هغه د مزارعت معامله وه. همدغه وجه ده چې مزارعت ته مخابره هم وایي . چې د هغې ماده خیبر ده. دي حضراتو د حضرت طاؤس په

حوالي سره د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د حديث نمبر ۵ نه هم استدلال کړی دی. چې د مزارعت په جواز باندې قطعي دليل دی. هم دغه شان د دې باب په فصل ثالث کې د حضرت قيس بن مسلم د حديث نمبر ۹ نه هم دي حضراتو استدلال کړی دی. او د دې حضراتو سره امام بخاري په تعليقات کې هم د دې حضراتو دلائل دي. چې د حديث نمبر ۹ د لاندې ذکر دی. دا حضرات دا معامله په مضاربت باندې هم قياس کوي چې په مضارت کې هم مال د يو سړي وي او محنت د بل سړي وي. شريعت دا د خلکو د مجبوری په خاطر جائز کړی دی. لهٰذا په مزارعت کې هم د خلکو مجبوري د نظر نه نشي ګوزارل کيدی. همدغه شان امت سلفاً خلفً د مزارع معامله قبوله کړي ده. دا هم د يو قسم جواز دليل دی ځکه "**ما رأه المؤمنون حسناً فهو عند الله حسن**". بهر حال د دلائلو په اعتبار سره اګر که جمهور به مضبوط وي خو د امت د ضرورت په وجې سره فتوی د صحابېنو او د امام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ په قول باندې ده. او س د جمهورو د دلائل جواب او د هغوی صحيح محمل باندې حمل پاتي دی.

**جواب**: په کومو رواياتو کې چې د مخابره او د مزارعت ممانعت ذکر دی د دې ممانعت تعلق د هغه صورتونو سره دی چې کوم صورتونه چې بالا اتفاق ناجائز دی. يعنې پاس ذکر شوی دريم او څلورم صورت مراد دی. نو ځکه راتلونکې حديث نمبر ۱۳ او په حديث نمبر ۴ کې د واضح فرق شته دی. هسې خو جمهور د مساقاتو د جواز قائل دي. نو مزارعت هم د مساقات پشان دی.

**دويم جواب**: دا دی چې په ابتداء د اسلام کې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مزارعت ممانعت ځکه کړی وو چې انصارو د توافق او د اخلاقو د لاندې خپلې زمکې د مزارعت په ځای عطيه و منحه په توګه مهاجرينو ته ورکړل. چې مهاجرين د انصارو دهقانان نشي او د هغوی حوصلی خکته نشي. لهذا ددې ممانعت تعلق د ښو اخلاقو او د توافق سره دی. په قانوني توګه ممانعت نشته دی. نو ځکه راتلونکی حديث نمبر ۵ او حديث نمبر ۶ پدې حقيقت باندې واضحه دلالت کوي.

**سوال**: په فقه حنفي کې ذکر دی چې د مزارعت معامله د صاحبېن په نز جائز ده او د امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد ناجائز ده. که حقيقت دا وي نو بيا د فقی په کتابونو کې د فقهي جزئيات ولي ليکلی کيږي. چې د امام صاحب په نزد د مزارعت فلانی مسئله داسې دا او فلانی مسئله داسې نه ده. چې دا امام صاحب په نز په اصولي توګه باندې مزارعت جائز ندی. نو بيا د دغه فقهی تفصيلاتو څه ضرورت دی؟

**جواب**: علامه حاوی مقدسي رَحِمَهُ اللّٰهُ ليکلي دي چې د امام صاحب په نز مزارعت بېخي منع ندی بلکې مع الکرهة دی "**وكرها ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ ولم ينه عنه اشد النهى**". لهذا امام صاحب د نفس

جواز په وجه د مزارعت د جزئیاتو بیان کړی دی. خلاصه دا چې د امام صاحب په نزد مزارعت جائز مع الکراهة دی. د صاحبینو په نزد مطلقاً جائز دی. فتوی د صاحبینو په قول باندې ده.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## خیبر د معاملې په وجه د مزارعت جواز

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَفَعَ إِلَى يَهُودِ خَيْبَرَ نَخْلَ خَيْبَرَ |
| عبد الله ابن عمر رضي الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورکړه یهودو د خیبر ته د کهجورو بوټي یې |
| وَ أَرْضَهَا عَلَى أَنْ يَعْتَمِلُوهَا مِنْ أَمْوَالِهِمْ وَ لِرَسُولِ اللهِ |
| او دغه ځای زمکې په دې شرط چې هغوې پدې زمکه کې خپل ځان او مال ولګوي او د رسول الله |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَطْرُ ثَمَرِهَا. [1] |
| صلی الله علیه وسلم د پاره به نیمه میوه وي. |
| وَفِي رِوَايَةِ الْبُخَارِيِّ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْطَى خَيْبَرَ الْيَهُودَ أَنْ يَعْمَلُوهَا ويزرعوها وَلَهُم شطر مَا يخرج مِنْهَا |

**توضیح:** خیبر د یو کلي نوم دی چې د مدینې نه ۶۰ میله په شمال کې واقع دی. اول دغه ځای د یهودو مرکز وو. یو ښو کلي دي. چې اوس پکې د یهودو نمایندې شیعه رافضي اوسیږي. د کهجورو د باغونو لپاره دا مشهوره واقعه ده. په اوومه (۷) هجری کې خیبر فتح شوی وو. اکثره علاقې د جنګ په زور اخستلې شوې وې. څه علاقې د د صلحې د لاندې په لاس راغلې وې. امام ابو حنیفه رحمه الله د نبي کریم صلی الله علیه وسلم دا معامله په مقاسمه باندې حمل کوي. او د خیبر فتح د صلحې په توګه مني. ځکه مزارعت جائز ندی. صاحبین وایي چې خیبر د جهاد په نتیجه کې فتح شوی وو. د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د یهودو سره معامله د خراج مقاسمه په توګه نه وه. بلکې دا بټائی او د مزارعت معامله وه. ځکه دا جائز د صاحبینو د رائې په واضح دی. خیبر اکثره د توري په زور باندې فتح شوی وو. بیا نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته یهودو د همدلته د اوسیدلو خاست کړی وو. نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې زمکه اوس د مسلمانانو ده. خو تاسو اوس د مزارعت په توګه دلته واوسیږئ کله چې الله وغواړي بیا به تاسو وو وځي. حضرت عمر رضي الله عنه یهود د خیبر نه وویستل. دا حدیث د مزارعت په جواز باندې دلالت کوي. (المرقات ۶/۱۶۷)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۶۲/۴، رقم الحديث: ۲۲۸۵، ومسلم في صحيحه ۱۱۸۷/۳ رقم الحديث: ۱۵۵۱/۵.

## د مخابره ممانعت

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : كُنَّا نُخَابِرُ وَلَا نَرَى بِذَلِكَ بَأْسًا |
| عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې مونږ خلکو به مخابرت کولو او په هغې کې به هيڅ باک نه ګڼلی کېدو |
| حَتَّى زَعَمَ رَافِعُ ابْنُ خَدِيجٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْهَا فَتَرَكْنَاهَا مِنْ أَجْلِ ذَلِكَ. [1] |
| تردې چې خديج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اوويل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د دېنه منع کړې ده نو مونږ پرېښودو د هغې په وجه |

**توضيح:** نخابر: دا د مخابرت نه دی. د دې ماده همغه خيبر دی. مزارعت ته وايي ديته اکراء الارض هم وايي د حديث د مانعين مزارعت دليل دی د دې جواب مخکې تېر شوی دی. (المرقات ۶/۱۶۹)

## په نقود باندې مزارعت اتفاقا جائز دی

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ حَنْظَلَةَ بْنِ قَيْسٍ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ : |
| حنظله بن قيس (تابعی) د رافع بن خديج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (صحابي) نه نقل کوي چې ده وويل چې ما ته زما |
| أَخْبَرَنِي عَمَّايَ أَنَّهُمْ كَانُوا يُكْرُونَ الْأَرْضَ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| دووو ترونو وويل چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې به صحابو په اجرت ورکولو خپلې زمکې |
| بِمَا يَنْبُتُ |
| دلختو په ذريعې سره د پيدا وار په عوض (يعني صحابه کرامو به خپلې زمکې پدې شرط ورکولې چې |
| ګس خپل محنت او خپل تخم پدې وکړي او د دې زمکې په لختو په غاړه چې څه شی پيدا کېږي هغه |
| به ددې زمکې په اجرت کې د مالک حق وي. د دېنه بغير د نورې زمکې پيدا وار به ربيونکې حق وي) |
| عَلَى الْأَرْبَعَاءِ |
| يا به يې دا زمکه د قطعه (پيداوار) په عوض په اجرت ورکوله چې هغه به مالک د خپل ځان لپاره بېلوله |
| (يعني زمکه به په اجرت باندې دورکولو دا صورت وو چې وهغې به خپله زمکه چې کله چا ته د کرښې |
| أَوْ شَيْءٍ يَسْتَثْنِيهِ صَاحِبُ الْأَرْضِ |
| لپاره ورکوله نو د هغې څه قطعه به يې د ځان لپاره متعين کوله او دا خبره به يې مطرح کړه چې د کرښې |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۱۷۹/۳ رقم الحديث: ۱۵۴۷/۱۰۶.

| |
|---|
| والا به خپل محنت او تخم په ټوله زمکه باندې مصرف کړي. بيا چې پدې متعينه زمکه کوم پيداوار |
| فَنَهَانَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ |
| کېږي نو هغه به مالک اخلي او نوره به د زمکې کرونده اخلي) نو رسول الله ﷺ مونږ د دينه منع |
| کړو (ځکه چې په دې کې نقصان او په دهوکه کې داخته کيدو ويره به وه) د حديث راوي حنظله رضي الله عنه |
| فَقُلْتُ لِرَافِعٍ : فَكَيْفَ هِيَ بِالدَّرَاهِمِ وَ الدَّنَانِيرِ ؟ |
| وايي چې ما د رافع رضي الله عنه نه تپوس وکړو چې د درهمو او د دينارو په عوض د مزارعت څه حکم دی |
| (يعنې که خپله زمکه د کروندې لپاره چاته ورکړی شي او د هغې د عوض په توګه روپۍ واخستلی شي |
| فَقَالَ : لَيْسَ بِهَا بَأْسٌ وَ كَأَنَّ الَّذِي |
| نو څه حکم دی؟) رافع رضي الله عنه وويل چې "پدې کې څه باک نشته دی او د کوم شي نه چې نبي کريم |
| نُهِيَ عَنْ ذٰلِكَ مَا لَوْ |
| ﷺ منع کړيده (يعنې د مزارعت دواړه ذکرشوې صورتونه) هغه داسې شی دی چې که چيرې |
| نَظَرَ فِيهِ ذَوُو الْفَهْمِ بِالْحَلَالِ وَ الْحَرَامِ لَمْ يُجِيزُوهُ لِمَا فِيهِ مِنَ الْمُخَاطَرَةِ.[1] |
| د حرام او حلال پوهيدونکی سړی پدې څه غور وکړي نو د نقصان کېدو په وجه به دا خوښ نه کړي. |

**توضيح: يكرون الارض:** دا کراه نه دی زمکه په اجرت ورکول مراد مزارعت دی (المرقات ۶/۱۷۰)

**الاربعاء:** همزه باندې فتحه ده. او با بندې هم فتحه ده. دا د ربيع جمع ده. وړوکې نير ته وايي. مطلب دا دی چې د زمکې مالک ديهقان ته ورکوله. او هغې به زمکه کرله. هغې به زمکه کرله. او مالک به د ځان لپاره د لختو د غاړې غله مقرروله او د زمکې قطعه به يې مستثنی کوله. د دې نه نبي کريم ﷺ منع کړل. ځکه دا يو نامعلوم شی وو. کيدلی چې په دغه ځای غله راشي او پاتې ځايونو کې رانشي. چې په نورو ځايونو کې غله راشي او د لختي په غاړه رانشي. نو د مالک نقصان به وي. دا معامله قمار او جوار ګرځي پشان ده. ځکه منع کړی شوي دا او همدغه خبره حضرت رافع رضي الله عنه د علت په توګه بيان کړده او په فقهاوو کې ټول د دې د حرمت قائل دي. پاتې شو هغه صورت چې په نقود باندې معامله وي نو د دې په جواز باندې ټول فقهاء قائل دي. وكأن: نه

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۵/۵ رقم الحديث :۲۳۴۶.

تر اخره پورې کلام د رافع بن خدیج دی. حدیث پاس ختم شوی دی. (المرقات ۶/۱۷۰)

## د مزارعت یو ممنوع صورت

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَن رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ : كُنَّا أَكْثَرَ أَهْلِ الْمَدِينَةِ |
| رافع بن خدیج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې مونږ د مدينې خلکو به کرونده کوله. او په مونږ به ځينو خلکو خپله |
| حَقْلًا وَ كَانَ أَحَدُنَا يُكْرِي أَرْضَهُ فَيَقُولُ : |
| زمکه په بټائی باندې د کروندې لپاره (بل چاته) ورکوله او هغه به دا ويل (چې ته په دې توله زمکه |
| هٰذِهِ الْقِطْعَةُ لِي |
| باندې کرونده کوه او ددې په عوض) د دې زمکې دا قطعه زما لپاره ده (يعنې د دې قطعې پيداوار |
| وَ هٰذِهِ لَكَ فَرُبَّمَا |
| به زه اخلم) او دا قطعه به زه اخلم (يعنې ددې بلې قطعې پيداوار به ته اخلې) او اکثر به داسې کيدل چې |
| أَخْرَجَتْ ذِهِ وَ لَمْ تُخْرِجْ ذِهِ فَنَهَاهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ.[1] |
| په يوه قطعه کې به پيدا شول او بله قطعه کې پيدا نشول. نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع وفرمايله (د |
| مزارعت ددې صورت نه ځکه دې صورت کې يو سړي ته پيداوار پوره ملاويدو او دبل به ضايع کيدو). |

**توضيح**: د دې صورت په عدم جواز به هم د ټولو فقهاوو اتفاق دی. ځکه دا د جوارۍ هم يو قسم جوړيږي. د زمکې چې کومه ټوټه د زمکې په کروندې ورکړې شي، دا کيدلی شي په هغې کې غله اوشي او کيدلی شي چې په هغې کې يوه دانه هم اونشي. نو ځکه دا صورت منع دی. "ذه" دا د زمکې د هغه ټوټې اړخ ته اشاره ده چې په مزدورۍ ورکړې شوې وي.

## توافق او احسان دا دی چې زمکه په عاريت ورکړې

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَ عَن عَمْرٍو قَالَ : قُلْتُ لِطَاوُسٍ : لَوْ تُرِكْتَ الْمُخَابَرَةَ |
| عمرو بن دينار رَحِمَهُ اللهُ (تابعي) وايي چې ما طاؤس رَحِمَهُ اللهُ (تابعي) ته وويل که ته زمينداره پريخې وی |
| فَإِنَّهُمْ يَزْعُمُونَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ نَهَى عَنْهُ قَالَ : |
| نو ډيره به ښه وه ځکه علماء وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دينه منع کړي ده طاؤس رَحِمَهُ اللهُ وويل |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۵/۵ رقم الحديث : ۲۳۳۲، ومسلم في صحيحه ۱۱۸۳/۳ رقم الحديث: ۱۵۴۷/۱۱۷.

| أَيْ عَمْرُو إِنِّي أُعْطِيهِمْ وَ أُعِينُهُمْ وَ إِنَّ أَعْلَمَهُمْ |
|---|
| چې اې عمرو! زه (خپله زمکه د کروندې لپاره) خلکو ته ورکوم او د هغوی مدد کوم او د ټولو نه لوی عالم |
| أَخْبَرَنِي يَعْنِي ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لَمْ يَنْهَ عَنْهُ |
| یعني ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ماته ویلي دي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې نه منع نده کړې. خو نبي کریم |
| وَ لَكِن قَالَ : أَلا يَمْنَحُ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ خَيْرٌ لَهُ مِنْ |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا فرمایلي دي چې خپل یو ورور ته زمکه د کروندې لپاره ورکول د دې نه ډېره ښه ده |
| أَنْ يَأْخُذَ عَلَيْهِ خَرْجًا مَعْلُومًا .[1] |
| چې په هغې باندې د دې زمکې څه خرچه او یا نور څه وي متعین کړی شي او واخیستلی شي. |

**توضیح:** پدې حدیث کې د مزارعت بیان نشته دی بلکې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وغوښتل چې انصار د خپلې زمکې د عاریت په توګه او د عطیه او منحه مشکوره خپل مهاجرو ورونو ته ورکړي. نو ځکه یې دا ترغیب ورکړو چې خپل ورونه دهقان مه جوړوی. دا جندالله او جندالاسلام دي. دوي ته د عطي په توګه د کروندې لپاره زمکه ورکړی او بیا به یې تاسو ته بېرته در کړي. د دینه تاسو اجرت مه اخلئ، حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اسلام د ابتداء نقشه داسې پیش وفرمایله. پدې روایت کې اول د طاؤس رَحِمَهُ اللهُ نه چې د عمرو ذکر دی د دینه مراد عمرو بن دینار دی. چې یو جلیل القدر صحابي دی. (المرقات ٦/١٧٢)

## د احسان په توګه زمکه ورکړئ یا یې خپله کرونده وکړئ

| ﴿٦﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: مَنْ كَانَتْ لَهُ أَرْضٌ |
|---|
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې د کوم سړي سره زمکه وي نو هغه ته پکار ده |
| فَلْيَزْرَعْهَا أَوْ لِيَمْنَحْهَا أَخَاهُ فَإِنْ أَبَى |
| چې هغه خپله وکري (که خپله یې نشي کرلی) نو خپل ورور ته دې په عاریة ورکړي او که دا دواړه یې |

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ١٠٥ رقم الحديث: ٢٣٣٠، ومسلم في صحيحه ١١٨٤/٣ رقم الحديث: ١٥٥٠/١١٧.

| فَلْيُمْسِكْ أَرْضه .[1] |
| --- |
| نه وي خوښ نو ښا پكار دا چې خپله زمكه خپل ځان سره كيږدي. |

**توضيح**:يمنحها: دا د منحه نه دی. د عطيه په معنى دى. چې بل ته كښي وركولو لپاره څه شى وركړي شي او بېرته يې وركړي. (المرقات ٦/١٧٣)

**فان ابى**: يعني كه خپله يې نه كري او بل ته يې عطيه هم نه وركوي نو هغې له پكار ده چې د خپل ځان سره يې كيدي. بېكاره دي كيدي. پدې صورت كې دا حديث خو د بيخ او تشديد او تهديد په توګه دى. چې دا سړى ولي احسان نه كوى او جندالله دهقانان جوړوي. علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د ځان سره يې كيدى، او بل ته په تزارعت مه وركوى. پدې كې خو توبيخ او تنبيه ده. ځينو علماوو دا مطلب اخستلى دى چې د دې ورو د قبلولو نه انكار وكړي نو ښا دي خپل زمكه د ځان سره كيدي. (المرقات ٦/١٧٣)

## كرونده كې اخته كيدو باندې د جهاد په پرېښودو سخت وعيد

| ﴿۷﴾ وَ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ وَ رَأَى سِكَّةً وَ شَيْئًا مِنْ آلَةِ الْحَرْثِ فَقَالَ : |
| --- |
| منقول دي چې ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (په يو ځاى) كې د كر، كروندي سامان وليدو. نو وي ويل چې ما د |
| سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ : لَا يَدْخُلُ هَذَا بَيْتَ قوم إِلَّا أدخلهُ الذل .[2] |
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي چې دا سامان په كوم كور داخل شي نو هغه كورته ذلت داخل شي. |
| (يعني د جهاد د پرېښودلو په وجه نه په عام حالت كې) |

**توضيح**:سكة: د هل سره چې كومه وسپنه لګيدلي وي چې په هغې سره زمكه شلى. او هغې ته سكة ويل شوي دي.

**وألة الحرث**: يعني د زمندارى، څه سامان يې وليدلو. پدې باندې حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خفه او يو بل حديث يې واورو. (المرقات ٦/١٧٣)

**الذل**: يعني ذلالت په كور كې داخليږي. (المرقات ٦/١٧٣)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٥/٢٢ رقم الحديث: ٢٣٤٠، ومسلم في صحيحه ٣/١١٧٦ رقم الحديث: ١٥٣٦/٨٩

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ٥/٤ رقم الحديث: ٢٣٢١.

**سوال**: نبي کريم ﷺ د زمينداري ترغيب هم ورکړی دی او فضيلت يې هم بيان کړی دی. په حديث کې داسې حکم دی "**اطلبوا الرزق من خبايا الارض**" يعنې د زمکې د پټ شوي ځايونو نه (د کروندي) رزق تلاش کړي. د دې ترغيب باوجود دلته په کور کې د هل ساتلو او زميداري کولو باندې نکير څنګه وفرمايل؟

**جواب**: نبي کريم ﷺ په اصل کې د جهاد ترغيب ورکړی دی. زمنداره نده منع کړې شوې. بلکې دمقصود دا دی چې مثلاً يو سړی جهاد پرېږدي او زمينداره کوي نو د هغې بنياد په وجه د دې يره او بې همتي کېږي. او بادشاهانو له ټيکس ورکول کېږي. او که همدغه خلک د زميندارۍ په ځای د جهاد لاره اختيار کړي نو په مناسب مقدار کې به ورته دنيا ملاوو شي. دا خپل د ټيکس د ورکولو په ځای د نورو به ټيکس اخلي. په يو حديث کې دي. "**العز في نواصي الخيل والذل في اذناب البقر**". (المرقات ۶/۱۷۳)

ځېنو علماوو دا جواب ورکړی دی چې دا حکم د هغه خلکو لپاره دی چې د هغې په سرونو باندې دښمن رارسيدلی وي. او دا په زمينداري کې لګيدلي وي. ځېنې علماوو دا جواب ورکړی دی چې دا حکم په ابتداء د اسلام کې د صحابو لپاره وو. هغه جندالاسلام وو. که هغه دهقانان شول او زمکې يې اباده ول شروع کړل نو په مشرق او په مغرب کې به دين څوک غالب کړي؟ حکيم الامت حضرت تهانوي رحمه الله په ملفوظانو کې فرمايلي دي چې مسلمان د ډنډي والا وي. هندو د ډنډۍ والا وي (يعنې د تلی والا وی). د ابوداؤد شريف د يو بل حديث الفاظ داسې دي: "**اذا تبايعتم بالعينة واتبعتم الزرع واخذتم باذناب البقر وتركتم الجهاد سلط الله عليكم الذلة او كما قال عليه السلام**".

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### بغير د اجازت نه بغير د بل چا په زمکه کې کرونده مه کوئ

| |
|---|
| ﴿۸﴾ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : مَنْ |
| رافع بن خديج رضي الله عنه د نبي کريم ﷺ نه نقل کوي چې نبي عليه السلام وفرمايل کوم سړی چې د |
| زَرَعَ فِي أَرْضِ قَوْمٍ بِغَيْرِ إِذْنِهِمْ فَلَيْسَ لَهُ مِنَ |
| چا د اجازت نه بغير (يعنې د مالک د رضا او حکم نه بغير) کرونده وکړي نو نشته د ده لپاره د زمکې د |

| الزَّرْعِ شَيْءٌ وَلَهُ نَفَقَتُهُ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
|---|
| پیداوار نه څه شي په غیر د هغه څه نه چې ده خرچ کړې وي . |

**توضیح:** وله نفقته: یعنې که کوم کَس د اجازت نه بغیر د چا په زمکه کې کرونده وکړه نو ټوله زمکه به مالک ته په لاس ورشي. خو کرونده کونکې چې په زمکه کې کوم تخم ګوزارلی دی هغه به هغې ته په لاس ورځي بل هیڅ به ورته نه حاصلیږي. د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ همدغه مسلک دی. او د حدیث هم دغه مطلب دی. څو نورو علماوو او څېنو احنافو ویل دي چې د زمکې پیداوار به کرونده کونکې ته ورکول کېږي؛ خوا دا ده چې څومره موده هغې زمکه مشغوله ساتلې ده د هغې اجرت به ورکوي. ښکاره حدیث د حنابلوو سره دی. (المرقات ۶/۱۷۴)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### زمینداره منع نه ده

| ﴿۹﴾ عَنْ قَيْسِ بْنِ مُسْلِمٍ عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ قَالَ : مَا بِالْمَدِينَةِ |
|---|
| قیس بن اسلم، ابو جعفر یعنې امام محمد باقر نه نقل کوي چې هغوی وفرمایل نهٔ په مدینه کې د |
| أَهْلُ بَيْتِ هِجْرَةٍ إِلَّا يَزْرَعُونَ عَلَى الثُّلُثِ وَ الرُّبُعِ وَ زَارَعَ |
| مهاجرینو هیڅ یو داسې کور چې په دریمه او څلورمه (حصه) زمینداره نه کوي. او زمینداره به کوله |
| عَلِيٌّ وَ سَعْدُ بْنُ مَالِكٍ وَ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ وَ عُمَرُ ابْنُ |
| حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، سعد بن مالک یعنې سعد بن ابي وقاص، عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عمر ابن |
| عَبْدِ الْعَزِيزِ وَ الْقَاسِمِ وَ عُرْوَةَ وَ آلُ أَبِي بَكْرٍ وَ آلُ عُمَرَ وَ آلُ عَلِيٍّ وَ ابْنُ سِيرِينَ |
| عبد العزیز، قاسم، عروه، د ابوبکر اولاد، د عمر اولاد، د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اولاد او ابن سیرین دې |
| وَ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْأَسْوَدِ : كُنْتُ أُشَارِكُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ |
| ټولو به زمینداره کوله. د عبد الرحمن بن اسود رَحِمَهُ اللهُ تابعي بیان دی چې زهٔ به شریکیدمه د عبد الرحمن |

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۶۹۲ رقم الحدیث: ۳۴۰۳

| بْنَ يَزِيدَ فِي الزَّرْعِ وَ عَامَلَ عُمَرُ النَّاسَ عَلَى : |
|---|
| بن یزید سره په زمینداره کې. همدغه شان حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خلکو سره پدې شرط معامله کړې |
| إِنْ جَاءَ عُمَرُ بِالْبَذْرِ من عِنْدِه فَلَهُ الشَّطْر. |
| وه د (مزارعت) چې عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تخم د خپل ځان نه راکوي او (د پیداوار) نیمه برخه به د هغه وي. |
| وَ إِن جَاؤُوْا بِالْبَذْرِ فَلَهُمْ كَذَا.[1] |
| او که هغه خلک تخم راکوي نو په پیداوار کې به د هغې مطابق د هغې برخه وي(یعنې نیمه یا دریمه |
| یا څلورمه چې کومه یوه مقرر کړی شوه). |

**توضیح**: **هجرة**: یعنې مهاجریونو ټولو به تقریباً په په دریمه یا څلورمه حصه باندې کارکولو. د مزارعت په پټي کې به دا حصه کله په دریمه برخه وه او کله به په څلورمه باندې وه. (المرقات ٦/١٧٥)

**وزارع**: میرک شاه ویلي دي چې د وزارع نه تر آخر پورې عبارت د امام بخاري خپل دی. پدې یو څو اثار امام بخاری د صحابوو نه نقل کړي دي چې د هغې نه د مزارعت جواز حاصلېږي. امام مزارعت خپله هم د مزارعت د جواز قائل دی. امام بخاري دا آثار د تعلیق په توګه نقل کړي دي. صاحب مشکوة له پکار وو چې هغې په آخر کې **رواه البخاری تعلیقاً** الفاظ لیکلی دی. چې پته لګیدلی وی چې حدیث تر کوم ځای پورې دی او د تعلیق او اثر چرته دی. (المرقات ٦/١٧٥)



(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ١٤/٥ رقم الحديث :٢٩٨١

# باب الاجارة

## د اجارې بیان

قال الله تعالی: ﴿فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ﴾(سورة طلاق آیت: ٦)

وقال الله تعالی: ﴿إِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُنكِحَكَ إِحْدَى ابْنَتَيَّ هَاتَيْنِ عَلَى أَن تَأْجُرَنِي ثَمَانِيَ حِجَجٍ﴾(سورة قصص آیت:۲۷)

**الاجارة:** په لغت کې يو شي په کرایه ورکولو ته وایي. په اصطلاح کې چاته په اجرت باندې خپل څه شی د منفعت مالک جوړولو ته اجاره وایي. "**الاجارة تمليك المنافع بعوض**" د احادیثو او د اثارو نه اجاره ثابته ده. اګر که د بیوعاتو په رڼا کې اجاره کول نه دي پکار. خو د خلکو د ضرورتونو او د ضرورت له مخې دا شریعت جائز کړی دی. (المرقات ٦/١٧٦)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### اجاره جائز ده

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ: زَعَمَ ثَابِتُ بْنُ الضَّحَّاكِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| عبدالله بن مغفل رضي الله عنه وایي چې ثابت بن ضحاک رضي الله عنه دا بیان کړو چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم |
| نَهَى عَنِ الْمُزَارَعَةِ وَ أَمَرَ بِالْمُؤَاجَرَةِ وَ قَالَ: لَا بَأْسَ بِهَا.[1] |
| منع کړې ده د زمینداري نه او د اجارې حکم یې ورکړو او وې فرمایل چې پدې کې څه باک نشته دی. |

**توضیح: نهی عن المزارعة:** دا د مزارعت هغه ممنوع طرف ته اشاره ده چې د هغې بیان په تفصیل سره تېر شوی دی. علامه طیبي رحمه الله وایي چې "**المزارعة**" کې الف لام عهدي دی. چې د دینه د مزارعت ممنوعه صورت مراد دی. "**لا بأس بها**" یعنې شرعاً جائز اجاره کې هیڅ مضائقه نشته دی. (المرقات ٦/١٧٧)

---

(١) أخرجه مسلم في صحيحه ٣/١١٨٤ رقم الحديث: ١١٩/١٥٤٩.

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ احْتَجَمَ فَأَعْطَى الْحَجَّامَ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا اوي دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (يو ځل) ډک خکر ولګولو او وريې کړو ښکر |
| أَجْرَهُ وَ اسْتَعَطَ.[1] |
| لګونکي ته اجرت. همدغه شان نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپله پوزه کې دوا واچوله. |

## نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اجرت باندې بېزې څرولې وې

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : مَا بَعَثَ اللهُ نَبِيًّا |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل نه دې رالېږلي الله تعالى |
| إِلَّا رَعَى الْغَنَمَ . فَقَالَ أَصْحَابُهُ : |
| هېڅ داسې نبي چې هغه چېلي نه وي څرولي (دې اوريدو سره) دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه صحابو تپوس وکړو چې |
| وَ أَنْتَ ؟ فَقَالَ : نَعَمْ كُنْتُ أَرْعَى عَلَى قَرَارِيطَ لِأَهْلِ مَكَّةَ.[2] |
| تاهم بېزې څرولي دي؟وي فرمايل چې آو ،مابه ديو قيراط داجرت په بدل کې په مکه کې چېلي څرولي. |

**توضيح:الارعى الغنم**: چېلي يو داسې مسكين څاروى دى چې د دې سره د تعلق ساتلو والا انسان کې هم د عاجزۍ صفت پيدا کېږي. بيا په څارو کې چېلي يو داسې څاروى دى چې د هغې رمې وې دا د يو برکت نښه ده. دا چې انبياء كرام عَلَيْهِمُ السَّلَامُ د انسانانو لپاره د داعيانو په توګه راغلي وو. نو بيا د انسانانو تربيت د هغوى منصب وي. نو ځکه د تجربې او د برداشت او صبر او تحمل ډېر سخت ضرورت دى. د همدغه مقصد لپاره انبياوو به بېزې څرولې. چې د انسانانو په نګرانۍ او په تربيت کې اسانې وي او په مزاج کې ډېر تحمل او برداشت پيدا شي. بېزه يو کمزورى څاروى دى. که چرې مو په ورو کې کاڼې وويشتلو نو مړه کېږي. او په طبعي توګه پدې کې يو شرارت هم دى. شورش هم دى چې د يو بوټي نه يې يوه پاڼه وخوړله نو ژر بل اړخ ته ځي. که د برداشت والا سړى نه وي نو هر ورځ به يوه يوه چېلي مړه کوى نو ځکه د ډېر سخت تحمل ضرورت دى. همدغه شان د انسانانو جدا مزاجونه وي. هغه په نيغه لار راوستل او بيا د هغوى تربيت کولو لپاره هم لوى صبر پکار دى. د همدغه حکمتونو په بنياد انبياء کرامو په اول کې بېزې څرولې. دا کسب خو په ښکاره ډېر ادنى دى.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۴۷/۱۰ رقم الحديث ۵۶۹۱. ومسلم في صحيحه ۱۲۰۵/۳ رقم الحديث: ۱۲۰۲/۶۵.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۴۱/۴ رقم الحديث :۲۱۴۹.

خو د انجام په اعتبار سره ډیر اعلی دی. نو ځکه د انبیاؤ لپاره مناسبه شوه. نن سبا خلک د داعی جوړیدلو ډېره ارمان کوي. خو د ناتجربې او د بي علمی په وجه د ګټې په ځای نقصان ډیر رسوي. معصوم نبې خو اول د تجربې د مرحلې نه تېر شوی دی. او صاحب خو یو دم راشي او خلک یره وي. او د علامه د جوړیدلو کوښښ کوي. (المرقات ۶/۱۷۷)

**قرایط**: د **قیراط** جمع ده. د یو درهم د شپږمې (۶) برخې برابر یو قیراط وي. کله قیراط د تحقیر لپاره ذکر کېږي. لکه څنګه چې دلته دی. چې د هغې مطلب یو روپۍ دوه روپۍ دي. او کله د قیراط ذکر د ډېرې معاوضې لپاره وي. لکه څنګه چې د لمونځ کوونکې ته د یو قیراط ثواب حاصلېږي. هغه قیراط د احد د غر برابر وي. دلته د قیراط ذکر د تعظیم لپاره نه وي. (المرقات ۶/۱۷۷)

## مزدور ته د مزدورۍ نه ورکولو باندې وعید

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " قَالَ اللهُ تَعَالَى : ثَلَاثَةٌ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې الله تعالی فرمایلي دي درې کسان داسې |
| أَنَا خَصْمُهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ : رَجُلٌ أَعْطَى بِي ثُمَّ |
| دي چې د هغې سره به زه د قیامت په ورځ جنګ کوم یو هغه سړی چې زما په نوم یو لوظ وکړي او بیا یې |
| غَدَرَ وَ رَجُلٌ بَاعَ حُرًّا فَأَكَلَ ثَمَنَهُ وَ رَجُلٌ |
| مات کړي، دویم هغه سړی دی چې هغه یو ازاد سړی خرڅ کړي او د هغه مال وخوري ، دریم هغه سړی |
| اسْتَأْجَرَ أَجِيرًا فَاسْتَوْفَى مِنْهُ |
| چې هغه یو مزدور په مزدورۍ باندې ولیږلو او د هغه نه یې کار واخیستلو (یعنې چې د کوم کار لپاره |
| وَ لَمْ يُعْطِهِ أَجْرَهُ ". [1] |
| یې ولیږلو او هغه ټول کار یې د هغوی نه واخستلو) او هغه ته یې مزدوري ورنه کړه. |

**توضیح:انا خصمهم**: یعنې درې قسمه خلک داسې دي چې د قیامت په ورځ به د هغوی په مقابله راځم نو هغه به زما د قهر او غضب خاص نښانه جوړېږي. رجل اعطى بي: یعنې اول هغه سړی دی چې د الله په نوم قسم وخوري او وعده کوي او بیا په هغې کې دهوکه کوي. وعده خلافي خپله یو

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٤١٧/٤ رقم الحديث :٢٢٢٧.

جرم دی. خو کله چې د الله په نوم وعده وکړي او قسم وخوري او بیا یې دهوکه وکړه دا بل جرم دی. نو ځکه د الله تعالی د غضب مستحق دی. (المرقات ٦/١٧٨)

**باع حرا:** دویم هغه سړی دی چې هغه یو ازاد انسان غلام کړي او د بازار مال یې جوړ کړي. دا خپله یو غټ جرم دی. که د دې اجرت وخوري او که وي نه خوري دا ګناه ده. خو که د دې په بدل کې روپۍ هم وخوري نو نور هم لوي قباحت دی. نو ځکه دا سړی د غضب الهي مستحق دی. **دریم هغه سړی** دی چې یو مزدور په مزدورۍ ولګوي او کله چې هغې کار پوره کړو. محنت یې وکړو او د روپو لپاره یې ښوله توی کړه چې روپۍ ترې وغواړي نو خاص د امید په وخت کې هغه سړی د روپۍ ورکولو نه انکار وکړي او دا هم ظلم دی نو ځکه دا سړی هم د الله تعالی د غضب مستحق دی. په حدیث کې د درې سړو مراد فقط درې سړی نه بلکې ټول قسمه خلک مراد دی. نن سبا دا مرض د عرب په ملکونو کې ښه ډېر دی. ښه ښه مطوع خلک د بل وطن د غریب نه کار واخلي او بیا معاوضه د ورکولو نه انکار وکړي. او د بل وطن د غریت نه ناجائزه فایده اخلي. (المرقات ٦/١٧٨)

## دم کوونکي خپل اجرت اخیستلی شي

﴿٥﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ : أَنَّ نَفَرًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې (یو ځل) د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د صحابو یو جماعت په یو داسې کلي باندې

مَرُّوا بِمَاءٍ فِيهِمْ لَدِيغٌ أَوْ سَلِيمٌ فَعَرَضَ لَهُمْ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْمَاءِ

تېرشو چې په هغې کې یو سړی لړم یا مار خوړلی ؤ نو د هغه کلي یو سړی د دې صحابو خواته راغلو

فَقَالَ : هَلْ فِيكُمْ مِنْ رَاقٍ ؟ إِنَّ

او دهغوي نه یې تپوس وکړو چې په تاسو کې څوک د دم کولو والا هم شته دی ځکه زمونږ په کلي کې

فِي الْمَاءِ لَدِيغًا أَوْ سَلِيمًا

یو سړی لړم خوړلی دی (که چرې داسې یو سړی وي نو هغه ما سره لاړ شي او په هغه سړی دم وکړي)

فَانْطَلَقَ رَجُلٌ مِنْهُمْ فَقَرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ عَلَى شَاءٍ فَبَرِئَ

نو یو صحابي ورسره لاړو او د بېزو په عوض کې یې سورة فاتحه وویله. هغه سړی ښه شو. بیا چې

فَجَاءَ بِالشَّاءِ إِلَى أَصْحَابِهِ فَكَرِهُوا ذَلِكَ وَ قَالُوا :

هغه صحابي د بېزو سره د خپل ملګرو خواته راغلو نو د هغې ملګرو دا ناخوښه وګڼله او وي یې ویل

| أَخَذْتَ | عَلَى | كِتَابِ | اللهِ | أَجْرًا | حَقَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| (چې ډېره عجته خبره ده) چې تا کتاب الله (لوستلو) باندې مزدوري واخستله؟ تر دې چې هغه ټول | | | | | |
| قَدِمُوا | الْمَدِينَةَ | فَقَالُوا : | يَا | رَسُولَ | اللهِ |
| صحابه مدينې ته ورسيدل او (نبي عليه السلام ته يې) عرض وکړو چې يا رسول الله! فلاني صحابي په | | | | | |
| أَخَذَ عَلَى كِتَابِ اللهِ أَجْرًا. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّ أَحَقَّ مَا أَخَذْتُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا | | | | | |
| کتاب الله (لوستلو) باندې مزدوري اخستلې ده؟ نبي کريم وفرمايل چې چې د کوم شيانو اجرت اخلئ | | | | | |
| كِتَابُ اللهِ . وَفِي رِوَايَةٍ: أَصَبْتُمْ اقْسِمُوا وَاضْرِبُوا لِي مَعَكُمْ سَهْمًا[1] | | | | | |
| په هغه ټولو کې غوره کتاب الله دی. | | | | | |

**توضيح: بماء**: يعنې د اوبو په يو ناوو سره د يو قبيلې په خلکو باندې د يو څو صحابوو د نبي کريم صلی الله علیه وسلم زمانه کې تېريدل وشو.

**راق**: ضرب يضرب نه د دم دورهه په معنی دی. (المرقات ٦/١٧٨)

**لديغ اوسليم**: راوي ته د حديث په الفاظ کې شک شو چې لفظ لديغ وو يا سليم وو. ګيني د معنې په اعتبار سره دواړه الفاظ مترادف دي. **سليم** د نيک فال په توګه د مار خوړونکې ته وايي. يعنې هيڅ خطر نشته دی. ان شاء الله دا سړی صحيح سالم دی. (المرقات ٦/١٧٩)

علامه طيبي رحمه الله وايي چې لديغ لړم چيچلی شوي سړی ته وايي. او سليم مار خوړونکې سړی ته واي. که داسې وي تو بيا راوي د په الفاظو کې شک نشته دی. بلکې په معنې کې شک دی

**"فانطلق رجل"** ته وايي. د دينه مراد حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه دی. دا ټوله په ديرش الفاظو باندې مشتمله قافله وه او حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه په اجرت کې ديرش بېزي مقرر کړي. (الکاشف: ٦/١٦٨)

**علی شاء**: دا علی مقابل مبادله او د معاوضی لپاره استعمال شوی دی. **شاء** او **شياه** داد **شاة** جمع ده. چيلي ته وايي. يعنې د يو څو چيلو د عوض په بدل کې معامله شوي وه. (المرقات ٦/١٧٩)

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ١٩٨/١٠ رقم الحديث :٥٧٣٧.

**ان احق الخ:** مطلب دا دی. چې خلک غلط او ګډ وډ منترو وايي او د جادو د ماتولو اجرت اخلي. د دم درها لپاره خو بهتر د الله کتاب دی. چې د خلکو لپاره شفاء ده. تا بنه کړي دي. زما هم پدې کې برخه کيده. نبي کريم ﷺ د صحابو و حوصله افزائی وکړه. ځکه هغه يديدلي وو. چې مونږ څه جرم کړی دی. د نبي کريم ﷺ په خبرې سره هغوس خوشحاله هم شول او مسئله هم معلومه شوه. او دا اطمينان هم وشو چې ښيزي اخستل جائز دی. (المرقات ۶/۱۷۹)

د دې حديث نه معلومه شوه چې د قرآن او د څديث په وظائفو باندې دم کول او تعويذ ليکل او په هغې باندې اجرت اخستل جائز دي. دا د استيجار على الطاعات په زمره کې نه راځي: بلکې د طب او علاج په زمره کې راځي. چې په هغې باندې اجرت اخستل اتفاقاً جائز دي. پاتې شو د قرآن تعليم او تعلم باندې اجرت اخستل، اذان او امامت باندې اجرت اخستل او همدغه شان په ديني طاعاتو باندې اجرت اخستل څنګه دي؟ نو دا يوه جدا مسئله ده او پدې کې د متقدمينو او متاخرينو فقهاؤ اختلاف دی. د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ، اسحاق بن راهويه رَحِمَهُ اللهُ او د امام زهري رَحِمَهُ اللهُ په نز په طاعاتو باندې اجرت اخستل جائز ندي. خو د نورو فقهاوو او د جمهورو علماوو په نز استيجار على الطاعات جائز دی. هغوی د بحث د لاندې حديث نه استدلا کوي. متأخرين احنافو فقهاوو هم د ضرورت په وجه د جواز فتوی ورکړيده. (المرقات ۶/۱۷۹)

تنوير الابصار کې دي "**لاتصح الاجارة للاذان والحج والامامة وتعليم القرآن والفقه**". د دې په شرح کې در مختار ليکلي دي: "**ويفتى اليوم بصحتها لتعليم القرآن والفقه والامامة والاذان**". (شامي ج ۹ ص ۹۲، المرقات ۶/۱۷۹)

د شرح عقود رسم المفتي ليکونکې پدې مسئله کې يو ضابطي اړخ ته اشاره کړيده. چې په هغې سره فقهاء کرامو په عباراتو کې په تضاد کې تطبيق پيدا کيدلی شي. د دې ضابطي خلاصه دا ده چې کله صاحب شرح عقود رسم المفتى فرمايي. چې استيجار الطاعات د سلف صالحينو په نز ناجائز دی. متأخرين فقهاوو د جواز څه لازمه فتوی نده ورکړي بلکې د مجبوری په بناء هغوی دا جائز کړی دی. بيا صاحب شرح عقود رسم المفتي دا ضابطه ليکلي دا چې د شريعت په مناصبو کې که کوم منصب د اجرت نه بغير قائم او پاتې کيدلی نشي. نو د هغې روان ساتلو لپاره اجرت ورکول ناجائز دي. لکه څنګه چې امامت دی، اذان دی، د قرآن عظيم تعليم دی درس او تدريس دی او داسې نور. که چرې پدې باندې اجرت اخستل او ورکول بند کړی شي نو دا مناصب به ختم شي. نو ځکه دا د پاتې ساتلو لپاره اجرت ورکول جائز دی. خو که د اجرت په نه ورکول باندې شرعي منصب نه ختميږي نو بيا د هغې لپاره اجرت ورکول او اخستل جائز ندي. لکه په تراوو کې د قرآن ختم دی.

که چیرې پدې بانې قاري ته څه اجرت ورنکړې شو نو په تراوو کې به بیا د قرآن ډیر ختمونه نه وي. نفس تراویح خو هر امام په وړو سورتونو سره کولی شي. لهٰذا دلته په قرآن باندې قاري ته اجرت جائز ندی. همدغه شان د ایصالِ ثواب لپاره ختمونه دي. پدې باندې اجرت اخستل جائز ندي. ځکه پدې سره هیڅ دیني منصب نه ختمیږي. همدغه شان د ټیوشن معامله هم ده. پدې سره دیني هیڅ منصب نه ختمیږي. بهرحال متأخرینو د ضرورت وړ مطابق استیجار علی الطوعات د جواز قول کړی دی. نن سبا چې څوک په علماوو باندې پدې وجه اعتراض کوي چې دا خلک په طاعاتو باندې اجرت اخلي. دا ملحد خلک دي. دا غواړي چې د اسلام چې کوم دا لګ شان کارپاتی دی دا هم ختم شي. که په حقیقت باندې نظر واچولی شي نو استجار علی الطاعات مسئله د صحابو د دور نه راروانه ده. ځکه خلفائی راشدینو به چې کومه وظیفه د بیت المال نه اخستله هغه هم د طاعاتو اجرت خو وو. همدغه که د قاضیانو ماشونو نه وکتلی شي او د مجاهدینو وظائفو ته وکتلی شي. نو دا ټول د طاعاتو عملونه وو. چې په هغې به دوې ته وظیفې ملاویدلې. د دې مسئلې مزید تفصیل او مکل دلائلو لپاره توضحات جلد ۴ ص ۶۴۵ باندې شته دی هلته کتل پکار دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### په باطل دم تعویذ باندې اجرت اخستل حرام دي

| |
|---|
| ﴿٦﴾ عَنْ خَارِجَةَ بْنِ الصَّلْتِ عَنْ عَمِّهٖ قَالَ: أَقْبَلْنَا مِنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| خارجه بن صلت رضی الله عنه د خپل تره نه نقل کوي چې (هغه وویل چې) مونږ کله د نبي علیه السلام نه رخصت |
| فَأَتَيْنَا عَلٰى حَيٍّ مِنَ الْعَرَبِ |
| شواو خپل وطن طرف ته روان شونو په لاره کې مونږد عربو په یوي قبیلې باندې تېرشو چې (هغوی څه |
| فَقَالُوا: إِنَّا أُنْبِئْنَا أَنَّكُمْ قَدْ جِئْتُمْ مِنْ عِنْدِ هٰذَا الرَّجُلِ بِخَيْرٍ |
| خلکو) مونږ ته وویل چې تاسو د هغه سړی (یعنې نبي علیه السلام) نه څه خیر راوړي دی (یعنې قرآن کریم |
| فَهَلْ عِنْدَكُمْ مِنْ دَوَاءٍ أَوْ رُقْيَةٍ؟ فَإِنَّ عِنْدَنَا مَعْتُوهًا |
| او ذکر د الله) آیا تاسو سره څه بنه دوا یا دم درهام شته ځکه زمونږ یو سړی پاګل شوی دی چې په ځولونو |
| فِي الْقُيُوْدِ فَقُلْنَا: نَعَمْ |
| کې تړلی شوی دی؟ مونږ وویل چې آو! (مونږ سره یو داسې عمل دی چې په هغې سره مونږ علاج کولی |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَجَاؤُوْا | بِمَعْتُوهٍ | فِي | الْقُيُودِ . | فَقَرَأْتُ | عَلَيْهِ | بِفَاتِحَةِ | الْكِتَابِ |

شو)نو هغه په هغه ځولونو کې تړلي شوي پاګل خواته لاړو او ما په هغې باندې ولوستلو سورة فاتحه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثَلَاثَةَ | أَيَّامٍ | غُدْوَةً | وَ | عَشِيَّةً | أَجْمَعُ | بُزَاقِي | ثُمَّ |

درې ورځې سحر او ماښام چې (د لوستلو وخت) مې خپلې لاړې جمع کولې او بيا به (د لوستلو نه پس

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَتْفُلُ | قَالَ : | فَكَأَنَّمَا | أُنْشِطَ | مِنْ | عِقَالٍ | فَأَعْطَوْنِي | جُعْلًا |

په ده تو کلې نو دومره ژر ښه شو چې هغوی دا د زولنو نه پرانيزلو بيا هغوی ماته دا اجرت په توګه څه راکړل

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقُلْتُ : | لَا | حَتَّى | أَسْأَلَ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَ | سَلَّمَ |

نو ما وويل چې تا به تر هغه وخت پورې نه خورم تر څو چې د دې باره کې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه تپوس ونه کړم

فَقَالَ : كُلْ

نو ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه تپوس وکړو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې څه تا ته ملاو شوي دي هغه وخوره.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَلَعَمْرِي | لَمَنْ | أَكَلَ | بِرُقْيَةِ | بَاطِلٍ |

ځکه قسم دی په خپل ژوند کې مې چې کوم سړی په باطل منتر باندې اجرت اخلي نو هغه بد کوي. تا

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَقَدْ | أَكَلْتَ | بِرُقْيَةِ | حَقٍّ .[1] |

خو په حق او ريښتني منتر باندې اجرت خوړلی دی.

**توضيح:** **هذا الرجل:** دا اشاره ذهنيه ده. مراد نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دی. (المرقات ۶/۱۸۰)

**بخير:** دلته خير نه مراد قرآن کريم دی. چې شفاء للناس دی. (المرقات ۶/۱۸۰)

**معتوهاً:** د دينه مراد مجنون او مدهوش ليونی دی. (المرقات ۶/۱۸۰)

**في القيود:** يعنې ځولونو کې تړلی شوی. (المرقات ۶/۱۸۰)

**ثلاثة ايام:** د دينه امت ته دا تعليم ملاوو شو چې فاتحه شفاء ده. خو په يو ځل کار نه کيږي. تر څو وخت پورې دم کول پکار دي. لکه څنګه چې دي صحابي کړيدی. نن سبا علماء او صلحاء په يو ځل توجهي سره چف کوی. پدې سره به څه اثر و شي. علاج هر وخت نسخه غواړي. (المرقات ۶/۱۸۰)

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۷۰۶ رقم الحديث :۳۴۲۰

**اثقل:** يعنې د دم سره لاړي ملا واولو سره په مريض باندې شيندلي وو. **انشط:** د مجهول صيغه ده. يعنې ګوياکې په د ترلي شوي مزي نه پرانيستلی شو. (المرقات ۶/۱۸۰)

**لعمري:** سوال دا دی چې د غير الله په نوم قسم خوړل منع دي. دلته قسم څنګه وخوړلی شو؟
**د دې جواب** دا دی چې دا باقاعده قسم نه دی. بلکې د عربو په عامه محاوره کې به داسې کيدل.
**دويم جواب** دا دی چې دا د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د خصوصياتو نه دی الله تعالی د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په نوم قسم خوړلی دی. ﴿لَعَمْرُكَ إِنَّهُمْ لَفِي سَكْرَتِهِمْ يَعْمَهُونَ﴾ (سورة حجر آيت: ۷۲)

**لمن اكل:** پدې کې لام قسميه دی. او **من** متضمن دی معنی د شرط لره او **لقد اكلت** جواب قسم دی چې د جزاء قائمقام دی. "**اى لعمرى لئن كان ناس يأكلون برقية باطل فانكم اكلتم برقيه حق**".
**باطل** **منتر** هغه وي چې په هغې کې جناتو، شيطانانو او خبيث روحونو نه مدد غوښتلی کيږي. يا د ستورو او د غير الله د نومونو پدې کې تذکره کيږي. (المرقات ۶/۱۸۱)

## د ښولي دوچيدو نه مخکې مزدور ته مزدوري ورکوي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَعْطُوا الْأَجِيرَ أَجْرَهُ |
| عبدالله بن عمر رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ورکړئ مزدور ته مزدوري خپله |
| قَبْلَ أَنْ يَجِفَّ عَرَقُهُ.[1] |
| مخکې د وچيدو د خولې نه (يعنې مزدور چې کله خپل کار پوره کړي نو د هغه مزدوري هغه ته ژر ورکوه |
| په هغې کې تاخير مه کوه). |

## سوال کوونکي ته په هر حال کې څه ورکوه

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنِ الْحُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حسين بن علي رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د سوال کونکي باره کې وفرمايل چې هغه |
| لِلسَّائِلِ حَقٌّ وَإِنْ جَاءَ عَلَى فَرَسٍ. وَفِي الْمَصَابِيحِ: مُرْسَلٌ[2] |
| (په هر صورت کې د ورکړي) مستحق دی اګر په اسپي باندې راشي. |

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۸۱۷/۲ رقم الحديث: ۲۴۴۳

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۳۰۶/۲ رقم الحديث: ۱۶۶۵

**توضيح: على فرس:** قاضي عياض رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د حديث دا مطلب دى چې سوال كونكى تش لاس مه ليږئ . اګر كه په ښكاره هغه مالداره ښكاري او په اسپه باندې سپور وي او راشي. كه هغه په رېښتيا مالداره وى نو په لاس به يې په سوال كولو سره ځان نه ذليله كولو. دا حديث په ظاهره باندې د دې باب سره څه ربط نه لري. خو مګر كه دا وويلى شي چې سوال هم يوه معاوضه ده. ته د هغې اجرت هغې ته وركړه. هغې ته چې څه هم وركړى كېږي دا د هغه سوال اجرت دى. امام احمد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د دې حديث څه بنياد نشته دا بې اصل دى. كوم چې په بازارونو كې ګشت كوي. امام ابو داوود پدې باندې سكوت كړى دى. چې د دې خبرې دليل دى چې حديث د استدلال قابل دى. مصابيحو ديته مرسل ويلي دى. امكان لري. چې په ځينو طرق كې دا مرسل وي او په ځينو كې مسند وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### د مزدورۍ په سلسله كې د حضرت موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ تذكره

| |
|---|
| ﴿٩﴾ عَنْ عُتْبَةَ بْنِ الْمُنْذِرِ قَالَ : كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| عتبه بن منذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يوه ورځ) مونږ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كې حاضرشو چې |
| فَقَرَأَ : ( طسم ) حَتَّى بَلَغَ قِصَّةَ مُوسَى قَالَ : إِنَّ مُوسَى |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ طسم ولوستلو او كله چې د موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ قيصې ته را ورسيد ونو وي فرمايل چې موسى |
| عَلَيْهِ السَّلَامُ آجَرَ نَفْسَهُ ثَمَانِ سِنِينَ أَوْ عَشْرًا عَلَى عِفَّةِ فَرْجِهِ وَ طَعَامِ بَطْنِهِ .[1] |
| عَلَيْهِ السَّلَامُ د خپلي شرمګاه ساتلو او د خيټې د كولو لپاره خپل ځان اته يا لس كاله په مزدورۍ ساتلي ؤ. |

**توضيح: طسم:** يعنې سورت قصص ولوستلو. پدې كې د حضرت موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ قصه ډېره په تفصيل سره ذكر ده چې حضرت موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ خپله د مصر نه و يري په حالت كې د مدين اړخ ته راووتللو او هلته د مدين په كويي كې يې د حضرت شعيب عَلَيْهِ السَّلَامُ د لونو سره مرسته وكړه. بيا يې د حضرت شعيب عَلَيْهِ السَّلَامُ سره ملاقات وشو. حضرت شعيب عَلَيْهِ السَّلَامُ د خپلي لور نكاح د حضرت موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ سره پدې شرط وكړه چې تر اتوو (۸) كالونو پورې به د هغې بېزي څروي. همدغه

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۸۱۷ رقم الحديث :۲٤٤٤

خدمت د هغې د ښځې د مهر حق ؤ نبي کريم ﷺ هم دغه طرف ته اشاره کړيده چې موسى عليه السلام د خپلې شرمګاه د حفاظت په خاطر او د خېټې د ساتلو لپاره اته (۸) کاله يا لس (۱۰) کاله پورې خپل ځان مزدورۍ باندې ساتلی وو. (المرقات ۶/۱۸۳)

اوس سوال دادې چې آيا د ميړه خدمت د ښځې مهر کيدلی شي او که نه؟ نو دې باره کې د فقهاؤ اختلاف دی. د احنافو علماء وايي چې د آزاد خاوند خدمت د ښځې حق نشي کيدلی. خو دا جائز ده چې د خاوند غلام تر يو کال پورې د مالک د ښځې خدمت وکړي. شوافع وايي چې د ځېنې کارونو لپاره د مزدورۍ او د نکاح د خدمت لپاره حق کيدلی شي. خو دا چې خدمت معلوم وي دې حضراتو د حضرت موسى عليه السلام د نکاح نه استدلال کړی دی. احناف وايي چې دا مخکينو شريعتونو معامله وه زمونږ په شريعت کې داسې نشته دی. (المرقات ۶/۱۸۳)

## د دين په تعليم باندې د اجرت اخيستلو مسئله

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ : قُلْتُ : يَا رَسُولَ اللهِ رَجُلٌ أَهْدَى إِلَيَّ |
| عباده ابن صامت رضي الله عنه وايي چې ما وويل چې يارسول الله! يو سړي راليږلې ماته د تحفې په توګه |
| قَوْسًا مِمَّنْ كُنْتُ أُعَلِّمُهُ الْكِتَابَ وَ الْقُرْآنَ |
| يو لينده او دا هغه خلکو نه دی چې هغه ته به ما د کتاب او د قرآن تعليم ورکولو او (زه پوهېږم دا چې |
| وَ لَيْسَتْ بِمَالٍ فَأَرْمِي عَلَيْهَا |
| ليندې په قبلولو کې زه څه باک نه وينم ځکه چې) لينده څه مال نه دی. او په دې ليندې به زه غشي ولم د |
| فِي سَبِيلِ اللهِ قَالَ : إِنْ كُنْتَ تُحِبُّ أَنْ تُطَوَّقَ |
| خدای په لاره (جهاد) کې، نبي عليه السلام وفرمايل که ستا داخوښه وي چې واچولې شي ستا غاړې ته يو |
| طَوْقًا مِنْ نَارٍ فَاقْبَلْهَا .[1] |
| طوق د اور نو دا قبول کړه. |

**توضيح: وليست بمال:** يعني کمان څه لوي مال ندی بلکې معمولي شی دی. زما هغه محصل دا ماته هديه کړی دی. چې هغې له به د قرآن تعليم ورکولو. ره پدې سره يو ښه کار کوم هغه دا چې د

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۷۰۱/۲ رقم الحديث :۲٤١٦

الله تعالی په لار کې به جهاد کوم. او دغه کمان به استعمالوم. یعنې یو خو دا معمولي شی دی. دا څه لویه معاوضه نده.

دویم دا چې خالص به د دین د فایدي لپاره استعمالوم هغه دا چې په جهاد کې به یې استعمالوم. لهذا پدې کې به څه باک نه وي. نبي کریم ﷺ وفرمایل چې چرې ته غواړې چې د اود یو کړی په خپله غاړه کې واچوې نو قبول یې کړه.

دا حدیث د هغه حضراتو دلیل دی چې د **استیجار علی الطاعات** قائل نه دي. لکه امام ابو حنیفه رحمه الله، اسحاق بن راهویه رحمه الله او د شیخ ابن شهاب زهری رحمه الله مسلک دی.

خو نور حضرات وایي چې نبي کریم ﷺ د هغه صحابي د اخلاص د **حفاظت** لپاره هغه خبردار کړو چې اګر که دا معمولي شی دی خو ستا د خالصي تجربې لپاره مضر دی. په دې کې به فرق راځي لهذا قبول یې نه کړې.

دا جواب دی چې نبي کریم ﷺ د خپل مقرب صحابوو او د اهل بیت لپاره څه داسې خصوصي احکامات ورکړي دي چې هغه ددوی د لوي شان مناسب وو. د عام امت د دغه مقام نه دی.

ځکه د خدای دین په بادشاهانو باندې قیاس کیدلی نه شي لکه ویلې شي چې: **لا یقاس الملوك بالحدادین**. (المرقات ۶/۱۸۳)



# باب احياء الموات والشرب

## د ورانې زمکې د آبادولو بيان

قال الله تعالى: ﴿وَنَبِّئْهُمْ أَنَّ الْمَاءَ قِسْمَةٌ بَيْنَهُمْ كُلُّ شِرْبٍ مُحْتَضَرٌ﴾(سورة القمر آيت:۲۷)

علامه طيبي رَحِمَهُ اللَّهُ د "**مُغرب**" په حواله سره ليکلي دي چې "**موات**" خراب او غيرآباد زمکې ته وايي ددې ضد آباده زمکه ده﴿**الموات الارض الخراب وخلافه العامر**﴾علامه طيبي رَحِمَهُ اللَّهُ د امام طحاوي رَحِمَهُ اللَّهُ په حواله ليکلي دي چې اموات هغه زمکې ته وايي. چې هغه خو نه د چا ملکيت وی او د ښار او د کلي منفعت د هغې سره څه واسطه وي بلکې د ښار نه بهر وي يا لرې وي. ابن اثير رَحِمَهُ اللَّهُ په نهايه کې دا ليکلي دي چې موات هغه زمکې ته وايي چې په هغې نه څه کرونده وي، نه کور وي او نه ده هغې څوک مالک وي. د نن سبا په اصطلاح کې داسې زمکې د شاملاتو په نوم سره يادېږي. چې هغه غير اباد للمه زمکه وي. د احياء اموات دا مطلب دی چې هغه ژوندۍ او اباده کړی شي. د داسې للمه زمکې د ابادولو طريقه دا وي چې په هغې کونده وکړی شي. يا پکې ايوه وشي يا پکې باغونه جوړ شي يا پکې کور جوړ شي. (المرقات ۶/۱۸۴، والکاشف ۶/۱۷۳)

**د ارض اموات شرعی حکم**: د دغه شان غير اباد زمکې شرعی حکم دا دی چې کوم سړی هغه اباده کړي نو دا زمکه به د هغې شي خو په دې کې د فقهاؤ شان اختلاف دی. چې څنګه په احاديثو کې دی همدغه د دې حکم دی. چې چا اباده کړله زمکه به د هغې وي. د صاحبينو هم دغه فتوی ده.

امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې بېشکه دا سړی به د دې زمکې مالک شي. خو د دې لپاره شرط دا دی چې د حاکم وخت له اړخ نه دلالةً يا صراحةً اجازت وي، اجازت اخستل ضروري دی. ګوياکې د احياء موات دا حديث **مشروط باذن الامام** دی.

**والشرب**: **شين** د کسرې سره دی. په لغت کې اوبو برخي ته وايي. په اصطلاح کې باغونه او څاروو د خړيولو هغه حق چې هر انسان ته حاصل وي هغې ته شرب وايي. (يعنې د ابو څکلو والا او څکونکی نوبت به مقرره ول).

علماوو ليکلي دي چې اوبه تر کومې پورې په خپل معدن کې وي. نو په هغې کې ټول انسانان شريک وي. خو که د چا په ساتنه کې راغلي نو بيا به د هغه په ذاتي ملکيت کې وي.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## شګنه زمکه د هغه چا ده چا چې آباده کړه

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ: مَنْ عَمَرَ |
| عائشه رضي الله عنها د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه نقل كوي چې نبي عليه السلام وفرمايل كوم سړي چې آباده كړه |
| أَرْضًا لَيْسَتْ لِأَحَدٍ فَهُوَ أَحَقُّ. |
| يوه داسې (للمه) زمكه چې د هغې مالك نه وي نو د غه آباد ونكى سړى د دې زمكې د ټولونه ډير حقدار |
| قَالَ عُرْوَةُ: قَضَى بِهِ عُمَرُ فِي خِلَافَتِهِ.(۱) |
| دى. عروه رضي الله عنه وايي چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د همدغه مطابق فيصله كړې وه. |

**توضيح:** قضى به عمر: د دې جملې دا ويل مقصود دې چې دا حديث غير منسوخ دى. ځكه حضرت عمر رضي الله عنه په خپل دور خلافت كې په همدغې باندې عمل كړى وو.

## د څرځاى د خپل ځان لپاره خاص كول منع دى

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ الصَّعْبَ بْنَ جَثَّامَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې صعب ابن جثامه وويل چې ما د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي |
| يَقُولُ: لَا حِمَى إِلَّا لِلّٰهِ وَ رَسُولِهِ.(۲) |
| چې فرمايل يې: د چراګاه د مخصوص كولو حق د الله تعالى او د هغه د رسول نه بغير بل چا ته نشته. |

**توضيح:** حِمىٰ: حا باندې كسره ده هغه زمكې او چراګاه ته وايي چې په هغې كې د څاروو لپاره وابنه ساتلې شي شپول او نبني لګولو سره نور خلك د وښو نه منع كول دا جائز ندى. د حديث دا مطلب دى چې د الله او د هغه د رسول د اجازت نه بغير بل هچا ته دا حق حاصل نه دى چې د خپل ځان لپاره د څرځاى خاص كړي او په نورو باندې پابندي ولګوي. د دې حكم ضرورت ځكه پيښ شو چې د عربو بادشاهانو او سردارانو خلكو د ځان لپاره څرځاى خاص كوله. غريب او بې وسه خلك به دېنه نه

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۸/۵ رقم الحديث: ۲۳۳۵.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ٤٤/۵ رقم الحديث: ۲۳۷۰.

محروموه وه نو ځکه نبي كريم ﷺ حكم وفرمايل چې څرخاى د خاص كولو حق فقط د الله او د هغه د رسول ﷺ ته حاصل دى. او بل چاته دا حق حاصل ندى. (المرقات ۶/۶۸۵)

## داوبو د خړبولو شرعي ضابطه

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ عُرْوَةَ قَالَ : خَاصَمَ الزُّبَيْرُ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ |
| عروه رضي الله عنه وايي چې (يو ځل) جنجال پيدا شو (زمادپلار) زبير رضي الله عنه اوديو انصاري په مينځ كې |
| فِي شِرَاجِ مِنَ الْحَرَّةِ |
| دغريځي زمكې نه (په پټو كې) داوبوخورپه سلسله كې (چې كله دامعامله نبي عليه السلام ته ورسيده) |
| فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اسْقِ يَا زُبَيْرُ ثُمَّ أَرْسِلِ الْمَاءَ |
| نونبي كريم ﷺ وفرمايل "زبيره! (اول ته په خپلو پټو كې) اوبه بوزه. بيا يې پريږده اوبه د |
| إِلَى جَارِكَ . فَقَالَ الْأَنْصَارِيُّ : أَنْ كَانَ |
| خپل ګاوندي په پټو كې (دې فيصله اوريدو سره) هغه انصاري وويل چې نبي كريم ﷺ دا |
| ابْنَ عَمَّتِكَ ؟ فَتَلَوَّنَ وَجْهُهُ |
| فيصله ځكه وكړه چې زبير رضي الله عنه ده د ترور ځوي دى (دې اوريدو سره) د نبي عليه السلام مخ مبارك رنګ |
| ثُمَّ قَالَ : اسْقِ يَا زُبَيْرُ ثُمَّ احْبِسِ |
| (دغصې دوجې نه) بدل شو بيا نبي عليه السلام وفرمايل زبيره! (په خپل پټي كې) اوبه بوزه او بيا حيصاري |
| الْمَاءَ حَتَّى |
| كړه اوبه (يعني دا اوبه د انصاري په پټي كې مه پريږده) تر دې (ستا تول پټي بنه خړوب شي او) او |
| يَرْجِعَ إِلَى الْجَدْرِ ثُمَّ أَرْسِلِ الْمَاءَ إِلَى جَارِكَ |
| اوبه د پټي پولو ته ورسيږي ددې نه پس د خپل لختي اوبه د ګاوندي (د انصاري) پټي ارخ ته كړه ګويا |
| فَاسْتَوْعَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلزُّبَيْرِ حَقَّهُ فِي صَرِيحِ الْحُكْمِ حِينَ |
| كې نبي كريم ﷺ د دې صريح حكم په وجه زبير رضي الله عنه ته د هغه پوره پوره حق ادا كړو نو ځكه |
| أحفظه الْأَنْصَارِيُّ وَكَانَ أَشَارَ عَلَيْهِمَا بِأَمْرٍ |
| هغه انصاري نبي كريم ﷺ غصه كړو حال دا چې په ابتداء كې د دواړو باره چې كومه فيصله |

| لَهُمَا | فِيهِ | سَعَةٌ.[1] |
| --- | --- | --- |
| شوي وه په هغې د دواړو لپاره آسانې وه. | | |

**توضیح: رجلاً**: ښکاره خو داسې معلومېږي چې دا څوک منافق وو. چې د انصاري په حق کې وو. بلکې د انصارو قبیلې سره یې تعلق وو. نبي کریم ﷺ د هغې په بې ادبۍ باندې صبر وکړو. ګیني پداسې بې ادبۍ باندې خو هغه واجب القتل ؤ دا سړی منافق نه ؤ بلکې بانده چې ؤ. د غصې د وجې نه بې قابو شو. نبي کریم ﷺ صبر وکړو. (المرقات ٦/٦٨٦)

**شراج**: دا جمع ده ددې مفرد **شرجة** دې دغریزو لختوته وايي دکوم په ذریعه چې پټوته اوبه رسیږي (المرقات ٦/٦٨٦).

**الحرة**: مدینه منوره کې دیوې زمکې نوم دې چرته چې به تور کاڼړي وو. (المرقات ٦/٦٨٦)

**ان کان ابن عمتك**: پدې کې په همزه باندې زبر دی په اصل کې **بأَنْ** یا **لِأَنْ** دی د حرف جر د تخفیف په وجه حذف کړی شوی عبارت داسې دي ای **هذا التجیح** لانه **ابن عمتك** او بسبب انه **ابن عمتك** یعنې تا زبیر ته ځکه په ماباندې ناجائزه ترجیح ورکړله چې دا ستا د ترور ځوي دی. ددې لويې ګستاخي او د بد ګمانۍ په وجه هغه سړی منافق ګڼلي شوی دی.

**فتلون وجهه**: د هغه سړی د بي بنیاده الزام په وجه د نبي کریم ﷺ مخ مبارک د غصې د وجې نه بدل شو. نو نبي کریم ﷺ باقاعده د هغې باره کې حکم وکړلو چې زبیر خپله ټوله زمکه خړوب کړه تر هغه چې اوبه د دیوال منډیر ته ورسیږي. بیایې د انصاري د زمکې اړخ ته پرېږده. اصل صورتحال دادی چې غرغ لختی چې د کوم ځای نه راتللو هلته د حضرت زبیر رضی الله عنه زمکه وه وروسته د انصاري وه. د قاعدې مطابق د حضرت زبیر رضی الله عنه زمکه د منډیر پورې د اوبو د ډکېدلو نه وروسته د انصاري نمبر راتلو. خو نبي کریم ﷺ د ښو اخلاقو او توافق په وجه حضرت زبیر رضی الله عنه ته وفرمایل چې فقط خپل پټی د اوبو کولو نه وروسته اوبه د انصاري پټي مخې ته واړوه. خو چې انصاري د نبي کریم ﷺ فیصلې ته د شک په نظر سره وکتل او په هغې باندې یې اعتراض وکړلو نو بیا نبي کریم ﷺ د قاعدې مطابق حضرت زبیر رضی الله عنه ته د هغې پوره پوره حق ورکړلو او فیصله یې واوروله. (المرقات ٦/٦٨٧)

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٢٤/٥ رقم الحديث :٢٣٥٩، ومسلم في صحيحه ١٨٢٩/٤ رقم الحديث: ١٢٩/٢٣٥٧.

**احفظه**: د باب **افعال** نه غصه کولو په معنی کې دی.

**الجدر**: که په **جیم** او **دال** باندې ضمه وي نو دا د **جدار** جمع دی.

**فاستوعی**: د **فاستوفی** په معنی دی. دعا لوخي نه وايي او **استوعی** د لوخی ډکولو په معنی دی. مراد دا چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم حضرت زبیر رضی الله عنه ته پوره پوره حق ورکړلو. (المرقات ۶/۶۸۷)

## د ضرورت نه ډېرې اوبه ایسارول منع دي

| |
|---|
| ﴿۴﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَمْنَعُوا |
| ابو هریره رضی الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې تاسو مه منع کوي ستاسو د ضرورت |
| فَضْلَ الْمَاءِ لِتَمْنَعُوا بِهِ فَضْلَ الْكَلَاءِ.[1] |
| نه زیاتي اوبه چې د دې په وجه د ضرورت نه زیات د وښو نه منع کول لازم نه شي. |

**توضیح**: د دې حدیث تشریح او توضیح **باب المنهی عنها من البیوع** کې د حدیث نمبر ۲۵ د لاندې لیکلی شوي ده. خلاصه دا ده چې خپله راشنه شوي واښه د ضرورت په وجه چونکې ټول مسلمانانو شریک دي. وس یو سړی خو نیغ په نیغه وښه خو نشي منع کولی. نو څکه هغه هیله کوي چې د چراګاه سره چې کومې اوبه دي. هغه هغه اوبه منع کوي. چې څاروو ته نه ملاوېږي نو هلته په د څریدلو لپاره څاروی څوک راولي. همدغه شان هغه سړی هیله کوي او واښه منع کول غواړي. نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې داسې مه کوه که اوبه ډېرې وي نو هغه مه منع کوه. که چرې اوبه د خپل ضرورت نه ډېرې نه وي نو هغه بېله خبره ده. خو د ضروت نه ډېرې اوبه منع کول د ضرورت نه ډیر واښه منع کول په لویه درجه نامناسبه ده.

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ثَلَاثَةٌ لَا يُكَلِّمُهُمُ |
| ابو هریره رضی الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل درې کسان دي چې خبرې به نه کوي د دوي |
| اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يَنْظُرُ إِلَيْهِمُ |
| سره الله تعالی د قیامت په ورځ (په رحم و کرم) سره او نه به دوي طرف ته (د عنایت په نظر) ګوري. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۱/۵ رقم الحديث: ۲۳۵۴، ومسلم في صحيحه ۱۱۹۸/۳ رقم الحديث: ۱۵۶۶/۳۷.

| |
|---|
| رَجُلٌ حَلَفَ عَلَى سِلْعَةٍ لَقَدْ أُعْطِيَ بِهَا |
| يو خو هغه(تاجر) دی چې قسم خوري (او اخستونکې ته) وايي چې دغه شي چې کوم نرخ تاورکړي |
| أَكْثَرَ مِمَّا أُعْطِيَ |
| دی د دينه ډير نرخ هغه ته ملاويدو (يعني هغه چې کله خپل يو شی خرڅوي او اخستونکی دهغې نرخ |
| وَ هُوَ |
| ورکوي نو هغه په قسم خوړلو سره وايي چې ماته ددې شي ډير نرخ ملاويدو) حال دا چې (په خپل قسم |
| كَاذِبٌ وَ رَجُلٌ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ كَاذِبَةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ |
| کې) دروغجن وي. دويم هغه سړی دی چې دروغجن قسم وخوري دمازيگر نه وروسته (دروغجن |
| لِيَقْتَطِعَ بِهَا مَالَ رَجُلٍ مُسْلِمٍ وَ رَجُلٌ مَنَعَ |
| قسم خوړلو) مقصد د کوم مسلمان (يا ذمي) څه مال اخستل وي. او دريم هغه سړی دی چې منع کوي |
| فَضْلَ مَاءٍ فَيَقُولُ اللهُ : الْيَوْمَ |
| خلک د زياتي اوبو (څکلو) څخه، نو داسې سړی ته به الله تعالى د قيامت په ورځ وفرمايي نن ورځ |
| أَمْنَعُكَ فَضْلِي كَمَا مَنَعْتَ فَضْلَ مَاءٍ |
| زه منع کوم خپل فضل د تا نه لکه څنګه چې تا (په دنيا) کې فاضل اوبه د خلکو نه منع کړي وي. سره |
| لَمْ تَعْمَلْ يَدَاكَ. وَذُكِرَ حَدِيثُ جَابِرٍ فِي بَابِ الْمَنْهِيِّ عَنْهَا مِنَ الْبُيُوعِ.[1] |
| د دينه چې هغه اوبه تا په خپل لاسونو سره نه وې راويستلي. |

**توضيح: لقد اعطى:** دواړه د مجهول صيغي دي معنى دا چې ماته د هغه شي ډير نرخ ملاويدو مگر ما ورنه کړو حال دا په هغې کې هغه دروغجن دی په حقيقت کې هغې ته ډير نرخ نه ملاويدو. (المرقات ٦/٦٨٨)

**بعد العصر:** دا چې د عصر وخت ډير د تقدس او د عظمت والا دی. نو ځکه په قسم کې هم عظمت راځي. (المرقات ٦/٦٨٧)

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٤٣/٥ رقم الحديث :٢٣٦٩، ومسلم في صحيحه ١٠٣/١ رقم الحديث: ١٧٣/١٠٣.

**مالم تعلم يداك**: يعنې داسې قدرتي شی منع کوي. چې هغه ستا د لاسونو عايد نه دی بلکې د الله تعالی يو عام نعمت دی ته دا د خلکو نه ولي منع کوي ستا د دې جرم په وجه نن د قيامت په ورځ زه ستاسو نه خپل رحمت منع کوم او ستاسو نه خپل فضل منع ساتم.

**وذکر حديث جابر** : ددې حديث تشريح ددې نه مخکې شوي ده هلته کتل جائز دي.(المرقات ٦/٦٨٩)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### چاچې د شګنې زمکې حدر اتاوو معلوم کړو دغه د هغه شوه

| |
|---|
| ﴿٦﴾ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ سَمُرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : |
| حسن بصری رَحِمَهُ اللهُ، د سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دا دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل |
| مَنْ أَحَاطَ حَائِطًا عَلَى الْأَرْضِ فَهُوَ لَهُ .[1] |
| کوم سړی چې د للمي زمکې نه ديوال تاؤ کړي نو هغه دده شي. |

**توضيح**: **احاط**: يعنې يوه لرې غير آباده زمکه ده د هغې نه ګير چاپيره چا ديوال جوړ کړو نو ددې حديث مطابق هغه زمکه دديوال تاوونکې سړی شوه. د دې حديث او د دې باب د اول حديث مفهوم يو شان دی. چې ارض موات چا آباد کړو نو هغه د همغې شوه. اوس په فقهاؤ کې د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ مشهور مسلک همدغه دی. چې چا د ارض موات نه ديوال تاوو کړو نو هغه د احياء موات په حکم کې دی زمکه د هغه شوه. ليکن نور ائمه وايي چې د احيا موات لپاره ضروري دی. چې دغه زمکه اباده کړی شي. فقط د ديوال تاوولو سره نه آباديږي. لهذا هغه زمکه به د دې نه وي. پدې حديث کې د ديوال راخکلو نه وسيدل او ابادولو لپاره ديوال مراد دې. فقط د راګيره ولو لپاره مرادنه دی.

### نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته شګنه زمکه د جايداد په توګه ورکړه

| |
|---|
| ﴿٧﴾ وَ عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَقْطَعَ لِلزُّبَيْرِ |
| د ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لور اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورکړې وه د |

(١) أخرجه ابوداود في السنن ٣/٤٥٦ رقم الحديث :٣٠٧٧

| نَخِيْلًا .[1] |
|---|
| کهجورو بوټي په جايداد کې. |

**توضيح: نخيلاً**: يعنې نبي کريم ﷺ حضرت زبير رضي الله عنه ته د کهجورو بوټي د جايدار په توګه ورکړل. پدې کې دا احتمال ؤ چې حضرت زبير رضي الله عنه ته دا بوټي د مال خمس نه ورکړې شوي. او دا احتمال هم ؤ چې نبي کريم ﷺ هغې ته للمه (شګنه) زمکه ورکړي وه بيا حضرت زبير رضي الله عنه هغه آباده کړه.

| ﴿۸﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَقْطَعَ لِلزُّبَيْرِ حُضْرَ فَرَسِهِ |
|---|
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ ورکړې وه زبير رضي الله عنه ته دده د آس د منډې په اندازه |
| زمکه د جايداد په توګه (يعنې په يوه منډه کې چې آس تر کوم ځاى پورې په منډه رسيد وسره و درېږي |
| فَأَجْرَى |
| نو تر هغه ځاى پورې زمکه يې د جايداد په توګه ورکړه) نو (ددې مقصد لپاره) منډه ورکړه زبير رضي الله عنه |
| فَرَسَهُ حَتَّى قَامَ ثُمَّ رَمَى بِسَوْطِهِ |
| خپل آس ته او هغه آسپه (په يو ځاى کې) درېدله. بيا زبېر رضي الله عنه خپل چابک وويشتلو ددې نه وروسته |
| فَقَالَ : أَعْطُوهُ مِنْ حَيْثُ بَلَغَ السَّوْطُ .[2] |
| نبي کريم ﷺ و فرمايل چې ورکړې زبير ته زمکه تر هغه ځاى پورې چيرته چې دره ولويده. |

**توضيح: حضر فرسه**: حضر او احضار د آسپې منډې ته وايي. يعنې نبي کريم ﷺ حضرت زبېر رضي الله عنه ته د هغې آس د منډې ځاى پورې جايداد ورکړلو. يعنې يو ځل چې آس مسلسل تر کوم ځاى پورې منډه ووهي تر هغه ځاى پورې به زمکه د هغې شي. او تر کوم ځاى پورې آسپه ودريده نو د هغه ځاى نه عطيه ختمه شوه. نو د حضرت زبېر رضي الله عنه آسپه چې په کوم ځاى ستړي شوه او ودريده نو نبي کريم ﷺ خپله امساء د هغې نه مخکې وويشتله. نبي کريم ﷺ و فرمايل چې تر کوم ځاى امساء ورسيده نو تر هغه ځاى پورې زمکه ورکړى. دا هم د لرې شاړې زمکې د

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۴۵۱/۳ رقم الحديث :۳۰۶۹

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۴۵۳/۳ رقم الحديث :۳۰۷۲

جایداد معامله وه. (المرقات ۶/۶۹۰)

## نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت وائل ابن حجر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته هم جايداد ورکړی وو

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ عَنْ أَبِيهِ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| علقمه بن وائل د خپل پلار (وائل بن حجر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (وائل بن |
| أَقْطَعَهُ أَرْضًا بِحَضْرَمَوْتَ قَالَ : |
| حجر) ته په حضرموت کې څه زمکه د جايداد په توګه ورکړې وه. نو وائل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم |
| فَأَرْسَلَ مَعِي مُعَاوِيَةَ قَالَ : |
| صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ما سره وليږلو چې د هغه زمکې پيمائش وکړي. او معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل |
| أَعْطِهَا إِيَّاهُ .[1] |
| چې هغه زمکه (وائل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) ته ورکړه. |

**توضيح:** حضر موت: د جبل السراة يوه سلسله د يمن نه د جزيرة العرب په جنوب مغربي ګوټ نه مشرق اړخ ته تاؤ شوي وي. بيا د جنوبي غاړي سره نزدې نزدې تر لرې پورې تللې ده. د جبل السراة همدغه کوهستاني ريګستاني سلسله چې په کومو علاقو پرته ده همغې ته حضر موت وايي. پدغه کوهستاني ريګستاني زمکه کې کروندې قابل هيڅ ځای نشته دی. خو ځينې غونډۍ داسې دي چې هغه د کروندې قابل دي. په هغې يوه غونډۍ حضر موت ده.

حضرت وائل بن حجر د همدغه قديمي شاهي خاندان چشم و چراغ وو. د هغې پلار د هغه ځای بادشاه وو. چې حضرت وائل بن حجر د هغه ځای نه د اسلام قبلولو لپاره روان شو نو نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډير په خوشحالۍ سره صحابو ته د هغې د راتللو خبر ورکړو او بيا يې د هغې پخير راغلي وکړو او خپل څادر يې وغوړولو او د ځان سره يې نزدې کينولو. او بيا يې هغه د حضر موت حاکم مقرر کړلو او څه جايداد يې ورکړو. پدې حديث کې د همدغي حقيقت بيان دی. (المرقات ۶/۶۹۱)

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۴۴۳ رقم الحديث :۳۰۵۸. (المرقات

## تیاره زمکه د جایداد په توګه نه ورکول کېږي

﴿۱۰﴾ وَ عَنْ أَبْيَضَ بْنِ حَمَّالٍ الْمَأْرِبِيِّ : أَنَّهُ وَفَدَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

د ابیض بن حمال ماربي رضي الله عنه باره کې منقول دي چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شو

فَاسْتَقْطَعَهُ الْمِلْحَ الَّذِي بِمَأْرِبَ فَأَقْطَعَهُ إِيَّاهُ

او د اخواست یې وکړو چې په مارب کې چې د مالګې کوم معدن دی د غه هغه ته په جایداد کې ورکړي

فَلَمَّا وَلَّى قَالَ رَجُلٌ :

نو نبي علیه السلام هغه ته هغه معدن د جایداد په توګه ورکړو چې کله ابیض بیرته راغلو نو یو سړی (یعنې

يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّمَا أَقْطَعْتَ لَهُ الْمَاءَ الْعِدَّ

اقرع بن حابس تمیمي رضي الله عنه) وویل چې یارسول الله! تا خو ابیض ته تیاري او به ورکړي (یعنې په

قَالَ :

معدن کې ښخي تیاره مالګه) راوي وایي چې (کله نبي علیه السلام ته د اقرع نه دا معلومه شوه چې ابیض

فَرَجَعَهُ مِنْهُ

تمیو داسې معدن ورکړی شوی چې په هغه کې مالګه ښخي تیاره ده) نو نبي علیه السلام واپس ترې واخیستو

قَالَ : وَ سَأَلَهُ مَاذَا يُحمى مِنَ الْأَرَاكِ ؟

راوي وایي چې هغه سړی (یعنې اقرع) نبي علیه السلام دا هم معلومه کړه چې د ازغن بوټو کومه زمکه راګیره

قَالَ :

شي؟ (یعنې کومه غیر اباده للمه په اباد ولو سره خپله کړی شي؟) نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل

مَا لَمْ تَنَلْهُ أَخْفَافُ الْإِبِلِ .[1]

چې هغه زمکه چې هلته د اوښانو ښپې نه رسېږي.

**توضیح:** **مأربي:** د مأرب طرف ته نسبت دی دا د یمن د یو ښار نوم دی. چې د صنعاء نه ۶۰ کیلومیټر لرې دی. حضرت ابیض د همدغه مأرب اوسیدونکی ؤ. هغه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه په مأرب کې

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/ ٦٦٤ رقم الحديث : ۱۳۸۰

د مالکي د يو معدن د جايداد په توګه غوښتنه وکړه. نبي کريم ﷺ د هغې خواست قبول کړلو او د جايدار په توګه يې ورکړلو. چې ابيض کله تللو نو په مجلس کې چا وويل چې يا رسول الله تا خو ښخي تيار معدن هغې ته ورکړلو. دا حضرت اقرع بن حابس رضي الله عنه وو. نو نبي کريم ﷺ حضرت ابيض بېرته راوغوښتلو او هغه معدن يې ترينه بېرته واخستلو. د دينه معلومه شوه چې د جايداد په توګه د للمي په توګه ورکړې کيدلی شي خو ښخي تيار معدن يا زمکه نشي ورکولی. ماءالعد: يعنې د اوبو پشان تيار معدن وو. داسې اوبه هغه دائم هم وي او قائم هم وي د احياء اموات لپاره مشکل الحصول زمکه ورکولی کېږي. دا تيار شی وو چې په هغې کې د ټولو مسلمانانو حق وو. (المرقات ۶/۶۹۱)

**فرجعه:** چې حاکم مصلحت پوهه شي نو هغه عطيه کولی شی بېرته اخستلی شي.

**قال:** يعنې راوي وايي . **وسأله:** يعنې اقرع بن حابس رضي الله عنه د نبي کريم ﷺ نه پوښتنه وکړه چې د ازغی دارو بوټو کومه زمکه راګيري دلی شي؟ لم تنله اخفاف: يعنې ترکومې پورې چې د اوښانو ښپې نه رسېږي. د ابادۍ نه لرې للمه زمکه وي. هغه د احياء اموات په توګه ابادول کيدلی شي. نزدې مقامات خو د ښار او د کلي د ضروریاتو نه وي. نبي کريم ﷺ اول وګڼل چې دا صعب الحصول معدن دی چې يو ګس ته ابادولو لپاره ورکړې کېږي. کله چې معلومه شوه چې دا سهل الحصول دی نو بېرته يې واخستله. د معدنو همدغه دوه قسمه دي. (المرقات ۶/۶۹۲)

## درې شيان په ټولو مسلمانانو کې مشترک دي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اَلْمُسْلِمُونَ شُرَكَاءُ فِي ثَلَاثٍ: |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل چې مسلمانان شريک دي په درې شيانو |
| اَلْمَاءِ وَ الْكَلَإِ وَ النَّارِ".[1] |
| کې يعنې اوبه، واښه او اور. |

**توضيح: في ثلاث:** يعنې په درې شيانو کې عام مسلمانان شريک دي. په هغه شيانو باندې د چا قبضه کول جائز نه دي: اول شی اوبه دي. د دينه د دريابونو، لختو او کويانو او د تالابونو عامي اوبه مراد دي هغه اوبه مراد نه دي چې هغه چا په ټينکۍ يا لوخي يا په مشک کې اچولي وي. همدغه

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۷۵۰ رقم الحديث: ۳۴۷۷.

شان د وښو نه هغه واښه مراد دي چې هغه پخپله په ځنګلونو کې راخیجي. چا د هغې ساتنه نه وي کړي. نه يې شپول لګولې وي. همدغه شان د ريم شي اور دی. که چري يو سړی د اور د لمبې نه ځان لپاره اور لګول غواړي نو هغه منع کول منع دي. ځکه په اور کې څو څه کمی نه راځي. خو که اور وړونکي د لرګو سره اور وړل غواړي نو هغه منع کولی شي. بل په اور کې د ګرمولو نه او د هغې په رڼا کې د کیناستو نه څوک منع کولې نه شي. (المرقات ۶/۶۹۳)

## مباح شئ د هغه چا دی چا چې اول وموندلو

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَ عَنْ أَسْمَرَ بْنِ مُضَرِّسٍ قَالَ : أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| اسمر بن مضرس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې زه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شوم او نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| فَبَايَعْتُهُ فَقَالَ : مَنْ |
| سره مې بيعت وکړو (يعنې اسلام مې قبول کړو) نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې کوم سړی ديو داسې قسمه |
| سَبَقَ إِلَى مَاءٍ لَمْ يَسْبِقْهُ إِلَيْهِ مُسْلِمٌ فَهُوَ لَهُ .[1] |
| اوبو ارخ ته مخکې ورشي (هغه اوبه حاصل کړي) چې هغه مسلمان نه وي حاصل کړي نو هغه د هغه دي |

## د کمزوري انسان او د حقوقو تحفظ د حاکم ذمه واري ده

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ طَاوُسٍ مُرْسَلًا : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : مَنْ أَحْيٰى مَوَاتًا مِنَ |
| طاؤس رَحِمَهُ اللهُ د ارسال په طريقه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چاچې ژوندي کړه للمه |
| الْأَرْضِ فَهُوَ لَهُ وَ عَادِيُّ الْأَرْضِ لِلّٰهِ وَ رَسُولِهِ ثُمَّ هِيَ |
| زمکه کړي هغه به د هغې ملکيت وي او قديمه زمکه د الله او د هغه د رسول لپاره ده. او بيا هغه زما له |
| لَكُمْ مِنِّي . رَوَاهُ الشَّافِعِي وَ رُوِيَ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ : أَنَّ النَّبِيَّ |
| اربښه ستاسو لپاره ده دا امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ روايت کړی او په شرح السنه کې منقول دی چې نبي کريم |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْطَعَ لِعَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ الدُّورَ بِالْمَدِينَةِ وَهِيَ بَيْنَ ظَهْرَانَيْ عِمَارَةِ الْأَنْصَارِ |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته کوم کورونه ورکړل هغه د انصارو په آبادی (يعني د هغوي |

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۳۵۲ رقم الحديث : ۳۰۷۱

| |
|---|
| مِنَ الْمَنَازِلِ وَ النَّخْلِ فَقَالَ بَنُو عَبْدِ بْنِ زُهْرَةَ : نَكِّبْ عَنَّا |
| کورونه د کهجورو )په مینځ کې واقع وو. نو د عبد بن زهره ځامنو وویل چې ته لرې و ساته زمونږ نه د |
| ابْنَ أُمِّ عَبْدٍ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللهِ : |
| ام عبد ځوي (یعني عبد الله بن مسعود د رضي الله عنه) (ددې په جواب کې)نبي علیه السلام هغوی ته و فرمایل |
| فَلِمَ ابْتَعَثَنِي اللهُ إِذًا ؟ إِنَّ اللهَ لَا يُقَدِّسُ أُمَّةً |
| چې بیا الله تعالی زه ولي رالیږلی یم (یادو ساتې) الله تعالی هغه قوم ته پاکوالی نه ورکوي چې په |
| لَا يُؤْخَذُ لِلضَّعِيفِ فِيهِمْ حَقُّهُ .[1] |
| هغې کې د کمزوري حق ته تحفظ نه وي. |

**توضیح:عادی الارض:** د دینه مراد هغه ورانه او للمه زمکه ده چې د هغې هیڅ مالک نه وي. نه ده د هغې د مالک څه علم وي بلکې دا د قوم عاد ارخ ته منسوب قدیمه زمکه ده. (المرقات ۶/۶۹۴)

**اقطع:** یعني حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ته نبي کریم صلی الله علیه وسلم په مدینه کې کورونه ورکړي وو. چې د انصارو او د کهجورو د باغونو په مینځ کې واقع وو. (المرقات ۶/۶۹۴)

**فقال بنو عبد بن زهرة:** د عبد بن زهره اولاد د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د پلار سره حریفانه مقابله راروانه وه نو د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه مور یو وخت د مجبورۍ په وجه د هغه خلکو مزدوري کړې وه. اوس د انساني جذباتو د نظر لاندې هغه حضراتو حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په خپل مینځ کې ددې شان او شوکت برداشت نه کړو بلکې د کر کې جمله یې استعمال کړه چې **فنکب عنا ابن ام عبد** یعني زمونږ نه یې لرې کړه. د دې په جواب کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د غصې او د خفګان اظهار وکړو او د انصاف خبره یې وکړه چې که چرې یو کمزوري انسان ته د هغه حق ورنه کړی شم نو بیا زما رب زه ولي رالیګلی یم؟ بیا نبي کریم صلی الله علیه وسلم یو بیان وکړو چې هغه قوم کله هم پاک او مقدس او معزز نه شي کیدی چې په قوم کې یو کمزوري انسان ؛ هغې د حق تحفظ نه شي ورکول کیدی. (المرقات ۶/۶۹۴)

(۱) أخرجه الشافعي في الام ۴/۴۵ کتاب أحكام الهبة باب عمارة ما ليس معمورا.

## نهر وغيره سره د پټو خړوبول

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ : |
| عمرو بن شعيب د خپل پلار (شعيب رضي الله عنه نه او هغه د خپل پلار عبد الله ابن عمر رضي الله عنه) نه نقل کوي |
| أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَضَى فِي السَّيْلِ الْمَهْزُورِ |
| چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د مهزور او بو باره کې دا حکم ورکړو چې دا دې بند کړې شي کله چې ورسي |
| أَنْ يُمْسَكَ حَتَّى يَبْلُغَ الْكَعْبَيْنِ ثُمَّ يُرْسَلَ الْأَعْلَى عَلَى الْأَسْفَلِ.[1] |
| د دې او به پټو او داسې نورو شيانو ته خنو پورې او بيا دې پاس والا د لاندې والا لپاره (د دې او به) پرېږدي |

**توضيح**: **السيل**: سيلاب ته وايي د ځنګلونو او د صحراګانو نه چې کومې او به په کومه لاره راتوېږي هغه لختي او نهر ته هم سيل وايي . هر ارخ ته د غه قسمه لختي مراد دی. (المرقات ٦/٦٩٥)

**مهزور**: په مدينه منوره کې د بنو قريظه په علاقه کې د يوي غونډۍ نوم دی. د بنو قريظه د پټو او به د همغه غونډۍ او د هغه لختي نه راتللي. چې پټي به يې اوبه کول. نبي کريم صلى الله عليه وسلم د دغې په اړه دا حکم وکړلو چې هغه خاص او قاعدي او د ضابطي حيثيت لري. او د دينا د ټولو انسانانو لپاره يو شرعي ضابطه ده. مطلب دا ی چې ک مثلاً د غرونو نه د اوبو يو لختی د ابادۍ ارخ راروان وي او خلک د هغي نه خپلي زمکې اوبه کوي. نو د هغې لپاره قاعده او شرعي ضاربطه دا ده چې د کوم سړي د زمکې نه دا لختي تېرېږي نو هغه سړی اول د خپلي زمکې د اوبو کولو حق لري چې هغه خپله زمکه د اوبو نه دومره ډکه کړي چې اوبه د ښپو ټخنو پورې راوراسېږي نو بيا دي اوبه هغه د خپل نزدې ملګري ارخ ته پرېږدي. هغه دي هم دغه شان اوبه کړي او د بل مګري ارخ ته پرېږ دي اګر که دا حکم د مدينې په خلکو کې تاکلې شوئ ؤ خو دا شرعي ضابطه د دنياد ټولو مسلمانانو لپاره ده. (المرقات ٦/٦٩٥)

## د خپل جايداد په وجه چاته ضرر مه ورکوئ

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ: أَنَّهُ كَانَتْ لَهُ عَضُدٌ مِنْ نَخْلٍ فِي حَائِطِ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ |
| د سمره بن جندب رضي الله عنه باره کې منقول دي چې د ده د کهجورو يو څو بوټي د يو انصاري په باغ کې وو |

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ٤/٥٣ رقم الحديث :٣٦٣٩

| وَ | مَعَ | الرَّجُلِ | أَهْلُهُ |
|---|---|---|---|

(چې دده نوم ځينې علماؤ مالک ابن قيس ليکلی) چې دا د خپل اهل و عيال سره په همدې باغ کې اوسيدو

| فَكَانَ | سَمُرَةُ | يَدْخُلُ | عَلَيْهِ | فَيَتَأَذَّى | بِهِ |
|---|---|---|---|---|---|

نو سمره رضي الله عنه (د خپل هغه بوټو د وچې نه) په باغ ته راتللو نو هغه انصاري ته به د دينه مشکل وو

| فَأَتَى | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَ | سَلَّمَ | فَذَكَرَ | ذٰلِكَ | لَهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

(يوه ورځ) دا انصاري د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو او نبي عليه السلام ته يې ددې ذکر

| فَطَلَبَ | إِلَيْهِ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَ | سَلَّمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

وکړو. نبي عليه السلام سمره رضي الله عنه خپل مجلس ته راوغوښتو چې (هغه ته دا ووايي چې) هغه (د خپل

لِيَبِيعَهُ

کهجورو هغه بوټي) په انصاري باندې خرڅ کړي (دا چې د هغه بوټو په وجه هغه انصاري ته ضرر رسي

فَأَبَى

د هغې نه خلاص شي) خو سمره رضي الله عنه (د خپل بوټو خرڅولو نه) انکار وکړو بيا نبي کريم صلى الله عليه وسلم

| فَطَلَبَ | أَنْ | يُنَاقِلَهُ |
|---|---|---|

د دې خواهش اظهار وکړو چې سمره رضي الله عنه خپل هغه بوټي د انصاري د (هغه) بوټو سره بدل کړي

فَأَبَى

(چې هغه په بل ځای کې واقع دي) مګر سمره رضي الله عنه دې ته هم تيار نشو. نو بيا نبي عليه السلام سمره رضي الله عنه

| قَالَ | : | فَهَبْهُ | لَهُ | وَ | لَكَ |
|---|---|---|---|---|---|

ته وفرمايل خپله بوټي انصاري ته د هديې په توګه ورکړه تا ته به ددې اجر (د جنتونو په صورت) کې

| كَذَا | أَمْرًا | رَغْبَةً | فِيهِ |
|---|---|---|---|

ملاؤ شي. ګويا کې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د (سفارش په توګه) د تشويق کولو لپاره دا حکم ورکړو

(دا امرا رغبة ترجمه دا ده چې نبي عليه السلام سمره رضي الله عنه تشويق کړو يوه خبره يې وکړه يعنې خپل بوټي

| |
|---|
| فَأَبَی |
| یې د هدیه په توګه د ورکولو د ثواب ذکر وکړلو) سمره رضی الله عنه د دینه هم انکار وکړو. په آخر کې نبي |
| فَقَالَ : أَنْتَ مُضَارٌّ |
| علیه السلام سمره رضی الله عنه ته وفرمایل چې ددې مطلب دادی چې ته (ربښتیا) انصاري ته ضرر رسول غواړې |
| فَقَالَ |
| او کوم سړی چې چاته ضرر رسوي د هغه نه دفاع ضروري ده نو ځکه) وفرمایل نبي کریم صلی الله علیه وسلم |
| لِلْأَنْصَارِيِّ : اذْهَبْ فَاقْطَعْ نَخْلَهُ.[1] |
| انصاري ته چې ته لاړ شه او د سمره رضی الله عنه بوټي مات کړه او ګوزار یې کړه. |
| رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَذُكِرَ حَدِيثُ جَابِرٍ: من أحيى أرضا في بَابِ الغَضَبِ بِرِوَايَةِ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ. وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ أَبِي صِرْمَةَ: مَنْ ضَارَّ أَضَرَّ اللهُ بِهِ فِي بَابِ مَا يُنْهِي من التهاجر |

**توضیح: عضد:** په عضد کې **ضاد** باندې زبر هم جائز دی ضمه او سکون هم جائز دی. د دې لفظ باره کې د علماؤ جداجدا اقوال دي. چې د عضد نه څه مراد دی. ملا علی قاری وایي چې د دینه د کهجورو د بوټو قطار مراد دی. او ځینو ویلي دي چې یو څو واړه بوټي مراد دي. اهل لغت هم دغه دوه (۲) معني ویلي دي: علامه توربشتي رحمه الله وایي چې د حدیث په ظاهر الفاظ او مفرد د ظمائر نه معلومیږي چې دا یو (۱) بوټی ؤ. که چرې ډیر بوټي وی نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم به د دې د ماتولو او ګوزارولو حکم نه کولو. د علامه توربشتي رحمه الله نه د ملاعلي قاري رحمه الله رائې ډیره غوره ده چې دادبوټود یو قطار نوم دی. بهرحال د حضرت سمره رضی الله عنه د بوټو یوه برخه د یو انصاري مالک بن قیس په باغ کې وه. د حضرت سمره رضی الله عنه په تللو راتللو باندې به هغه انصاري ته تکلیف وو. نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته یې د سفارش او تشویق په توګه د حضرت سمر رضی الله عنه د بوټي د خرڅوولو یا بدلولو یا وقف وویل. (المرقات ٦/٦٩٥)

**رغبه:** د رغبه مطلب هم دغه سفارش او تشویق دی. د نبي کریم صلی الله علیه وسلم دا حکم وجوبي نه وو. ګیني حضرت سمره رضی الله عنه ته به د انکار کولو ګنجائش هم وی. **الت مضار:** یعنې ستا مقصد فقط

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ٤/٥٠ رقم الحديث: ٣٦٣٦

ضرر رسول او تکلیف ورکول دي. لهذا اوس ستا ضرر ختمول ضروري دي او دا دې همدغه صورت دی چې دغه بوټی د ښخه و باسه نو ځکه نبي کريم ﷺ دغه شان حکم ورکړو (المرقات ٦/٦٩٦)

**سوال:** اوس سوال دادی چې کله د نبي کريم ﷺ د اړخ نه دا حکم وجوبي نه ؤ. فقط سفارش ؤ. نو بيا يې د هغه بوټي د ماتولو حکم ولي ورکړو؟

**جواب:** د دې جواب دا دی چې اصل نبي کريم ﷺ د حضرت سمره رضی الله عنه مخې ته هغه ټولې اختياري خبرې کیخودلې تشويق يې هم کړو، د جنت بشارت يې هم ورکړو. کله چې هغې و نه منله نو په آخر کې نبي کريم ﷺ وجوبي حکم عملي کړو. ځکه اوس د ضرر رسولو صورت پيدا شوی وو. لهذا اوس ذ هغه ضرر رسولو مخنيوی پکار ؤ نو نبي کريم ﷺ د بوټي د ماتولو حکم ورکړو. ملا علي قاري رحمه الله ليکلي دي چې امکان لری چې حضرت سمره رضی الله عنه دا بوټی د باغ د ملک له طرفه هبه ؤ. او يا د بل چا له اړخ نه د عاريت په توګه وو. نو ځکه د ماتولو حکم ورکړی شو. (المرقات ٦/٦٩٦)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### اوبه، مالګه او د اور په ورکولو کې څومره لوي ثواب دی

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّهَا قَالَتْ : يَا رَسُولَ اللهِ ! مَا |
| د عائشې رضی الله عنها باره کې روايت دی چې (يوه ورځ) هغوی پوښتنه وکړه چې يا رسول الله! هغه کوم |
| الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ ؟ قَالَ : الْمَاءُ وَ الْمِلْحُ وَ النَّارُ |
| شی دی چې د هغې انکار کول ښه نه دی؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل اوبه، مالګه او اور. عائشه |
| قَالَتْ : قُلْتُ : يَا رَسُوْلَ اللهِ هٰذَا الْمَاءُ قَدْ عَرَفْنَاهُ |
| رضی الله عنها وايي چې ما (دا واوريدل) عرض مې وکړو چې يا رسول الله! دا اوبو معامله خو ماته معلومه ده |
| (چې دا د خدای يو داسې نعمت دی چې يو کس ذاتي ملکيت نه دی څه انساني څه حيواني د ټول مخلوق |
| ضرورت نه دې سره تړلی شوي دي نو ځکه د دې نه منع کول ډير تکليف او د ضرر سبب جوړيدلی شي) |
| فَمَا بَالُ الْمِلْحِ وَ النَّارِ ؟ |
| خو د اور د مالګې خبرې باندې نه پوهېږم (دا چې دا دواړه شيان د اوبو پشان نه دي او په ظاهره کې ډير |
| قَالَ : |
| کمتر شيان دي چې د هغې ورکول او يا نه ورکول څه حيثيت لري؟) نبي کريم ﷺ وفرمايل : |

| |
|---|
| يَا حميراءُ ! |
| يا حميراء! (پدې پوهه شه د دې دواړه شيانو د وركولو يا د نه وركول څه اهميت نشته دى ځكه) كوم |
| مَن أَعْطَى نَارًا فَكَأَنَّمَا تَصَدَّقَ بِجَمِيعِ مَا أَنْضَجَتْ تِلْكَ النَّارُ |
| سړى ته چې چاته اور وركړو ګويا كې هغه ټول شيان وركړل چې كوم په اور باندې پاښه شول |
| وَ مَنْ أَعْطَى مِلْحًا فَكَأَنَّمَا تَصَدَّقَ بِجَمِيعِ مَا طَيَّبَتْ تِلْكَ الْمِلْحُ |
| شان كه چا چاته مالګه وركړه نو هغه ټول شيان د صدقې په توګه وركړل چې كوم هغه مالګې هغه خوند |
| وَ مَنْ سَقَى مُسْلِمًا شَرْبَةً مِنْ مَاءٍ حَيْثُ يُوجَدُ الْمَاءُ فَكَأَنَّمَا |
| وركړل او چا چې چاته په هغه ځاى كې چې هلته او به ملاوېږي يو ځل او به وركړې نو ګويا كې هغه يو |
| أَعْتَقَ رَقَبَةً وَ مَنْ سَقَى مُسْلِمًا شَرْبَةً مِنْ مَاءٍ حَيْثُ لَا يُوجَدُ الْمَاءُ |
| غلام ازاد كړو او چا چې چاته په هغه ځاى كې او به وركړې چې هلته او به نه وي او يو ځل يې او به وركړې |
| فَكَأَنَّمَا أَحْيَاهَا .[1] |
| نو ګويا كې هغه (يعنې مسلمان) ژوندى كړو. |

**توضيح:** **لايحل منعه:** يعنې چې په اوبو، اور او د مالګې په وركولو كې ګنجائش وي نو هغه د مسلمانانو نه منع كول جائز ندي. ځكه دا شيان د ضرورت په وخت كې ډېر كاريدونكې او د احتياج سبب وي. لهذا د دې ثواب هم لوي دى. حضرت عائشه رضي الله عنها خو د اوبو اهميت پيژندلى وو. ځكه د عربستان په ريګستان كې اوبه د ژوند ذريعه ده. او ددې وجود ډېر كم وي يكن د مالګې او اور اهميت باندې حضرت عائشه رضي الله عنها نه پوهيده. نو ځكه په معمولې ګڼلو سره يې تپوس وكړو. ددې په جواب كې نبي كريم صلى الله عليه وسلم د اور او مالګې په افاديت او اهميت او ضرورت واضحه كړو چې د اور په ذريعې سره د پخيدونكې شيانو د عطيه هومره ثواب ملاوېږي او د مالګې په خوند سره د ټول طعام د صدقې هومره ثواب ملاوېږي. او اوبه خو اوبه دي دا خو ژوند او ساه ده. څوك يې په چا څكوي ګويا كې هغه ته ژوند وركوي. (المرقات ٦/٦٩٧)



---

(١) أخرجه ابن ماجه في السنن ٢/٨٢٦ رقم الحديث :٢٤٧٤.

# باب العطايا

## د عطايا بيان

قال الله تعالىٰ: ﴿كُلًّا نُّمِدُّ هٰؤُلَاءِ وَهٰؤُلَاءِ مِنْ عَطَاءِ رَبِّكَ وَمَا كَانَ عَطَاءُ رَبِّكَ مَحْظُورًا﴾ (بني اسرائيل آيت: ۲۰)

عطايا جمع ده د دې مفرد عطية ده. عطيه بخشش او هديې ته وايي. چې يو سړى د خپل شي تصرف او ملكيت بل سړي ته ورکړي. پدې باب کې به د ټولو اقسامو مثلاً وقف، هبه، عمرى او د رقبى بيان کيږي. ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ په مرقات کې ليکلي دي چې دلته د عطايا نه مراد د امراء او د سلاطينو د بخشش او دهغوی انعامونه مراد دي. ملا علی قاری رَحِمَهُ اللهُ وايي چې امام غزالی رَحِمَهُ اللهُ په منهاج العابدين کې د د عطايا په اړه ليکلي دي چې د امراء او سلاطينو د بخښلو او د دولتي انعامونو قبلولو په سلسله کې د علماؤ جداجدا اقوال دي. د ځينو علماؤ رائی دا ده چې که هغه عطايا د حرامو مالونو نه نوي يعنې د هغې په حرام کېدلو باندې يقين نه وي نو د هغې قبلو صيحيح دي. د ځينو علماؤ رائی ده دا چې تر کومه پورې د دې مال د حلال کېدلو يقين نه وي تو تر هغه وخت پورې د هغې نه قبول بهتر اولی دی. ځکه په هغه زمانه کې به په خځانه کې جمع شوي مالونه ډير او اکثر په غير شرعي سره حاصليدل. بهرحال عطايا او تحفه او هديه د انساني ټولني د يو کولو لپاره او انسانان ديوبل سره نزدې ساتلويوه لويه ذريعه ده نو ځکه اسلام د عطيه حکم ورکړود ځينو علماؤ رائی داده چې د امراو هدايا قبلول جائز دي خو دا چې پدې خبره پوره يقين شي چې دا مال حرام دی. ځکه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مصر د بادشاه مقوقس تحفه قبوله کړي وه. ځينو علماؤ دا فرق کړی چې دغريب اومفلس خلکو لپاره داتحفه قبلول جائزدي دمالداره لپاره ناجائزدي ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ دامام غزالي رَحِمَهُ اللهُ په حواله سره ليکلي چې که ملفس دهغوی تحفه قبوله کړي نوجائزبه وي ځکه چې بادشاه خپل مال ورکړی وي نو هغه جائز دي او که بادشاه د بيت المال نه ورکړی وي نو د هر مسلمان په بيت المال کې خپل حق دی. نو په هغې کې به هغې ته خپل حق ملاؤ شي. بلکې په بيت المال کې او په دولتي خځانه کې د علماؤ هم حق جوړيږي. حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې کوم سړی په اسلام کې په خپله خوښه راشي. او ښا قرآن ياد کړي (عالم شي) نو په بيت المال او په دولتي خځاني کې د هغې کلنيز دوه سوه (۲۰۰) درهمه حق جوړيږي. په روايت کې دوه سوه (۲۰۰) دينار دي. که په دنيا کې خپل حق وصول نکړلو نو په آخرت به يې خامخا وصولوي: (المرقات ۶/۶۹۸)

ددې ټول تفصيلاتو نه وروسته دا خبره يادول پکار دي چې وخت د حکومت د طرف نه اکثر او ډير عطايا د رشوت په توګه او په ديني معاملاتو کې دمداهنت په غرض سره ورکولی کيږي. لهذا هر

عالم ته خیال کول په کار دي او ویخ اوسیدل پکار دي چې چرته هغه حکومتي عطایا سره د هغوی شرعي ازادي خو قبضه کولی کېږي یا د هغوې د حق او از خو نه بند کول کېږي. که داسی وي نو بیا د حلال مال عطیه خو لا څه د حج او عمرې لپاره یا د جومات او د مدرسي د جوړولو لپاره هم ناجائز دي. ﴿وَاللهُ يَقُولُ الْحَقَّ وَهُوَ يَهْدِي السَّبِيلَ﴾.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

## د حضرت عمر رضي الله عنه د خپل طرف نه خپله د خیبر د زمکې وقف نامه

﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ عُمَرَ أَصَابَ أَرْضًا بِخَيْبَرَ

ابن عمر رضي الله عنه وايي چې په خیبر کې څه زمکه عمر رضي الله عنه ته (د مال غنیمت د برخي په توګه) ملاؤ

فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي أَصَبْتُ

شوه. نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته راغلو او وي ویل چې یا رسول الله ! ما ته رسیدلي (د خپلې برخي)

أَرْضًا بِخَيْبَرَ لَمْ أُصِبْ مَالًا قَطُّ أَنْفَسَ عِنْدِي مِنْهُ

په خیبر کې داسې زمکه چې د دینه ډېره غوره او اعلی مال ما ته کله هم ندی ملاؤ شوی (او اوس زه

فَمَا تَأْمُرُنِي بِهِ ؟

غواړم چې داد الله په رضا او د خوشحالۍ لپاره ورکړم نو څکه) تاسو ما ته حکم وکړئ (چې د دې باره

قَالَ : إِنْ شِئْتَ حَبَسْتَ أَصْلَهَا وَ

کې زه څه وکړم) نبي علیه السلام وفرمایل : که ته هم دغه غواړي نو اصل زمکه وقف کړه او د هغې نه چې

تَصَدَّقْتَ بِهَا . فَتَصَدَّقَ بِهَا عُمَرُ : إِنَّهُ

څه پیداوي هغه د صدقي په طور ورکړه نو عمر رضي الله عنه هغه زمکه پدې شرط د خدای په لاره کې ورکړه

لَا يُبَاعُ أَصْلُهَا وَلَا يُوهَبُ وَلَا يُورَثُ

(هغه يې وقف کړه) چې اصل زمکه نه خرڅه کړی شي، نه هبه کړی شي او نه هغه د چا میراث وتاکلی شي

وَ تَصَدَّقَ بِهَا فِي الْفُقَرَاءِ وَ فِي الْقُرْبَى

او د دې پیداوار د صدقې په طور داسې مصرف کړی شي چې د هغې نه فقیرانو او خپلوانو ته ګټه ورسېږي

| وَ فِي الرِّقَابِ |
|---|
| دغلامانو مرسته وکړی شي (لکه څنګه چې مکاتبو ته زکوة ورکړی کېږي چې هغوی ددې په ذريعې |
| سره خپل مالک ته دبدل کتابت په بدل کې ورکړي او آزاد شي ،هم دغه شان ددې زمکې په پيداوار باندې |
| وَ فِي سَبِيلِ اللهِ |
| هم دمکاتبو مرسته وکړی شي) دالله تعالى په لاره کې يعنې په غازيانو او حاجيانو باندې خرچ کړی شي. |
| وَ ابْنِ السَّبِيلِ وَ الضَّيْفِ |
| دمسافرو ضرورتونه پرې پوره کړی شي (اګر که په خپل وطن کې مال او زرو مالکان وي) او ميلمنو |
| لَا جُنَاحَ عَلَى مَنْ وَلِيَهَا أَنْ يَأْكُلَ مِنْهَا بِالْمَعْرُوفِ أَوْ يُطْعِمَ |
| ميلمستيا وکړی شي او څه ګناه نشته چې وخوري ددې زمکې متولي هم د حاجت وړ مناسب يا يې |
| خپل اهل وعيال ته (چې د استعداد نه لرلو باوجود هم دهغه د کفالت لاندې وي) پرې وخوروي خوپدې |
| غَيْرَ مُتَمَوِّلٍ |
| چې هغه متولي (د دې وقف د عايد نه) مالدار نه شي (يعنې کوم سړی چې ددغه زمکې د خيال ساتلو |
| او ددې پيداوار په پاسې ذکر شوې خلکو باندې د خرچ د ذمه وارۍ په توګه متولي مامور کړي او هغه |
| خپل او دخپل اهل وعيال د ژوند د ضرورت د پوره کولو لپاره ددې زمکې دپيداوار او د عايد نه څه |
| وخوري نوپدې کې څه باک نشته دی خو ددې خبرې اجازت نشته دی چې هغه ددې زمکې په وجې سره |
| قَالَ ابْنُ سِيرِينَ : |
| مالداره او متمول شي) نو څکه ابن سيرين (د غير متمول مطلب) همدغه بيان کړی دی چې هغه متولي |
| غَيْرَ مُتَأَثِّلٍ مَالًا.[1] |
| دا زمکه د خپل مال او زر جمع کولو ذريعه جوړه نه کړي. |

**توضيح**: پدې حديث کې د وه بنيادي بې مثاله احکامات دي. مثلاً په وقف کولو خپل غوره مال ورکول پکار دي. همدغه شان دا هم جائز ده چې و قف شوي شي نګراني د خپل ځان وساتي، دا هم جائز ده چې د ضرورت وړ مناسب څه عايد خپله هم استعمال کړي . د دې حديث نه دا خبره ثابته

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٥/٣٥٤ رقم الحديث :٢٧٣٧، ومسلم في صحيحه ٣/١٢٥٥ رقم الحديث. ١٦٣٢/١٥.

شوه چې د وقف مال نه خرڅولی شي او نه یې هبه کولی شي. نه په دې کې میراث چلېږي. بلکې **کالوقف لا یملك** ضابطه ده. د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چې وقف کله شخصي وي. چې اصل او نفع دواړه د یو مسکین په لاس کې ورکړی شي او کله د عام مسکینانو لپاره وقف کړی شي. دلته د عامو مسکینانو لپاره وقف کړی شوی دی. (المرقات ۶/۱۵۹)

## عمری جائز ده

| ﴿۲﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : اَلْعُمْرَىٰ جَائِزَةٌ .[1] |
|---|
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل عمریٰ جائز ده. |

**توضیح:العمریٰ:** عمریٰ د **فُعلیٰ** په وزن باندې دی. د دې معنی دا ده چې د **ټول عمر لپاره چاته خپل** کور ته ورکول. او دا لفظ استعمالول **هذاه الدار لك عمریٰ** چې ما دا خپل کور د ټول عمر لپاره تاته درکړلو. دغه استعمال کړه یا عمریٰ هبه او عطیه او د تحفه یو صورت دی. د عمریٰ صیغه اکثر د باب افعال نه استعمالېږي. یدې کې عطیه کونکې ته معمِر وایي. او چاته چې عطیه کړی شوی دی هغې ته **مَعْمَرْ** وایي. او هغې ته **عُمریٰ** وایي. (المرقات ۶/۲۰۱)

**د عمری هبه کولو درې صورتونه دي:** اول صورت دا چې په هغې کې مُعمر ورثه تصریح وي مثلاً عطیه کونکې وویل "**اَعْمَرْتُكَ هٰذِهِ الدَّارَ فَاِذَا مِتَّ فَهِيَ لِوَرَثَتِكَ**". دویم صورت هغه دی چې بېخي مطلق وي مثلاً "**اَعْمَرْتُكَ هٰذِهِ الدَّارَ**". دریم صورت دا چې په هغې د کور د بېرت ورکول تصریح وي. **مثلاً اَعْمَرْتُكَ هٰذِهِ الدَّارَ فَاِذَا مِتَّ عَادَتْ اِلَيَّ**".

**د فقهاو اختلاف:** امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او د یو قول مطابق امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ د جمهورو علماؤ په نز د عمری په درې واړو کې مطلقاً تملیک عین او هبه دی. او بېرته اخستلو شرط فاسد دی. چې باطل دی. لهذا معمرله د مړکېدو نه وروسته به د هغې ورثه ته ملاوېږي. څوک یې دا منع کولی نشي. امام مالک رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د عمریٰ په درې واړو کې صورتونو کې تملیک منافع دی. تملیک عین نه دی. لهذا د معرله د مړکېدلو نه وروسته عمری

---

(۱) أخرجه البخاري في صحیحه ۲۳۱/۵ رقم الحدیث :۲۶۲۶، ومسلم في صحیحه ۲۴۸/۳ رقم الحدیث: ۱۶۲/۳۲.

عین اصل مالک ته به واپس کېږي. د امام احمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ او امام شافعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ نور اقوال هم دي. مګر دهغې د ذکر کولو ضرورت نشته دی. (المرقات ۶/۲۰۱)

**دلائل**: امام مالک رَحِمَهُ ٱللَّهُ د حضرت جابر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ د روایت حدیث نمبر ۵ نه استدلال کړی دی چې په هغې کې **"فانها ترجع الی صحبها"** الفاظ راغلي دي. جمهورو فقهاؤ د حضرت جابر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ د روایت نمبر ۳ نه استدلال کړی دی چې په هغې کې په واضحه توګه **العمریٰ میراث لا هلها** الفاظ شته دی. جمهورو د حضرت جابر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ د حدیث نمبر ۳ نه هم استدلال کړی دی. چې په هغې کې مسئلې ذکر هم شته، حکم او علت یې هم ذکر دی. چې یو واضحه دلیل دی. جمهورو فقهاؤ د حضرت جابر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ د حدیث نمبر ۶ نه هم استدلال کړی دی. چې په خپل مدعا باندې صریح دلیل دی. جمهورو د فصل ثالث د حضرت جابر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ د حدیث نمبر ۸ نه استدلال کړی. **جواب**: امام مالک رَحِمَهُ ٱللَّهُ چې د جابر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ د روایت نه استدلال کړی هغه روایت د نورو روایاتو خلاف دی او خپله د جابر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ روایت هم خلاف دی. لهذا هغه د استدلال قابل نه دی. او دغه شان هغه د حضرت جابر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ خپل قول او اجتهاد دی. مرفوع حدیث ندی. لهذا د نورو مرفوعو احادیثو مقابله نشي کولی.

**سوال**: د زیر بحث حدیث کې العمریٰ جائزة الفاظ دي او د فصل ثاني په حدیث نمبر کې ۶ کې د حضرت جابر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ په روایت کې **لاتُعْمِرُوا عمریٰ** نه د نهي روایت دی. دا واضحه تعارض دی. د دې حل څه دی؟ **جواب**: اصولاً خو همغه حکم دی چې العمریٰ **جائزة** دا جائز دی منع ندی خو چرته چې د ممانعت حدیث راغلی دی. نو هغه نهي ارشادی ده. چې په هغه مصلحت باندې منحصر دی. چې خپل کور ته عمری ویلو سره مه ورکوی. ځکه عمری خو نافذ ده نو بیا به پریشانه شي. نو ځکه دا اقدام نه کوی. خو که چا عمری وکړه نو هغه به جائز او نافذ وي. (المرقات ۶/۲۰۱)

## په عمری کې وراثت چلیږي

| ﴿۳﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : إِنَّ الْعُمْرَى مِيرَاثٌ |
|---|
| جابر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ وفرمایل عمریٰ دا میراث شي د |
| لِأَهْلِهَا .(۱) |
| خپل مالک (یعني معمرله). |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ٦٩/٥، رقم الحديث : ٤٢٨٨.

﴿٤﴾ وَعَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أَيُّمَا رَجُلٍ أُعْمِرَ عمرى لَهُ

جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل که يو کس ته يو شي د عمرى په توګه ملا ويږي

وَ لِعَقبه فَإِنَّهَا الَّذِي أعطيها

يا د هغه وارثانو ته نو هغه عمرى د هغه سړي شي چې چاته هغه ورکړى شوي ده (يعنې هغه شى د هغه

لَا ترجع إِلَى الَّذِي أَعْطَاهَا لِأَنَّهُ أَعْطَى عَطَاءً

سړي ملکيت شي) د عمرى ورکونکې په ملکيت کې بېرته نشي راتللى ځکه ورکونکې داسې ورکړى

وَقَعَتْ فِيهِ الْمَوَارِيث .(١)

دى. چې په هغې کې ميراث جاري شي.

## د عمرى باره کې د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ دليل

﴿٥﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : إِنَّمَا الْعُمْرَى الَّتِي أَجَازَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ اَنْ

جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عمرى په صورت کې دا جائز ګڼلي دى هغه دا چې مالک

يَقُول : هِيَ

(يعنې ورکونکى) داسې ووايي چې دا شى (ستا د ژوند پورې) ستا دى او (ستا د مرګ نه وروسته)

لِعَقِبِكَ فَأَمَّا إِذَا قَالَ : هِيَ لَكَ مَا عِشْتَ

ستا د وارثانو دى او که فقط دا ووايي چې دا عمرى ستا د ژوند پورې ستا لپاره ده نو په دې صورت کې

فَإِنَّهَا تَرْجِعُ إِلَى صَاحبهَا .(٢)

(د هغه سړي د مرګ نه وروست) هغه عمرى (يعنې د ورکونکې) په ملکيت کې بېرته راتللى شي.

**توضيح**: دا حديث د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ مستدل دى چې عمرى بېرته د معمر ملکيت کې راتللى شي. د جمهورو فقهاؤ دليل د دينه مخکې په حديث نمبر ۳ او حديث نمبر ۴ کې دى. د امام مالک روايت د هغې خپل قول دى. مرفوع حديث نه دى. د هغې خپل اجتهاد دى. لهذا دا روايت د مرفوع احاديثو مقابله نه شي کولي.

---

(١) أخرجه مسلم في صحيحه ١٢٤٨/٣ رقم الحديث ٣١ ـ ١٦٢٥

(٢) أخرجه مسلم في صحيحه ١٢٤٦/٣ رقم الحديث ٢٣ ـ ١٦٢٥.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د عمرى او رقبى نه د ممانعت وجه

| |
|---|
| ﴿۶﴾ عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ: لَاترقبوا أَو لَا تُعْمِرُوا |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل كوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل چې مه رقبى كوئ او مه عمرى |
| فَمَنْ أُرْقِبَ شَيْئًا أَوْ أُعْمِرَ فَهِيَ |
| كوئ. ځكه كوم شى چې (يعنې مثلاً كور يا زمكه) د رقبى يا عمرى په توګه وركړې شي. نو هغه د |
| لِوَرَثَتِهِ .[1] |
| هغه د وارثانو ملكيت كې لاړه شي. |

**توضيح: لاترقبوا:** رقبى هم د عمرى پشان ده د باب **افعال** نه استعمالېږي. **ارقاب** د انتظار او د نګرانۍ په معنى كيدى. د رقبى مفهوم او تعارف دا دى چې مثلاً يو سړى وايي چې دا كور زه تاله دركوم كه چرې ته ... مخكې مړ شوي او دا كور به بيا زما وي. او كه زه مخكې مړ شوم او بيا به دا كور ستا شي. نو په دغه صورت كې به هر ملګري د بل ملګري د مرګ انتظار كوي. چې دا به كله مري چې دا كور ماته ملاوو شي. پدې حديث كې د رقبى او عمرى نه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع كړېده. حال دا چې د دينه مخكې احاديثو كې د عمرى جواز بيان شوى دى؟د دې جواب دا دې چې دلته نهى ارشادي دى چې د يو مصلحت د لاندې دى. هغه دا چې د رقبى او عمرى سره بالكليه كور د انسان لاس نه وځي. نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا لاربنونه وكړه چې تاسو په رقبى او عمرى كې د جلتى نه كار مه اخلئ ځكه كه رقبى او عمرى كوئ نو كور به هميشه ستاسو د لاس نه ووځي. سبا به ضرورت شي نو تاسو به پريشانه شئ. نو ځكه ښه په غور او فكر سره اقدام وكړئ. راتلونكې حديث نمبر ۸ كې دا علت او مصلحت ذكر دى چې د رقبې حكم هم د عمرى پشان عطيه او د هبه دى. خو په فقهى تناظر كې رقبى د عمرى نه څه بدله ده. هغه داسې چې امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ، امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزد رقبى د عمرى پشان ده. چې چا خپل كور د رقبى په توګه وركړو نو هغه به د هغه سړي او د هغې د وارثانو شي بېرته به نه وركولى كېږي د امام ابو حنيفه

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/ ۸۲۰ رقم الحديث: ۳۵۵۶

رَحِمَهُ اللّٰهُ او د امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ او د امام محمد رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد رقبی باطله ده. یعنې هغه شی به رقبی کونکې په ملکیت کې پاتې کېږي. (المرقات ۶/۲۰۳)

## عمری او عقبی جائز ده

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ: اَلْعُمْرَى جَائِزَةٌ لِأَهْلِهَا |
| جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل عمری جائزده د عمری والاو |
| وَ الرُّقْبَى |
| لپاره (يعنې کوم سړی ته چې څه شی د عمری په توګه ورکړل شو نو دا د هغه لپاره جائز دی) او رقبی د |
| جَائِزَةٌ لِأَهْلِهَا .[1] |
| رقبی والاو لپاره جائز دی يعنې کوم شی چې چا ته د رقبې په طور ورکړی شو نو هغه د هغه لپاره جائز دی. |

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| ﴿۸﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: أَمْسِكُوا أَمْوَالَكُمْ عَلَيْكُمْ |
| جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل تاسو خپل مال د خپل ځان سره کيږدی، هغه |
| لَا تُفْسِدُوهَا فَإِنَّهُ مَنْ أُعْمِرَ عُمْرَى فَهِيَ |
| مه ضايع کوی ځکه کوم سړی چې چا ته خپل کوم شی د عمری په توګه ورکړي نو هغه شی (کور يا زمکه) |
| لِلَّذِي أُعْمِرَ حَيًّا وَ مَيِّتًا |
| چې د عمری په طور ورکړی شوي وي د ژوند او د مرګ په دواړو حالت کې به د هغه سړی ملکيت وي |
| چا ته چې هغه د عمری په طور ورکړی شوی (او دا چې تر کوم وخت پورې هغه ژوندی وي نو خپله د |
| وَلِعَقِبِهِ .[2] |
| هغه شي مالک وي او د هغې د مرګ نه وروسته) بيا د هغه اولاد د دې مالک وي. |



(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۸۲۱ رقم الحديث: ۳۵۵۸

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۲۴۶ رقم الحديث: ۲۶/۱۶۲۵.

# باب (من الملحقات)

## د تېر شوي باب د متعلقاتو بيان

دا باب بغير د عنوان نه دى خو په دې کې چې کوم احاديث راوستلى شوي دي د هغې تعلق د باب العطايا سره دى. نو ځکه د دې باب حديثونه د باب العطايا سره ملحق ګڼلى شوي دي. پدې باب کې نسبتاً د وړې عطايا ذکر دى. چې په هغې سره مسلمانانو ته دا تعليم ورکولى کېږي. چې کله عطيه خوشګواره وي نو اګر که هغه مړه وي خو بېرته ورکول ندې پکار. بيا د پلار له اړخه اولاد ته عطيه کولو بيان او عطيه د بېرته اخستلو مذمت دى. همدغه شان د تحفي تحائف فضيلت او ترغيب باندې دا باب مشتمل دى. ګويا کې پدې باب کې د عطايا آداب او فضائل او مسائلو بيان دى.

## الفصل الاول

### د خوشبو او ګل تحفه بيرته مه ورکوى

| |
|---|
| ﴿١﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ عُرِضَ عَلَيْهِ رَيْحَانٌ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم سړى ته چې پيش کړې شوه خوشبو |
| فَلَا يَرُدُّهُ فَإِنَّهُ خَفِيفُ الْمَحْمَلِ |
| (دتحفي په توګه)نو هغه دې دا بېرته نه ورکوي ځکه(اول خو)دا سپک(ډير وړوکى احسان) دى.او |
| طَيِّبُ الرِّيحِ .[1] |
| (دويم دا چې) هغه يوه ښه خوشبو ده. |

**توضيح**:خوشبو او ګل تحفه يوه وړه شان تحفه هم وي او خوشګواره هم وي. او چې جاته ورکړې کېږي د هغې يو اعزاز هم وي. نو دغه شان شى برته ورکول پکار ندي.

| |
|---|
| ﴿٢﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ لَا يَرُدُّ الطِّيبَ.[2] |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د خوشبو (تحفه) بېرته نه ورکوله. |

---

(١) أخرجه مسلم في صحيحه ١٧٦٦/٤ رقم الحديث: ٢٢٥٣/٢٠.

(٢) أخرجه البخاري في صحيحه ٣٧٠/١٠ رقم الحديث :٥٩٢٩

## په هبه کې د رجوع مسئله

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلْعَائِدُ فِي هِبَتِهِ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل هبه کونکې شی بېرته اخستونکی دهغه |
| كَالْكَلْبِ يَعُودُ فِي قَيْئِهِ لَيْسَ لَنَا مَثَلُ السَّوْءِ .[٣] |
| سپي په شان دی چې خپل قئ څټي او زمونږ لپاره دا مناسب نده چې مونږ ته بد مثال سره تشبيه راکړی شي |

**توضيح: کالکلب:** نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مسلمانانو ته په يو اعلی معيار باندې د اوسيدلو ترغيب ورکړل دی او همدغه نشادهی يې فرمايلي چې د مسلمانانو مقام او شان دا ډير لوي دی نو ځکه هغوی ته داسې هيڅ کله کول پکار نه دي چې په هغې سره د هغوی په قومي شرافت باندې داغ پريوځي او په هغوی باندې يو بد مثال جوړ شي نو ځکه مسلمانانو ته حکم کړی شوی دی چې کله تاسو چاته تحفه يا هديه ورکړې نو هغه بېخي مه را واپس کوئ دا حرکت د انسان عظمت او شرافت لپاره داسې قبيح دی لکه څنګه چې سپی اول خوراک وکړي او بيا قئ وکړي او هغه په څټلو څټلو وخوري. د يو شريف انسان لپاره داسې مثال يو بد مثال دی. دا ددې حديث اخلاقي اړخ دی. اوس د دې فقهي اړخ څه دی چې آيا کوم سړی چاته څه شی هديه او يا هبه کوي نو هغه په هغې کې رجوع کولی شي او که رجوع نه شي کولی. پدې کې تفصيل دا دی چې په صدقه کې بالاتفاق رجوع ناجائز ده. خو د هبې په رجوع کې د فقهاؤ اختلاف دی. (المرقات ٦/٢٠٦)

**د فقهاؤ اختلاف:** د ائمه ثلاثو په نزد په هبه کې رجوع کول نه قضاءً جائز دی او نه ديانةً جائز دی. خو امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې پلار که ځوي ته هبه وکړه او بيا يې بېرته اخلي نو د هغې لپاره د ضرورت په وخت کې رجوع کول جائز دي. د احنافو په نزد اوه (۷) موقع داسې دي چې په هغې کې د هبې کولو نه وروسته د رجوع کولو ګنجائش نشته دی. د هغه مواقع اړخ ته د دمع خزقه د مجموعه حروفو ته اشاره کېږي. نو د حرف دال نه موهوب شي کې د زيادت متصله اړخ ته اشاره ده. يعنې موهول له پدې کې خپل مال شريک کړی دی. اوس واهب رجوع نشي کولی. د حرف ميم نه واهب يا موهوب له د مرګ اړخ ته اشاره ده. د هغه مرګ په صورت کې رجوع نشي کيدی. د حرف عين نه بالعوض اړه ته اشاره ده. يعنې واهب د هبه کولو په عوض څه معاوضه اخستي ده. نو اوس رجوع ممکن نده. د حرف خا نه خروج اړخ ته اشاره ده. چې به شوی شی د لاس نه وتلی دی. وس رجوع نه

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٢٣٤/٥ رقم الحديث :٢٦٢٢، ومسلم في صحيحه ١٢٤٠/٣ رقم الحديث: ١٦٢٢/٥.

شي کولی د حرف زا نه د زوجین هبه اړخ ته اشاره ده. چې ښځې او میړه یو بل ته هبه کړلو. پدغه صورت کې رجوع نه کېږي. د حرف قاف نه قرابت اړخ ته اشاره ده. او د قرابت نه محرمیت د قرابت مراد دی لکه پلار ځوي، مور ځوي، ورور خور پدغه صورت کې د هبه نه رجوع کول جائز نه دي. د حرف هـ نه هلاکت اړخ ته اشاره ده چې موهوب شی هلاک شو اوس رجوع امکان نه لري. د دې اوو (٧) صورتونو نه بغیر د احنافو ائمو په نزد رجوع کول جائز دي خو مکروه دي.

**دلائل**: جمهورو فقهاؤ د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روایت نه استدلال کړی دی. چې په هغې کې هبې ته د رجوع کولو تشبیه د سپي د قئ او د هغې د څټولو سره ورکړی شوي ده. ښکاره خبره ده چې دا یو قبیح او حرام کار دی. لهذا رجوع في الهبه حرام دی. (المرقات ٦/٢٠٦)

د احنافو ائمو د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مرفوع روایت نه استدلال کړی چې د هغې الفاظ دا دي "**الرجل احق بهبته مالم یثب منها**". یعني که هبه بالعوض نه وي نو واهب خپل هبه کې د رجوع کولو ډیر حق لري. د احنافو دویم دلیل د حضرت سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مرفوع حدیث دی. چې د هغې الفاظ دا دي "**اذا کانت الهبة لذی رحم محرم لم یرجع فیها**" **(مستدرك حاکم بیهق)** د دې حدیث نه معلومه شوه چې د قرابت نسبتي په صورت کې هبه کې رجوع جائز نده ګیني ګنجائش شته دی.

**جواب**: جمهور فقهاؤ د زیر بحث حدیث نه استدلال کړی احناف دا په دیانت باندې حمل کوي. پدې کې د رجوع فی الهبه نهی او ممانعت نشته دی. فقط د دې قباحت اړخ ته یې اشاره شوي ده. او دا قباحت د احنافو په نز هم شته دی. مګر د کراهت تحریمي په صورت کې دی. ښخي د حرامو په صورت کې ندی. ځکه د دې حدیث نه حرمت نه څنګه ثابت کیدلی شي. دا چې د سپي د حرمت او حلت څه قانون نشته دی. دا فقط د شناعت او قباحت اړخ ته اشاره ده. بهرحال پدې حدیث باندې احناف هم عمل کوي فقط په اجتهادي رنګ روغن کې فرق دی هغوی ورته حرام وایي او دوي ورته مکروه تحریمی وایی.

## د یو شئ په ورکولو کې په اولاد کې فرق کول په کار نه دي

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ أَنَّ أَبَاهُ أَتَى بِهِ إِلَى رَسُولِ |
| دنعمان بن بشیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې منقول دي چې (یوورځ) دا خپل پلار (بشیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) راوستود رسول |
| اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : إِنِّي نَحَلْتُ ابْنِي هٰذَا غُلَامًا فَقَالَ: |
| الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته اووي ویل ما خپل ځوي (نعمان) ته یو غلام ورکړی دی نبي عَلَيْهِ السَّلَام ورته وفرمایل |

أَكُلَّ وَلَدِكَ نَحَلْتَ مِثْلَهُ ؟ قَالَ : لَا قَالَ :

آیا تا خپل ټولو ځامنو ته دغه شان یو یو غلام ورکړی دی؟ هغه وویل چې نه؟ نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمایل

فَأَرْجِعْهُ . وَ فِي رِوَايَةٍ : أَنَّهُ

نو بیا (ددې نعمان) نه هم غلام بېرته واخله. په یو روایت کې دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام (د نعمان پلار) ته

قَالَ : أَيَسُرُّكَ أَنْ يَكُونُوا إِلَيْكَ فِي الْبِرِّ سَوَاءً ؟

و فرمایل چې آیا ستا داسې خوښیږي چې ستا ټول زامن ستا په نظر کې د نیکۍ په اعتبار سره یو شان وي

(یعنې آیا ته دا خوښوی چې ستا ټول زامن ستا سره یو شان ښه رویه وکړي او ټول ستا تابعداري او ستا

قَالَ : بَلَى قَالَ :

تعظیم وکړي) نو هغه وویل چې آو! نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمایل چې په دغه صورت کې (چې ته د خپلو ټولو

فَلَا إِذَنْ . وَ فِي

ځامنو نه یو شان د ښې رویې ارمانجن یې) فقط خپل یو ځوي (نعمان) ته غلام مه ورکوه، په یو بل

رِوَايَةٍ : أَنَّهُ قَالَ : أَعْطَانِي أَبِي عَطِيَّةً فَقَالَتْ عَمْرَةُ بِنْتُ رَوَاحَةَ :

روایت کې دي چې نعمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې (یو ځل) زما پلار ماته یو شی راکړو. نو وویل عمره بنت

لَا أَرْضَى حَتَّى

(زما مور زما پلار بشیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) ته چې زه پدې باندې تر هغه وخت پورې رضامنده نه یم چې تر څو

تَشْهَدَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَأَتَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

پورې ته دې (هبه) باندې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ گواه نکړې. نو بشیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغي نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته

فَقَالَ : إِنِّي أَعْطَيْتُ ابْنِي مِنْ عَمْرَةَ بِنْتِ رَوَاحَةَ عَطِيَّةً

او وې ویل چې ما خپل زوي (نعمان) ته چې د عمره بنت رواحه د خیټې نه دی، یو څه ورکړي دي او عمره

فَأَمَرَتْنِي أَنْ أُشْهِدَكَ يَا رَسُولَ اللهِ

بنت رواحه ماته ویلي چې په دې هبه باندې تا گواه کړم یا رسول الله! نبي عَلَيْهِ السَّلَام چې دا واوریدل نو

قَالَ : أَعْطَيْتَ سَائِرَ وَلَدِكَ مِثْلَ هٰذَا ؟

وې فرمایل چې څنگه تا دې یو زوي ته غلام ورکړی آیا دغه شان دې نورو ځامنو ته هم یو یو غلام ورکړی؟

| |
|---|
| قَالَ : لَا قَالَ : فَاتَّقُوا اللهَ وَ اعْدِلُوا |
| هغه وويل چې نه نو نبي كريم ﷺ وفرمايل چې د الله تعالى نه وويرېږه او انصاف وكړه د خپل |
| بَيْنَ أَوْلَادِكُمْ . قَالَ : فَرَجَعَ |
| اولاد په مينځ كې نعمان رضي الله عنه وايي چې زما پلار (چې د نبي عليه السلام دا خبره واوريده) بېرته راغلو |
| فَرَدَّ عَطِيَّتَهُ . وَ فِي رِوَايَةٍ : أَنَّهُ |
| او كوم شى چې يې ماته راكړى وو بېرته يې واخيستلو. په يو بل روايت كې دي چې نبي عليه السلام (چې |
| قَالَ : لَا أَشْهَدُ عَلَى جَوْرٍ .[1] |
| د بشير رضي الله عنه دا خبره واوريده) وي فرمايل: "زه په ظلم باندې گواه نه جوړېږم. |

**توضيح:نحلت ابنى:** نحل د **عطيه** او **هبه** په معنى دى. دلته عطيه كونكى پلار حضرت بشير رضي الله عنه دى او چې كوم ځوي ته عطيه كول غوښتل د هغې نوم حضرت نعمان رضي الله عنه دى. هغه خپله قصه پدې حديث كې بيانوي. د بشير د ښځې نوم عمره بنت رواحه دى نعمان د هغې دخيټې نه ؤ. د بشير د بلي ښځې نه د نعمان ناسكه ورونه وو. حضرت عمرة رضي الله عنها غوښتله چې د دې د ځوي عطيه باندې نبي كريم ﷺ تصديق او تصويب وي. نو ځكه حضرت بشير رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ د دې باره پوښتنه وكړه. نبي كريم ﷺ چې د هغې نه معلومه كړله چې د نور اولاد ته دي هم دغه عطيه وركړي ده؟ چې كله پته ولګيده چې نه يې ده وركړي نو نبي كريم ﷺ د تصديق او تصويب نه انكار وكړو. اوس پدې باندې د ټولو فقهاؤ اتفاق دى. چې اولاد په يو شي وركول كې برابري كول مستحسن او مستحب دي فرق كول پكار نه دي. خو آيا امتياز كول حرام دي يا مكروه نو په دې كې د فقهاؤ اختلاف دى. (المرقات ۶/۲۰۷)

**د فقهاؤ اختلاف:** د امام احمد بن حنبل رحمه الله مسلك دا دى چې دغه شان امتياز كول حرام دي. خو جمهور فقهاء وايي چې دغه شان امتياز كول حرام نه بلكې مكروه دي.

**دلائل** : امام احمد رحمه الله د زير بحث حديث نه استدلال كوي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل "**لااشهد على جور**" جور ظلم ته وايي او ظلم حرام دى. لهذا دا امتياز حرام دى. جمهور فقهاؤ پدې

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۱۱/۵ رقم الحديث :۲۵۸۷، ومسلم في صحيحه ۱۲۴۱/۳ رقم الحديث: ۱۶۲۳/۹.

واقعه کې د يو جملې نه استدلال کړی دی چې نبي کريم ﷺ و فرمايل "**فأشهد عليه غيري**" يعنې زما نه بغير پدې باندې بل څوک ګواه کړه. که چرې دا امتياز حرام وی نو نبي کريم ﷺ به قطعاً اجازت نه وي ورکړی. خو علامه طيبي رحمه الله ليکلي چې د حضرت ابوبکر رضي الله عنه په خپل اولاد کې حضرت عائشه رضي الله عنها ته نور اولاد باندې ترجيح ورکړې وه. حضرت عمر رضي الله عنه خپل زوي عاصم ته ترجيح ورکړې وه. همدغه شان حضرت عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه د ام کلثوم لور ته په نور اولاد باندې ترجيح ورکړې وه که دا بېخي حرام وي نو دي جليل القدر صحابوو به کله هم داسې نه کړي.

**جواب:** علامه طيبي او علامه نووي رحمه الله وايي چې په کوم حديث کې د جور لفظ راغلی دی. نو دا د حرمت لپاره متعين نه دی. بلکې څنګه چې په حرام باندې د دې اطلاق کېږي. **همدغه شان په** مکروه باندې هم د دې اطلاق کېږي. (المرقات ۶/۲۰۸)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

| |
|---|
| ﴿۵﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا يَرْجِعُ أَحَدٌ |
| عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما وايي چې نبي کريم ﷺ و فرمايل چې واپس دې نه اخلي هيڅ يو کس |
| فِيْ هِبَتِهِ إِلَّا الْوَالِدُ مِنْ وَلَدِهِ . (۱) |
| خپله هبه (يعنې بېرته اخستل يې مناسب نه دي) په غير د پلار نه چې دا هبه اخيستې شي د خپل ځوي نه |

## عطيه ورکول او بېرته اخيستل د توافق نه خلاف دی

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ وَابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : لَا يَحِلُّ |
| ابن عمر رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنهما روايان دي وايي چې نبي کريم ﷺ و فرمايل نه دي حلال |
| لِلرَّجُلِ أَنْ يُعْطِيَ عَطِيَّةً ثُمَّ يَرْجِعَ فِيْهَا إِلَّا |
| د هيڅ يو کس لپاره چې هغه چاته خپل يو شی ورکړي. او بېرته يې ترې نه واخلي خو دا ده چې واپس |
| الْوَالِدَ فِيْمَا يُعْطِيْ وَلَدَهُ وَ مَثَلُ الَّذِيْ يُعْطِي الْعَطِيَّةَ |
| اخيستې شي خپل پلار هغه شی چې هغه يې ځوي ته ورکړی وي او کوم سړی چې چاته څه شی ورکړي |

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۶/۲۶۴ رقم الحديث :۳۶۸۹.

ثُمَّ يَرْجِعُ فِيهَا كَمَثَلِ الْكَلْبِ أَكَلَ حَتَّى إِذَا

او بېرته يې ترې نه واخلي نو دده مثال د هغه سپي په شان دی چې (په مړه خېټه) يې وخوري او بيا يې

شَبِعَ قَاءَ ثُمَّ عَادَ فِي قَيْئِهِ .[1]

خېټه ډکه شي او بيا قئ وركړي او بيا يې څټي.

## د تحفې بدل كې تحفه وركول په كار دي

﴿۷﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ : أَنَّ أَعْرَابِيًّا أَهْدٰى لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بَكْرَةً

ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې يو بانډچي نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يو ځوانه اوښه د هديې په توګه راوړه نو

فَعَوَّضَهُ مِنْهَا سِتَّ بَكَرَاتٍ فَتَسَخَّطَ

نبي عَلَيْهِ السَّلَام هم هغه بانډچي ته د هدي په توګه شپږ اوښې وركړي خو هغه بانډچي بيا هم خوشحاله نه شو

فَبَلَغَ ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ أَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ :

كله نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خبر شو نو اول د الله تعالى حمد او ثناء بيان كړه د هغې نه وروسته يې وفرمايل

إِنَّ فُلَانًا أَهْدٰى إِلَيَّ نَاقَةً فَعَوَّضْتُهُ مِنْهَا سِتَّ بَكَرَاتٍ

چې فلاني سړي ماته د هدي په توګه يوه اوښه راوستي وه ما د هغې په بدل كې شپږ اوښې وركړي مګر

فَظَلَّ سَاخِطًا لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ لَا أَقْبَلَ هَدِيَّةً إِلَّا مِنْ قُرَشِيٍّ أَوْ أَنْصَارِيٍّ أَوْ ثَقَفِيٍّ أَوْ دوسي[2]

هغه بيا هم خوشحاله نشو نو ما د اراده كړې چې زه به تحفه نه قبلوم په غير د قريشي، ثقفي او دوسي نه

**توضيح: لااقبل هدية:** د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو عادت مبارك ؤ چې د تحفي په بدل كې به يې تحفه وركوله بلكې اكثر به يې د هغې نه څو چنده ډېره وركوله. يو ځل يو بانډچي نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يو ځوانه اوښه په تحفه كې وركړه. نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په تحفه كې ورته شپږ اوښې وركړي. خو بانډچي خوشحاله نشو چې كله نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خبر شو. نو بيا يې خطبه وويله او وي فرمايل چې ما اراده كړي ده چې د هيچا تحفه قبوله نكړم (ځكه خلكو خو دا د تجارت ذريعه جوړه كړه) خو يو څو قبائل دي چې هغه د زړه د اخلاص نه بغير د حرص او غرض نه تحفې وركوي. فقط د هغوی

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۸۰۸/۳ رقم الحديث ۳۵۳۹.

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۸۰۷/۳ رقم الحديث ۳۵۳۷.

تحفي به قبلو مه. په هغې د قريشو خاندان دی. چې فياض دی. بل انصار دي. دريم د دوس قبيلې خلک دي دادلوی همت والادي چې ﴿وَلَا تَمْنُن تَسْتَكْثِرُ﴾ باندې عمل کونکې دي (المرقات ۶/۲۱۱)

## د والې اظهار کولو باندې د محسن شکر ادا کول په کار دي

| ﴿۸﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ: مَنْ |
|---|
| جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې کوم سړی ته |
| أُعْطِيَ عَطَاءً فَوَجَدَ فَلْيُجْزِ بِهِ |
| يو شی (د هدي په طور) ورکړی شي او هغه د هغې په بدله قادر وي نو هغه ته پکار ده چې د هغې بدله |
| وَ مَنْ لَمْ يَجِدْ فَلْيُثْنِ |
| ورکړي او کوم سړی چې په بدلې ورکولو قادر نه وي نو د هدي ورکونکې تعريف او توصيف دي وکړي |
| فَإِنَّ مَنْ أَثْنَى فَقَدْ |
| (او د هغې د ورکړی شوي هدي اظهار دي وکړي) ځکه چا چې د خپل محسن تعريف وکړو نو ګويا کې |
| شَكَرَ وَ مَنْ كَتَمَ |
| هغې د هغه شکر ادا کړو (يعنې في الجمله د هغې بدله يې ورکړه) او چا چې احسان پټ کړو (يعنې |
| فَقَدْ كَفَرَ |
| نه خوې څه ورکړل او نه يې په تعريف سره د هغې بدله ورکړه) نو هغه کفران نعمت وکړو او (ياد ساتې) |
| وَ مَنْ تَحَلَّى بِمَا لَمْ يُعْطَ كَانَ |
| کوم سړی چې خپل ځان په يو شي سره آراسته کړي. چې هغه ده ته نه وي ورکړی شوی نو د ده مثال د |
| كَلَابِسِ ثَوْبَيْ زُورٍ . [1] |
| دروغو د کي جامي اغستونکي دي. |

**توضيح:** وجد: يعنې که مالي وسعت وي نو هغه ته پکار ده چې د مالي احسان بدله په مالي احسان سره ادا کړي ځکه ﴿هل جزاء الاحسان الا الاحسان﴾ وارد دی. او که مالي وسعت نه وي. نو په ژبې

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۵/۱۵۸ رقم الحديث: ۴۸۱۳.

سره دي د خپل محسن تعریف او توصیف وکړي. دا هم د شکر قائم مقام دی. ځکه د شکر مفهوم دا دی چې په زړه کې محبت وي. په ژبه مدحت وي او په لاسونو کې خدمت وي. نو زباني تعریف هم د شکر یو شاخ دی. **کتم**: یعنې نه یې تعریف وکړو او نه یې د محسن شکر ادا کړو او نه یې د هغه د احسان چرته تذکره وکړه نو په اصل کې دهغه د احسان ناشکري وکړه.

**کفر**: د کفر مطلب نا قدري، نا شکري او کفران نعمت دی.

**تحلی**: د ښائسته کولو په معنی دی یعنې ځان پرې آراسته کړي په هغه شي دي چې هغه هغې ته ندی ورکړی شوي. مثلاً عالم ندی مگر د علماوو رنگ روغن یې اختیار کړی دی. یا یې د ځان نه پیر جوړ کړی دی مگر خپله ټهګ دی یا جاهل دي خو شان شوکت یې داسې دی چې یو لوي تعلیم یافته ښکاري یعنې دیني او دنیوي صفت او کمال داسې ښکاره کوي چې ګویا کې هغه د دې متصف دی حالانکه هغه د دې صفت نه بالکل خالي دي په حقیقت کې هغه یو دهوکه باز دی .ویلي شي چې عربو کې یو سړی ؤ ډېره ښه جامه به یې اغوسته پاس اولاندې به یې دوه قمیصونه اغوستل دې لپاره چې خلک دهغه په خبره ښه اعتبار وکړي مگر ؤ دروغژن نونبي عَلَيْهِ السَّلَام دهغه سره تشبیه ورکړي ده بهرحال داسې دهوکه کول پکار نه دي یو متل دی چې **من تحلی بغیر ما فیه فضحه الامتحان**، چا چې ځان ښائسته کړو په هغه څه سره چې هغه په ده کې نه وي نو رسوا به کړي ده لره امتحان، دغه شان په دوو ښو کې یوه ښځه د دروغو بلې ښې ته وایي چې ما ته خاوند دا راکړل حالانکه هیڅ یې نه وي ورکړې دا هم ښکته پورته د دروغو جامه ده. (المرقات ۶/۲۱۲)

## د محسن د عطیه په بدل کې دعاء کول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۹﴾وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ صُنِعَ إِلَيْهِ مَعْرُوفٌ |
| اسامه بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې دکوم سړي سره نیکي وکړی شي |
| فَقَالَ لِفَاعِلِهِ : جَزَاكَ اللهُ خَيْرًا |
| او هغه د احسان کونکې په حق دا دعا وکړي جزاک الله خیرا (یعنې الله تعالی دې تا ته د ښه غوره |
| فَقَدْ أَبْلَغَ فِي الثَّنَاءِ ".[1] |
| بدله درکړي) نو هغه د خپل محسن پوره تعریف وکړو. |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۳۳ رقم الحديث :۲۰۳۵

**توضيح:ابلغ في الثناء**: يعني د وركولو لپاره څه نښته دي نو د محسن په حق کې دعا کول پکار دي. خو د تعريفونو پُل تړل نه دي پکار. د اعتدال لاره باندې قائميدل پکار دي **جزاك الله خيراً** يا **جزاك الله فى الدارين خيرا** وويل شي نو د احسان پوره پوره حق ادا کړی شو. خو يو سړی دا هم نه وايي. دعا هم نه کوي نو په حقيقت کې هغه ناشکري کوي. او کوم سړی چې د خلکو شکر نه ادا کوي نو هغه د الله تعالى شکر هم نه ادا کړوي. لکه په بل حديث کې راروان دي.

| |
|---|
| ﴿١٠﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ لَمْ يَشْكُرِ النَّاسَ |
| ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې کوم سړی د خلکو شکر نه ادا کوي هغه |
| لَمْ يَشْكُرِ اللهَ . [1] |
| د الله تعالى (هم) شکر نه ادا کوي. |

## د انصارو احسان او مهاجرينو بدله

| |
|---|
| ﴿١١﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: لَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ الْمَدِينَةَ |
| انس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم (د مکې نه هجرت وکړو) مديني ته راغلو نو (يوه ورځ) د |
| أَتَاهُ الْمُهَاجِرُونَ فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ |
| مهاجرينو يو ټولګی د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو او وي ويل چې يا رسول الله! |
| مَا رَأَيْنَا قَوْمًا أَبْذَلَ مِنْ كَثِيرٍ وَلَا أَحْسَنَ مُوَاسَاةً |
| مونږ نه دي ليدلي هيڅ يو داسې قوم چې هغه په ډېره مالدارۍ کې ډېر مصرف وکړي او بنه ډېر خدمت |
| مِنْ قَلِيلٍ مِنْ قَوْمٍ نَزَلْنَا بَيْنَ أَظْهُرِهِمْ: |
| وکړي د کمې مالدارۍ په بدل کې د هغه قوم نه چې هغې ته مونږ راغلي يو هغوی (انصارو) مونږ د |
| لَقَدْ كَفَوْنَا الْمؤْنَةَ وَ أَشْرَكُونَا فِي الْمَهْنَأِ |
| خوارۍ نه خلاص کړو او په ټولو ګټو کې يې شريک کړو او اوس (د هغوی د قربانۍ جذبې کتلو سره) |

(١) أخرجه ابوداود في السنن ١٥٧/٥ رقم الحديث :٤٨١١

| حَتَّى لَقَدْ خِفْنَا أَنْ يَذْهَبُوا بِالْأَجْرِ كُلِّهِ فَقَالَ : لَا |
|---|
| مونږ سره دا ويره ده چې ټول ثواب د هغوی په برخه کې راشي؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل نه |
| مَا دَعَوْتُمُ اللهَ لَهُمْ |
| (يعني ټول ثواب به د هغوی به برنبه کې نه راځي) ترڅو چې د هغوی په حق کې د الله تعالى نه دعاء |
| وَ أَثْنَيْتُمْ عَلَيْهِمْ .[1] |
| غواړئ او د هغوی تعريف (يعني د نعمت شکر ادا) کوئ. |

**توضيح**: په مدينه منوره کې انصارو د مهاجرينو ډير لوي خدمت کړی وو. د هغې اظهار مهاجرينو د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخکې وکړلو. او دا خفگان يې ښکاره کړلو چې د هغوی د احسان په وجه زمونږ هجر او داسې نور اعمالو نيکۍ ټولې د هغوی په حق کې ونه ليکلی شي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورله اطمينان ورکړلو. چې داسې به نه کېږي. ترهغه چې تاسو د هغې تعريف کوئ. او د هغې په حق کې دعا کوئ او جزاک الله وايې. تو د هغوی د احسان بدله به ادا کېږي. او تاسو به ستاسو د عبادت بدله درکړی کېږي. او هغوی ته به ستاسو د نصرت ثواب ملاوېږي. الله تعالى کريم دی هغوی له به يې هم ورکړي او تاسو ته به يې هم درکړي. (المرقات ۶/۲۱۴)

**ابذل**: يعني ډير مصرف کونکې.

**من كثير**: د ډير مال نه يعني خپله مالداره وي. **مواسات**: همدردي او غمخواري ته وايي.

**من قليل**: يعني د کم مال په صورت کې يعني خپله فقير وي. (المرقات ۶/۲۱۴)

**المؤونة**: مشقت او محنت ته وايي يعني هغوی خپله خواري وکړه. زمونږ د طرف نه د هغوی خواري بس شوه. (المرقات ۶/۲۱۴)

**اشركونا في المهنأ**: يعني په راحت او آسانۍ او سهولت کې يې مونږ شريک کړو دا چې د خپلو پټو نيمه برنبه يې مونږ له بغير د مشقت نه تياره کړه او مونږ ته يې راکړه.

**مهنأ**: **ميم** او **نون** دواړو باندې زبر دی. آخر کې همزه ده. بغير د تعجب او د مشقت چاته د شي حاصليدو ته وايي دلته غله او ميوه مراد دي. (المرقات ۶/۲۱۴)

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٤/٦٥٣، رقم الحديث ٢٤٨٧.

## تحفې ورکولو سره عداوت لرې کېږي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : تَهَادُوا |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې په خپلو کې د تحفو |
| فَإِنَّ الْهَدِيَّةَ تُذْهِبُ الضَّغَائِنَ .[1] |
| لين دين کوئ، ځکه د تحفو اخستل او ورکول کينې لرې کوي. |

**توضيح**: الضائن: جمع ده د دې مفرد ضغينة ده. بغض او حسد او عداوت او کينې ته وايي.

## لږه ډالۍ هم سپکه مه ګڼئ

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : تَهَادَوْا |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل په خپل مينځ کې تحفې |
| فَإِنَّ الْهَدِيَّةَ تُذْهِبُ وَ حَرَ الصَّدْرِ وَلَا تَحْقِرَنَّ |
| ورکوئ او اخلئ، ځکه تحفې د سينو نه خيرن والې لرې کوي او (ياد ساتئ) حقيره مه ګڼي تحفه د يو |
| جَارَةٌ لِجَارَتِهَا وَ لَوْ شِقَّ فِرْسَنِ شَاةٍ .[2] |
| ګاونډي د بل ګاونډي په واسطه (يو کمتر شی) اګر که هغه د چيلۍ د نوک يوه ټوټه ولې نه وي. |

**توضيح**: وحر الصدر: هغه کينه او حسد ته وايي چې ډېره وي. **جارة**: د دې نه ګاونډی هم مراد کيدی شي او په بن باندې هم اطلاق کيدی شي هغه هم مراد کيدی شي.

**فرسن**: نوک ته وايي. د بېزې او د اوښ لپاره نوک همدغه شان دی لکه د اَسپي لپاره حافر دې نوک سره معمولي شان غوښه وي. د دې ذکر شوی دی. مراد ترينه معمولي عطيه ده. مطلب دا دی چې تحفه څومره هم معمولي وي نه دې هغه ورکونکې حقيره ګڼي او نه دې اخستونکې حقيره ګڼي. ځکه تحفه يو اعزاز او اکرام دی. د دينه د زړونو سخت غيظ او غضب لرې کېږي که دا غليظ او غضب د دوو بنو په مينځ کې ولې نه وي. (المرقات ۶/۲۱۵)

---

(۱) أخرجه الترمذي ٤ ٤٤١، رقم الحديث ۲۱۳۰

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ٤ ۳۸۳ ، رقم الحديث ۲۰۳۰

## درې شيان مه ردوئ

| ﴿١٤﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : ثَلَاثٌ |
|---|
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل درې شيان داسې دي چې دهغې د قبلولو نه |
| لَا تُرَدُّ الْوَسَائِدُ وَالدُّهْنُ وَاللَّبَنُ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ قِيلَ: أَرَادَ بالدهن الطيب[1] |
| انكار كول نه دي په كار : ١- بالخت . ٢- تيل . ٣: پئ ( شوده ). |

**توضيح**: لاترد: يعنې درې شيان داسې دي چې په هغې سره ځوک ستاسو اكرام كوي نو هغه مه رد كوئ. ځكه رد كول د خپل اكرام او اعزاز د ځان نه انكار كول دي چې مناسب نه دي يو بالخت دی. دويم په سر كې د اچولو تيل يا عطر دي. دريم پي دي. دا معمولي شان عطيې دی. په دې كې د انسان اعزاز او اكرام دی لهذا رد كول په كار ندي. د دهن نه تيل او خوشبو دواړه مراد اخستل كيدی شي. (المرقات ٦/٢١٦)

| ﴿١٥﴾ وَ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِذَا أُعْطِيَ |
|---|
| ابو عثمان نهدی رَحِمَهُ اللهُ (تابعي) روايت دی چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې كله دركړل شي |
| أَحَدُكُمُ الرَّيْحَانَ فَلَا يَرُدَّهُ فَإِنَّهُ |
| په تاسو كې چاته خوشبودار ګل (د تحفې او هديه په توګه) نو هغه د قبلولو نه انكار مه كوئ ځكه |
| خَرَجَ مِنَ الْجَنَّةِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ مُرْسلا[2] |
| هغه ګل د جنت نه راغلی دی. |

**توضيح**: **الريحان**: په مطلق خوشبودار ګل باندې د كشمالي اطلاق كيدی شي او د كشمالي ګل هم مراد اخيستی شي دا يو بوټی دی چې تخم ته يې تخم ملنګه وايي دا تخم د اسپغول حيثيت لري وړې وړې توري داني وي ځكه د دې بوټي پاڼي مګلو سره عامه خوشبو خوربږي. (المرقات ٦/٢١٦)

**من الجنة**: يعنې د هر ګل خوشبو د جنت د ګل پشان وي. يا د هر ګل جړله او اصل بنياد په جنت كې دی دا د جنت نموني دي نا اشنا دي ناقابل انكار دي. (المرقات ٦/٢١٦)

---

(١) أخرجه الترمذي في السنن ٥ ١٠٠ رقم الحديث ٢٧٩٠

(٢) أخرجه الترمذي في السنن ٥ ١٠٠ رقم الحديث ٢٧٩١

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

﴿۱۶﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : قَالَتِ امْرَأَةُ بَشِيرٍ : انْحَلِ ابْنِي غُلَامَكَ

جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د بشير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ښځې ده ته وويل چې ته زما ځوي (نعمان) ته خپل غلام هبه کړه

وَ أَشْهِدْ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَأَتَى

اوپدې باندې زما د اطمينان لپاره نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل ګواه جوړ کړه. نو نوراغې بشير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : إِنَّ ابْنَةَ فُلَانٍ

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته او وې ويل چې د فلاني لور (يعنې عمره بنت رواحه چې زما ښځه ده) دمانه

سَأَلَتْنِي أَنْ أَنْحَلَ ابْنَهَا غُلَامِي وَ قَالَتْ :

داخواهش وکړو چې زه د هغې زوي (نعمان) ته خپل غلام هبه کړم او دا يې هم وويل چې (د دې باره کې)

أَشْهِدْ لِي رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ :

زما د اطمينان لپاره نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ګواه کړه. دې اوريدو سره نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ و فرمايل چې

أَلَهُ إِخْوَةٌ ؟ قَالَ : نَعَمْ قَالَ : أَفَكُلَّهُمْ

آيا دده نور ورونه شته ؟ هغه وويل چې آو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل آيا تا ټولو ته دغه شان (يو يو غلام)

أَعْطَيْتَهُمْ مِثْلَ مَا أَعْطَيْتَهُ ؟ قَالَ : لَا قَالَ :

ورکړي دي ښکه چې هغه زوي (نعمان) ته ورکړي دي؟ هغه وويل چې نه نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ و فرمايل

فَلَيْسَ يَصْلُحُ هٰذَا وَ إِنِّي لَا أَشْهَدُ إِلَّا عَلَى حَقٍّ .[1]

دا مناسب نه دي او زه يواځې په حق خبره باندې ګواه کېږم.

## د نوي ميوي تحفه

﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُتِيَ بِبَاكُورَةِ الْفَاكِهَةِ

ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما وليدل چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته به کله نوي ميوه راوړې شوه نو (اول)

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۳ ۱۲۴٤ رقم الحديث ۱۹۰ ١٦٢٤

| وَضَعَهَا | عَلٰی | عَيْنَيْهِ | وَ | عَلٰی | شَفَتَيْهِ | وَ | قَالَ | : | اَللّٰهُمَّ | كَمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| به يې هغه ميوه (قبوله كړه) په خپل ستر ګو او شونډو به يې كيخوده او بيا به يې وفرمايل اى الله! | | | | | | | | | | |
| أَرَيْتَنَا | أَوَّلَهُ | فَأَرِنَا | آخِرَهُ | ثُمَّ | | | | | | |
| څنګه چې تا مونږ ته د دې ميوې ابتداء وخوده همدغه شان يې انتها هم راته وخايه. د دينه وروسته | | | | | | | | | | |
| يُعْطِيهَا | مَنْ | يَكُونُ | عِنْدَهُ | مِنَ | الصِّبْيَانِ.[1] | | | | | |
| به نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ميوه يو ماشوم ته وركړه كوم به چې دده په خوا كې ناست ؤ. | | | | | | | | | | |

**توضيح:بباكورة الفاكهة:** يعنې اول تيار شوي ميوه راغلي وي. باكوره د هر شي ابتداء ته وايي.

**وضع على عينيه:** دالله تعالى د نعمتونو اظهار او د هغې د قدرداني په توګه به نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه په خپلو سترګو باندې كيخودو. نن سبا خلك دومره بې ادبه شوي چې قرآن په سترګو باندې كيخودل بد ګڼي. او كه دا حديث چيرې د هغوى مخې ته راشي. نو هغوى به وايي چې دا حديث نه دى يا صحيح نه دى. **من الصبيان:** د ماشومانو په طبعيت كې د ميوو او د نورو شيانو ميلان ډير وي. نو ځكه به هغوى ته وركولو او يا به يې ځكه ماشومانو ته وركول چې ماشوم هم د هغه ماشوم پشان راغلى دى چې د يو چا د زړه ثمره ده. (المرقات ۶/۲۱۸)

**اللهم كما اريتنا اوله فارنا أخره:** كه چرې پدې جمله كې فقط د دنيوي نعمتونو او د ميووو بيان مقصد وي نو د آخره نه مراد د ميووو آخره برښه مراد ده چې څنګه د دې ميووو ابتداء راته خودلي ده. اى الله! په دنيا كې راته د دې انتها هم وخې. چې هميشه تر او تازه وي. او كه د اٰخر تعلق د آخرت د نعمتونو سره وي نو مطلب به دا وي چې مولائى كرم چې څنګه دې راته په دنيا كې دا نعمتونه وخودل همدغه شان يې راته په آخرت كې هم راوښايي. (المرقات ۶/۲۱۸)

بندۀ عاجز فضل محمد غفرله هم د الله تعالى د دې كتاب په توضيحاتو باره كې همدغه سوال كوي چې مولائى كريم! څنګه دې راته د توضيحاتو ابتدائى جلدونه وخودل، د دې پوره كولو توفيق راكړې او آخري جلد هم راوښايي. يوه مجربه دعا ده چې د هر مشكل لپاره ډېره مفيد ده. هغه دا ده:

**اَللّٰهُمَّ كَمَا سَهَّلْتَ عَلَىٰٓ اَوَّلَ هٰذَا الْاَمْرِ فَسَهِّلْ عَلَىٰٓ اٰخِرَهٗ.**

---

(۱) أخرجه البيهقي في الدعوات الكبير ۲/۱۹، رقم الحديث . ۴۳۹.

# باب اللقطة
## د لقطې بیان

**لقطه** (ورک شوی شی) پیش او قاف باندې زبر او جزم دواړو سره لوستلی کېږي. د محدثینو په نزد قاف ساکن لوستل ډېر مشهور دي. د لیدل شوي اوچتولو ته لقطه وایي. یو لفظ لقیط دی. هغه د لاوارث ماشومانو موندلو او ساتلو اوچتولو ته وایي. دلته په حدیث کې د دې بیان نشته دی. د لقطه شرعي فقهي حکم سره متعلق دلته څلور اهم مسائل نور دي. هغې طرف ته مختصرې اشارې کولو سره به د لقطه ټول باب حل شي. (المرقات ۶/۲۱۸)

**اوله مسئله: د تشهیر زمانه**: د لیدل شوي پروت شي اوچتول مستحب دي. خو پدې شرط چې د تشهیر اعتماد وي ګیني هملته پرېښودل بهتر دي. خو که د هغه شي د ضایع کېدلو خطر وي نو بیا اوچتول واجب دي. ګیني ګناهګار به وي. همدغه حکم د لقیط ماشوم هم دی. او د څاروي هم دی. د لقیط خرچه په بیت المال باندې ده. د څاروي خرچه د څاروي د منافعو نه ده. د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ اللهُ په د تشهیر څه موده مقرره نده بلکې مبتلی به په رائی باندې موقوف ده. د ائمه ثلاثو او د امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په نز د تشهریر موده یو کال ده. هغه که لګ وي یا که ډېر وي. دواړه فریقینو د احایثو نه استدلال کړی دی.

**دویمه مسئله: استعمال لقطه**: که د تشهیر نه وروسته هم مالک معلوم نشو نو که اوچتونکې فقیر وي نو د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او د امام ثوري رَحِمَهُ اللهُ په هغه کس یې خپله استعمالولی شي او که هغه مالداره وي نو په یو غریب دې صدقه کړي. د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نزد که مالداره وي او که غریب وي لقطه په ذاتي توګه استعمالولی شي. دواړو فریقینو د احادیثو نه استدلال کړی دی. (المرقات ۶/۲۱۹)

**دریمه مسئله: د حیوان لقطه**: د بېزي او یا د نورو څاروو په سنبالول او تشهیر کولو کې خو څه اختلاف نشته دی. خو که اوښ ملاوو شي نو د هغې سنبالول او لقطه کول څنګه دي. پدې کې د فقهاؤ اختلاف دی. د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په نز که د ورک شوي اوښ د ضایع کیدو خطر وي نو د هغې التقاط مستحب دی. د ائمه ثلاثو په نزد د اوښ لقطه کول خلاف اولی دی. (المرقات ۶/۲۲۱)

دا دومره سخت اختلاف ندی. نو ځکه احادیث او قیاس دي استعمال کړی شي. خو دومره خبره یقیني ده چې نن سبا خو اوښ لا څه چې خلک د دینه هم غټ شی وچتوی او پټ یې کړي. پاکستان کې د وزیراعظم بهټو صاحب په دور کې د ریل ګاړي انجن پټ کړی شوی وو. حضرت مفتی محمود رَحِمَهُ اللهُ به په جلسو کې فرمایل چې د دې غل دومره طاقتور وو چې د ریل ګاړي پټرۍ باندې به یې

داد پاکستان نه هندوستان ته وړی وي او خرڅ کړی به یې وي یا د ملک دننه د دې به د دې وسپني دومره لویه فابریکه وي چې هلته به یې د انجن وسپنه ویلي کړي وي او سریا به یې ترینه جوړه کړي وي. وي فرمایل چې په دواړو صورتونو کې حکومت غل دی. لهذا ذوالفقار علی بهټو غل دی.

**څلورمه مسئله: د حرم لقطه**: د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ‌اللهُ په نز لقطه که د حرم وي او که د حل وي. د دواړو حکم یو شان دی د ضایع کېدو دوېرې په خاطر اوچتول او تشهیر کول پکار دي د امام شافعي رَحِمَهُ‌اللهُ په نزد لقط نه اوچتول بهتره دي که چرې اوچته کړی شوه نو دائماً لازم ده. احنافو د حضرت عباس رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهُ او د حضرت عائشه رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهَا د روایت نه استدلال کړی دی چې هغه دا دی: "**ان حکم لقطة مکة کحکم سائر البلدان**". (زجاجة المصابیح ج۲ ص ۲۰۰)

شوافعو د مسلم د روایت نه استدلال کړی دی: "**ان رسول الله صلی الله علیه وسلم نهی عن لقطة الحجاج**" بهرحال د فساد او د احوالو د نظر لاندې فیصله کول پکار دي.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

## د ملتقط لپاره جامع قاعده

| |
|---|
| **﴿۱﴾ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ : جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَسَأَلَهُ** |
| زید بن خالد رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهُ وایي چې یو سړی د نبي کریم صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو او تپوس یې وکړو |
| **عَنِ اللُّقَطَةِ** |
| د نبي کریم صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ نه د لقطې باره کې (که لویدلې شی پیدا شي نو څه کول په کار دي) نبي کریم |
| **فَقَالَ : اعْرِفْ عِفَاصَهَا** |
| صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ وفرمایل چې اول خود دې ظرف معلوم کړی (یعني د غه شي په توته کې یا د څرمن کڅوره |
| **وَ وِكَاءَهَا ثُمَّ عَرِّفْهَا سَنَةً** |
| او یا بل څه کې وي) او د دې سربند معلوم وساتی. بیا تر یو کال پورې د دې تشهیر وکړئ (که یو کال |
| **فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا وَ إِلَّا فَشَأْنُكَ بِهَا .** |
| موده کې) که د دې مالک پیدا شو نو د غه شی هغه ته حواله کړی او که هغه رانغلو نو بیا یې خپله استعمال |
| **قَالَ : فَضَالَّةُ الْغَنَمِ ؟** |
| کړی. بیا هغه سړی د ورکې شوې بېزې باره کې پوښتنه وکړه (که چرې یوه ورکه شوې بېزه وي نو |

| |
|---|
| قَالَ : هِيَ لَكَ أَوْ لِأَخِيكَ أَوْ لِلذِّئْبِ |
| هغې سره څه وکړی شي) نبي کریم ﷺ و فرمایل هغه ستاده یاستا دوروره اویادلېوه ده ددې |
| قَالَ : فَضَالَّةُ الْإِبِلِ ؟ قَالَ : |
| نه وروسته دې سړی پوښتنه وکړه چې دورک شوي اوښ باره کې څه حکم دی؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمایل |
| مَا لَكَ وَ لَهَا ؟ |
| ستا د هغه سره څه کار دی (یعنې هغه مه نیسه ځکه هغه ضایع کیدونکی شی ندی نو ځکه د هغې د |
| مَعَهَا سِقَاؤُهَا وَ حِذَاؤُهَا تَرِدُ الْمَاءَ وَ تَأْكُلُ |
| نیولو ضرورت نشته دی) د هغې مشک او موزې د هغې سره دي د اوبو پورې تلی شي او خوړي شي د |
| الشَّجَرَ حَتَّى يَلْقَاهَا رَبُّهَا . (1) |
| بوټو پاڼې ترڅو چې هغه خپل مالک ته ونه رسېږي . |
| وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ : فَقَالَ : عَرِّفْهَا سَنَةً ثُمَّ اعْرِفْ وِكَاءَهَا وَعِفَاصَهَا ثُمَّ اسْتَنْفِقْ بِهَا فَإِنْ جَاءَ رَبُّهَا فَأَدِّهَا إِلَيْهِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) |

**توضیح: عفاصها:** ای دعاءها یعنې لوښي په نښه کې ساته دې د پاره چې د بل نه د علامت په پوښتنه کې صحیح اندازه وي.

**ووکائها:** وکاء سربند ته وایي. سر یې وپېژنې که چرې کڅوړه وي نو د هغې سرند څه شی دی. (المرقات ۶/۲۱۹)

**فعرفها:** یعنې که مالک راغلی نو هغې ته ورکړه ګینې تر یو کال پورې یې تشهیر وکړه. د جمهورو فقهاؤ او د امام محمد رَحِمَهُ اللهُ همدغه مسلک دی، خو د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او د امام ابویوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزد څه متیعنه موده نشته دی. بلکې د مبتلی به سړی اعتبار دی. ځکه د زیر بحث حدیث نه بغیر نورو احادیثو کې ځینې داسې دي چې په هغې کې مودي ذکر نشته دی. او په ځینو کې تر درې کالو پورې تشهیر دی. معلومه شوه چې د خاصې مودی تعین نشي کیدلی. تفصیل مخکې تېر شوی دی. (المرقات ۶/۲۱۹)

**والافشالك:** یعنې بیا ته پوهه شه او ستا کار پوهه شه. خپله یې وخوره یا یې بل له ورکه. د دې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵ ۹۱ رقم الحديث ۲۴۲۹، ومسلم في صحيحه ۳/۱۳۴۶ رقم الحديث: ۱/۱۷۲۲.

مسئلې تحقیق د دینه مخکې نو رو مسئلو د لاندې شوی دی. (المرقات ۶/۲۱۹)

**هی لك**: یعنې بېزه یو کمزوری ځاروی دی. که چرې ته سنبال نکړو نو ستا یو ورو به یې ونیسي با به یې لېوه وخوري. مطلب دا چې ته یې د لقطي په توګه سنبال کړه. (المرقات ۶/۲۱۹)

**معها سقائها**: یعنې د اوښ نیولو سره ستا څه کار دی د هغې سره د هغې مشکیزه شته دی. په صحراء کې ګرځي راګرځي. د اوبو ضرورت نشته دی. ځکه د اوبو ډکی د هغې سره شته دی. علماء لیکي چې اوښ تر پنځلس (۱۵) ورځو پورې تنده ساتلی شي. د خوراک هم هم څه چندان ضرورت نشته دی. ځکه ځټ یې وړد دی. د بوټو وچت خاښونو کې هم څریدلی شي. (المرقات ۶/۲۲۰)

**حذائها**: حذا بوټانو او موزو ته وایي . مراد ترینه د اوښ مضبوط تلې دي. لهذا هغه په خوراک څکاک او د درنداګانو نه ځان بچ کولو باني خود کفیل دی. یخني او ګرمي برداشت کولی شي. د شد دشتي الوتکه ده. هیڅ درنده هغه نشي ماتولی. (المرقات ۶/۲۲۰)

**استنفق**: یعنې ځاروي باندې د تشهیر تر ورځو پورې مصرف وکړئ او د همدغه ځاروی د عاید نه یې پوره کوی. (المرقات ۶/۲۲۰)

**ادها الیه**: که چرې شی موجود وي وریې کړه ګیني نرخ یې ادا کړه. امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ او امام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې لقطه د هغې د مالک په غوښتنه باندې ورکول واجب دي د څه ګواه ضرورت نشته دی. فقط علامات او نښناني ویل ضروري دي. احناف او شوافع وایي چې که چرې ملتقط ته یقین راغلو نو ورکول جائز دي سګر واجب نه دي واجب به هله وي چې مالک په داسې مال باندې ګواه تېر کړي. (المرقات ۶/۲۲۱)

## د تشهیر په نیت یې اوچت کړی ګیني خیانت دی

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ آوَى ضَالَّةً |
| زید رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کوم ګس (دچا) یو ورک شوی شی اوچت کړي |
| فَهُوَ ضَالٌّ مَا لَمْ يُعَرِّفْهَا .[1] |
| نو هغه ګمراه دی تر هغه چې هغه د هغې تشهیر ونه کړي. |

**توضیح**: چرته چې د لقط د نه اوچتول حکم په احادیثو کې راغلی دی. د دینه مراد همدغه دی. چې یو

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۳۵۱/۳ رقم الحديث: ۱۱۲۵/۱۲.

سړی خپله د خوړلو او پټولو لپاره او چتوي نو دا ګناه ده که د حفاظت لپاره د تشهير په غرض او چتوي نو بيا جائز دی.

## د حاجي لقط مه او چتوی

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عُثْمَانَ التَّيْمِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ نَهَى عَنْ لُقَطَةِ |
| عبدالرحمن بن عثمان تميمی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړې ده د او چتولو د لويدلي شيانو |
| الْحَاجِّ. [1] |
| د حاجيانو نه. |

**توضيح:** په مسئله نمبر ۴ کې د دې تحقيق تېر شوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د يو څو مهمو مسائلو ذکر

| |
|---|
| ﴿٤﴾ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ |
| عمرو بن شعيب د خپل پلار (شعيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نه او شعيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل نيکه (عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) |
| عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنَّهُ سُئِلَ عَنِ الثَّمَرِ الْمُعَلَّقِ |
| نه نقل کوي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه (بوټو باندې) د زوړندې شوي ميوو باره کې پوښتنه وشوه |
| فَقَالَ : مَنْ أَصَابَ مِنْهُ مِنْ ذِي حَاجَةٍ |
| نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې که چرې يو ضرورتمند څه ميوه (راوشکې) ويخوري او لمن ترې نه ډکوي |
| غَيْرَ مُتَّخِذٍ خُبْنَةً فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ وَ مَنْ خَرَجَ بِشَيْءٍ مِنْهُ فَعَلَيْهِ غَرَامَةُ مِثْلَيْهِ |
| نو پدې کې څه ګناه نشته او کوم سړی چې خوري يې هم او لمن هم ترې ډکوی نو په ده دوه چنده تاوان |
| وَ الْعُقُوبَةُ وَ مَنْ سَرَقَ مِنْهُ شَيْئًا بَعْدَ أَنْ يُؤْوِيَهُ الْجَرِينَ |
| او سزا ده او کوم سړی چې د دې ميوو نه څه پټې کړي چې په ګودام کې ايښودلی شوي وي او هغه پټ |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۳۵۱/۳ رقم الحديث: ۱۷۲٤/۱

فَبَلَغَ ثَمَنَ الْمِجَنِّ فَعَلَيْهِ الْقَطْعُ

کړې شوی مقدار د یو سپر (ډال) د نرخ برابروي نو د هغه دلاس د غوڅولو سزا ده راوي چې د ورک شوي

وَ ذَكَرَ فِي ضَالَّةِ الْإِبِلِ وَ الْغَنَمِ كَمَا ذَكَرَ غَيْرُهُ قَالَ :

اوښ او بېزي باره کې کومه پوښتنه او جواب ذکر کړی کوم چې نورو راویانو بیان کړی دی (او کوم

وَ سُئِلَ عَنِ اللُّقَطَةِ

چې مخکې تېر شوی دی) د هغې نه وروسته راوي وايي چې بیا د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د لقطه

فَقَالَ : مَا كَانَ مِنْهَا فِي الطَّرِيقِ الْمِيتَاءِ

باره کې تپوس وشو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې کومه لقطه په یوه داسې لاره باندې وموندلی شي

وَ الْقَرْيَةِ الْجَامِعَةِ فَعَرِّفْهَا سَنَةً

چې په هغې باندې تګ او راتګ کېږي او کلي او ابادي نږدې وي نو تر یو کال پورې تشهیر او اعلان یې

فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا فَادْفَعْهَا إِلَيْهِ وَ إِنْ لَمْ يَأْتِ فَهُوَ لَكَ

وکړي او بیا چې کله مالک راشي نو هغه لقطه هغه مالک ته وسپاری او که مالک رانغلو نو دا لقطه ستا

وَمَا كَانَ فِي الْخَرَابِ الْعَادِيِّ فَفِيهِ

ده (ته هغه استعمالولی شي) او هغه لطقه چې په شاړ ځای کې وموندلی شي نو د هغې او د زمکې

وَ فِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ . وَرَوَى أَبُو دَاوُدَ عَنْهُ مِنْ قَوْلِهِ: وَسُئِلَ عَنِ اللُّقَطَةِ إِلَى آخِرِهِ [1]

نه حاصلیدونکې معدن دا حکم دی چې د هغې پنځمه برخه د خدای په لاره کې ورکړی شي.

**توضیح: الثمر المعلق:** یعنې د بوټو میوه که مضطر سړی په حالت مخمصه کې وخوري د دې لپاره چې ځان بچ کړی نو اجازت دی. وروسته به یې نرخ ادا کړي یا په ابتداء د اسلام کې د هغې اجازت وو. بیا د نرخ د ادا کولو خبره راغله. دا ټول په هغه صورت کې دي چې دا سړی یې نه ذخیره کوي. که ذخیره کول یې شروع کړل یا یې کور ته وړل نو په هغې باندې به دوه چنده تاوان راځي او هغې ته به سزا هم ورکولی کېږي. د دوه چنده تاوان حکم د تغلیظ او تشدید او تهدید او د تنبیه په توګه

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۲/۳۳٦ رقم الحديث : ۱۷۱۰

دی. يا دا هم د اسلام ابتدائی حکم ؤ بیا منسوخ شو. اګر که حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د دې ظاهري حديث مطابق فيصله کوله. او د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ هم دغه مسلک وو. په لمن يا بل څه شي کې پټول او وړل. **والعقوبة**: د دې عقوبت نه مراد تعيزيز دی. چې د حاکم او قاضي په صوابدديد باندې موقوف دی. (المرقات ۶/۲۲۳)

**يؤيه الجرين**: جرين ګودام ته وايي. چرته چې غله کيخودلې کېږي. او د ايوا نه مراد تر هغه ځای پورې راوړل او محفوظ کولو ته وايي. **المجن**: ډال ته وايي. (المرقات ۶/۲۲۳)

**الطريق الميتاء**: يعنې په عامه لاره کې لقطه ملاوو شوه. ميتاء د تګ او راتګ عامي لاري ته وايی. (المرقات ۶/۲۲۴)

**القرية الجامعه**: يعنې د ښار د ابادۍ دننه ملاوو شي نو دا د لقطه په حکم کيدی. د دې تشهير ضروري دی. (المرقات ۶/۲۲۴)

**وماكان في الخراب**: يعنې ښخي شاړه او غير اباد ځنګل چې د قوم عاد د زمانې نه وران پروت وي. په هغې کې خځانه ملاوو شوه نو په هغې خُمس (پنځمه) ده او په کاړ جنه زمکه (رکاز) کې هم خمس دی. (المرقات ۶/۲۲۴)

## که د لقطې د استعمالولو نه وروسته مالک راغلو نو څه به کيږي

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَن أَبِي سعيد الْخُدْرِيّ : أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَجَدَ دِينَارًا |
| ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يوه ورځ حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو دينار پيدا کړو (په |
| فَأَتَى بِهِ فَاطِمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا |
| يوه لاره کې د لقطې په توګه) حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته راوړو او بيا چې د حضرت |
| فَسَأَلَ عَنْهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : هٰذَا |
| علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې باره کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وکړه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې دا د |
| رِزْقُ اللهِ فَأَكَلَ مِنْهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ |
| الله ورکړی شوی رزق دی بيا هغه دينار (باندې اخستلی شوی شی) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هم وخوړو او حضرت |
| أَكل عَلِيّ وَ فَاطِمَة رَضِي الله عَنْهُمَا فَلَمَّا كَانَ بَعْدَ ذٰلِكَ أَتَتِ امْرَأَةٌ تَنْشُدُ الدِّينَارَ |
| علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هم وخوړو، د دې نه وروسته يوې ښځې خپل دينار لټولو او راغله نو |

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: يَا عَلِيُّ أَدِّ الدِّينَارَ. [۱]

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې دي ښځې ته دينار ورکړه.

## بدنيتۍ سره لقطه اوچتول د اور لمبه ده

﴿٦﴾ وَعَنِ الْجَارُودِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: ضَالَّةُ الْمُسْلِمِ

جارود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "د مسلمانانو ورک شوی شی (د دوزخ) د

حَرَقُ النَّارِ. [۲]

اور يوه لمبه ده.

## که لقطه ملاؤ شي نو د ګواه د مخې نه يې اوچت کړي

﴿٧﴾ وَعَنْ عِيَاضِ بْنِ حِمَارٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ وَجَدَ لُقَطَةً

عياض بن حمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چا چې وموندو يو غورځيدلې څيز

فَلْيُشْهِدْ ذَا عَدْلٍ أَوْ ذَوِي عَدْلٍ

نو هغه ته پکار دي چې يو منصف سړی ته يا يې وفرمايل چې دوه منصف سړي ګواه کړي او (بغير د

وَلَا يَكْتُمْ وَلَا يُغَيِّبْ فَإِنْ وَجَدَ صَاحِبَهَا

تشهير او د اعلان) هغه پټوي مه او مه هغه (بل ځای کې خرځ کړي) پټ کړي که بيا د هغې مالک راشي

فَلْيَرُدَّهَا عَلَيْهِ وَ إِلَّا فَهُوَ مَالُ اللهِ

نو ورته وريې کړي او که مالک يې په لاس درنشي نو بيا هغه د الله ورکړی شوی مال دی چې الله

يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ. [۳]

تعالی چاته وغواړي (د غيب نه) مال ورکوي.

**توضيح**: يعنې ګواه جوړ کړي چې دومره مال دی په فلاني تاريخ ماته په فلاني ځای کې ملاؤ شوی دی. بيا يې تشهير وکړه که مالک يې راشي او ډېره دعوی کوي يا د ډاکې او غلا دعوی کوي نو

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۲/۲۳۷ رقم الحديث: ۱۷۱٤

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ٤/٢٦٥ رقم الحديث: ۱۸۸۱

(۳) أخرجه ابوداود في السنن ۲/۲۳۵ رقم الحديث: ۱۷۰۹

ستا سره به ګواه وي. هیڅ تشویش به نه وي. ګیني پریشانه به یې. همدغه شان په ګواه جوړولو سره به ته په خپله هم ددې د خوړلو او هضمولو په چکر کې نه پریوځې. ځېنې علماء وايي چې ګواه جوړول مستحب دي. مګر ځېنې وايي چې واجب دي. (المرقات ٦/٢٢٦)

## ببخي د بي ارزښته شئ تشهير رياکاري ده

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: رَخَّصَ لَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْعَصَا وَالسَّوْطِ وَالْحَبْلِ وَ |
| جابر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم مونږ ته اجازت راکړې دې د امساء، درې، پړي او ددې |
| أَشْبَاهِهِ يَلْتَقِطُهُ الرَّجُلُ يَنْتَفِعُ بِهِ. وذكر حديث المقدام بن معدي كرب: ألا لا يحل في باب الاعتصام[1] |
| پشان شيانو کې (چې بې قيمته وي) که کوم سړی وغواړي او چت دې کړي او خپله يې استعمال کړي. |

**توضیح: رخص لنا:** يعني ببخي بي ارزښته مال دی. مثلاً امساء ده پړی دی چابق دی کهجوره ده يا نو بي ارزښته شيان دي. چې کوم سړی د هغې اعلان کوي او ګرځي نو په حقيقت کې هغه رياکار دی. د خپلې تقوی تشهير کول غواړي. (المرقات ٦/٢٢٧)



[1] أخرجه ابوداود في السنن ٢ ٣٣٩ رقم الحديث: ١٧١٧

# باب الفرائض

## فرائض یعنې د میراث بیان

**قال الله تعالیٰ:** ﴿يُوصِيكُمُ اللهُ فِي أَوْلَادِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ﴾(سورة النساء آيت:۱۱)

**فرائض** جمع ده د دې مفرد **فریضه** ده **فریضه** د **فرض** نه مشتق دی چې د غوڅولو په معنی کې هم راځي او د مقدور او مقررولو په معنی هم راځي. دلته د **الفرائض** نه **علم المیراث** مراد دی چې اصطلاحی تعریف یې داسې دی: **"المقدرات الشرعية في المتروكات المالية"** یعنې د میراث هغه برخه چې قرآن او حدیث مقرره کړې ده. (المرقات ۶/۲۲۸)

قرآن کې د فریضه په نوم سره یاد کړی شوی دی. او په حدیث کې دی **"وافرضکم زید** رَضِيَ اللهُ عَنْهُ **ای اعلمکم بعلم المیراث"**. نو ځکه دیته علم الفرائض هم وایي . فقهاؤ لیکلي دي چې د مړي ترکې (پرېښودل شوی مال) سره څلور (۴) حقوق متعلق وي. د هغې ترتیب داسې دی:۱: د ټولو نه اول د مړي تجهیر او تکفین دی. پدې باندې چې کوم مصرف راځي هغه د قرض نه مخکې دي. ۲: د تجهیز او تکفین نه وروسته چې په مړي باندې کوم قرض وي یا بله کومه مطالبه وي نو د هغې ادا کول ضروري دي. ۳: د دینه وروسته چې کوم پاتې شو نو بیا په هغې کې تهائی برخه کې به د مړي وصیت پوره کېږي که چرې هغې وصیت کړی وي. ۴: د هغې نه وروسته چې کوم مال پاتې شو نو هغه په ټول د مړي په وارثانو کې تقسیمېږي. د میراث ترتیب داسې دی چې او اول به ذوی الفروض ته د هغې مقرر شوي برخې ورکړی شي. ذوی الفروض ټول دولس(۱۲) دي. د مړي د ترکې نه د ذوی الفروض ورکولو نه وروسته چې څه پاتې شي نو هغه به په عصبات کې تقسیم شي. ذوی الفروض په اوله درجه کې وارث دي او عصبات په دویمه درجه کې وارث دی. وس که د مړي په وارثانو کې نه ذوی الفروض وي او نه عصبات وي نو بیا به د هغې ترکه مال په ذوی الارحام کې تقسیمېږي ګویا کې ذوی الارحام د وراثت دریمه درجه ده. اول د ذوی الفروض ده، دویمه د عصبات ده او دریمه د ذوی الارحام ده. احناف او حنابله په میراث کې د دې ترتیب سره د ذوی الارحام د حق قائل دي.

د میراث موانع څلور دي ۱: اول غلامي ده. غلام نه د چا وارث کیدلی شي او څوک د هغې وارث کیدلی شي. ځکه غلام په شرعي توګه د هیڅ شي مالک نشي کیدلی. ۲: دویم شی ناحقه قتل دی. که چرې وارث خپل مورث قتل کړي. نو شرعاً قاتل د میراث نه محرومېږي. ۳: اختلاف مذهب: د دوؤ (۲) مذهبونو اختلاف هر یو د بل مذهب والا د میراث نه محرومويي. مثلاً مسلمان او یهودي

یاعیسائی یاقادیانی یارافضي ۴: اختلاف دارین: یعنې د مړي او د وارث د ملک او وطن مختلف کیدل د میثراث نه محروموي مثلاً یو سړی په درالاسلام کې ویښږي او بل په دارالحرب کې اوسیږي. نو دواړه به د یو بل میراث نه محرمیږي. خو دا حکم د غیر مسلم لپاره دی. مسلمان وارث او مورث کې د اختلاف دراین څه اعتبار نشته دی په قرآن کې د الله تعالی صریح حکم دی چې د ښځو په میراث کې حق دی. اګر که نن سبا مسلمانان دا حکم نظر انداز کوي خو په قیامت کې به حساب کیږي. (المرقات ۶/۲۳۰)

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

## د مړي ترکه د مړي د وارثانو حق دی

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : أَنَا أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ |
| ابو هریره رضي الله عنه نقل کوي چې نبي کریم صلى الله عليه وسلم و فرمایل زه عزیز یم د مسلمانانو په حق باندې د |
| (یعنې د دین او د دنیا په هره معامله کې چې یو مسلمان په خپل ځان څومره مهربانه کیدې شي زه په |
| هغه د هغه څخه هم زیات مهربانه یم ځکه چې د هغوي د قرضونو د اداکولو هم زه زیات حقدار یم) |
| مِنْ أَنْفُسِهِمْ فَمَنْ مَاتَ وَ عَلَيْهِ دَيْنٌ وَ لَمْ يَتْرُكْ |
| د خپل ځان نه، لهذا کوم سړی (مسلمان) چې مړشي او په ذمه یې قرض وي او مال یې نه وي پریخي چې |
| وَفَاءً فَعَلَيَّ قَضَاؤُهُ . وَ مَنْ تَرَكَ مَالًا |
| د هغې نه قرض ادا کړی شي نو دده د قرض اداکول زما ذمه واري ده او کوم سړی چې مال پریږدي نو هغه |
| فَلِوَرَثَتِهِ . وَ فِي رِوَايَةٍ : مَنْ تَرَكَ دَيْنًا أَوْ ضَيَاعًا |
| یې د ه ارثانو دی. یو روایت کې دي چې کوم سړی عیال داره یا قرضداری مړشي او مال یې نه وي پریخی |
| چې په هغه باندې قرض اداکړی شي یا د هغې د اولاد ساتنه پري وشي نو (د هغې وکیل یا وصی) دې |
| فَلْيَأْتِنِي فَأَنَا مَوْلَاهُ . |
| ماته راشي زه به د هغه انتظام کوم (یعنې د هغه قرض به زه خلاصوم او د هغه د اولاد ساتنه به زه کوم). |
| وَ فِي رِوَايَةٍ : مَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِوَرَثَتِهِ |
| په یو روایت کې داسې دي چې نبي علیه السلام و فرمایل کوم سړی چې مال پریږدي او مړشي نو هغه مال |

| وَ مَنْ تَرَكَ كَلًّا |
|---|
| د هغه د وارثانو دى او چې كوم دروند شى (يعنې قرض او اولاد) پرېږدي او مړشي نو د هغې انتظام |
| فَإِلَيْنَا .[1] |
| كول زما ذمه واري ده. |

**توضيح: اولى:** د احق او اقرب په معنى دى. يعنې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې زه په هر شي كې اگر كه هغه دين سره تړلي وي يا دنيا سره تړلي وي د مسلمانانو د نفسونو نه ډير حقدار يم. لهذا زما شفقت په هغوى باندې د دينه ډير دى. كوم شفقت چې د هغوى په خپل ځانونو باندې دى. نو زه د هغوى د قرض د ادا كولو هم ډير حقدار يم. (المرقات ۶/۲۲۹)

**اوضياعاً:** يعنې كوم سړى چې بې وسه اولاد پرېښودلو او ماله راغلو نو زه به د هغې مرسته كوم. او چا چې مال په تركه كې پرېښودلو نو هغه مال د هغې د وارثانو دى.

**كَلًّا:** بار ته وايي بې يارو مددگار اولاد. دلته يې كلا نوم سره ياد كړى دى. دې لوى شفقت او محبت ته وگورى او بيا په نبې مكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې درود ووايې. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وايي چې گټه د مړي د وارثانو ده او چې كوم بار دى زه به يې په هغې كې مرسته كوم سبحان الله په امت باندې د شفقت انتهاء ده. (المرقات ۶/۲۲۹)

## په تركه كې اول ذوى الفروض حق دى

| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أَلْحِقُوا الْفَرَائِضَ |
|---|
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل وركړئ د ميراث برخې (چې په قرآن كريم |
| بِأَهْلِهَا فَمَا بَقِيَ فَهُوَ لِأَوْلَى رَجُلٍ ذَكَرٍ .[2] |
| كې متعين كړى شوي دي) برخه دارو ته او چې څه پاتې شي نو هغه د مړي هغه نارينه وارث (عصبه) |
| حق دى چې د مړي د ټولو نه نزدې عزيز وي. |

**توضيح: بأهلها:** د دينه مراد ذوى الفروض دي چې په قرآن كې د هغې د برخو واضحه بيان شوى دى.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۶۱/۵ رقم الحديث :۲۱۹۹، ومسلم في صحيحه ۱۲۳۷/۳ رقم الحديث: ۱۶۱۹/۱۵.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۹/۱۲ رقم الحديث :۶۷۳۲، ومسلم في صحيحه ۱۲۳۳/۳ رقم الحديث: ۱۶۱۵/۶.

ذوي الفروض نه چې کوم مال پاتې شي نو هغه د نزدې عصباتو دی. د نزدې عصبه په موجودګۍ کې به لرې عصبه ته هېڅ نه ورکړی کېږي. هغه حاجب دي. (المرقات ٦/٢٢٩)

**سوال**: دلته دا سوال دی چې "رجل" د ذکر کولو نه وروسته د "ذَكَرٍ" ذکر بې ځايه دی ځکه رجل خو مذکر وي؟

**جواب**: دا چې درجل اطلاق عموماً په بالغ نارينه باندې کېږي حال دا چې د ميراث تعلق د وړو ماشومانو سره هم وي د دې وهم لرې کولو لپاره د رجل نه وروسته د ذَكَر تاکيد او وضاحت شوی دی.

**دويم جواب**: دا دی چې ذَكَر لفظ د ډېرولو نه د خنثیٰ نه احتراز مقصود دی.

**دريم جواب**: دا دی چې دا لفظ فقط د تاکيد لپاره دی. (المرقات ٦/٢٢٩)

## د ملت اختلاف د ميراث نه محروم کول کوي

| ﴿٣﴾وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا يَرِثُ الْمُسْلِمُ الْكَافِرَ |
|---|
| اسامه بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل نه خو مسلمان د کافر وارث کېدی شي |
| وَلَا الْكَافِرُ الْمُسْلِمَ .[1] |
| او نه کافر د مسلمان وارث کېدی شي. |

**توضيح**:لايرث المسلم الكافر: علامه نووي رَحِمَهُ اللهُ او نور علماؤ ليکلي دي چې پدې باندې د ټولو اتفاق دی چې کافر د مسلمان وراث نشي کېدی. مثلاً قادياني د خپل مسلمان ورور وارث نشي کېدی. اوس پاتې شوه دا مسئله چې آيا يو مسلمان د کافرر وارث کېدی شي يا نه؟ نو پدې کې د ټولو فقهاؤ اختلاف دی. ائمه اربعه او د جمهورو علماؤ په نزد مسلمان هم د کافر وارث کېدې نه شي لکه څنګه چې زيربحث حديث کې دي. چې نه کافر د مسلمان وارث کېدی شي او نه مسلمان د کافر وارث کېدی شي. خو حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او ځينې تابعين لکه سعيد بن مسيب او ابراهيم نخعي په نزد مسلمان د کافر وارث کېدی شي. د بحث لاندې دليل د جمهورو دليل دی. اوس مسئله د مرتد د مال ده چې د دې وارث به څوک وي نو امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نزد د مرتد په حالت اسلام کې ګټلی شوی مال به بيت المال ته ځي بيت المال د دې وارث دی. دويم قول د صاحبېنو دی چې کوم مال هم د مرتد دی که هغه د اسلام په

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ١١/١٢ رقم الحديث :٦٧٦٤، ومسلم في صحيحه ١٢٣٣/٣ رقم الحديث: ١٦١٤/١.

حالت کې ګټلی شوي وي يا د ارتداد په وخت کې ګټلی شوی وي. ټول مال د وارثانو حق دی. دریم قول د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ دی. هغه وایي چې په حالت اسلام کې ګټلی شوی مال د وارثانو دی او د ارتداد په حالت کې ګټلی شوی مال د بیت المال دی. (المرقات ۶/۲۳۰)

## آزادونکی د آزاد کړې شوي غلام وارث دی

| ﴿٤﴾وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْ أَنْفُسِهِمْ.[1] |
|---|
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل د یو قوم آزاد کړې غلام د دې قوم نه دي |

**توضیح**: مولی القوم: د مولی اطلاق په آزادونکې باندې هم کېږي او په آزاد شوي غلام باندې هم کېږي که دلته د مولی نه مُعْتِق مالک مراد وي. نو د حدیث مطلب به دا شي چې ازادونکی سړی د خپل آزاد شوي غلام وارث دی. دا مسئله واضحه ده او که د مولی نه مراد آزاد شوی غلام واخستلی شي نو د حدیث مطلب به دا وي چې کوم قوم یو غلام آزاد کړو. د آزاد کړی شوي غلام حیثیت د هغه قوم پشان شي. که آزادونکی سید وي چې د هغې لپاره صدقه اخستل حرام دي نو غلام هم د سید په حکم کې راځي. د دې لپاره به هم صدقه اخستل حرام وي. ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللهُ او نورو شارحینو د دی حدیث په تشریح کې داسې لیکلي دي او د حدیث د سیاق او سباق او د الفاظو د اطلاق نه یې داسې محسوسه کړیده چې د دې حدیث دا دویم مفهوم مقصود دی. نو پدې سره امت ته یوه ضابطه ملاو شي. په نورو احادیثو کې د دې حکم تفصیل هم دی. (المرقات ۶/۲۳۱)

## خوریی د ماما د ترکې وراث دی

| ﴿٥﴾ وَ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: ابْنُ أُخْتِ الْقَوْمِ مِنْهُم.[2] |
|---|
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د یو قوم خوریی د هغه قوم نه وي. |
| وَذُكِرَ حَدِيثُ عَائِشَةَ: إِنَّمَا الْوَلَاءُ فِي بَابٍ قبل بَابِ السَّلَم. |

**توضیح**: ابن اخت القوم: د قوم خور خو مور شوه او د هغې ځوي د قوم خوریی شو. مطلب دا شو چې خوریی د ماما وارث وي. او دا خلک د ذوی الارحام نه دي. لهذا د دینه ثابت شو چې که ذوی الفروض او عصبه معدوم وي نو بیا د مړي د میراث برخه ذوی الارحام ته ورکولی کېږي. نو د امام

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۸/۱۲ رقم الحديث: ۶۷۶۱.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۹/۱۲ رقم الحديث: ۶۷۶۲، ومسلم في صحيحه ۷۳۵/۲ رقم الحديث: ۱۰۵۹/۱۳۳.

ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ هم دغه مسلک دی. د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد ذوی الارحام وارث نشي جوړیدلی. احنافو او حنابلو د زیر بحث حدیث نه استدلال کړی دی. د فصل ثانی حدیث نمبر ۱۱ کې الخال وارث نه هم استدلال کړی دی. همدغه شان د حضرت برید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حدیث نمبر ۱۵ نه هم استدلال کړی دی. چې په هغې کې اوذارحم الفاظ دي. د قرآن آیت هم دی ﴿ وَأُولُوا الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ فِي كِتَابِ اللهِ ﴾ (احزاب آیت:٦) د احنافو مورچه مضبوطه ده. (المرقات ٦/٢٣١)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## آیا د مختلف ملتونو خلک به د یو بل وراثان وي؟

| |
|---|
| ﴿٦﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَا يَتَوَارَثُ |
| عبدالله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي وايي چې : نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل : وراثت نه کیږي په |
| أَهْلُ مِلَّتَيْنِ شَتَّى .[1] |
| مینځ د دوو مختلف مذهبونو خلکو کې. |

**توضیح: شتیٰ د شتیت جمع ده.** د مختلف او متفرق په معنی دی. یعنې د متفرق او د مختلف مذهبونو خلک د یو بل وارثان نه شي کیدی. د ائمه ثلاثوو په نزد د مختلف مذهبونو متعلق کفار د یو بل وراثان نه شي کیدی مثلاً یهودي د عیسائیانو وارثان نه شي کیدی او نه هندوان د هغوی وراثان کیدی شي. (المرقات ٦/٢٣٣)

امام ابو حنیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې یهود او نصاری او سکان او هندوان د یو بل وراثان کیدی شي.

**جمهور فقهاء** د زیر بحث حدیث نه استدلال کوي. احناف د دې حدیث نه استدلال کوي **"عن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال: المشرکون بعضهم اولیاء بعض لانرثهم ولایرثونا". (رواه احمد)**

زیر بحث حدیث کې ملتین نه مسلم او غیرمسلم د دووو (٢) ملتونو تعین مقصود دی. ټول ملتونه مراد نه دي. لهذا دا حدیث د جمهورو نه دی بلکې زمونږ دلیل دی. (المرقات ٦/٢٣٣)

---

[1] أخرجه ابوداود في السنن ٣/٣٢٧ رقم الحديث :٢٩١١

## قاتل د میراث نه محروم دی

| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلْقَاتِلُ لَا يَرِثُ. [1] |
| --- |
| ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: قتل کونکی وارث نه وي. |

**توضیح:** پدې کې اسلام ډیر لوي حکمت ایښي دی چې قاتل د میراث نه محروم دی. ګیني خلکو به خپل بوداګان مورثان د میراث لپاره ډیر ژر وژلي او قتل عام به شروع شي.

## د نیا شپږمه برخه ده

| ﴿۸﴾ وَ عَنْ بُرَيْدَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ جَعَلَ لِلْجَدَّةِ السُّدُسَ إِذَا |
| --- |
| د بریده رضي الله عنه نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د نیا شپږمه برخه مقرره کړې ده خو دا چې |
| لَمْ تَكُنْ دُوْنَهَا أُمٌّ. [2] |
| مور هغه محجوب نه کړي. |

**توضیح:** د جدة نه دلته نیا مراد ده. یعنې که مور ژوندۍ وي نو بیا نیا ته هیڅ نه ملاویږي. خو که مور ژوندۍ وي نو بیا به د مړي د ترکې نه جده ته شپږمه برخه ملاویږي.

## ژوندی پیدا کیدونکی ماشوم وارث دی

| ﴿۹﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا اسْتَهَلَّ الصَّبِيُّ صُلِّيَ |
| --- |
| جابر رضي الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل که چیري ماشوم آواز راوباسي نو د هغه د جنازې |
| عَلَيْهِ وَ وُرِّثَ. [3] |
| لمونځ دې وکړی شي او هغه دې وارث وګڼلی شي. |

**توضیح: استهل:** ماشوم چې کله د پیدا کېدلو وخت کې اواز وکړي نو هغې ته استهلال وایي. دلته مراد د ژوند یو علامت دی. که چرې ماشوم د پیدا کېدلو وخت کې ژوندی وي او اواز راوباسي یا لاس او ښپې وخوزوي یا ساه واخلي نو هغې له دې باقاعده غسل ورکړی شي. او د هغې د جنازې لمونځ دې وکړی شي. او هغه دې د خپل مال مالک وګڼلی شي. بیا به د مرګ نه وروسته د قاعدې

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۷۰ رقم الحديث: ۲۱۰۹

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۳۱۷ رقم الحديث: ۲۸۹۵

(۳) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۹۱۹ رقم الحديث: ۲۷۵۰.

مطابق د هغې د میراث تقسیم کېږي مثلاً یوي سړ مړ شود هغه حامله ښځه پاتې شوه او څه لورگاني یې پاتې شوي. کله چې دا ماشوم پیدا شي نو په پیدا کېدو سره دا د خپل پلار په مال کې د نورو ورونو او خویندو سره وارث جوړ شو او بیا چې کله مړ شو نو د مرګ نه وروسته به د هغې د ورونو او خویندو په مینځ کې دغه میراث تقسیمېږي. همدغه شان دا ماشوم هم وارث شو. او مورث هم شو. او که چري دا ماشوم د پیدا کېدو وخت کې مړ پیدا شو نو دا خو نه وارث کیدی شي او نه مورث کیدی شي. د حدیث همدغه مطلب دی. (المرقات ۶/۲۳۴)

## د اسلام د ابتدء یو حکم

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ كَثِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ |
| کثیر بن عبد الله د خپل پلار (عبد الله تابعي رَحِمَهُ اللهُ) او هغه د کثیر د نیکه یعنې د خپل پلار عمرو بن عوف |
| قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَوْلَى الْقَوْمِ |
| مزنی صحابي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نه نقل کوي وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې : د یو قوم مولی د |
| مِنْهُمْ وَ حَلِيفُ الْقَوْمِ مِنْهُمْ وَ ابْنُ أُخْتِ الْقَوْمِ مِنْهُمْ .[1] |
| هغه قوم نه دی. د یو قوم حلیف د همغه قوم نه دی. او د یو قوم خوری د همغه قوم نه دی. |

**توضیح:** **مولی القوم منهم**: د دې توضیح مخکې په حدیث نمبر ۴ کې شوي. او ابن اخت القوم توضیح هم په روایت نمبر ۵ کې شوي ده. دلته خبره **حلیف القوم منهم** باندې ده. د دې وضاحت دا دی چې په عربو کې دا رواج ؤ چې هغوی به دوه کسانو په خپل مینځ کې په قسم باندې معاهده کوله چې مونږ به د یو بل په غم او درد او مرګ او ژوند کې شریک یو. د یو جنګ به د بل جنګ ګڼلی کېدو. او د یو صلح به د بل صلح ګڼلی کیده. هر قسمه ګټه او تاوان کې به شریک وو. او د یو د مرګ نه وروسته به بل د هغه په میراث کې وارثانو سره شرک وو. په ابتداء د اسلام کې د میراث باره کې همدغه شان حکم وو. چې د یو د مرګ نه وروسته به بل د هغې د میراث وارث کېدو. بیا چې کله د میراث حکم او د میراث ضابطه په قرآن کې بېن شوه نو د حلیف دا حکم منسوخ شو. او زوړ رواج هم ختم شو. (المرقات ۶/۲۳۴)

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۳۱۷/۲ رقم الحديث :۲۵۲۷

# که وارث نه وي نو ماما د خورى وارث کيدې شي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنِ الْمِقْدَامِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَا أَوْلَى بِكُلِّ مُؤْمِنٍ مِنْ نَفْسِهِ |
| مقدام رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل زه د هر مؤمن په حق کې خپله د هغه نه ډير عزيز |
| فَمَنْ تَرَكَ دَيْنًا أَوْ ضَيْعَةً |
| او خيرخواه يم لهذا کوم سړى چې په خپله ذمه اولاد يا قرض پرېږدي او مړ شي نو د هغه قرض ادا کول |
| فَإِلَيْنَا وَ مَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِوَرَثَتِهِ |
| او د اولاد ساتنه زما په ذمه ده او کوم سړى چې مال پرېږدي او مړ شي نو هغه مال د هغه د وارثانو دى. |
| وَ أَنَا مَوْلَى مَنْ لَا مَوْلَى لَهُ أَرِثُ مَالَهُ |
| او زه د هغه سړى انتظام کونکى يم چې د چا څوک انتظام کوونکي نه وي نو زه د هغه د مال وارث يم |
| وَ أَفُكُّ عَانَهُ |
| او په هغې سر هغه قيدى خلاصوم (يعنې په ژوند کې پرې ديت لازم وي او ديت ورکولو نه مخکې |
| مړ شو د هغې په وجه دا چې د هغې نفس په عالم برزخ کې د يو قيدي پشان په سختو کې راګير دى نو |
| وَ الْخَالُ وَارِثُ مَنْ |
| څکه به زه د هغې ديت د خپل ځان نه ادا کړم او هغې له به نجات ورکړم) او ماما د هغه سړى وارث |
| لَا وَارِثَ لَهُ يَرِثُ مَالَهُ وَ يَفُكُّ عَانَهُ |
| وي چې د هغې څوک وارث نه وي. هغه لره د ميراث حق دى او د هغه قيدي ته نجات ورکوم (يعنې د |
| کوم سړى په ذمه چې ذوى الفروض او عصبه وارث نه وي نو د هغه ماما د هغه د ذوى الارحام نه دى او |
| د هغه وارث وي نو هغه ته به د مړي ترکه ملاوېږي او په هغه باندې ديت ورکول لازم دي. او د هغه په |
| وَ فِي رِوَايَةٍ : |
| ادا کولو سره به د هغه روح د عالم برزخ د عذاب نه خلاصى ورکوي) په يو بل روايت کې داسې دى چې |
| وَ أَنَا وَارِثُ مَنْ لَا وَارِثَ لَهُ |
| نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل زه د هغه سړى وارث يم چې د هغې څوک وارث نه وي. نو زه د هغه د |

| |
|---|
| أَعْقِلُ عَنْهُ وَ أَرِثُهُ |
| طرف نه دیت ادا کوم او د هغه وارث کېږم (یعني د هغې ترکه په خپلي نګراني کي اخلم او بیت المال |
| وَ الْخَالُ وَارِثُ مَنْ لَا وَارِثَ لَهُ |
| کي یې جمع کوم) او ماما وارث وي د هغه چا چي (د ذوي الفروض او د عصبات نه) څوک وارث نه وي |
| يَعْقِلُ عَنْهُ وَ يَرِثُهُ. [1] |
| نو (د ذوي الارحام نه) دده ماما وارث وي چي دده د طرفه به دیت ورکوي. |

**توضیح: افك عانك: فكاك** بدله ورکول او قیدي راخلاصولو ته فکاک وایي. عان: نه قیدي او دبار نه لاندي شوی سړی مراد دی. **الخال وارث**: دا حدیث د احنافو او د حنابلو دلیل دی. که د یو سړی په وارثانو کي نه ذوي الفروص وي نه عصبه وي نو بیا د ذوي الارحام نه ماما وارث کیدلی شي. (المرقات ۶/۲۳۷)

**ارث ماله**: د دینه مراد دا نه دی چي نبي کریم ﷺ به د هغه د مال وارث شي. ځکه انبیاء د چا وارثان نه دي. بلکي مراد دا دی چي دا به زه په بیت المال کي کیږدم. (المرقات ۶/۲۳۶)

## ښځه د دري سړو میراث اخستلی شي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَحُوزُ الْمَرْأَةُ ثَلَاثَ مَوَارِيثَ |
| واثله بن اسقع رضي الله عنه وایي چي نبي کریم ﷺ و فرمایل چي ښځه د دري سړو میراث اخیستی |
| عَتِيقَهَا وَ لَقِيطَهَا وَ وَلَدَهَا الَّذِي لَاعَنَتْ عَنْهُ. [2] |
| شي یو د خپل آزاد کړی شوي غلام، دویم د خپل لقیط او دریم د هغه بچي د هغې په وجه لعان شوی وي |

**توضیح: تحوز**: دا د حاز یحوز نه د جمع کولو او د راغونډولو په معنی دی. مطلب دا دی چي یوه ښځه د دري متخلفو کسانو میراث اخستلی شي. (المرقات ۶/۲۳۸)

**عتیقها**: یعني د خپل ازاد کړی شوي غلام میراث اخستلی شي. لکه څنګه چي د قاعدي د لاندي هر سړی د خپل ازاد کړی شوي غلام د میراث او ولاَ حقدار وي. (المرقات ۶/۲۳۸)

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۳۲۰ رقم الحديث: ۲۹۰۰

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۳۲۵ رقم الحديث: ۲۹۰۶

**ولقيطها:** يعني ښځه د خپل لقيط ميراث اخلي. د لقيط نه مراد هغه نامعلومه ماشوم دی چې کوم چا چرته ګوزار کړی وي او کومې ښځي ته ملاؤ شو او هغې رااوچت کړو او مصرف يې پرې وکړو دا ماشوم غټ شو بيا مړ شو د دې ميراث به هغه ښځي ته ملاوېږي چا چې ساتلی دی. زيربحث حديث کې همدغه حکم دی. او اسحاق بن راهويه مسلک هم دغه شان دی. خو نور علماء وايي چې دا حکم منسوخ دی. ځکه په يو حديث کې دي "لا ولاء لها الا ولاء العتاقة". (المرقات ۶/۲۳۸)

قاضي عياض رَحِمَهُ اللهُ وايي چې دا د لقيط مال به بيت المال ته ځي. نو دا ښځه ډېره حقداره ده چې د بيت المال نه لقيط مال هغې ته ورکړی شي. د دې مفهوم په اعتبار سره به دا حکم منسوخ نه وي.

**لاعنت عنه:** يعې ميره خپلي ښځې ته وويل چې دا ماشوم چې له تا نه پيدا دی دا زما نه دی. د دې جملي په ضمن کې پدې ښځې باندې د زنا بهتان دی. دا چې ګواه نشته نو ځکه ميړه او د خاوند دې لعان وکړي او د لعان نه وروسته به ميړه او ښځه د هميشه لپاره جدا شي. او ماشوم به د ښځې سره پيدا شي. دا ماشوم چې کله غټ شي او وکټي او مړ شي نو د دې مور به د دې وارثه وي. ځکه د هغې نسب ثابت دی. او ميراث د نسب تابع دی. دغه يوه ښځه د درې مواضعو نه ميراث راغونډولی شي. د لعان تفصيل په توضيحات جلد ۵ کې ذکر دی. (المرقات ۶/۲۳۸)

## د ولد الزنا د ميراث حکم

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ : |
| عمرو بن شعيب د خپل پلار شعيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه او حضرت شعيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل نيکه نه نقل کوي چې |
| أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : أَيُّمَا رَجُلٍ عَاهَرَ بِحُرَّةٍ أَوْ أَمَةٍ |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم سړی ديوې آزادې ښځې يا وينځې سره زنا وکړي (او په نتيجه) کې |
| فَالْوَلَدُ وَلَدُ زِنًى لَا يَرِثُ |
| يې کوم ماشوم پيدا شي هغه ته به ولد الزنا (د حرامي ګوی) ويل کېږي او هغه ماشوم به نه د چا وارث |
| وَلَا يُوْرَثُ .[1] |
| وي او نه به ور ته ميراث ملاوېږي. |

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۷۲ رقم الحديث: ۲۱۱۳

**توضیح:عاهر**: د زنا کولو په معنی دی. **لایرث ولایورث**: یعنې ولد الزنا ماشوم نه د پلار وارث کیدی شي او نه پلار دده وارث کیدی شي ځکه چې د کوم پلار نه دا پیدا شوې دی هغه دده پلار نه دی یعنې شرعي نسب ثابت نه دی او میراث د نسب تابع دی. لهذا دلته هیڅ میراث نشته دی. خو د ولد الزنا نسب چونکه د خپلې مور نه ثابت دی لهذا مور به دده وارثه وي او دې به د هغې وارث وي لکه چې ددې نه مخکې حدیث نمبر ۱۲ په توضیح کې لیکل شوي دي. (المرقات ۶/۲۳۹)

## د آزاد شوي غلام میراث

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ : أَنَّ مَوْلًى لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاتَ وَتَرَكَ شَيْئًا |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا وایي چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو آزاد شوی غلام مړ شو او هغه څه مال پرېښودو. |
| وَلَمْ يَدَعْ حَمِيمًا وَلَا وَلَدًا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : |
| نه یې څه خپلوان پرېښودل او نه یې ځوي (چې دده د ترکې وارث وی) نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل |
| أَعْطُوا مِيرَاثَهُ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ قَرْيَتِهِ .[1] |
| چې د دې نه پاتې شوی مال د هغې د کلي یو سړی ته ورکړه. |

**توضیح: مولی**: یعنې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو ازاد شوی غلام وو. **من اهل قریته**: یعنې د هغې د کلي خلکو کې چې کوم سړی فقیر وي یا هغه ته نزدې وي. نو د هغه غلام ترکه مال ورله ورکړه. قاعده خو همغه ده چې د ازاد شوي غلام ترکه خو هغه ازا کونکې مالک ته ملاوېږي. که عصبه نه وي خو د انبیاو لپاره میراث اخستل جائز نه دي. نو ځکه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې دا مال د هغې د کلي یو غریب ته ورکړه. (المرقات ۶/۲۴۰)

## چې د چا وارث نه وي نو د هغه ترکه د بیت المال ده

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ : مَاتَ رَجُلٌ مِنْ خُزَاعَةَ فَأُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِيرَاثِهِ |
| بریده رَضِيَ اللهُ عَنهُ وایي چې د قبیله بنو خزاعه یو سړی مړ شو او میراث یې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راوړی شو |
| فَقَالَ : الْتَمِسُوا لَهُ وَارِثًا |
| نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې دده څوک وارث وګوری (یعنې اول خو ذوی الفروض او عصبات |

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۳۲۲ رقم الحدیث :۲۹۰۲

| |
|---|
| أَوْ ذَا رَحِمٍ |
| کې څوک وارث وګوری که په هغوی کې څوک وارث پیدا نشي نو) پکار ده چې ذی رحم وارث شي. |
| فَلَمْ يَجِدُوا لَهُ وَارِثًا وَلَا ذَا رَحِمٍ |
| نو (د تالاش نه پس) نه د (ذوی الفروض او عصبات نه) څوک وارث پیدا شو او نه د ذی رحم نه. نو |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَعْطوا الْكُبْرَ مِنْ خُزَاعَةَ .[1] |
| څکه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې: د دې میراث د قبیله بنو خزاعه یو بوډا ته ورکړی. |
| وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: قَالَ: انْظُرُوا أَكْبَرَ رَجُلٍ مِنْ خُزَاعَةَ . |

**توضیح: او ذا رحم:** د دینه په واضحه توګه ثابتېږي چې که د چا وارث په ذوی الفروض یا عصبه کې نه وي نو په ذوی الارحام کې د چاته میراث ورکړی شي. او همدغه د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ مسلک دی. **الکبر:** یعنې په هغه قوم کې د ټولو نه ډیر عمروالا بوډا ته دغه مال ورکړی د دې وجه داده چې سړی څومره بوډا وي نو همغه هومره به هغه د مړي پلار او نیکونو ته نزدې وي او په میراث کې اقرب فالاقرب ته ترجیح ورکول کېږي. چا او وجه هم لیکلي چې دا مال او س دبیت المال مصرف ته څي خو بیت المال د قوم داسې سړی ګوري چې هغه د دې مال د ټولو نه ډیر حقدار وي او د اول نه د بیت المال مصرف وي نو څکه بوډا ته ترجیح ورکول کېږي. (المرقات ۶/۲۴۰)

## د مړي قرض د مړي په وصیت باندې مقدم دی

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : إِنَّكُمْ تَقْرَؤُوْنَ هٰذِهِ الْآيَةَ : ﴿ مِنْ |
| د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه منقول دي چې (یوه ورځ) یې (خلکو ته) وویل چې تاسو دا آیت وایې ﴿مِنْ |
| بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ ﴾ وَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى بِالدَّيْنِ قَبْلَ |
| بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ﴾ خو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مړي د قرض دادا کولو حکم کړی دي مخکې |
| الْوَصِيَّةِ وَ أَنَّ أَعْيَانَ بَنِي الْأُمِّ يَتَوَارَثُونَ دُونَ |
| د وصیت پوره کولو نه او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا حکم هم کړی چې حقیقي ورونه وارثان وي نه دا چې |

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۳۲٤ رقم الحديث ۲۹۰٤.

| بَنِي | الْعَلَّاتِ | الرَّجُلُ |
|---|---|---|
| ناسکا (یعنې د خپل ورونو په شتون کې نا سکاورونو ته هېڅ نه ورکولی کېږي) او دا سړی د خپل | | |
| يَرِثُ أَخَاهُ لِأَبِيهِ وَ أُمِّهِ دُونَ أَخِيهِ لِأَبِيهِ ".[1] | | |
| حقیقي ورور وارث وي نه دا چې ناسکا ورور (دا جمله د تاکید لپاره استعمال شوي ده). | | |
| وَفِي رِوَايَةِ الدَّارِمِيِّ: قَالَ: الإِخْوَةُ مِنَ الأُمِّ يَتَوَارَثُونَ دُونَ بَنِي الْعَلَّاتِ. . . إِلَى آخِرِهِ. | | |

**توضیح: هذه الأية**: ددې آیت نه مراد ﴿مِّن بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ﴾ دی. د حضرت علي رضي الله عنه مقصد یوه اندیښنه لرې کول وو. اندیښنه دا وه چې د قرآن کریم په آیت کې د مړي وصیت مقدم کول وو. حال دا چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د فعل نه ثابتېږي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم قرض ادا کول په وصیت باندې مقدم کړی دی. په ښکاره خو دا د قرآن د آیت او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په فعل کې تضاد دی. حضرت علی رضي الله عنه د دغې اندیښنې لرې کولو لپاره تنبه وایي چې د آیت په الفاظو کې وصیت مقدم دی. خو په حکم کې قرض ادا کول مقدم دی. نو هېڅ تضاد نشته دی. علماء لیکي چې وصیت یې ځکه مقدم ذکر کړو چې خلک د دینه انکار کوي. ځکه د دې څوک طالب متعین نه وي مګر قرض یو داسې شی دی چې د دې په انسانانو کې طالب وي د هغې پشار وي. نو انکار کول اسان ندي. د دې اهتمام د نظر لاندې یې وصیت مقدم کړی دی.

**اعیان بنی الام**: د خویندو او ورونو لپاره درې اصطلاحي الفاظ د میراث په بحث کې راځي. اول **بنوالاعیان** یعنې عیني ورو چې په مور او پلار دواړو کې شریک وي. دویم **عَلَّاتي** ورونړ چې فقط په پلار کې شریک وي. او مور کې بېل وي. دریم اخیافي ورو چې فقط په مور کې شریک وي. پلاران یې جلاجلا وي. یعنې ۱: عیني ۲: علاتی ۳: اخیافی (المرقات ۶/۲۴۰)

## د میراث د آیت شان نزول

| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : جَاءَتِ امْرَأَةُ سَعْدِ بْنِ الرَّبِيعِ بِابْنَتَيْهَا مِنْ |
|---|
| جابر رضي الله عنه وایي چې (یوه ورځ) سعد بن ربیع رضي الله عنه بي بي خپلې دواړه لورګانې چې واې خیستلې د |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳۱۹/٤ رقم الحديث :۲۰۹۵.

| |
|---|
| سَعْدِ بْنِ الرَّبِيعِ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَتْ : يَا رَسُولَ اللهِ |
| سعد بن ربيع نه او د نبي كريم ﷺ په خدمت كې حاضره شوه او وي ويل چې يا رسول الله! دا |
| هَاتَانِ ابْنَتَا سَعْدِ بْنِ الرَّبِيعِ قُتِلَ أَبُوهُمَا مَعَكَ يَوْمَ أُحُدٍ شَهِيدًا |
| دواړه لورګانې د سعد بن ربيع رضي الله عنه دي ،د دوي پلار شهيد شوې ؤ د تاسو سره د غزوه احد په ورځ او |
| وَ إِنَّ عَمَّهُمَا أَخَذَ مَالَهُمَا |
| د دوي مال د دوي تره اخستی دی (يعني د دوي د پلار چې کوم ترکه چې دې انجنو ته رسيده هغه د |
| وَ لَمْ يَدَعْ لَهُمَا مَالًا |
| جاهليت د زماني مطابق د سعد ورور واخيسته) او دوي لپاره يې هيڅ مال پرې نخودو. په اوس وخت |
| وَلَا تُنْكَحَانِ إِلَّا وَ لَهُمَا مَالٌ قَالَ : |
| کې دوي سره هيڅ مال نشته د دوي سره څوک د نکاح لپاره هم تيار نه دي نبي کريم ﷺ وفرمايل |
| يَقْضِي اللهُ فِي ذٰلِكَ |
| چې (د يو څو ورځو لپاره صبر وکړه) د دې انجنو د معاملې فيصله به الله تعالى وکړي (يعني د دوي |
| فَنَزَلَتْ آيَةُ الْمِيرَاثِ |
| باره کې چې څه وحي را نازله شوه نو فيصله به وشي) نو (څه ورځې وروسته) د ميراث آيت نازل شو |
| فَبَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِلَى عَمِّهِمَا فَقَالَ : أَعْطِ لِابْنَتَيْ |
| نو نبي کريم ﷺ يو کس د هغه انجونو تره پسې ولېږلو او ورته وي ويل چې ورکړه لورانو د |
| سَعْدٍ الثُّلُثَيْنِ وَأَعْطِ أُمَّهُمَا الثُّمُنَ وَمَا بَقِيَ فَهُوَ لَكَ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[1] |
| سعد ته ثلثين او د هغوی مور ته اتمه (۸) برخه ورکړه او څه پاتې شو هغه ستا دي. |

**توضيح:** سعد ابن ربيع: د جاهليت په زمانه کې د ښځو په حق کې ظلم او زياتي بازار تود وو. په جاهليت کې به يې ښځې ته په ميراث ښخي برښه نه ورکوله. او دغه د يتيم ماشومانو حق به هم په ميراث کې نه وو. بلکې د مړي ورو او جنګ کولو قابل ځوانان به راغلل او مال به يې يوړو. او

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۳۱۶ رقم الحديث :۲۸۹۲.

انجوني، بي بي او ښځې به محرمه شوي. اسلام دغه قبيح رواج ختم كړو اوله واقعه داسې راغله چې د حضرت سعد بن ربيع رضي الله عنه بې بې نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته شكايت وكړلو چې دا د سعد رضي الله عنه لورګاني دي. د دوي پلار ستا سره په أحد كې جنګيدلو او شهيد شو. او دوي ټوله تركه او ميراث د دوي تره يوړلو. وس به دي ماشومانو سره نكاح څوك كوي. او د دوي د واده به څه كيږي؟ نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې الله تعالى به د دوي باره كې فيصله وكړي. نو د قرآن ايت نازل شو او د مړي د مال د تقسيم حكم يې وكړو. نبي كريم صلى الله عليه وسلم تقسيم داسې وكړلو چې د سعد لورګانو به د ټول مال نه دوه ثلث وركولى كيږي. او ماشومانو مور يعنې د سعد بې بې به د مال ثمن وركولى كيږي. د هغې نه وروسته چې څه پاتې شو نو هغه د عصبه په توګه د هغې د ورو دي. د تقسيم صورت داسې دى. (المرقات ٦/٢٤١)

مسئله ۲۴ سعد

| بنت | بنت | زوجه | اخ |
|---|---|---|---|
| ثلث | ثلث | ثمن | عصبه |
| ۸ | ۸ | ۳ | ۵ |

## د لوي عالم په شتون كې دوړوكي عالم نه د مسئلې پوښتنه مه كوه

﴿۱۸﴾ وَ عَنْ هُزَيْلِ بْنِ شُرَحْبِيلَ قَالَ : سُئِلَ أَبُو مُوسَى

هزيل بن شرحبيل رحمه الله (تابعي) وايي چې ابوموسى رضي الله عنه (صحابي) نه داپوښتنه وكړى شوه چې

عَنِ ابْنَةٍ وَ بِنْتِ ابْنٍ وَ أُخْتٍ

(مثلاً زيد مړ شو او دده په وارثانو كې) يوه لور يوه لمسۍ او يوه خورده (نو د زيد ميراث به څنګه

فَقَالَ : لِلْبِنْتِ النِّصْفُ وَ لِلْأُخْتِ النِّصْفُ

تقسيم كړى شي؟) ابوموسى رضي الله عنه جواب وركړو چې (د زيد تركه) نيمه لورته او نيمه به خورته وركولې

وَائْتِ ابْنَ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

كيږي (نوسۍ به محرومه وي) بيا موسى رضي الله عنه پس كونكې ته وويل چې ته ورشه ابن مسعود رضي الله عنه

فَسَيُتَابِعُنِي

ته (او د هغې هم د دغې مسئلې پوښتنه وكړه) هغه به زما د دې جواب سره اتفاق وكړي (يعنې دده

| فَسُئِلَ ابْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ |
|---|
| مسئلي چې ما کوم جواب درکړی هم دغه جواب به هغه هم درکوي) نو تپوس وکړې شو دابن مسعود |
| وَ أُخْبِرَ بِقَوْلِ أَبِي مُوسَى |
| رضي الله عنه نه هم د دغې مسئلي او د دې چې کوم جواب موسی رضي الله عنه ورکړی ؤ هغه يې هم ورته وويلو |
| فَقَالَ : |
| ابن مسعود رضي الله عنه (مسئله اود جواب اوريدو) سره وويل چې پداسې صورت کې به (يعني ابو موسى |
| لَقَدْ ضَلَلْتُ إِذَنْ وَمَا أَنَا مِنَ الْمُهْتَدِينَ |
| رضي الله عنه چې کومه فتوی درکړي که همغه فتوی زه هم درکړم) گمراه وګڼلی شم اوزه به سمه لارونه مومم |
| أَقْضِي فِيهَا بِمَا قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| لهذا په دغه فيصله کې زه همغه فيصله درکوم چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د حکم مطابق وي او هغه دا |
| لِلْبِنْتِ النِّصْفُ وَ لِابْنَةِ الِابْنِ السُّدُسُ تَكْمِلَةَ الثُّلُثَيْنِ |
| چې لورته به نيمه ملاوېږي او د ثلثين پوره کولو لپاره لمسۍ ته شپږمه برخه ملاوېږي (يعني د مړي |
| په ترکه کې به دوه يادوو نه ډېره لورګانو ته ملاوېږي داچې اوس لوريوه ده او هغې ته نيمه برخه ملاؤ |
| وَمَا بَقِيَ |
| شوي ده نو نوسۍ ته شپږمه برخه ورکړی شي او دوه دريمې به ورته پوره کړی شي) او چې څه پاتې شو |
| فَلِلْأُخْتِ فَأَتَيْنَا أَبَا مُوسَى فَأَخْبَرْنَاهُ بِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُودٍ |
| (يعني دريمه برخه) هغه د خور ده. راوي وايي چې مونږ موسى رضي الله عنه ته راغلو او هغه مو خبر کړو |
| فَقَالَ : لَا تَسْأَلُونِي |
| دابن مسعود رضي الله عنه جواب نه ابو موسى رضي الله عنه وويل چې تاسو د مانه تر هغه وخته پورې تپوس مه |
| مَا دَامَ هٰذَا الْحِبْرُ فِيكُمْ.[1] |
| کوي ترڅو پورې ستاسو په مينځ کې دا عالم (يعني ابن مسعود رضي الله عنه) موجود وي. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۱۷، رقم الحديث :۶۷۳۶.

**توضيح: فسيتابعني:** د حضرت موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه چا د مړي د لور، لمسۍ او د خور د ميراث مسئله باره کې پوښتنه وکړه. هغې ورته وويل چې زما نه وروسته لاړ شې او دا مسئله د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه هم معلومه کړې او بيا راشي. ماته يې هم ووايي. کيدی شي هغه هم دا مسئله زما پشان حل کړي. چې کله دا سړی هلته لاړو او ټوله قصه يې واوروله نو حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې که پدې مسئله کې زه د هغې اتباع وکړم نو کيدلی شي چې زه گمراه شم. مسئله داسې ده چې حضرت ابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې کومه مسئله ويلې دا هغه داسې وه چې يو لور بربنه نيم مال او د يو خور بربنه نيم مال او نواسۍ محرومه نو دا غلطه وه. د دې نقشه داسې وه. (المرقات ۶/۲۴۳)

مسئله ۴

| بنت | اخت | بنت الابن |
|---|---|---|
| نصف | نصف | محروم |
| ۲ | ۲ | × |

دا ځکه غلطه وه چې هغې لور د نواسۍ لپاره حاجب کړله حال دا چې دا حاجب نده. اصل مسئله داسې ده چې د هغې فتوی حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورکړه.

مسئله ۶

| بنت | اخت | بنت الابن |
|---|---|---|
| نصف | سدس | عصبه |
| ۳ | ۱ | ۲ |

د دې صحيح جواب خبر چې کله حضرت موسى اشعرى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وکړی شو نو دا خوندوره جمله وويله "**لاتسألوني مادام هذا الحبر فيكم**" يعنې چې کومې پورې د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پشان عظيم الشان عالم موجود وي نو تاسو هِرگِز زما نه د مسئلې پوښتنه مه کوي. د دې جواب نه دا ضابطه حاصله شوه چې کله يو لوي عالم موجود وي نو وړوکې عالم ته نه مسئله ويل پکار دي او خلکو له د هغې اړخ ته ميلان کول پکار دي. د دينه تقليد شخصي ثابتيږي. د دينه دا هم معلومه شوه چې "**الدين كله ادب**" مگر افسوس دی چې نن سبا معامله ځرچپه ده.

## په میراث کې د نیکه برخه

﴿۱۹﴾ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ : جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ :

عمران بن حصین رضي الله عنه وايي چې يو کس د نبي کريم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شو او وي ويل

إِنَّ ابْنِي مَاتَ فَمَا لِي مِنْ مِيرَاثِهِ ؟ قَالَ :

چې زما نوسی مړ شوی دی د هغه په ترکه کې به ما ته څو مره مال ملا وېږي؟ نبي علیه الصلاة والسلام وفرمایل

لَكَ السُّدُسُ فَلَمَّا وَلَّى دَعَاهُ قَالَ :

شپږمه برخه بیا چې کله هغه د اجواب واورید و بېرته راغلو نو نبي علیه السلام هغه راوغوښتو او وي فرمایل

لَكَ سُدُسٌ آخَرُ فَلَمَّا وَلَّى دَعَاهُ قَالَ :

چې تا ته به شپږمه برخه نوره ملا ویږي بیا چې کله هغه بیرته راغلو نو نبي علیه السلام راوغوښتو او وي فرمایل

إِنَّ السُّدُسَ الْآخَرَ طُعْمَةٌ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ[1]

چې دا آخره شپږمه برخه دا ستا رزق دی.

**توضیح**:ان السدس الأخر:صورت د مسئلې داسې وُ چې يو سړی مړ شو هغه په ترکه کې مال پرېښودو او ورثاؤ کې يې دوه لورګاني پرېښودلي او يو يې نيکه پرېښودلو. د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه همغه نيکه د خپل ميراث د مسئلې پوښتنه وکړه. نبي کريم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل، تاته به شپږمه برنه ملا وېږي. هغه سړی لاړو. بيا نبي کريم صلی الله علیه وسلم راوغوښتلو او ورته وي فرمايل چې تاته به شپږمه برنبه ملاوېږي. دا سړی لاړو نو بيا نبي کريم صلی الله علیه وسلم راوغوښتلو او وي فرمايل چې دا تاته کومه شپږمه برخه ملاؤ شوه نو دا د عصبه په توګه ده. دا چې دا سړی د ذوی الفروض نه وو. نو د هغه مړي د پلار نه کېدو په وجه شپږمه برخه ملاؤ شوه. نبي کريم صلی الله علیه وسلم هغې ته دوباره شپږمه برخه ورکړه. دا د عصبه په توګه وه. نبي کريم صلی الله علیه وسلم جدا جدا ځکه ورکړه چې هغه دا ونه ګڼي چې دده برخه دو ځل شپږمه برخه په ميراث کې د ذوی الفروض په توګه ده. نو ځکه يې هغې ته قولي وويله.چې دا آخري برخه د عصبه په توګه ده. (المرقات ۶/۲۴۴)

صورت د مسئلې داسې دی :

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳۱۸/۳ رقم الحديث :۲۸۹۶.

مسئله ۶

| بنت | بنت | جدبالفروض والعصبه |
| --- | --- | --- |
| ثلث | ثلث | دوه سدسه |
| ۲ | ۲ | ۲ |

## په میراث کې د نیا برخه

| |
| --- |
| ﴿۲۰﴾ وَ عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ ذُؤَيْبٍ قَالَ : جَاءَتِ الْجَدَّةُ إِلَى أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| قبیصه بن ذؤیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې (د یو مړ شوي کَس) نیا د ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضره شوه |
| تَسْأَلُهُ مِيرَاثَهَا فَقَالَ لَهَا : مَا لَكِ |
| او دده نه یې دخپل میراث داخیستو مطالبه وکړه. ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل چې نه ده مقرره ستا لپاره |
| فِي كِتَابِ اللهِ شَيْءٌ وَمَا لَكِ فِي سُنَّةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ شَيْءٌ |
| په کتاب الله کې څه برخه او نه په سنت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ستا لپاره څه برخه مقرره ده (یعنې ماته |
| فَارْجِعِي |
| چې کوم حدیثونه یاد دي نو په هغې کې په یو کې هم د نیا ذکر نشته دی) نو ته بېرته لاړه شه. زه به باد |
| حَتَّى أَسْأَلَ النَّاسَ |
| خلکو (یعنې علماو او صحابو) نه پوښتنه کومه (کیدی شي په هغوی کې چاته د نیا باره کې د نبي |
| فَسَأَلَ فَقَالَ الْمُغِيرَةُ بْنُ |
| عَلَيْهِ السَّلَام یو ارشاد مبارک معلوم وي) نو بیا ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خلکو نه پوښتنه وکړه نو وویل مغیره بن |
| شُعْبَةَ : حَضَرْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې زه (یوه ورځ) د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شوم (نو ما ولیدو) چې |
| أَعْطَاهَا السُّدُسَ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هَلْ مَعَكَ غَيْرُهُ؟ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام یوې نیا ته شپږمه برخه ورکړه. ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مغیره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل چې آیا تا سره نور |
| څوک وو؟ (یعنې ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د احتیاط په طور د هغه نه پوښتنه وکړه چې ستا نه بغیر بل چا هم د |

| فَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ |
|---|
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دا حکم اوریدلی یا لیدلی دی؟) نو (یو بل صحابي ) محمد بن مسلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل |
| مِثْلَ مَا قَالَ الْمُغِيرَةَ |
| (د حضرت مغیره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د قول تائید وکړو) کوم چې مغیره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ویلي وُ "چې ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته |
| چې کله اطمینان وشو چې د مړي په ترکه کې د نیا برخه هم وي نو) نیا ته یې د مړي په ترکه کې شپږمې |
| فأنفذه لَهَا أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ثُمَّ جَاءَتِ الْجدة الْأُخْرَى إِلَى عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| برخې ورکولو فیصله ورکړه. بیا یوه بله جده د عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضره شوه او د هغه نه یې |
| تَسْأَلُهُ مِيرَاثَهَا فَقَالَ : هُوَ ذٰلِكِ السُّدس |
| د خپل میراث داخیستو مطالبه وکړه نو عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې همغه شپږمه برخه ستا لپاره هم ده. که |
| فَإِن اجْتَمَعَا فَهُوَ بَيْنَكُمَا وَ أَيَّتُكُمَا |
| چیرې تاسو دوه وي، نو ستاسو د دواړو په مینځ کې هغه مشترکه ده. او که په تاسو کې هغه یوه وي |
| خَلَتْ بِهِ فَهُوَ لَهَا. [1] |
| نو هغه شپږمه برخه به د هغه یوې لپاره وي. |

**توضیح: الجدة الى ابي بکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ:** په عربي لغت جده د پلار له اړخه نیا ته هم وایي . او د مور د اوښه نیا ته هم وایي . د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې چې کومه ښځه د میراث غوښتلو لپاره راغلې وه علماء لیکي چې هغه ښځه د مړي د مور له طرفه نیا وه. او د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې چې کومه ښځه راغلې وه نو هغه د مړي د پلار له اطرفه نیا وه. لکه څنګه چې په ځینو روایاتو کې د دې فرق هم ذکر شوی دی. د دې حدیث مطلب دا دی چې د جده شپږمه برخه وي. که هغه یوه وي یا دوه وي او که شپږ وي. د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په علم کې همدغه خبره وه چې جده یوه ده. لهذا د دې شپږمه برخه ده. خو چې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې بله جده هم حاضره شوه نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغې ته وویل چې ستا لپاره هم شپږمه برخه ده که جده یوه وي او که دېرې وي که یوازې وي نو هم دا برخه د هغې لپاره ده او که په یو ځای ډیرې راغونډې شي نو هم هغه برخه ده ټول په هغې

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۳۱٦ رقم الحدیث :۲۸۹٤

کې شریک دي. خلاصه دا چې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په علم کې یوه جده وه نو ځکه یې شپږمه برخه مقرره کړه خو حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته معلومه وه چې یوه بله جده هم شته دی نو دواړه یې په هغې کې شریکې کړي. (المرقات ۶/۲۴۵)

## د مړي د پلار په موجودګۍ کې نیا ته شپږمه برخه ورکړي

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ فِي الْجَدَّةِ مَعَ ابْنِهَا : |
| دابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې هغې د نیا باره کې چې د هغې ځوي موجود وي دا وویل چې |
| أَنَّهَا أَوَّلُ جَدَّةٍ أَطْعَمَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ سُدُسًا مَعَ ابْنِهَا |
| (میراث اخستونکې) هغه اوله نیا چې ورکړه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شپږمه برخه د هغې د ځوي په |
| وَابْنُهَا حَيٌّ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَالتِّرْمِذِيُّ ضَعَّفَهُ[1] |
| موجودګۍ کې او د هغې ځوي ژوندی ؤ. |

**توضیح: مع ابنها:** د مسئلې صورت داسې دی چې یو سړی خپله مړ شو. هغې یو پلار پریخوستلو او یوه نیا پریخوده چې هغه خپلو کې مور او ځوي دی. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مړي نیا ته په میراث کې شپږمه برخه ورکړه او دا چې د نیا ځوي هم ژوندی ؤ چې د مړي پلار ؤ. نو پدې صورت کې د علماؤ مسلک دا دی چې د مړي د پلار په موجودګۍ کې نیا ته هیڅ نه ورکولی کېږي. بلکې هغه لمسي د میراث نه محرومېږي. ذکر شوی حدیث متروک العمل دی او دا حدیث ضعیف هم دی چې د استدلال قابل نه دی. یا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تبرع او احسان په توګه جده ته شپږمه برخه ورکړه د میراث په طور یې نه وه ورکړي لهذا دا ضابطه نه ده. (المرقات ۶/۲۴۶)

## د خون بها په مال کې میراث چلیږي

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَ عَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ سُفْيَانَ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَتَبَ إِلَيْهِ : أَنْ وَرِّثْ |
| دضحاک بن سفیان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته ولیکل چې ورکړه میراث د |
| امْرَأَةَ أَشْيَمَ الضَّبَابِيِّ مِنْ دِيَةِ زَوْجِهَا . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ[2] |
| اشیم ضبابي ښځې ته د دې د میړه په دیت کې. |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳۶۷/٤ رقم الحديث :۲۱۰۲

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۳۳۹/۳ رقم الحديث :۲۹۲۷

**توضیح:** **کتب الیه:** حضرت ضحاک بن سفیان رضي الله عنه د عرب د بهادرانو نه وو فرمايي چې د سلو (۱۰۰) بهادرانو برابر وو. د نبي کريم صلی الله علیه وسلم سره به يې سونتي توره واخستله او د پيرادار په توګه به ولاړ وو. نبي کريم صلی الله علیه وسلم هغه د هغې په قوم "اسلم" باندې والي مقرر کړی وو. هغه وخت هغه ته د نبي کريم صلی الله علیه وسلم مکتوب راغلی وو. (المرقات ٦/٢٤٧)

**امرأة اشیم:** اشيم ضبابي صحابي دی. دا د نبي کريم صلی الله علیه وسلم په زمانه مړ کړی شوی وو. خو دا قتل خطاء وه. نو ځکه يې د قاتل نه ديت واخستلو. او په ورثاوو کې د اشيم ښځه هم وه. نبي کريم صلی الله علیه وسلم په دغه سلسله کې ضحاک ته مکتوب وليکول چې د اشيم ضبابي ته ته د هغې د ميړه په ديت کې ميراث ورکړه. د دې حديث نه معلومه شوه چې ميراث د مړي په ديت کې هم چلېږي. لکه څنګه چې د هغې په نورو مالونو کې چلېږي فرمايي. د حضرت عمر رضي الله عنه او د حضرت علي رضي الله عنه دا خيال وو چې د مړي په ديت کې د ورثاوو ميراث نه چلېږي. نو ځکه حضرت ضحاک هغوی ته د نبي کريم صلی الله علیه وسلم د حديث حوالا ورکړله او مسئله يې ثابته کړله. (المرقات ٦/٢٤٧)

## موالات اسلام د ميراث ذريعه نه ده

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ قَالَ سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا السُّنَّةُ فِي الرَّجُلِ مِنْ أَهْلِ الشِّرْكِ |
| تميم داري رضي الله عنه وايي چې ما تپوس وکړو د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه په حکم د هغه مشرک باره کې |
| يُسْلِمُ عَلَى يَدَيْ رَجُلٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ؟ |
| چې د يو مسلمان په لاس يې اسلام راوړی وي (يعنې هغه مسلمان د هغه نوي مسلمان مولی وي يا نه؟) |
| فَقَالَ : هُوَ |
| نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې هغه مسلمان (چې د هغه په لاس هغه مشرک مسلمان شوی وي) |
| أَوْلَى النَّاسِ بِمَحْيَاهُ وَ مَمَاتِهِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ[1] |
| د هغې په ژوند کې د ټولو نه ډېر حقدار وي. او د مرګ نه وروسته هم د ټولو نه ډېر حقدار همغه دی |
| (يعنې هغه مسلمان د هغه نوي مسلمان مولی وي). |

**توضیح:** يو کس چې کله د بل کس په لاس اسلام قبول کړي نو هغه سړی د هغه نوي مسلمان مالک وي

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/٤٥ معلقا في كتاب الفرائض.

هغې ته موالاتِ اسلام وايي. په ابتداء د اسلام کې همدغه صورت وو. چې هغه خلک به د یو بل وارثان شول. وروسته دا حکم منسوخ شو.

**هواولى الناس بمحياه ومماته:** نه همدغه مراد دی چې د ژوند او د مرګ په دواړو صورتونو کې دا سړی د هغه نوي مسلمان مالک وي. ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ د مظهر رَحِمَهُ اللّٰهُ په حوالا ليکلي دي چې داسې سړی د عمر بن عبدالعزيز او د سيد ابن مسيب او داسې د نورو په نزد د نوي مسلمان مالک کيږي. خو د امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ، د امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ او امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد دا سړی مولا کيدلی نشي. مولی همغه وي چا چې ازاد کړی دی "الولاء عن اعتق" واضح حديث دی. لهذا زير بحث حديث يا منسوخ دی او يايې مطلب دا دی چې اوس ژوند او د ژوند نه وروسته هغه نوی مسلمان په مرسته هغه سړی باندې لازم دي. لهذا د دې حديث د مولی جوړيدلو يا نه جوړيدلو سره هيڅ تعلق نشته دی. (المرقات ۶/۲۴۸)

**دولاء درې قسمونه دي** : ۱: ولاء العتاقة: د غلام ازادولو په وجه چې کوم وراثت ملاويږي هغې ته وايي. ۲: ولاء موالات يا ولاء معاقده: د دوو کسانو ترمينځ د هغه معاهدې نوم دی چې هغه په خپلو کې د يو بل د تاوان زغملو او د مرګ نه وروسته د ميراث اخستلو معاهده کيږي. ۳: ولاء اسلام: د دې تفصيل پاس ليکلی شوی دی. چې د هغې ذکر زير بحث حديث دی.

## آيا آزاد شوی غلام د خپل مالک وارث کيدې شي؟

| |
|---|
| ﴿۲٤﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ : أَنَّ رَجُلًا مَاتَ وَلَمْ يَدَعْ وَارِثًا إِلَّا غُلَامًا |
| ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې يو داسې سړی مړ شو چې هغه نه وو پريخي يو وارث په غير د يو غلام نه |
| كَانَ أَعْتَقَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : هَلْ لَهُ أَحَدٌ ؟ |
| چې هغه ده آزاد کړې ؤ نو نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې آيا د هغې څوک وارث شته دی يا نه؟ |
| قَالُوا : لَا إِلَّا غُلَامٌ لَهُ كَانَ أَعْتَقَهُ |
| صحابه کرامو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُم وويل چې هيڅ وارث يې نشته خو دا يو غلام دی چې هغه آزاد کړی ؤ ، نو نبي |
| فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِيرَاثَهُ لَهُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه[1] |
| کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه مړي ميراث د ده هغه آزاد شوي غلام ته ورکړو. |

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۳۵٤ رقم الحديث :۲۹۰۵

**توضیح: میراثهٔ لهٔ:** یعنې د مالک مړ شو مګر د هغې هېڅ یو وارث نه وو. فقط په پاتې خلکو کې یو غلام وو. نبي کریم ﷺ د هغه سړی میراث د هغې غلام ته ورکړلو. ملاعلی قاری رحمه الله لیکلي دي چې دا معامله د احسان او د تبرع په توګه وو. لکه څنګه چې د دینه مخکې د حضرت عائشه رضي الله عنها په روایت نمبر ۱۴ کې تېر شوي دي. شیخ مظهر لیکلي دي چې حضرت شریح او د طاؤس په نزد دا حدیث خپل ظاهر باندې معمول به دی. لکه څنګه ازاد کونکی خپل آزاد کړي غلام وارث وي. همدغه شان غلام هم د خپل ازاد کونکی وارث کېدلی شي. (المرقات ۶/۲۴۸)

## دولاء دوراثت مسئله

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| عمرو بن شعیب رضي الله عنه د خپل پلار او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل |
| يَرِثُ الْوَلَاءَ مَنْ يَرِثُ الْمَالَ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ إِسْنَادُهُ لَيْسَ بِالْقَوِيِّ[1] |
| کوم سړی د مال چې وارث وي هغه د ولاء هم وارث وي. |

**توضیح:** د ازاد شوي غلام نه پاتې شوي متروکه مال ته "ولاء" وایي. د دې مرګ نه وروسته د ولاء د هغې د ازادونکې ته به ملاوېږي. خو پدې شرط چې د هغه غلام وارث نه وي. پدې حدیث کې چې کوم صورت بیان شوی دی هغه داسې دی. چې مثلاً د زید پلار مړ شو. بیا د هغې نه وروسته د زید د پلار ازاد شوی غلام مړ شو. اوس زید د هغه غلام د ولاء به وارث وي ځکه څنګه چې زید د خپل پلار د مال وارث د همدغه شان د خپل د ازاد شوي غلام د مال هم وارث دی چې هغې ته ولاء وایي. یاد وساتې چې دا حکم فقط عصبه بنفسه دی. چې هغه ځوي وي. لهذا لورګانو ته به په هغه میراث کې هېڅ نه ملاوېږي ځکه هغه عصبه بنفسه نه ده. هغه د خپل پلار د مال وارث خو به وي خو د دې غلام د ولاء وارث نه شي کېدي. (المرقات ۶/۲۴۸)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## په جاهلیت کې د تقسیم شوي میراث حکم

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَاكَانَ مِنْ مِيرَاثٍ قُسِمَ |
| عبد الله بن عمر رضي الله عنه وایي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل کوم میراث چې تقسیم شوې وي د |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳۷۳/٤ رقم الحديث: ۲۱۱٤

| |
|---|
| فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَهُوَ عَلَى قِسْمَةِ الْجَاهِلِيَّةِ وَمَا كَانَ مِنْ مِيرَاثٍ أَدْرَكَهُ الْإِسْلَامُ |
| جاهلیت په زمانه کې هغه به د جاهلیت د زمانې مطابق پاتې وي او کوم میراث چې د اسلام زمانه و مونده |
| فَهُوَ عَلَى قِسْمَةِ الْإِسْلَامِ. (۱) |
| هغه به د اسلام مطابق تقسیمیږي. |

**توضيح:** د نبي كريم صلی الله علیه وسلم د ارشاد مطلب دا دی چې کوم میراث د جاهلیت په زمانه کې په وارثانو کې تقسیم شوی دی. نو په هغې کې به هیڅ ترمیم او اضافه نه کیږي. چې چاته د هغه دور مطابق څومره ملاؤ شوی دی همغه د هغې برخه ده لږه ده او که ډیره ده. خو په کوم مال باندې چې د اسلام دور راغلی دی د هغې تقسیم به د اسلام د اصولو مطابق کیږي. د دې حدیث نه "**ابقاء ماکانه علی ماکان**" ضابطه راوځي.

## ترور دورارہ وارثه نه وي

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ حَزْمٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَاهُ كَثِيرًا يَقُولُ: |
| د محمد بن ابوبکر بن حزم رضی الله عنه نه روایت دی چې هغه د خپل پلار نه واوریدل چې هغه به اکثر ویل |
| كَانَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَقُولُ: عَجَبًا لِلْعَمَّةِ تُورَثُ |
| چې عمرفاروق رضی الله عنه به ویل چې د ترور باره کې تعجب دی چې د هغې وراره خو د هغې وارث شي |
| وَلَا تَرِثُ. (۲) |
| مګر هغه د خپل وراره وراثه نه وي. |

**توضيح: عجباً للعمة:** حضرت عمرفاروق رضی الله عنه فرمايي چې په ترور باندې تعجب دی. چې د هغې وراره خو د هغې وارث کیدی شي مګر د هغې وراره وارث نشي کیدي د حضرت عمرفاروق رضی الله عنه دا تعجب د قیاس په بنیاد باندې دی. ګیني د شریعت د حکم علت پلټنه ضروري نه ده. د الله تعالی حکم دی. که په عقل کې راځي او که نا. (المرقات ۶/۲۴۹)

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۹۱۸/۲ رقم الحديث :۲۷۴۹.

(۲) أخرجه مالك في الموطأ ۵۱۷/۲ رقم الحديث : ۹

## د علم میراث د زده کړې حکم

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : تَعَلَّمُوا الْفَرَائِضَ وَ زَادَ |
| د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې ده وویل چې "د فرائضو احکام او مسائل زده کړې خو اضافه |
| ابْنُ مَسْعُودٍ : وَ الطَّلَاقَ وَ الْحَجَّ |
| کړې دي ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا الفاظ چې "د طلاق او د حج احکام او مسائل (هم) زده کړئ". هغه |
| قَالَا : فَإِنَّهُ مِنْ دِينِكُمْ .[1] |
| وویل چې (د دې زده کړه ځکه ضروري ده چې) دا علم ستاسو د دیني ضروریاتو نه دی. |

**توضیح: تعلموا الفرائض:** د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت په تا باندې موقوف دی. **وزاد ابن مسعود:** یعنې حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د فرائضو سره د طلاق او د حج الفاظ اضافه کړیدي.

**قالا:** یعنې ابن مسعود او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړو وفرمایل .**فانه:** یعنې دا علم او زده کول. په ځینو نسخو کې **انها** دی یعنې دا مذکورات ستاسو د دین نه دی یعنې د دین اهم اهم مسائل دی ، په دې صورت کې مَن د تبعیض د پاره دی یا من بیانیه دی یعنې دا مذکورات ستاسو د دین نه دي. فرائض د فریضة جمع ده د علم میراث مقرري برخي ته فریضه ویل شوي ده. زیر بحث حدیث کې د علم میراث په زده کړه باندې زورنه ورکړی شوي ده او ښه ترغیب ورکړی شوی دی. په یو بل حدیث کې دي. **"تعلمو الفرائض وعلموها الناس فانه نصف العلم"** دې ته نصف العلم ځکه وایي چې انساني ژوند دوه (۲) حالتونه دي. یا د حیات حالت دی او نیمه برښه ده او یا د ممات حالت دی. دا دویمه نیمه برخه ده. د علم الفرئض تعلق د دویم حالت سره دی. په یو حدیث کې دي **"تعلموا الفرائض وعلموه الناس فانی امرؤ مقبوض"**. په یو روایت کې د دې حدیث په آخر کې داسې دي. **فانها اول قضية تنشی** یعنې دا اول علم دی. چې د انسانانو نه به هیر شي. نو په علوم اسلامیه کې علم میراث اولني علم دی. چې د علماؤ نه لاړ شي. او دا د قیامت په نښانو کې دی. نن په داد ویل کیدی شي چې ۸۰ سلنه علماء نه دا علم پاځیدلی دی چې په هغې کې د ټولو نه اول زه یم. الله تعالی دې د علم او د علماؤ حفاظت وکړي.

---

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۴۴۱/۲ رقم الحديث : ۲۸۵۱.

# باب الوصايا
## دوصيتونو بيان

**قال الله تعالى:** ﴿مِّن بَعۡدِ وَصِيَّةٖ تُوصُونَ بِهَآ أَوۡ دَيۡنٖ﴾ (سورة النساء آيت:۱۲)

**وصايا** جمع ده د دې مفرد **وصية** دی وصيت ديته وايي چې يو سړی په خپل ژوند کې خپلو وارثانو ته دا ووايي چې زما د مرګ نه وروسته فلانی فلانی کار وکړئ مثلاً جومات يا مدرسه يا خانقاه يا سرای يا پل يا هسپتال جوړ کړی يا کوهي وکني د زما نه فلانی فلانی عبادات پاتې دي د هغې انتظام وکړئ.

**دوصيت په حيثيت کې د فقهاؤ اختلاف**: د داؤد ظاهری اسحاق بن راهويه او د اهل ظواهرو به نز وصيت کول واجب دی. د جمهورو فقهاوو په نز وصيت کول مستحب دی. اګر که د احتياط تقاضا همدغه ده چې د هر مسلمان سره د هغې وصيت موجود وي. يا يې د بالخت د لاندې يخي وي. مګرواجب ندی. (المرقات ۶/۲۵۱)

**دلائل**: د اسحاق بن راهويه او د اهل ظواهرو د قرآن کريم د آيت ﴿كُتِبَ عَلَيۡكُمۡ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ ٱلۡمَوۡتُ إِن تَرَكَ خَيۡرًا ٱلۡوَصِيَّةُ لِلۡوَٰلِدَيۡنِ وَٱلۡأَقۡرَبِينَ﴾ (البقره آيت:۱۸۱) نه استدلال کړی دی. او د **باب الوصايا** د اول فصل د اولني حديث نه يې هم استدلال کړی دی.

جمهور فقهاء وايي چې د آيت ميراث نه د وصيت ټول نظام منسوخ شوی دی. اوس د وارثانو د شريعت له اړخ نه برخي مقرر شوي دي. د سړی د وصيت هيڅ ضرورت پاتې ندی. همدغه شان **لا وصية لوارث** مشهور حديث دی. د دينه هم آيت متاثره کيدلی شي. په ابتداء د اسلام کې اګر چې د وصيت نظام قائم وو. خو وروسته منسوخ شو. خو د آيت ميراث نه وروسته هم د تهائی مال وصيت کولو حق مالک ته حاصل دی. د دې لپاره چې يو سړی د خپل ژوند په آخري وخت کې وصيت کول غواړي يا صدقه کول غواړي نو د نيکۍ ټولې دروازې هغې ته خلاصي دي.

**جواب**: اهل ظواهرو چې د کوم آيت نه د وصيت استدلال کړی دی يا د دی باب د اول فصل د حديث نمبر ۱ اول نه يې استدلال کړی دی نو دهغې جواب دا دی چې دا صورت يا د قرض وصيت باندې محمول دی يا د امانت په وصيت باندې محمول دی. چې د فقهاوو په نز ضروري دی. يا په ذکر شوې آيت کې د وصيت نه استحبابي وصيت مراد دی. او د وصيت په استحباب کې د چا اختلاف نشته دی. (المرقات ۶/۲۵۱)

دويم جواب: دا دی چې په ابتداء د اسلام کې د وصيت د وجوب حکم وو. بيا منسوخ شو.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا حَقُّ امْرِئٍ مُسْلِمٍ |
| د ابن عمر رضی الله عنه نه روايت دی وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې د کوم مسلمان نارينه په |
| لَهُ شَيْءٌ يُوصَى فِيهِ يَبِيتُ لَيْلَتَيْنِ إِلَّا |
| (مال يا تعلقاتو کې) معامله کې کومه خبره د دوصيت قابل وي نو هغه ته پکار ده چې دوه شپې هم د |
| وَ وَصِيَّةٌ مَكْتُوبَةٌ عِنْدَهُ.[1] |
| وصيت د ليکلو نه بغير تېرې نه کړي. |

**توضيح**: د دې نه مخکې په پوره توګه د دې حديث توضيح او تشريح باندې کلام شوی دی.

## په خپله ترکه کې د دريمې برخې وصيت کيدې شي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ : مَرِضْتُ عَامَ الْفَتْحِ مَرَضًا أَشْفَيْتُ عَلَى الْمَوْتِ |
| سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه وايي چې زه د مکې د فتحې په کال دومره سخت بيمار وم چې د مرګ غاړې |
| فَأَتَانِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَعُودُنِي فَقُلْتُ : |
| ته ورسيدم نو کله چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم زما د مريضتيا پوښتنې ته راغلو نو ما عرض وکړو چې |
| يَا رَسُولَ اللهِ : إِنَّ لِي مَالًا كَثِيرًا وَ لَيْسَ يَرِثُنِي إِلَّا ابْنَتِي أَفَأُوصِي |
| يا رسول الله ! زما سره ډير مال دی مګر د يوې لور نه زما بل وارث نشته دی. نو آيا زه وصيت وکړم د |
| بِمَالِي كُلِّهِ ؟ قَالَ : لَا قُلْتُ : فَثُلُثَيْ مَالِي ؟ |
| خپل ټول مال باره کې ؟نبي عليه السلام وفرمايل: نه. بيا ما وويل چې آيا د دوه دريمې برخې مال باره کې |
| قَالَ : لَا قُلْتُ : فَالشَّطْرِ ؟ قَالَ : |
| وصيت وکړم؟نبي عليه السلام وفرمايل نه. ما وويل چې آيا د نيم مال وصيت وکړم، نبي عليه السلام وفرمايل |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۵۵/۵ رقم الحديث :۲۷۳۸، ومسلم في صحيحه ۱۲۴۹/۳ رقم الحديث: ۱۶۲۷/۱.

| لَا | قُلْتُ : فَالثُّلُثِ ؟ قَالَ : الثُّلُثُ |
|---|---|
| چې نه ماوويل چې د دريمې برخې مال وصيت وکړم؟نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل چې د دريمې برخې مال باره | |
| وَ الثُّلُثُ كَثِيرٌ إِنَّكَ إِنْ تَذَرْ وَرَثَتَكَ أَغْنِيَاءَ | |
| کې وصيت کولی شې اګرکه هغه هم ډېره ده او ياد ساته! که چرې ته خپل وارثان مالداره پرېږدې نو داد | |
| خَيْرٌ مِنْ أَنْ تَذَرَهُمْ عَالَةً يَتَكَفَّفُونَ النَّاسَ وَ إِنَّكَ | |
| هغې نه غوره ده چې ته هغه مفلس پرېږدې او هغوی خلکو ته لاس ونيسي ټوهه شه!ته چې د مال کومه | |
| لَنْ تُنْفِقَ نَفَقَةً تَبْتَغِي بِهَا وَجْهَ اللهِ إِلَّا أُجِرْتَ بِهَا حَتَّى | |
| يوه برخه هم د الله د رضا د پاره مصرف کړې نو تا ته به ثواب درکړې شي د هغې په مصرفولو تر دې چې | |
| اللُّقْمَةَ تَرْفَعُهَا إِلَى فِيْ امْرَأَتِكَ .[1] | |
| تا ته به د هغه لقمې ثواب هم ملاؤ شي چې کومه ته د خپلې ښځې خولې ته وړې. | |

**توضيح:عام الفتح**: ميرک شاه ليکلي چې د عام الفتح الفاظ صحيح ندي بلکې "**عام حجة الوداع**" د الفاظ دي. د کوم يو راوي نه سهو شوې ده. (المرقات ۶/۲۵۲)

**اشفيت**: د **قاربت** په معنی دی "**اشفيت**" ای **قاربت الهلاك** يعنې د مرګ ته نزدې شوی يم. (المرقات ۶/۲۵۲)

**يعودني**: پدې سره د حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ شان ډير لوي شو. چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه عيادت لپاره ورغلو. او د هغې په کور کې يې د هغه عيادت وکړو. (المرقات ۶/۲۵۲)
بابا سعدي رَحِمَهُ اللَّهُ د داسې موقع لپاره ويلي دي:

*کلاه گوشه دهقان به آفتاب رسيد ❁ که سايه بر سرش انداخت چون تو سلطانے*

**الاابنتي**: مطلب دا دی چې په ذوی الفروض کې ميراث تر وس وخت پورې زما د لور دی. (المرقات ۶/۲۵۲)

**سوال**: حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو مالداره صحابي ؤ او د هغې څو زامن وو او په عصبه کې يې ډير وارثان وو بيا هغې ولې داسې وويل چې زما په وارثانو فقط يوه لور ده بل هيڅ څوک نشته دی؟

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۶۳/۵ رقم الحديث :۲۷۴۲، ومسلم في صحيحه ۱۲۵۰/۳ رقم الحديث: ۱۶۲۸/۵.

**جواب**: د دې پوښتنې څو جوابونه دي: اول جواب چې دې ته ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ او نورو شارحينو اشاره کړې ده. دا ده چې د حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ذوی الفروض کې فقط يوه لور وويله چې په ذوی الفروض کې مې يوه لور ده. مطلب دا نهٔ چې نور وارثان نشته دی. ځکه په عصبه کې دده نور ډير وارثان وو. خپله په همدغه حديث کې "ورثتك" لفظ راغلی دی. او يتكففون د جمعی صيغه ده. چې د هغې نه ښکاره معلوميږي. چې نور ورثه وو مګر هغه په عصبه کې وو. بلکې د لاندې روايت نمبر ۳ کې "ولدك" نه د اولاد ذکر موجود دی.

**دويم جواب**: هم ملا علی قاری رَحِمَهُ اللهُ ذکر کړی دی. چې هغې د علامه طيبې نه نقل کړی دی. د دې خلاصه دا ده چې زما وارثانو خو ډير دي خو د چا باره کې چې زما يره ده چې د هغې باره کې پريشانه يم هغه فقط زما لور ده. ځکه دا يوه عاجزه ښځه ده. چې زما په وارثانو کې د ټولو نه کمزوري ده.

**دريم جواب**: دا چې حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل ټول مال په خپلو ځامنو کې تقسيم کړی وو. فقط يوه لور وه چې تر وسه هغې ته ميراث نه وو ورکړی شوی. نو حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغې ذکر وکړو. دا جواب ډير ښه او واضحه دی. ماته ياديږي چې دا ما چرته ندی ليدلی. (المرقات ۶/۲۵۲)

**افأوصی**: يعنې د فقيرانو او د مسکينانو لپاره وصيت وکړئ او مال ورته وقف کړی.

**عالة**: فقيرانو ته وايي. (المرقات ۶/۲۵۲)

**يتكففون**: يعنې د خلکو نه خيرات غواړي.

**الی فِیْ**: فِي په فم کې يو لغت دی. چې مشدد دی، خلې ته وايي. مطلب دا دی چې د الله تعالی د رضا لپاره چې څوک عمل کوي نو هغې ته ضرور ثواب ملاويږی. د ميرمنې په وخت کې چې لقمه د ګپ شپ په وخت کې ورکړي. دا څه عبادت ندی بلکې يو عادت او شهوت دی. خو چې د الله تعالی د رضا تصور وي نو دا هم په عبادت کې شميرل کيږي. او ثواب ملاويږي. (المرقات ۶/۲۵۳)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

| ﴿۳﴾ عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ : عَادَنِي رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ أَنَا مَرِيْضٌ |
|---|
| سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې کله زه مريض وم نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما پوښتنې ته راغلو |
| فَقَالَ : أَوْصَيْتَ ؟ قُلْتُ : نَعَمْ قَالَ : |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې آيا تا د وصيت کولو اراده کړې ده؟ ما وويل چې آو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل |

بِكَمْ ؟ قُلْتُ : بِمَالِي كُلِّهِ فِي سَبِيلِ اللهِ .

د څومره مال د وصيت کولو اراده تا کړې؟ ما وويل چې ما خو د الله په لاره کې د ټول مال د وصيت کولو

قَالَ : فَمَا تَرَكْتَ لِوَلَدِكَ ؟ قُلْتُ : هُمْ

اراده کړيده نبي عليه السلام و فرمايل نو تا د خپل اولاد لپاره څه شی پريخي دي؟ ما وويل چې هغوی خپله

أَغْنِيَاءُ بِخَيْرٍ . فَقَالَ : أَوْصِ

مالداره او خوشحاله دي نبي عليه السلام و فرمايل (که وصيت کول غواړي نو) د وصيت وکړه د خپل مال

بِالْعُشْرِ فَمَا زَالَت أُنَاقِصُهُ

د لسمې برخې. سعد رضي الله عنه وايي چې کله ما د نبي عليه السلام دا مقدار بار بار کمولي نو (زما په اصرار)

حَتَّى قَالَ : أَوْصِ بِالثُّلُثِ وَ الثُّلُثُ كَثِيرٌ .(۱)

نبي عليه السلام و فرمايل چې ښه دا د دريمې حصې مال باره کې وصيت وکړه اګر که دا دريمه برخه هم ډيره ده

## د وارث لپاره وصيت صحيح نه دی

﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي خُطْبَتِهِ عَامَ حَجَّةِ

ابو امامه رضي الله عنه وايي چې ما د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې فرمايل يې په خطبه د حجة

الْوَدَاعِ : إِنَّ اللهَ قَدْ أَعْطَى كُلَّ ذِي حَقٍّ حَقَّهُ فَلَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ .(۲)

الوداع کې چې الله تعالى حقدار ته د هغې حق ورکړی دی. لهذا د وارث لپاره وصيت نشته دی.

وَزَادَ التِّرْمِذِيُّ: اَلْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ وَحِسَابُهُمْ عَلَى اللهِ وَيُرْوَى عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ: لَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ الْوَرَثَةُ مُنْقَطِعٌ هٰذَا لَفْظُ الْمَصَابِيحِ. وَفِي رِوَايَةِ الدَّارَقُطْنِيِّ: قَالَ: لَا تَجُوزُ وَصِيَّةٌ لِوَارِثٍ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ الْوَرَثَةُ.

**توضيح: اعطى كل ذى حق:** يعني د هر يو کس د حق برخه الله تعالى ورکړي ده. د ذوی الفروض لپاره خپله برخه مقرره ده. او د عصباتو لپاره خپلې برخې مقررې دي. نو د کوم يو وارث په حق کې د وصيت ضرورت نشته دی. که څوک ووهم کړي نو هغې له اعتبار نشته دی. خو که ټول وارثان په

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۳۰۵ رقم الحديث :۹۷۵

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۲۹۰ رقم الحديث :۲۸۷۰

هغې باندې راضي شي او د يو په حق کې د مړي د وصيت د نفاذ اجازت ورکړي نو دا جائز دي. خو پدې شرط چې په هغې کوم وړوکی ماشوم نه وي. (المرقات ۶/۲۵۵)

**الفراش**: د فراش اطلاع په ښځه باندې کېږي. خو دلته **الولد للفراش** کې صاحب فراش مراد دی. چې د خاوند يا وينځې لپاره آقا يا مالک مراد دی. **عاهر**: زناکار ته وايي. (المرقات ۶/۲۵۶).

**الحجر**: يعني هغې ته به کاڼي ملاوو شي چې هغه سنګسار کړی شي. که واده شوی وي يا د الحجر لفظ کنايه ده. د حرمان او محرومی نه به زناکار ته هېڅ نه ورکول کېږي. هغه محرومه دی هغې ته به دورې ورکړل کېږي. (المرقات ۶/۲۵۲)

## خپلو وارثانو ته نقصان رسول لويه ګناه ده

﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ وَالْمَرْأَةَ

ابو هريره رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه نقل کوي چې نبي عليه السلام وفرمايل نارينه او زنانه عبادت

بِطَاعَةِ اللهِ سِتِّينَ سَنَةً ثُمَّ يَحْضُرُهُمَا الْمَوْتُ فَيُضَارَّانِ فِي

کوي دالله تعالى ترشپيته کاله پورې مګر کله چې دهغوی د مرګ وخت رانزدې شي نو نقصان رسوي د

الْوَصِيَّةِ فَتَجِبُ لَهُمَا النَّارُ ثُمَّ قَرَأَ أَبُو هُرَيْرَةَ

وصيت په ذريعه (وارثانو ته) لهذا دهغوی لپاره دوزخ لازم شي. د دينه پس ولوستو ابوهريره رضي الله عنه

﴿مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصَى بِهَا

دا آيت يعني (وارثان دې خپلې برخې واخلي) د وصيت پوره کولو نه وروسته چې دچا وصيت وکړی

أَوْ دَيْنٍ غَيْرَ مُضَارٍّ﴾

شي يا دين نه وروست خو پدې شرط چې (وصيت کونکی) چا ته ضرر نه رسوي. ابو هريره رضي الله عنه دا

إِلَى قَوْلِهِ: ﴿وَ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ﴾.[1]

آيت ﴿وذٰلك الفوز العظيم﴾ پورې تلاوت کړو.

**توضيح**: **ستين سنة**: د حديث دا تعليم دی چې اعتبار آخري خاتمې لره دی. که يو سړی مثلاً شپيته

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۹۰۲ رقم الحديث: ۲۷۰۴.

كالو نه په عبادت كې لګيا وي او ښځه هم په عبادت كې لګيا وي خو د مرګ نه مخكې ناجائزه وصيت وكړي او خپل وارثانو ته نقصان رسوي نو داد اور مستحق دی. لهذا په هر مسلمان باندې لازم دي چې هغه د خپل وراثانو په حق كې نقصان ورنه كړي. ګيني د عذاب لپاره دې تيار شي. (المرقات ٦/٢٥٦)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### جائز وصيت د ثواب سبب دی

| |
|---|
| ﴿٦﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ مَاتَ عَلَى وَصِيَّةٍ |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل كوم سړی چې وصيت وكړي او مړ شو (يعني |
| كوم سړی چې د مرګ په وخت كې د خپل مال څه برخه د الله په لاره كې مثلاً فقيرانو ته دوركولو وصيت |
| مَاتَ عَلَى سَبِيلٍ وَ سُنَّةٍ وَ مَاتَ عَلَى تُقًى وَ شَهَادَةٍ |
| وكړو) نو هغه په نيغه لاراو په خوښه كړی شوي طريقه باندې مړ شو او تقوی او شهادت باندې مړ شو |
| وَ مَاتَ مَغْفُورًا لَهُ .[1] |
| (يعني متقيانو او شهيدانو كې به داخل وي) او په داسې مرګ مړ شو چې دده مغفرت وكړی شو. |

**توضيح**: **وصية**: يعني ضروري وصيت وليكي او د ځان سره كيږدي.

**سبيل**: **ای طريق واضح** يعني په نيغه لار راوان چې ګګه به نه وي. بلكې نيغه به وي. نه به جنجال وي او نه به جنګ وي. پدې حديث كې د وصيت كولو ترغيب وركړی شوی دی. چې ويخ وسی وصيت د ځان سره ساتي. دا حكم د اسلام په ابتداء كې واجب وو. بيا په آيت ميراث سره منسوخ شو. اوس مستحب دی. خو كه د چا خپلوان غريبانان وي او په ميراث كې د هغې حق نه وي. نو كه د هغوی لپاره يو سړی د تهائی مال وصيت كوي نو دا جائز بلكې مستحب ده. (المرقات ٦/٢٥٨)

**وسنة**: يعې په ښه لار به مړ كيږي. او د ښه سنت بنياد به كيږدي.

**على تُقًى**: يعني د خدای د ويري او د تقوی په اعلی مقام باندې به مړ كيږي. په علم او عمل باندې به يې خاتمه وي او ډيره به ښه وي. (المرقات ٦/٢٥٨)

---

(١) أخرجه ابن ماجه في السنن ٢/٩٠٢ رقم الحديث :٢٧٠١.

**وشهادة:** یعنې په حکمي شهادت باندې به مړ کېږي او ده ته به د شهادت ثواب ملاوېږي. (المرقات ۶/۲۵۸)

**مغفورًا:** یعنې په بخشش سره به د دنیا نه لاړ شي. دا ټولې فایدې د وصیت دي. د دې فوایدو تعلق د آخرت سره دی. خو په وصیت کې په دنیا کې هم بې شماره فواید شته دی. چې د مشر سره څومره مال دی او کم کم ځای کیدی. د وصیت کولو نه بغیر لکونه روپۍ ډوبې شي. او همدغه شان نور ډیر واقعات وشي. (المرقات ۶/۲۵۸)

## کافرانو ته د نیک عملونو ثواب نه رسیږي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ |
| عمرو بن شعیب د خپل پلار (شعیب رضي الله عنه) نه او شعیب د خپل نیکه (عبد الله رضي الله عنه) نه نقل کوي |
| أَنَّ الْعَاصَ بْنَ وَائِلٍ أَوْصَى أَنْ يُعْتَقَ عَنْهُ مِائَةُ رَقَبَةٍ |
| چې عاص بن وائل داوصیت کړی ؤ چې زما له اړخ سل (۱۰۰) غلامان آزاد کړی. نو آزاد کړل زوي دده |
| فَأَعْتَقَ ابْنُهُ هِشَامٌ خَمْسِينَ رَقَبَةً فَأَرَادَ ابْنُهُ عَمْرٌو أَنْ يُعْتِقَ عَنْهُ الْخَمْسِينَ |
| هشام رضي الله عنه پنځوس غلامان بیا چې کله دده (بل) ځوي عمرو رضي الله عنه اراده وکړه چې آزاد کړي پنځوس |
| الْبَاقِيَةَ فَقَالَ : |
| باقي غلامان نو هغه وویل (یعنې خپل زړه کې یې سوچ وکړو) چې دا پنځوس غلامان به تر هغه پورې |
| حَتَّى أَسْأَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَأَتَى النَّبِيَّ |
| نه آزادوم چې تر کومې پورې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه ونه کړم. نو راغې عمرو رضي الله عنه نبي |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ أَبِي أَوْصَى |
| کریم صلی الله علیه وسلم ته او وې ویل چې یا رسول الله! زما پلار (عاص) داوصیت کړی ؤ چې د هغه له اړخه |
| أَنْ يُعْتَقَ عَنْهُ مِائَةُ رَقَبَةٍ وَ إِنَّ هِشَامًا أَعْتَقَ عَنْهُ خَمْسِينَ |
| دې سل (۱۰۰) غلامان آزاد کړی شي. لهذا هشام خو پنځوس ازاد کړل اوس په هغې باندې (د هشام |
| وَ بَقِيَتْ عَلَيْهِ خَمْسُونَ رَقَبَةً أَفَأُعْتِقُ عَنْهُ |
| رضي الله عنه په ذمه یا زما په ذمه) پنځوس غلامان پاتې دي. نو آیا زه د خپل پلار له اړخه (هغه پنځوس |

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِنَّه لَوْ كَانَ مُسْلِمًا

غلامان ازاد کړم؟). نبي کريم ﷺ وفرمایل "هغه (ستا پلار عاص) که مسلمان وی نو تا به د

فَأَعْتَقْتُمْ عَنْهُ أَوْ تَصَدَّقْتُمْ عَنْهُ أَوْ حَجَجْتُمْ عَنْهُ

هغه له اړخه ازاد کړي وی یا به دې د هغه له اړخه صدقه ورکړی وی یا به دي حج کړی وی نو هغه ته

بَلَغَه ذَلِكَ .[1]

به ثواب رسیدلي وي.

**توضيح:** عاص بن وائل د نبوت په زمانه کې وو خو د بدقسمتۍ نه یې اسلام قبول نکړو او په حالت کفر کې مړ شو. د هغې دوه (۲) زامن وو. یو هشام بن عاص رضي الله عنه او بل عمرو بن عاص رضي الله عنه ؤ. دواړو ته الله تعالى د اسلام قبولو توفيق ورکړی وو. هشام قديم الاسلام وو. په مکه کې یې اسلام قبول کړی وو. او بیا یې د حبشي اړخ ته هجرت وکړلو. د حبشه نه وروسته چې بېرته مکې ته راغلو نو پلار هغه قید کړلو. تر درې څلور کالونو پورې یې قید مصیبتونه د پلار په جیل کې برداشت کړل. بیا د غزوهٔ خندق په موقع باندې د نبي کريم ﷺ خواته مدینې ته هجرت وکړو او راغي. د شان والا صحابي ؤ. په جنګ یرموک کې شهید شو. حضرت عمرو بن عاص رضي الله عنه د فتح مکې نه لږ مخکې د حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه سره مدینی ته راغلو او اسلام یې قبول کړو. د شان والا صحابي دی د مصر فاتح ؤ. د نبي کريم ﷺ په زمانه کې د نبي کريم ﷺ د طرفه والي ؤ. بیا د حضرت ابوبکر رضي الله عنه په زمانه کې هم والي ؤ. بیا د حضرت عمرفاروق رضي الله عنه په زمانه کې هم والي ؤ. بیا د حضرت معاويه رضي الله عنه د طرفه والي ؤ. په ۹۹ کاله عمر کې ۴۳ هجری کې مړ شو. (المرقات ۶/۲۵۹)

زیر بحث حدیث کې حضرت عمرو بن عاص رضي الله عنه د نبي کريم ﷺ نه د مسئلي پوښتنه وکړه چې زما پلار د مرګ نه مخکې وصیت کړی وو. چې زما له اړخه ۱۰۰ غلامان ازاد کړه. زما ورو هشام پنځوس ازاد کړي دي. نور زما په ذمه پاتې دي. ایا زه د هغه د طرفه دا غلامان آزادولی شم. یعنې هغې به څه فایده رسېږي او کومه یوه نیکې به هغې ته رسېږي؟ نبي کريم ﷺ په جواب کې وفرمایل چې که هغه مسلمان وی نو د ازاده ولو ثواب به هغې ته رسیدلی وی. خو دا چې هغه په اسلام باندې نه دی مړ شوی. لهذا کافر ته ایصال ثواب نه رسېږي. نبي کريم ﷺ به

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۳/۳۰۲ رقم الحديث :۲۷۰۱

عجيبه طريقې سره جواب ورکړلو چې غلامان مه ازاده وه. بلکې دا شاره يې ورکړه چې د آزادولو ثواب خو ضرور ملاويږي. غلامان آزادول په کار دي دا د ثواب کار دی. خو هغه ته به يې ثواب نه رسيږي. دا چې هغه مسلمان نه ؤ. هيڅ يو کافر ته د هيڅ يو عبادت ثواب د هغې د مرګ نه وروسته نه رسيږي. لهذا د هيڅ نيکئ فايده به نه وي. اګر که هغه غلام آزادول وي که حج کول وي که زکوة وي. خو مسلمان ته د دغه قسمه نيکيو ثواب رسيږي. (المرقات ٦/٢٥٩)

## د وارث حق ضايع کول ډېره لويه ګناه ده

| |
|---|
| ﴿٨﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ قَطَعَ مِيرَاثَ وَارِثِهِ |
| انس رضي الله عنه روايت دی وايي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل کوم سړی چې د خپل وارث حق ماتوي |
| قَطَعَ اللهُ مِيرَاثَهُ مِنَ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَرَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ[1] |
| الله تعالی به د قيامت په ورځ د هغه جنت ماتوي. |

**توضيح: قطع ميراث:** يعنې د خپل وارث ميراث په طريقه باندې ضايع کړو او هغه يې د ميراث نه محروم کړو. نو د قيامت په ورځ به الله تعالی هغه ظالم سړی د جنت د ميراث نه محرومه کړي. د جنت د ميراث اړخ ته به قرآن کريم کې داسې اشاره ده ﴿تِلْكُمُ الْجَنَّةُ أُورِثْتُمُوهَا﴾ د ميراث د دې اطلاق نه معلوميږي چې د هر انسان لپاره په جنت کې سيټ او ځای مقرر دی. او همدغه شان په دوزخ کې هم يو سيټ او ځای مقرر دی. که چرې دا سړی جنت ته داخل نشو نو بل سړی ته به د هغې سيټ ملاوو شي. دا ګويا کې د جنت ميراث دی. شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله د هر انسان د دوه (٢) سيټونو ذکر داسې کړی دی **"ولما كانه لكل مكلف مقعد في الجنة و مقعد في النار" الخ** (لمعات برحاشيه مشکوة ص ٤٨٥).

بهرحال څوک چې په دنيا کې د خپل عزيز ميراث خرابوي. الله تعالی به د قيامت په ورځ د هغه سړی ميراث خراب کړي. (اشعة اللمعات)

علامه طيبي رحمه الله د دې سزا د ربط او مناسبت اړخ ته داسې اشاره کړيده. د هغې د عربي عبارت د ترجمې کتنه وکړئ: په قيامت کې د هغه سړی ميراث د جنت نه ختمول د هغه سړی لويې ناکامئ او نااميدئ اړخ ته اشاره ده. په دواړو کې مناسبت داسې دی. چې مثلاً په دنيا کې د سړی وارث د ډير

(١) أخرجه ابن ماجه في السنن ٢/٩٠٢ رقم الحديث: ٢٧٠٣

وخت نه پدې انتظار کې وي چې د خپل مورث ميراث ته به رسېږم. چې کله ورنزدې شي نو مورث د هغې ميراث مات کړي او هغه نااميده کړي. همدغه شان کله چې دا مورث د جنت په انتظار کې وي او پدې اميد ناستی وي چې ماته به هم زما مقام ملاؤ شي او د جنت ميراث به ماته ملاوو شي. نو الله تعالی د جنت نه د هغې ميراث مات کړي. نو ډير اميد او انتظار نه وروسته هغې پوره نااميده شي. او ناکامه شي. او **کما تدين تدان** د عمل د بدل خوند ورکولی شی. او ديته د "**جزاء الفعل بمثل ما فعل**" پوره پوره بدله ملاوو شي. او د "**جزاء سيئة سيئة بمثلها**" ټوله نقشه د هغې مخې ته راشي. حال دا چې هغې ته ښا ښا ويل شوي وو چې "**هل جزاء الاحسان الا الاحسان**" په ضابطه باندې عمل کونکی جوړ شه چې کامياب شي. (الکاشف ۶/۲۳۴)

**الحمدلله:** نن د جمعې په ورځ ۲۴ ذوالحجه ۱۴۲۵ هـ د سحر وخت يولس بجې د ورځې زه توضيحات جلد څلورم ت ليکني نه فارغ شوم. دا جلد اصلاً دريم جلد وو. خو د صفحاتو د ډير والي په وجه دا دووو جلدونو کې تقسيم کړلی شو لهذا د نظر لاندې جلد د ترتيب په اعتبار سره څلورم جلد دی. او د کتاب النکاح نه تر کتاب الجهاد پورې جلدونه د دينه مخکې چاپ شوي وو. او د څلورم جلد په نوم شائع شوي وو. اوس به هغه پنځم (۵) جلد ګڼل کېږي.

د ډير محنت او مشقت نه وروسته الله تعالی د زه د تکميل مرحلی ته ورسولم. زه د هغه پروردګار لاکهالاکه شکر ادا کومه او وايم:

اللهم لك الحمد كما ينبغي لجلال وجهك وعظيم سلطانك اللهم لا مانع لما اعطيت ولا معطي لما منعت ولا ينفع ذالجد منك الجد يا كريم اللهم لا تخزني فانك بي عالم ولا تعذبني فانك علي قادر للك الحمد في الاولى والأخرة ولك الشكر في البداية والنهاية. انت العظيم وانت الكريم وانت على كل شيء قدير.

وصلى الله تعالى على خير خلقه وصفوة بريته سيدنا محمد سيدنا الاولين والأخرين وعلى أله واصحابه اجمعين برحمتك يا ارحم الرحمين

جمعه ۲۴ ذوالحجه ۱۴۲۵ھ مطابق ٤ فروری ۲۰۰۵م



